تالیف

فضیلۃ الشیخ ابو محمد امین اللہ البشاوری

حفظہ اللہ تعالیٰ

جمع وترتیب : ابوزھیر سیف اللہ

المکتبۃ المحمدیۃ

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ○

| آیاتها (۱۸۲) | ۳۷ سورة الصَّافات مَكِّيَّةٌ (۵٦) | رکوعاتها (۵) |
| --- | --- | --- |

سورتِ صافات مکی دے، په دے کښې یو سلو دوه آتیا آیتونه او پنځه رکوع دی

## تفسیر سورة الصافات

**نوم :** اَلصَّافَّات دے،دا د ملائکو صفت دے او پدے سورت کښې هم د ملائکو بحث دے۔ صاحب د محاسن التنزیل د مهایمیؒ مفسر نه نقل کړی چه په دے آیتِ کریمه کښې د ملائکو داسے صفتونه بیان شوی چه دا د دویٔ نه د اُلوهیت نفی کوی، د همدے صفاتو نه یو صفت (صافات) هم دے۔ او د ملائکو نه چه د اُلوهیت نفی اُوشوه نو د نورو مخلوقاتو نه په طریقه اولیٰ سره ددے نفی وشوه، او د الله تعالیٰ وحدانیت ثابت شو۔

**د نازلیدو زمانه :** قرطبیؒ لیکلی چه دا سورت د ټولو په نیز مکی دے۔ د ابن عباس ﷺ هم دا قول دے۔

### مناسبت

۱ – مخکښې ئے ووئیل چه آلِهه باطله شفاعت نشی کولے نو دلته ئے عاجزی بیانوی چه دا خپله مخلوق دے، او الله ته محتاج دی۔

۲ – مخکښې اثبات د آخرت وو نو پدے سورت کښې هیبت د آخرت دے لکه پدے آخری سورتونو کښې اکثر د آخرت احوال دی۔

په بل تعبیر سره داسے ووایه : چه په هغه آخر سورت کښې اثبات د بعث بعد الموت وو په دلیلونو سره نو پدے سورت کښې ذکر کوی حالات د خلکو په ورځ د قیامت کښې تخویفاً وبشارةً۔ (احسن الکلام)۔

۳– مخکښې سورت کښې عقلی دلیلونه وو نو پدے سورت کښې نقلی دلیلونه ذکر کوی۔

## د سورت موضوع او مقصد

۱- زمونږ مشائخ وائی چه پدے سورت کښ اثبات د توحید دے په ذکر د احتیاج او عجز د ملائکو او عبدیت د پیغمبرانو او ذلت د جناتو سره. یعنی اِحْتِيَاجُ وَعِجْزُ الْمُصْطَفَيْنَ مِنَ الْمَلَائِكَةِ وَالْاَنْبِيَاءِ وَغَيْرِهِمْ مِنَ الْجِنِّ) د غوره بندګانو چه ملائك او انبياء دی. یا د دوی نه علاوه چه جنات دی د هغوی احتیاج ذکر کول. لکه د دوی په باره کښ به (وَلَقَدْ مَنَنَّا) ذکر کوی چه دوی سره ما احسان کړے وو.

۲- پدے کښ رد د مشرکین بالملائکه والجن دے. یعنی هغه مشرکان چه ملائك یا جنات د الله سره شریکوی د هغوی رد ذکر کیږی.

۳- بل مقصد پدے سورت کښ دے بَيَانُ عِبَادَاتِ الْمَلَائِكَةِ وَالْاَنْبِيَاءِ لِلْاِقْتِدَاءِ بِهِمْ. د ملائکو او د انبیاء علیهم السلام عبادتونه ئے ذکر کړیدی دے دپاره چه خلك د دوی اقتداء وکړی لکه د سورت مریم په شان موضوع پکښ ذکر ده. لیکن پدے باندے دا بل جانب غالب دے. پدے سورت کښ دوه مقصدونه نور دی، د هغے دپاره ئے د ملائکو او د انبیاء علیهم السلام عبادات ذکر کړیدی، یو دا چه پدے سورت کښ تخویف ورکوی او بیا وائی چه د عذاب نه به په څه باندے بچ کیږی؟ هغه طریقه به بنائی. او عذاب کښ خلق ولے ګرفتاریږی د هغے وجه به بیانوی. پدے سورت کښ به د مؤمن، مُحسِن، مُسَبِّح، عبادت او الفاظ زیات وی دپاره د اقتداء د دغه نیکانو. دا تولے خبرے به پدے سورت کښ په یو ځای ذکر کیږی.

ددے سره به د آخرت خبره ملګرے کوی چه دا عبادتونه او د شرك نه ځان ساتل په یوه ورځ کښ پکار راځی، دا د نجات اسباب دی.

### خلاصه

اول نه الله تعالیٰ په ملائکو قسم کړے دپاره د اثبات د توحید، بیا ئے د هغے بعض دلیلونه ذکر کړی، بیا ئے د پیریانو کمزوری بیان کړے تر (۱۰) آیت پورے، یعنی ملائك د الله عابدان او جنات کمزوری بی طاقته دی. نو مطلب دا شو چه ملائك الله ته محتاج دی د هغهٔ عبادت کوی نو تاسو هم د هغوی په شان کار وکړئ او پیریان الله ته محتاج دی، دوی د الله سره مهٔ شریکوئ، د دوی د تابعدارئ نه ځان وساتئ.

بیا ئے د اثبات د آخرت دپاره ﴿فَاسْتَفْتِهِمْ﴾ سره دلیل راوړے. بیا زجر دے هغه خلکو ته

چه دلیلونه نهٔ منی، او دے پورے مسخرے کوی ﴿بَلْ عَجِبْتَ وَيَسْخَرُونَ﴾، دوی د آخرت د ورځے پورے توقے کولے نو الله تعالیٰ به دوی ته د آخرت هیبت او نور احوال په تفصیل سره بیان کړی۔ په یوه نیمه رکوع کښې۔ تر (۷۰) آیت پورے۔ او په (۷۱) کښې به ووائی چه پخوانو خلکو به هم داسے توقے کولے نو الله ورسره څنګه معامله وکړه نو دغسے به تاسو سره هم وکړے شی، نو بیا د تخویف دنیوی او د اقتداء دپاره واقعات د انبیاء علیهم السلام راوړی، چه د هغوی نافرمانه قومونه الله تعالیٰ هلاك کړل او هغوی ته ئے د نیك عملی په وجه نجات ورکړو نو تاسو هم دغه شان نیك عمله شئ د عذابونو نه به درته نجات ملاؤ شی۔ تر (۱٤۸) آیت پورے بیا د ﴿فَاسْتَفْتِهِمْ﴾ نه روستو تر آخر پورے تفریعات او په مختلفو کارونو سره زجرونه او رټنے دی۔ او سورت ئے په سلامتیا د مرسلینو او په حمد د رب العالمین سره ختم کړیدے۔

| وَالصَّافَّاتِ صَفًّا ﴿۱﴾ فَالزَّاجِرَاتِ |
| --- |
| قسم دے په هغه ملائکو چه صفونه تړی په صف تړلو سره۔ بیا په هغو چه شړونکی دی |
| زَجْرًا ﴿۲﴾ فَالتَّالِيَاتِ ذِكْرًا ﴿۳﴾ |
| په شړلو سره۔ بیا قسم دے په هغه ملائکو چه لوستونکی دی ذکر (قرآن) لره۔ |
| إِنَّ إِلَٰهَكُمْ لَوَاحِدٌ ﴿٤﴾ رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ |
| یقیناً لائق د بندګئ ستاسو یو دے۔ رب د آسمانونو او د زمکے دے |
| وَمَا بَيْنَهُمَا وَرَبُّ الْمَشَارِقِ ﴿٥﴾ |
| او د هغے چه په مینځ د دواړو کښې دی او رب د مشرقونو دے۔ |

**تفسیر**: الله تعالیٰ ددے سورت نه روستو په بعض سورتونو کښې په مخلوق باندے قسم خوړلے، په مخلوق باندے قسم خوړل د بندګانو دپاره جائز نهٔ دی ځکه چه په قسم کښې انتهائی درجه تعظیم وی، او دا تعظیم د الله تعالیٰ د شان سره لائق دے، رسول الله ﷺ په مخلوق باندے قسم خوړلو ته شرك وئیلے دے، او الله تعالیٰ لره په مخلوق باندے قسم خوړل جائز دی ځکه چه په هغه باندے پابندی نشته، بیا الله په مخلوق ولے قسم کوی؟ نو وجه دا ده چه په قسم کښې د الله تعالیٰ تعظیم وی، ځکه چه د مخلوق جمال او

کمال د الله تعالیٰ جمال او کمال دے، بیا الله تعالیٰ کله په لویو مخلوقاتو قسم کوی چه جسم، بدن او جثه ئے غټه وی، لکه ملائک، غرونه او آسمانونه، یا په عزتمند او شرافت والا باندے لکه (لَعَمۡرُكَ) نبی ته وائی چه ستا په عمر مے قسم دے۔ ځکه چه د رسول الله ﷺ عزت زیات دے، یا هغه چه قیمتی ډیر وی لکه ﴿وَالۡفَجۡرِ وَلَيَالٍ عَشۡرٍ﴾، یا ﴿وَالۡعَصۡرِ﴾، د زمانے او د وخت ډیر قیمت دے۔

دلته الله تعالیٰ د ملائکو په صفاتو قسم کوی، نهٔ په ذات د ملائکو ځکه چه که صرف په ملائکو قسم وے نو بیا به د مشرکانو عقیده په هغوی باندے نوره مضبوطه شوے وے۔ نو دلته الله تعالیٰ د ملائکو په صفاتو قسم وکړو چه اے خلقو! تاسو د ملائکو دا صفات وپیژنئ، نو ددے صفاتو نه به مونږ ته دوه خبرے راوځی،

یو دا چه دوی د الله تعالیٰ سره د شراکت لائق نهٔ دی ځکه چه دوی خو خپله د الله تعالیٰ په عبادت او ذکر کښې مصروف دی، او هغه ته عاجزی او زاری کوی، نو عابد به څنګه معبود جوړ شی؟!

دویم دا چه الله مونږ ته تنبیه راکوی چه زما داسے مخلوقات شته چه زما په عبادت کښې د شپے او د ورځے لګیا دی، تاسو د هغوی اقتداء وکړئ۔ لکه روستو راځی چه دا سورت به د الله تعالیٰ د عذاب نه د بچ کیدو دپاره طریقے ښائی چه دا کارونه وکړئ نو د الله تعالیٰ د عذابونو نه به په دنیا او آخرت کښې خلاص شئ۔ نو پدے صفاتو کښې تشبه بالملائکه مقصود دے۔

وَالصَّافَّاتِ : جمع د صَافَّةٌ، ده اَیْ طَائِفَةٌ صَافَّةٌ ، یا جَمَاعَةٌ صَافَّةٌ ۔(ډله صف تړونکے / یا جماعت صف تړونکے)۔

عبد الله بن مسعود، عبد الله بن عباس رضی الله عنهما، عکرمةؒ، سعید بن جبیرؒ، مجاهدؒ او قتادةؒ وغیره وائی چه د (الصَّافَّاتِ) نه مراد هغه ملائک دی چه په آسمان کښې د خپل رب مخے ته صفونه تړلی اودریږی۔ د مسلم روایت دے چه نبی کریم ﷺ وفرمایل : [اَلَا تَصُفُّوۡنَ كَمَا تَصُفُّ الۡمَلَائِكَةُ عِنۡدَ رَبِّهِمۡ ؟ قَالُوۡا وَكَيۡفَ تَصُفُّ الۡمَلَائِكَةُ عِنۡدَ رَبِّهِمۡ ؟ قَالَ : يُتِمُّوۡنَ الصُّفُوۡفَ الۡمُتَقَدِّمَةَ وَيَتَرَاصُّوۡنَ فِي الصَّفِّ]

(آیا تاسو داسے صفونه نهٔ تړئ څنګه چه ملائک د خپل رب په حضور کښې صفونه تړی؟ خلقو تپوس وکړو: ملائک د خپل رب مخے ته څنګه صفونه تړی؟ وے فرمایل : مخکنی صفونه پوره کوی، او په صف کښې یو بل سره جوخت ودریږی)۔

(مسلم فی الصلاة حدیث ۱۱۹، ابو داود فی الصلاة باب۹۳) وغیره)
واو قسمیه چه راشی پدے کښں معنیٰ د گواهئ پرته وی، لکه ﴿ فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ ﴾۔ نو لفظی معنی ئے دا وی: زهٔ قسم کوم په هغه ملائکو چه هغوی صف ترونکی دی د الله په بندگئ کښں په صف ترلو سره۔ دا حالت د الله تعالیٰ ډیر خوښں دے او دا ښکلے صفت دے، او د ملائکو عاجزی ده ځکه ئے پرے قسم کرے، یعنی گواه دی دغه ملائك چه دا صفتونه ئے ترلی، یعنی د دوی دا صفت ترل د الله د بندگئ دپاره گواه دی پدے خبره چه ﴿ إِنَّ إِلَـٰهَكُمْ لَوَاحِدٌ ﴾ ستاسو اِلٰه یو دے۔ دا ئے جواب د قسم شو۔
گواهی ئے پدے طریقه ده چه دوی صرف د الله تعالیٰ بندگی کوی نو که غیر الله معبود وے، نو دوی به الله تعالیٰ ته صفونه نهٔ ترلے بل چا ته به ولاړ وے۔ دا دلیل دے پدے خبره چه د الله تعالیٰ نه ماسویٰ بل معبود نشته چه ملائك هغه ته صفونه د بندگئ وترى۔
او د دوی دا حالت گواه دے چه ملائك عاجز مخلوق دے، الله تعالیٰ ته محتاج دی، نو دوی آلهه نشی کیدے او د الله تعالیٰ سره شریك نشی جوړیدے۔ نو دلته دواړه خبرے جمع دی، قسم او گواهی لکه رسول الله ﷺ هم په یو گواه او یو قسم باندے فیصله کرے، یو قسم ئے په ځای د گواهئ قبول کړیدے۔ اګرکه دلته گواهی ورسره تفسیر باللازم دے، خپله معنیٰ ئے د گواهئ نهٔ ده۔
ابن عاشورؒ لیکی: په قسم سره ئے شروع وکړه پدے کښں شوق ورکول دی مُقْسَم علیه ته (یعنی په کوم شی چه قسم کولے شی) دے دپاره چه آوریدونکے هغے ته ښه متوجه شی۔
فَالزَّاجِرَاتِ د زجر نه دے، شړلو، رټلو او منع کولو ته وئیلے شی۔
۱- یعنی هغه ملائك چه وریځے شړی د یو طرف نه بل طرفته۔ (سدیؒ)۔
۲- یا شیطانانو لره د آسمان نه۔ ۳- یا منع کونکی وی مؤمنانو لره د گناهونو نه په الهام د خیر سره۔ یعنی د هغه د مخلوق په خدمت کښں لګیا دی، نو هرکله چه داسے مخلوق وی چه د الله تعالیٰ امر منونکے وی، هغه څنګه د عبادت لائق جوړیدے شی؟۔
فَالتَّالِيَاتِ ذِكْرًا : نه مراد هغه ملائك دی چه انبیاء کرامو علیهم السلام ته د الله تعالیٰ آیتونه (وحی) لوستلو سره آوروی۔
❁ بعضو مفسرینو دا د علماؤ صفات ګرځولی دی، یعنی هغه علماء چه صفونه ترى په عباداتو کښں۔ چه دوی منع کوی خلکو لره د کفر او فسوق نه په دلیلونو او

نصیحتونو سره، او د الله آیتونه او د هغه شرائع (احکام) لولي او خلکو ته ئې بیانوي.

﴿ بعضو د مجاهدینو صفات گرځولي دي یعنې چه دوی په جهاد کښې د دشمن په مقابله کښې صفونه تړي، او آسونه د منډې دپاره شړي او د الله تعالیٰ ذکر لولي. د دشمن په مقابلې سره د الله د ذکر نه نهٔ غافله کیږي، صاحب د محاسن التنزیل وائي چه الفاظ د آیت دې ټولو ته شاملیږي،آه. لیکن غوره دا ده چه دا د ملائکو صفات دي لکه چه مخکښې بیان شو.

**فائده** : فاء یا د عطف دپاره ده، نهٔ د قسم دپاره، یا د قسم دپاره ده، او دا په ځای د واو باندې قائمه ده. مګر غوره دا ده چه فاء د عطف دپاره ده ځکه چه دلته ئې د واو په ځای فاء راوړل غوره کړل ځکه چه په فاء کښې مقصد ترتیب وي، نو دلته هم ترتیب د صفاتو مقصد دې، یعنې اول صف تړل بیا د شیطانانو شړل بیا تلاوت کول دي. او دا ترقي ده د ادنیٰ نه اعلیٰ ته. او دا دوه احتماله په ﴿ وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشٰى وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلّٰى ﴾ کښې هم دي. چه واو د عطف دپاره دې، په نیز د خلیل او سیبویهٔ یا د قسم دپاره دې په نیز د نورو. یا دا فاء د اختلاف د ذواتو (موصوفاتو) دپاره ده، یعنې بعض ملائك یو کار کوي او بعضې بل. (قاسمیؒ)

او پدې قسمونو کښې اشاره ده چه دا صفتونه د الله تعالیٰ ډیر خوښ دي. او دا صفات ئې په طریقه د جمع راوړل اشاره ده چه د ملائکو انواع (اقسام) مراد دي نهٔ آحاد او افراد.

إِنَّ إِلٰهَكُمْ لَوَاحِدٌ : یعنې دغه ملائك پدې خبره گواه دي چه ستاسو معبود او الله یو ذات دې، د هغهٔ هیڅ برخه دار نشته. او دا جواب قسم دې.

رَبُّ السَّمٰوٰتِ : یعنې یو خو د هغه په الوهیت او توحید باندې د ملائکو حال دلیل دې، او دویم دا چه هغه د هر څه پیدا کونکې او ټولو له روزي ورکونکې دې، هم هغه د آسمانونو او زمکې او ددې دواړو ترمینځه د هر یو شيءُ رب دې، او هم هغه د مشرق او مغرب رب دې.

وَرَبُّ الْمَشَارِقِ : ۱- مشرقونه زیات دي پدې وجه ئې جمع راوړه ځکه چه د نمر دپاره په هره ورځ کښې بیل بیل مشرق وي، نو ټول درې سوه شپیته مشرقونه ئې دي. او دغه شان درې سوه شپیته مغربونه ئې هم دي، (قاله ابن الانباریؒ وابن عبد البرؒ)

دلته ئې رب المغارب ونهٔ وئیلو، یو د آیتونو د فواصلو د رعایت د وجه نه. او بل دا چه مشارق لفظ مغاربو ته دلالةً شامل دې. او ددې په نهٔ ذکر کولو کښې حکمة دا دې چه

دلته د رڼړا ځیزونه ذکر کیږی لکه مشارق کښې رڼړا ده، (زَيَّنَّا) کښې رڼړا ده، الكواكب کښې رڼړا ده، روستو (شهاب ثاقب) کښې رڼړا ده، نو ددې د مناسبت د وجه نه مغارب نه دې استعمال شوې، نو اشاره ده چه دا قرآن او د الله تعالیٰ بندګی هم رڼړا ده.

مطلب دا شو چه رڼړا نعمت دې، او دلته هم مقصود د نمر رڼړا ذکر کول دی او هغه په راختلو سره کیږی ددې وجه نه ئې مطالع نهٔ دی وئیلی.

بله وجه دا ده چه دلیل د نمر په ښکاره کیدو سره ډیر ښکاره دې په نسبت د پریوتو...

۲- ابن عاشورؒ وائی: مشارق ئې جمع راوړه ځکه چه د فصول اربعه ؤ (څلورو موسمونو) په اعتبار سره د نمر مطالع مختلف دی، او کوم ځای چه رب المشرقين وائی نو په هغې کښې لحاظ د مشرق الصيف او مشرق الشتاء دې یعنی د دوه فصلونو په اعتبار سره د نمر خایونه د راختلو دوه جوړیږی.

او رب لفظ ئې دوباره راوړو پدې کښې اشاره ده چه پدې ځیزونو کښې آثار د ربوبیت ډیر ښکاره دی، او په هره ورځ کښې تازه کیږی. (قاسمیؒ وابو السعودؒ)

| |
|---|
| إِنَّا زَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِزِينَةٍ الْكَوَاكِبِ ﴿٦﴾ |
| یقیناً مونږ ښائسته کړیدې آسمان نزدې په ډول سره چه ستوری دی. |
| وَحِفْظًا مِّنْ كُلِّ شَيْطَانٍ مَّارِدٍ ﴿٧﴾ لَا يَسَّمَّعُونَ |
| او کرخولې دې مونږ دپاره د ساتلو د هر شیطان سرکش نه. غوږ نهٔ شی کیخوستې دوی |
| إِلَى الْمَلَإِ الْأَعْلَىٰ وَيُقْذَفُونَ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ ﴿٨﴾ دُحُورًا وَلَهُمْ |
| مجلس اُوچت ته، او ویشتلې شی د هر طرف نه. دپاره د شړلو (د دوی) او دوی لره |
| عَذَابٌ وَاصِبٌ ﴿٩﴾ إِلَّا مَنْ خَطِفَ الْخَطْفَةَ |
| عذاب همیشه دې. مګر هغه څوك چه تختول اُوکړی (د خبرې) په تختولو سره |
| فَأَتْبَعَهُ شِهَابٌ ثَاقِبٌ ﴿١٠﴾ |
| نو ورپسې شی د هغهٔ پسې لمبه (شعله) بلیدونکې. |

**تفسیر**: دا د الله تعالیٰ د قدرت او د هغهٔ د علم او د حکمة د راښکاره کیدو دلیل دې چه د الله تعالیٰ د قدرت یو ځای دا هم دې چه هغهٔ د دنیا آسمان په ستورو سره ښائسته

کړے۔ دا مختلف قِسم ستورې دي، ددے نه ځینې په یو ځای ولاړ وي، او څۀ حرکت کونکي وي، څۀ واړۀ وي او څۀ غټ۔ دا ستورې د شپے په وخت په لیدو کښې روښانه او ځلیدونکي په نظر راځي، او د دنیا آسمان ته زینت ورېخښي، او په تیارۀ شپو کښې په لیدو کښې ښکلي لیدلے کیږي۔

ددے ستورو بل مقصد دا دے چه ددے په ذریعه شیطانان ویشتلے کیږي، او دوئ د آسمان د خبرو آوریدو نه لرے ساتلے کیږي، دے دپاره چه د غیبو خبرے آوریدو سره په زمکه باندے وسیدونکو ترویتانو ته ئے ونۀ ښائي۔ شیطانان چه کله هم ددے کوشش کوي، ملائك دوئ د آسمان د هر طرف نه د شغلو په ذریعه ولي دے دپاره چه دوئ د آسمان د خبرو آوریدو نه لرے وساتي، الله تعالیٰ وفرمایل چه د قیامت په ورځ به دے شیطانانو له دائمي عذاب ورکړے کیږي۔

بِزِينَةِ نِ الْكَوَاكِبِ : الكواكب بدل دے د زِینَةِ نه۔ او زِینَةِ ئے نکره راوړه یعني په ناشنا زینت او ښائسته سره چه هغه ستورې دي۔ یعني ستورې خپله زینت دے۔

وَحِفْظًا : یعني ستورې ئے ګرځولي دي دپاره د حفاظت د هر شیطان نه، دا د الله تعالیٰ په مسلمانانو احسان دے که پدے ستورو سره شیطانان نۀ شړلے کیدے نو دوی به ډیر خلك په فتنه کښې اچولي وے لکه چه د جاهلیت په زمانه کښې ئے خلك ګمراه کړي وو۔ او دا د رسول الله ﷺ شرافت هم وو چه د هغه د راليږلو په وخت د کهانت طریقے ختمے شوے، او ددے دپاره چه اشاره شي چه پدے کښې لویه دیني فائده هم ده هغه دا چه د وحی نه د خلکو بیخي شك ختم شي چه دا به د شیطانانو خبره وي۔لکه څنګه چه پدے کښې دنیوي فائده د ډول او د خلکو د لارو معلومولو ده په وجه او دریاب کښې۔ (ابن عاشورؒ)

او حِفْظًا کښې اشاره ده چه د ستورو په وجه د آسمان حفاظت شویدے لکه حدیث کښې دي [اَلنُّجُوْمُ اَمَنَةٌ لِلسَّمَاءِ] (ستورې د آسمان دپاره د امن ذریعه ده) ځکه چه ستورې الغاز (ګیسونه) دي چه آسمان ددے په وجه ولاړ دے۔

(صحیح مسلم : ١٩٦٢/٤ رقم : ٢٥٣١) وفي طبع دار الجیل بیروت رقم : (٦٦٢٩)

او حِفْظًا منصوب دے، مفعول له دے دپاره د زینا دپاره۔ یا مفعول مطلق دے د حَفِظْنَاهَا دپاره۔ یعني مونږ محفوظ کړیدے په محفوظ کولو سره۔

مَّارِدٍ : یعني خالي د خیر نه۔ (م رد) ماده دلالت کوي په خالي والي باندے لکه اَمْرَدُ د ګیرې نه خالي هلك ته وئیلے شي۔ مراد ترے نه (خَارِجٌ مِنَ الطَّاعَةِ) دے، یعني سرکش

چه د طاعت نه وتلے دے۔
لَا يَسَّمَّعُوْنَ إِلَى الْمَلَإِ الْأَعْلٰى :مفسرين ليكي چه شيطانان آسمان ته نزدے رسيږي، او ملائك چه كومے خبرے خپلو كښې كوي، ځكه الله تعالىٰ ورته كارونه سپارلي وي، لوي نظام روان دے، كائنات الله تعالىٰ د ملائكو په واسطه روان كړيدي، دوي ئے په كارونو باندے لګولي دي، بارانونه، ګرمي، يخني، مصيبتونه او راحتونه، رزقونه، وژل او ژوندي كول دا ټول د ملائكو په واسطه كيږي نو هغوي ته الله تعالىٰ كار وسپاري نو په ملائكو كښې مشران او كشران شته، نو مشران كشرانو لره ځايونو او كارونو باندے مقرروي چه تهٔ فلاني ځاي ته لاړ شه او ته فلانے كار وكړه نو دوي چه كله خبرے كوي، شيطان لاړ شي هغوي ته غوږ كيږدي، بعض خبرے ترے واوري، ملائك پرے خبر شي او ورپسے رامنډه كړي نو راويزغلوي، او شغله د اُور ورپسے راخوشے كړي كله وسوزي، او كله دغه بعض خبره كاهنانو ته راورسوي، كاهنانو ته هغه خبره وكړي كومه چه په دنيا كښې كيدونكي وي۔ (دا هم دليل دے چه ملائك په غيبو نهٔ پوهيږي)۔
امام شوكانيؒ د بعض مفسرينو رائے نقل كړے چه شيطانان الهي وحي هيڅ كله نهٔ آوري، بلكه كله د ملائكو ځينو نورے خبرے آوري، ځكه چه الله تعالىٰ د سورتِ شعراء په (۲۱۲) آيت كښې فرمائيلي : ﴿ إِنَّهُمْ عَنِ السَّمْعِ لَمَعْزُوْلُوْنَ ﴾ (شيطانان د الهي وحي آوريدو نه قطعي طور سره منع كړے شوي دي)۔ او د سورتِ ملك په (۵) آيت كښې ئے فرمائيلي : ﴿ وَجَعَلْنَاهَا رُجُوْمًا لِّلشَّيَاطِيْنِ ﴾ (مونږ ستوري د شيطانانو د ويشتلو ذريعه جوړه كړے)۔ او د سورتِ حجر په (۱۷، ۱۸) آيتونو كښې فرمائيلي : ﴿ وَحَفِظْنَاهَا مِنْ كُلِّ شَيْطَانٍ رَّجِيْمٍ إِلَّا مَنِ اسْتَرَقَ السَّمْعَ فَأَتْبَعَهُ شِهَابٌ مُّبِيْنٌ ﴾ (مونږ دا د هر مردود شيطان نه محفوظ ساتلے، مګر څوك چه د غوږ ځارنے په ذريعه د آوريدو كوشش وكړي نو هغهٔ پسے بله لمبه ورپسے شي)۔ انتهىٰ۔
يَسَّمَّعُوْنَ : دا په اصل كښې يَتَسَمَّعُوْنَ دے۔
دُحُوْرًا : مفعول لَهٗ دے۔ أَيْ لِلدُّحُوْرِ۔ (دپاره د شړلو)۔ يا مفعول مطلق دے د (يُدْحَرُوْنَ) دپاره۔ (يعني شړلے شي په شړلو سره) ځكه چه شيطانان ګنده مخلوق دے نو الله تعالىٰ ئے د ملائكو د اَعلىٰ او اَشرف مجلس نه جدا ساتي، ځكه چه د دوي پدے خبرے آوريدو كښې غرض شر خوره ول وي۔ ددے نه معلومه شوه چه شريان خلك د

مجلس نه شړل پکار دي، او هغوی ته راز نهٔ دی ښکاره کول پکار.

عَذَابٌ وَاصِبٌ : ۱- هغه عذاب چه همیشه دے او اثرئے زړهٔ ته رسیږي.

۲- شَدِيدٌ غَيْرُ مُنْقَطِعٍ. سخت عذاب چه نهٔ ختمیدونکے وي.

ددے نه د آخرت عذاب مراد دے. مقاتل وائي : همیشه به پدے عذاب کښې وي تر اولے نفخې پورے. دواړه قوله صحیح دي، اول قول غوره دے.

شِهَابٌ ثَاقِبٌ : ملائك دا لمبه د نمر نه راخلي، یائے د ستورو نه، ځکه چه ستوري کیښتو نه دي، نو دوي ورته په څه طریقه اُوږوا چوي نو لمبه ترے جوړه شي. یا په ستورو کښې دا لمبے شته نو د ستوري نه څه شغله راواخلي.

دلته د پیریانو ددے حالاتو ذکر کولو نه یو مقصد د مشرکانو پدے عقیده باندے رد دے چه هغوی به وئیل چه پیریان د الله تعالیٰ سخرانه ده (والعیاذ بالله) نو الله تعالیٰ د دوي عجز او کمزورتیا بیانه کړه دلته او په آخر د سورت کښې هم چه د دوي تعلق د ملائکو سره نشته، نو د الله تعالیٰ سره به ئې په طریق اولیٰ سره نهٔ وي. او بله دا چه دوي همیشه د وېشتلو په عذاب اخته دي، نو مُعَذَّب مخلوق دے، هغوی ته وګوره او د الله تعالیٰ هغوی ته محتاج کیدو ته، دا څومره ګنده خبره ده. نو دوي چه هرکله داسے نا اهله مخلوق دے نو بیا دوي څنګه د الله تعالیٰ سره شریکان جوړیدے شي؟!.

| فَاسْتَفْتِهِمْ أَهُمْ أَشَدُّ خَلْقًا أَمْ مَّنْ |
|---|
| نو تپوس وکړه د دوئ نه آیا دوئ سخت دي په پیدائش کښې یا هغه څوك |
| خَلَقْنَا إِنَّا خَلَقْنَاهُمْ مِّنْ طِينٍ لَّازِبٍ ﴿۱۱﴾ |
| چه پیدا کړیدي مونږ، یقیناً مونږ پیدا کړیدي دوي د ختے سلیخناکے نه. |

**تفسیر:** اُوس الله تعالیٰ د مشرکانو نه تپوس کوي چه دوي وائي مړي راژوندي کیدل نشي کیدے. نو آیا د دوي دا بدنونه ډیر قوي دي او که دا کائنات، نو الله تعالیٰ دغه قوي مخلوقات راپیدا کولے شي نو ستا دا ضعیف بدن نشي پیدا کولے.

نبي کریم ﷺ ته وئیلے کیږي چه ته د مشرکانو نه تپوس وکړه چه هغوئ د مرګ نه پس د دوباره ژوندي کیدو نه انکار کوي چه په بدني قوت او مضبوطیا کښې دوئ زیات دي او که آسمان او زمکه او غرونه؟ ددے جواب دوئ سره صرف دادے چه دوئ واقعي

کمزوري او بے وسه جسمونه لري، او آسمانونه او زمکه او غرونه د دوئ نه ډير زيات قوي او لوي دي چه دا الله تعالیٰ پيدا کړي۔ او دا خبره دوئ ددے حقيقت په اقرار باندے مجبوره کوي چه د الله تعالیٰ د قدرت نه هيڅ يو شے خارج نهٔ دے۔ دے وجے نه انسانان دوباره ژوندي کول هغهٔ دپاره بيحده آسان دي۔

ددے مناسبت د مخکښ (إِنَّ إِلَٰهَكُمْ لَوَاحِدٌ) سره دے، الله تعالیٰ ولے يو معبود دے او انسانان د هغه يواځے عبادت ولے کوي؟ وجه دا ده چه د قيامت ورځ راروانه ده، الله تعالیٰ به د بندګانو سره حساب کوي، او مشرك رالګيري وائي چه زهٔ قيامت نهٔ منم، نو دا خو ټول نظام خرابوي چه آخرت نهٔ مني، نو مطلب دا چه د الله تعالیٰ اُلوهيت ته حاجت نشته، بيا به د هغهٔ عبادت نهٔ کوو، آسمان او زمکه هسے پيدا شويدي، بيا عبادت څه دپاره کوو۔ نو ځکه الله تعالیٰ د اِثبات د آخرت دپاره په مشرکانو حمله شروع کړيده۔

أَم مَّنْ خَلَقْنَا : د الله تعالیٰ مخلوقات مخکښ بيان شوي چه آسمانونه، زمکه، کواکب، نمر او سپوږمۍ، ملائك، جنات، غرونه۔

إِنَّا خَلَقْنَاهُم مِّن طِينٍ لَّازِبٍ : پدے کښ د انسان کمزورئ طرفته اشاره ده چه مونږ خو دا د ځليبناکے او کمزورے خاورے نه پيدا کړے۔

لَّازِبٍ د لُزُوب نه دے په معنیٰ د انښتلو او ځليبنت سره۔ يعنی متينه ځليبناکے چقړے ختے نه۔

| بَلْ عَجِبْتَ وَيَسْخَرُونَ ﴿١٢﴾ وَإِذَا ذُكِّرُوا |
|---|
| بلکه تهٔ تعجب کوے او دوي مسخرے کوي۔ او کله چه دوي ته نصيحت کيدے شي |
| لَا يَذْكُرُونَ ﴿١٣﴾ وَإِذَا رَأَوْا آيَةً يَسْتَسْخِرُونَ ﴿١٤﴾ |
| دوي نصيحت نهٔ قبلوي۔ او کله چه اُويني دوي يوه نخه (نو) توقه ترے جوړوي۔ |
| وَقَالُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴿١٥﴾ أَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا |
| او وائي دوي نهٔ دے دا مګر جادو ښکاره دے۔ آيا کله چه مړهٔ شو مونږ او شو خاورے |
| وَعِظَامًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ ﴿١٦﴾ أَوَآبَاؤُنَا الْأَوَّلُونَ ﴿١٧﴾ |
| او هډوکي آيا مونږ به خامخا دوباره راپورته کولے شو۔ آيا او پلاران زمونږ مخکني۔ |

قُلۡ نَعَمۡ وَأَنۡتُمۡ دَاخِرُوۡنَ ﴿۱۸﴾ فَإِنَّمَا هِيَ زَجۡرَةٌ وَّاحِدَةٌ فَإِذَا

اُووايه، آؤ، او تاسو به ذليله يئ. نو يقيناً دا تيزه چغه (شپيلئ) ده يوه نو دغه وخت

هُمۡ يَنۡظُرُوۡنَ ﴿۱۹﴾ وَقَالُوۡا يَا وَيۡلَنَا هٰذَا يَوۡمُ الدِّيۡنِ ﴿۲۰﴾ هٰذَا يَوۡمُ

به دوی ګوری. او وائی به اے هلاکت دے مونږ لره دا ورځ د جزا ده. دا ورځ

الۡفَصۡلِ الَّذِيۡ كُنۡتُمۡ بِهٖ تُكَذِّبُوۡنَ ﴿۲۱﴾

د فيصلے (جدائی) ده هغه چه تاسو به دا دروغژنه ګڼرله.

**تفسير** : اُوس د نبی ﷺ تعجب بيانوی. نبی کريم ﷺ ته وئيلے کيږی چه د مکے د مشرکانو د دوباره ژوندون په انکار باندے تهٔ تعجب کوے، چه ددے دومره ښکاره دليلونو باوجوده هم ذا خلك د الله تعالیٰ قدرت په دوباره ژوندی کولو باندے نهٔ منی. او تا پورے او د آخرت د خبرو پورے ټوقے کوی، د دوی په سترګو باندے پردے راغلی دی.

يعنی تهٔ په ډير لوی سوچ کښې پروت ئے چه آخرت دے او هلته حساب کتاب دے، او دا خلك بيخی غافل دی هيڅ سوچ نکوی بلکه الټه ټوقے کوی.

وَإِذَا ذُكِّرُوۡا : او کله چه دوئ ته نصيحت وکړے شی چه د مرګ نه پس د دوباره ژوندی کيدو عقيدے نه انکار مهٔ کوئ، نو په دوئ باندے ددے څهٔ اثر نهٔ پريوزی.

وَإِذَا رَأَوۡا آيَةً : پدے کښې زجر دے په انکار د معجزے او د رسالت. يعنی کله چه دوئ ته په کائناتو کښې موجوده څهٔ داسے نښه وښودلے شی چه هغه د الله تعالیٰ په قدرت او د رسول الله ﷺ په رسالت باندے دلالت کوی لکه سپوږمئ په مينځ چاودل وغيره، نو دوئ ورپورے ټوقے کوی، او وائی چه د محمد (ﷺ) هره خبره او ددهٔ هر عمل جادو دے.

آيا دا خبره هم څهٔ د عقل ده چه کله مونږ مړهٔ شو او خاورے شو او ز مونږ هډوکی پاتے شی نو مونږ او ز مونږ پلار نيکهٔ به دوباره ژوندی کيږو؟!.

يَسۡتَسۡخِرُوۡنَ: أَيۡ يُبَالِغُوۡنَ فِي السُّخۡرِيَةِ - دوی په مسخرو کښې مبالغه کوی. يعنی ډيرے زياتے مسخرے کوی.۲ – يَسۡتَدۡعُوۡنَ السُّخۡرِيَةَ مِنۡ غَيۡرِهِمۡ. د بل نه مسخرے غواړی. لکه دا د باطل پرستو طريقه ده چه خلکو ته ووائی ((دهٔ ته وګورئ))، ((دهٔ پورے ټوقے وکړئ)).

قُلۡ نَعَمۡ وَأَنۡتُمۡ : په دے (۱۸، ۱۹) آيتونو کښې الله تعالیٰ د دوئ ددے حيرانتيا جواب

ورکړو چه هاؤ ! تاسو به یقینًا را پورته کیږئ، او دا وخت به تاسو د ذلت او رسوایئ سره مخ کیږئ، او هیڅ دلیل او حجت به ستاسو په کار رانشي، دا خو به یوه چغه وي چه انسانانو لره به د دوباره پیدا کولو دپاره به اِلٰهي حکم وي، نو تمام انسانان به په یو ځل ژوندي شي او د خپل رب په حضور کښې به ودریږي، او د قیامت خطرناکې ننداري به لیدل شروع کړي۔

دَاخِرُوْنَ : ذلیله به یئ۔ یعنی که څوك آخرت مني او که نهٔ، قیامت به پرې راځي۔ یعنی د آخرت په راتللو کښې ستاسو اختیار نشته بلکه ذلیل او عاجز به یئ امر د الله تعالیٰ ته۔

زَجْرَةٌ : دې ته صیحه هم وئیلې شي۔

يَنْظُرُوْنَ : یعنی یو بل ته به نظر کوي۔ / خپل حالت ته به ګوري۔ / د قیامت میدان به ګوري۔ یا په معنیٰ د انتظار د جزاء دې۔ / یا نظر کنایه ده د ژوندي کیدو نه۔

امام بقاعيؒ وئیلي دي چه نظر ئې خاص کړو په ذکر سره ځکه چه نظر بغیر د حیات نه نهٔ موجودیږي او نور حواس کله کله بغیر د حیات نه هم موجودیږي لکه چه آوریدل په مړو کښې په خرقِ عادت سره موجود شویدي په واقعه د بدر کښې۔ (احسن الکلام)۔

د قبرونو نه چه راپاڅیږي نو نظر به ئې لګي لیکن جهنم ته ئې چه بوځي نو نظر به ئې نهٔ لګي۔

هٰذَا يَوْمُ الْفَصْلِ : دا وینا د منکرینو ده چه یو بل ته به وائي، یا دا قول د الله تعالیٰ د طرفه دې۔ یا دا د ملائکو وینا ده چه دې منکرینو ته به ئې کوي۔

د فصل دوه معاني دي (۱) په معنیٰ د حکم او فیصلې سره۔ (۲) په معنیٰ د جدائي سره۔ یعنی دا ورځ د جدائي ده چه پلار به د بچي نه او عابد به د معبود نه او دوست د دوست نه به جدا شي او دا دواړه کارونه په قیامت کښې شته نو دواړه معاني مراد دي۔

| اُحْشُرُوا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا وَاَزْوَاجَهُمْ |
|---|
| (اے ملائکو) راجمع کړئ هغه کسان چه ظلم ئې کړیدے او ښځې (او ملګري) د دوي |
| وَمَا كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ ﴿۲۲﴾ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَاهْدُوْهُمْ اِلٰى صِرَاطِ |
| او هغه چه دوي ئې بندګي کوله۔ سوئ د الله تعالیٰ نه نو روان کړئ دوي لارے۔ |

| الْجَحِيمِ ﴿٢٣﴾ وَقِفُوهُمْ إِنَّهُمْ مَّسْئُولُونَ ﴿٢٤﴾ مَا لَكُمْ |
|---|
| د جهنم ته. اودروئ دوی لره یقیناً دوی نه تپوس کیدے شي. څه وجه ده تاسو لره |
| لَا تَنَاصَرُونَ ﴿٢٥﴾ بَلْ هُمُ الْيَوْمَ مُسْتَسْلِمُونَ ﴿٢٦﴾ |
| چه یو بل سره مدد نهٔ کوئ. بلکه دوی نن ورځ ډیر تابعدار دی. (غاړه ایخودنکي دی). |

**تفسیر** : اُحْشُرُوا : دا حکم به ډیره موده پس وی، او د قبرونو نه د راپورته کیدو په وخت به نهٔ وی، یعني دوی به پنځوس زره کاله انتظار کښې ولاړ وی، په آخر کښې به الله تعالیٰ ملائکو ته حکم وکړي چه دا مشرکان چه د آخرت منکر وو او د رسولانو تکذیب به ئې کولو او ددوی په شان نور مجرمان او هغه ټول دروغژن معبودان چه دوی خلقو به د الله نه سیوئ د هغوئ عبادت کولو، او دا ټول د جهنم په لاره ورواچوئ، چه په دے باندے روان شي او د هغے په کنده کښې وغورزیږي.

وَأَزْوَاجَهُمْ : ١- اَیْ أَشْبَاهَهُمْ وَأَمْثَالَهُمْ فِي الشِّرْكِ . یعني د دوی مشابه خلك په شرك او کفر کښې او د دوی سره په کفر کښې تابعدار یعني کشران او مشران ټول. (قتادهؒ وابو العالیهؒ) لکه آیت کښې دی ﴿وَإِذَا النُّفُوسُ زُوِّجَتْ﴾ (التکویر:٦) ﴿وَسِيقَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ جَهَنَّمَ زُمَرًا﴾ (الزمر:٧١) یعني هره ډله به د خپل مشابه سره روانه وی، لکه زناکار به د زناکارو سره او سود خوارهٔ به د سود خورو سره او ظالمان به د ظالمانو سره وغیره.

٢- یا د أَزْوَاج نه مراد ښځے مشرکے دی چه د دوی په شرك او ظلم او کفر کښې ملګرے وے. (حسنؒ ومجاهدؒ)

٣- ضحاكؒ وائي : ددے نه مراد هغه ملګری ترلے شوی شیطانان دی، ځکه چه هر کافر به د خپل شیطان سره وترلے شي او شریك به جهنم ته ولیږلے شي. (مقاتلؒ).

وَمَا كَانُوا يَعْبُدُونَ : ددے نه مراد هغه پیران او ملیان دی چه عوامو ددوی په شرك او بدعت او ګناهونو کښې تابعداری کړیده او دوی پرے رضا وو.

فَاهْدُوهُمْ : دا هدایت لغوی دے یعني روان کړئ دوی لره. ❁ یا لار وښایئ دوی ته لاره د جهنم.

وَقِفُوهُمْ : یعني همداسے به نهٔ وی روان بلکه په لاره کښې به ئې ودروی چه جهنم به ورته مخامخ ښکاره کیږی نو دغو وخت به د دوی نه د دوئ د عقیدو، اقوالو او اعمالو په

باره کښې تپوس وکړے شي، (او دا ډیر هیبتي ځای دے) بیا به د دوئ نه د زجر او توبیخ په توګه تپوس وکړے شي چه تاسو د دنیا غونته دلته هم د یو بل سره مدد ولے نۀ کوئ؟ دوئ سره به ددے هیڅ جواب نۀ وي، په دے ورځ خو به د دوئ څټونه د ذلت او رسوائی په وجه بنکته وي، او د دوئ نه چه کومو کمزورو خلقو په دنیا کښې د متکبرینو پیروی کوله، د دغه متکبرینو نه به تپوس وکړي چه تاسو به په دنیا کښې مونږه په خپله پیروئ باندے مجبورولو، نو نن ولے زمونږ د مدد دپاره نۀ رامخکښې کیږئ او د جهنم عذاب زمونږ نه ولے نۀ اړوئ؟۔

مَّسْئُوْلُوْنَ : او د احادیثو نه معلومیږي چه په آخرت کښې دولس پاتکه دي چه انسان به په هغے کښې ودریږي او د هغۀ نه به پکښې تپوسونه کیږي۔

دا تپوسونه به د کومو خبرو وي۔ ۱- مَسْؤُوْلُوْنَ عَنْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه۔ د کلمے د توحید تپوس به کیږي۔ ۲- د دوی د اقوالو او د افعالو۔ ۳- د اتباع الرسول تپوس به کیږي۔ ﴿مَاذَا اَجَبْتُمُ الْمُرْسَلِيْنَ﴾ ٤- مَاذَا كُنْتُمْ تَعْبُدُوْنَ ۔ بندګی مو د چا کړیده؟۔ څلور په یو حدیث کښې راجمع شویدي۔ ترمذیؒ د ابو هریره ﷛ نه ارشاد نقل کړے چه رسول الله ﷺ فرمایلي دي : [لَا تَزُوْلُ قَدَمَا عَبْدٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَتّٰى يُسْأَلَ عَنْ اَرْبَعٍ : عَنْ عُمُرِهٖ فِيْمَا اَفْنَاهُ وَعَنْ عِلْمِهٖ مَاذَا عَمِلَ بِهٖ وَعَنْ مَالِهٖ مِنْ اَيْنَ اِكْتَسَبَهٗ وَفِيْمَ اَنْفَقَهٗ وَعَنْ جِسْمِهٖ فِيْمَ اَبْلَاهُ وَفِيْ رِوَايَةٍ : عَنْ شَبَابِهٖ فِيْمَ اَبْلَاهُ] (الترمذی فی القیامة باب ۱ رقم : ۲٤۱۷) باسناد صحیح)۔

د قیامت په ورځ به د هیڅ یو بنده قدمونه د ځای نه ونۀ خوزیږي تردے چه د هغه نه به د څلورو خبرو تپوس وکړے شي، د عمر، چه په څه کښې ئے ختم کړو او علم باندے څه عمل کړے او مال ئے د کوم ځای نه ګټلے او کوم ځای ئے خرچ کړے، او جسم ئے په څه کښې زوړ کړو او په یو روایت کښې دي : د ځوانئ په باره کښې چه دا ئے په څه کښې زړه کړه۔

۹- عَنْ ظُلْمِ الْعِبَادِ۔ د بندګانو د ظلم په باره کښې تپوس کیږي۔

۱۰- ضحاکؒ وائي : عَنْ خَطَايَاهُمْ۔ د دوی د ګناهونو په باره کښې تپوس وي۔ (فتح البیان)

مُسْتَسْلِمُوْنَ : ۱- یعني خپله ډیر تابع دي۔ ۲- یا په خپله لاسونو ئے ځانونه اُوږ ته سپارلي دي۔ (اخفشؒ) استسلام ځان سپارلو ته هم وائي۔

وَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَسَاءَلُوْنَ ﴿۲۷﴾

او رامخامخ به شي بعض د دوی په بعضو باندے یو بل نه به تپوسونه کوي۔

| قَالُوٓا إِنَّكُمۡ كُنتُمۡ تَأۡتُونَنَا عَنِ ٱلۡيَمِينِ ﴿٢٨﴾ |
|---|
| وائی به کشران یقیناً تاسو به راتللئ مونږ ته د ښی طرف نه۔ (د حق نه به مو اړولو) |
| قَالُواْ بَل لَّمۡ تَكُونُواْ مُؤۡمِنِينَ ﴿٢٩﴾ وَمَا كَانَ لَنَا عَلَيۡكُم مِّن سُلۡطَٰنِۢۖ |
| ویه وائی مشران بلکه تاسو نهٔ وئ مؤمنان۔ او نهٔ وو مونږ لره په تاسو باندے څه زور |
| بَلۡ كُنتُمۡ قَوۡمٗا طَٰغِينَ ﴿٣٠﴾ فَحَقَّ عَلَيۡنَا قَوۡلُ رَبِّنَآۖ |
| بلکه وئ تاسو قوم سرکشان۔ نو ثابته شوه په مونږ باندے وینا د رب زمونږ |
| إِنَّا لَذَآئِقُونَ ﴿٣١﴾ فَأَغۡوَيۡنَٰكُمۡ إِنَّا |
| یقیناً مونږ به څکونکی یو (عذاب لره)۔ نو گمراهئ ته را اُوبللئ مونږ تاسو څکه چه |
| كُنَّا غَٰوِينَ ﴿٣٢﴾ فَإِنَّهُمۡ يَوۡمَئِذٖ فِي ٱلۡعَذَابِ مُشۡتَرِكُونَ ﴿٣٣﴾ |
| مونږ گمراهان وو۔ نو یقیناً دوی به په دغه ورځ په عذاب کښې شریك وی۔ |

**تفسیر** : اُوس پدے آیتونو کښې د باطلو معبودانو او د عابدانو د یو بل نه براءت او بیزاری بیانوی او دا تخویف اُخروی دے چه الله تعالیٰ ئے مونږ ته په دنیا کښې حالات بیان کړیدی۔

ربط

هرکله چه معلومه شوه چه دوی به د تپوس د جواب نه چَپ وی نو وهم راځی چه آیا دوی به چاړاگان وی، ژبے به ئے بندے وی؟ نو ددے وَهم إزاله کوی چه دوی به یو بل لره ملامته کوی۔

تَأۡتُونَنَا عَنِ ٱلۡيَمِينِ : ۱- یمین د یُمن نه دے، خیر او برکت ته وئیلے شی او په حق باندے ئے اطلاق کیږی لکه مجاهدؒ نه نقل دی چه یمین دین حق او نیکو کارونو ته وئیلے کیږی۔ او اتیان عن الیمین کنایه ده د حق او طاعت نه د منع کولو نه۔ ښے طرف مبارك وی، یعنی تاسو به مونږ ته راتللئ د حق د طرفنه یعنی د حق نه به مو مونږ اړولو۔ او حاصل معنیٰ ئے ده۔ [تَصُدُّوۡنَنَا عَنِ الۡحَقِّ وَالۡخَيۡرِ] تاسو به مونږ د حق او خیر نه اړولو چه هغه مبارکه لاره وه۔ د ښی طرف والو لاره وه۔ لکه اصحاب الیمین۔

۲- زجاجؒ وائی :[كُنۡتُمۡ تَأۡتُوۡنَنَا مِنۡ قِبَلِ الدِّيۡنِ فَتَرَوۡنَ اَنَّ الدِّيۡنَ وَالۡحَقَّ مَا تُضِلُّوۡنَنَا بِهٖ] ۔ تاسو

به مونږ ته راتلل کول د دین د طرف نه، نو تاسو به دا ګنړل چه دین او حق هغه دے چه تاسو به پرے مونږه ګمراه کولو. یا تاسو به مونږ ته د دین د طرف نه راتللئ او مونږ ته به مو د شریعت کارونه سپك ښکاره کول او ددے نه به مو نفرت پیدا کولو. (قرطبی)
قرطبی وائی چه دا قول ډیر حسن دے.
۳- واحدیؒ د اهل المعانیؒ نه نقل کړیدی چه مشرانو به خپلو تابعدارو ته قسمونه کول چه دا کوم دعوت مونږ درکوو دا حق دے. نو هغوی به د هغوی په قسمونو باور کولو نو معنیٰ دا ده: [تَاْتُوْنَنَا مِنْ نَاحِيَةِ الْاَيْمَانِ الَّتِیْ كُنْتُمْ تَحْلِفُوْنَهَا فَوَثِقْنَا بِهَا] تاسو به مونږ ته په قسمونو راتللئ کوم چه به مو مونږ ته کول او مونږ به پرے باور کولو.
٤- بعض وائی: یمین په معنیٰ د قوت، قهر او غلبے سره دے. یعنی تاسو به مونږ لره په قوت او غلبے او زور سره منع کولو لکه روستو راځی ﴿ فَرَاغَ عَلَيْهِمْ ضَرْبًا بِالْيَمِيْنِ﴾ (الصافات: ۹۳) ﴿ بَلْ مَكْرُ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ اِذْ تَاْمُرُوْنَنَا اَنْ نَّكْفُرَ بِاللّٰهِ﴾ په شان دے. اوله او څلورمه معنیٰ غوره ده.
قَالُوْا بَلْ لَّمْ تَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ : یعنی تاسو د اول نه بے ایمانه وئ، اول نه تاسو کښ ایمان نهٔ وو نو بیا مونږ څنګه د ایمان نه راواړولے؟. او تاسو کله نیکان وئ چه مونږ تاسو د بدئ په لاره روان کړئ، او توحید والا کله وئ چه مونږ تاسو په شرك باندے مجبوره کړئ؟.
وَمَا كَانَ لَنَا عَلَيْكُمْ مِّنْ سُلْطَانٍ: یعنی تاسو زمونږ د تسلط لاندے نهٔ وئ چه مونږ تاسو د طاقت په زُور د کفر نه راوِستلی وے او په ایمان کښ مو داخل کړی وے. تاسو خو په ظلم او شرك او کفر او طغیان کښ د حد نه تجاوز کړے وو.
دارنګه مونږ سره هیڅ صحیح دلیل هم نهٔ وو چه تاسو ته مو پیش کړے وے. د سلطان دوه معانی شوے.
طَاغِيْنَ : د طغیان نه مراد بے حُجته کارونه کول دی.
فَحَقَّ عَلَيْنَا قَوْلُ رَبِّنَا : دے وجے نه نن د الله تعالیٰ وعده زمونږ تولو دپاره ثابته شوه چه ﴿ لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكَ وَمِمَّنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴾ (اے ابلیس! مونږ به ستانه او ستا د تابعدارو نه جهنم ډك کړو). (صٓ: ۸۵). اُوس به مونږ تول د عذاب خوند څکو چه ددے دهمکی الله تعالیٰ مونږ له راکړے وه. او آخر به د خپل مجرمانه حرکتونو اقرار وکړی، وبه وائی چه هاؤ! مونږ تاسو ګمراه کړی وئ، مونږ چونکه خپله ګمراه وو دے وجے نه

مونږ غوښتل چه تاسو هم زمونږ پشان شئ، لیکن مونږ تاسو مجبور کړی نه وئ، بلکه د کفر او شرك لارے مو تاسو ته ډولی ښکاره کړے نو تاسو په دے باندے زمونږ سره شریك روان شوئ. نو الله فرمائی چه دوی به په عذاب کښې هم دغسے شریك وی.

د (حَقَّ عَلَيْنَا قَوْلُ رَبِّنَا) بله معنیٰ ده: ثَبَتَتِ الْحُجَّةُ عَلَيْنَا ۔ مونږ باندے حجت ثابت شوے وو.

فَأَغْوَيْنَاكُمْ : أَىْ دَعَوْنَاكُمْ إِلَى الْغِوَايَةِ. یعنی مونږ تاسو ته دعوت د ګمراهئ درکړو ځکه چه مونږ خپله ګمراه وو.

| إِنَّا كَذٰلِكَ نَفْعَلُ بِالْمُجْرِمِيْنَ ﴿۳٤﴾ إِنَّهُمْ كَانُوْا إِذَا قِيْلَ لَهُمْ |
|---|
| یقیناً مونږ دغسے کار کوو د مجرمانو سره. یقیناً دوی وو کله چه به ووئیلے شو دوی |
| لَا إِلٰـهَ إِلَّا اللهُ يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۳۵﴾ |
| ته نشته حقدار د بندګئ سویٰ د الله تعالیٰ نه دوی به ځان لوی ګنړلو. |
| وَيَقُوْلُوْنَ أَئِنَّا لَتَارِكُوْا آلِهَتِنَا لِشَاعِرٍ |
| او وئیل به دوی چه آیا مونږ به پریخودونکی یو معبودانو خپلو لره د وجه د شاعر |
| مَّجْنُوْنٍ ﴿۳٦﴾ بَلْ جَآءَ بِالْحَقِّ وَصَدَّقَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۳۷﴾ |
| لیونی نه. بلکه دے راغلے دے په حق باندے او تصدیق ئے کړیدے د پیغمبرانو. |
| إِنَّكُمْ لَذَائِقُوا الْعَذَابِ الْأَلِيْمِ ﴿۳۸﴾ وَمَا تُجْزَوْنَ |
| یقیناً تاسو به خامخا څکونکی د عذاب دردناك یئ. او بدله نشی درکولے تاسو ته |
| إِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۳۹﴾ |
| مګر د هغه عملونو چه تاسو به کولو. |

**تفسیر:** اُوس الله تعالیٰ د دوی د عذاب دوه وجے بیانوی، یو شرك کول یعنی د توحید نه انکار کول، او بل مخالفت د رسول الله ﷺ نه.

وَيَقُوْلُوْنَ أَئِنَّا لَتَارِكُوْا : د قریشو مشرکانو ته به چه کله زمونږ نبی وئیلے چه تاسو ددے خبرے اقرار وکړئ چه د الله تعالیٰ نه سِویٰ بل هیڅوك د عبادت لائق نشته نو د کبر

او غرور سره به د دوئ ځتمونه کاره شو، او خپلو کښ به ئے يو بل ته وئيل چه آيا مونږ د يو ليونی د شعر او شاعرئ په خبرو کښ راشو چه ديته هغه د قرآن نوم ورکوی، او د خپلو معبودانو نه دست برداره شو ؟.

لِشَاعِرٍ مَّجْنُونٍ : پدے خبرو کښ د دوی تناقض وو ځکه چه شاعر خو هوښيار سړے وی او د ليونی خو عقل نهٔ وی هغه به څنګه شعر ووائی؟!.

بَلْ جَآءَ بِالْحَقِّ : الله تعالیٰ پرے رد کوی چه دے ليونے نهٔ دے بلکه حق کتاب او حق دين ئے راوړے دے.

وَصَدَّقَ الْمُرْسَلِيْنَ : يعنی دهٔ خو د تمامو انبياؤ او رسولانو تصديق کړے، هغوی به هم داسے مسئلے کولے نو آيا هغوی هم ليونی شو؟!.

دا دليل دے چه توحيد د ټولو انبياء عليهم السلام دين دے، نو ددے رسول نه انکار کول د ټول انبياؤ نه انکار کول دی.

لَـذَائِقُو الْعَذَابِ الْاَلِيْمِ : الله تعالیٰ فرمائی چه اے کافرانو مشرکانو! تاسو به پدے غلطو خبرو سره د دردناك عذاب څکونکی يئ او دا ستاسو د بدو اعمالو نتيجه ده.

| |
|---|
| إِلَّا عِبَادَ اللهِ الْمُخْلَصِيْنَ ﴿٤٠﴾ أُولٰئِكَ لَهُمْ رِزْقٌ مَّعْلُوْمٌ ﴿٤١﴾ |
| مګر بندګان د الله چه چاڼ کړے شويدی. دغه کسان دوی لره رزق دے معلوم صفتونو والا |
| فَوَاكِهُ وَهُمْ مُّكْرَمُوْنَ ﴿٤٢﴾ فِيْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ﴿٤٣﴾ عَلٰى سُرُرٍ |
| ميوے دی او دوی به عزتمند وی. په جنتونو د نعمتونو کښ به وی. په کټونو به |
| مُّتَقَابِلِيْنَ ﴿٤٤﴾ يُطَافُ عَلَيْهِم بِكَأْسٍ مِّنْ مَّعِيْنٍ ﴿٤٥﴾ |
| وی يو بل ته مخامخ. ګرځولے به شی په دوی باندے کاسے ډکے د خالص شرابو نه. |
| بَيْضَاءَ لَذَّةٍ لِّلشّٰرِبِيْنَ ﴿٤٦﴾ لَا فِيْهَا غَوْلٌ |
| سپين، خوند ورکونکی به وی څکونکو ته. نهٔ به وی په هغے کښ سردرد دے (آفت) |
| وَّلَا هُمْ عَنْهَا يُنْزَفُوْنَ ﴿٤٧﴾ وَعِنْدَهُمْ قٰصِرٰتُ |
| او نهٔ به دوی د هغے نه التې کوی. او د دوی سره به وی هغه زنانه چه خکته کونکی |

الطَّرْفِ عِيْنٌ ﴿٤٨﴾ كَاَنَّهُنَّ بَيْضٌ مَّكْنُوْنٌ ﴿٤٩﴾

د نظر دي، غټو سترګو والا۔ ګويا کښې دوى اګۍ دي پټې ساتلې شوې۔

**تفسير** : اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ : دا د اِنَّكُمْ نه استثناء ده يعني تاسو ټول به عذاب اليم څکئ سوئ د بندګانو د الله تعالىٰ نه چه هغوى صرف د الله تعالىٰ عبادت کړيدے، هغوى به بچ وى، او دا استثناء متصل ده، يا استثناء منقطع ده اَىْ لٰكِنْ عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ لَا يَذُوْقُوْنَ الْعَذَابَ۔ ليکن د الله تعالىٰ خالص کړے شوى بندګان به عذاب نۀ څکى۔

اَلْمُخْلَصِيْنَ: يعنى خالص او غوره کړے شوى د الله تعالىٰ ددين او توحيد او د خپل ځان د دوستانے دپاره۔

اُولٰٓئِكَ لَهُمْ رِزْقٌ مَّعْلُوْمٌ : ددے ځاى نه روستو تر (٤٩) آيت پورے بشارت ذکر کيږى په ځوارلسو خاصو انعاماتو سره۔

رزق معلوم : ١- يعنى ددے بعض صفتونه معلوم دى، اګرکه حقيقت ئے چا ته نۀ دے معلوم لکه الله تعالىٰ په الم السجده (١٧) آيت کښې فرمائى : ﴿مَا اُخْفِىَ لَهُمْ مِنْ قُرَّةِ اَعْيُنٍ﴾ چه دوى دپاره هغه څه پټ ساتلے شويدى چه د دوى سترګے به پرے يخے شى۔

٢- يا معلوم يعنى اندازه به ئے معلومه وى، او داسے به نۀ وى لکه دنيا کښې چه انسان ډيره ډوډۍ وخورى روستو پرے پښيمانه وى چه خيټه پرے وپرسيږى۔ لکه د ﴿قَدَّرُوْهَا تَقْدِيْرًا﴾ (الدهر:١٦) په شان دے۔ انسان رزق ته ډير محتاج دے ځکه الله تعالىٰ دا او ددے تشريحات زيات بيانوى۔

فَوَاكِهُ : دا بدل دے يا بيان د رِزْقٌ مَّعْلُوْمٌ، ددے نه معلومه شوه چه رزق د جنت ټول لذت او د مزے دپاره دے، د لوږے د وجه نه نۀ دے۔

مُتَقَابِلِيْنَ : دا چه کله په يو مجلس کښې ناست وى نو داسے کټونه او تختونه به وى چه يو بل ته به مخامخ وى، دنيا کښې چه کله مجلس کښې ګنړه جوړه شى نو بيا د يو بل نه پناه کيږى۔ او دا به داسے سپرنګ والا کټونه او تختونه وى چه ګرځى راګرځى به څنګه چه دوى غواړى، د يو بل شاتونه به نۀ وينى۔

بِكَاْسٍ : کله چه د شرابونه ډکه وى نو کاْس ورته وئيلے کيږى او چه خالى وى نو بيا ورته قدح وئيلے کيږى۔

مَّعِيْنٍ : د مَعْن نه دے جارى ته وئيلے کيږى۔ يا د عَيْن نه دے يعنى په سترګو به

ښکاریږی۔ دلته ترے مراد خالص شراب دی۔
لَذَّةٍ: په معنیٰ د لَذِیْذَةٌ دے، د دنیا شراب بد مزه وی۔
غَوْلٌ : دا پټ ضرر ته وئیلے کیږی، بیا ددے درے مصداقه دی، ۱-دردِ سر ۲- او درد د خیټے ۳- او نشه کیدل۔
یُنْزَفُوْنَ : ۱- نزیف او نزف دے ته وائی چه د نشے د وجه نه عقل ختم شی۔ او دا به تخصیص بعد التعمیم وی۔ ځکه چه غول نشے ته هم شامل وو۔ او نزیف په اصل کښ بیهیدلو او د یو شی د بهیدلو په وجه ختمیدو ته وئیلے شی۔
۲- او ابن عباس ﷺ معنیٰ کوی : [لَایَقِیْئُوْنَ عَنْهَا] ددے شرابو په وجه به التهیٔ نهٔ کوی لکه په دنیا کښ شرابی د شرابو په وجه اُلتهیٔ کوی۔
**حکمة** : دلته یُنْزَفُوْنَ مجهول صیغه او په سورة الواقعه (۱۹) آیت کښ (یَنْزِفُوْنَ) معلوم صیغه استعمال شویده، حکمة پدے کښ دا دے (والله اعلم) چه کله یو شے ښه وی لیکن د انسان په معده کښ نقصان وی، د هغے په وجه التهیٔ وکړی، او کله معده صحیح وی لیکن شی کښ نقصان وی نو انسان د هغے په وجه التهیٔ وکړی نو الله تعالیٰ پدے دواړو لفظونو سره د جنت د شرابو نه دا عیبونه لرے کړل چه شراب به هم ښه وی، او معده به هم ورته خرابه نهٔ وی۔ نو دلته مجهول صیغه ده یعنی شرابو کښ به نقصان نهٔ وی چه د هغے په وجه قے ورله ورشی۔ او د یُنْزِفُوْنَ معلوم مطلب دا دے چه د دوی معده کښ به هم نقصان نهٔ وی چه د هغے په وجه التهیٔ وکړی۔
قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ : دے کښ دوه معانی دی (۱) مشهوره دا ده چه طَرْف نه خپل نظر مراد دے یعنی کوتاه کونکی د نظرونو په خپلو خاوندانو۔ یعنی بل چا ته به نهٔ گوری، او دا په ښځه کښ کمال وی چه صرف یو خاوند وینی، نور څوك نهٔ وینی۔ او هر سړے داسے ښځه غواړی۔ (۲) حافظ ابن القیمؒ وائی : قَاصِرَاتُ اَطْرَافِ اَزْوَاجِهِنَّ عَلٰی اَنْفُسِهِنَّ ۔ یعنی د خاوندانو نظرونه به په خپلو ځانونو باندے کوتاه کوی۔ یعنی دومره به ښائسته وی چه د خاوند نظر به په بل چا نهٔ لګیږی بغیر د دوی نه۔
عِیْنٌ : جمع د عَیْنَاء ده عَظِیْمَةُ الْاَعْیَنِ۔ غټو سترګو والا په اندازے سره چه سپین والے د هغے ښه سپین وی او تور والے ئے ښه تور وی، او دا جمال دے۔
بَیْضٌ مَّکْنُوْنٌ : جمع د بَیْضَةٌ ده، ددے نه مراد د شتر مرغ اګیٔ ده چه شتر مرغ ئے په خپلو بڼرو سره د هوا او د غبار نه پټوی، ددے رنګ سپین وی خو زیړوالی ته مائل وی او

دا د عربو په نیز ښائسته رنګ د زنانو وی۔ (حسنؒ وابن زیدؒ)

یا ددے نه مراد مَکْنُوْن بِالْقِشْرِ ده یعنی هغه اګئ چه ویشولے شی او د هغے نه لا پوستکے نهٔ وی جدا شوے او ګوتے ورته نهٔ وی لګیدلی نو ددے دننه طرف انتهائی صفا او نرم وی۔ (سعید بن جبیرؒ والسدیؒ وبه قال ابن جریرؒ)

یا ددے نه مراد مطلق اګئ ده چه پټه ساتلے شوی وی او د زنانو تشبیه د هغے سره په صفا والی او سپینوالی او تناسب د اجزاؤ کښې ورکیدے شی۔

بعض وائی چه مکنون معنیٰ ده اَلْمَصُوْنُ عَنِ الْکَسْرِ۔ یعنی چه د ماتوالی نه محفوظ وی، یعنی دوی به پیغلے وی۔ تردے ځای پورے نعمتونه د خوراك او د رهائش او څکاك او د بیبیانو په باره کښې ذکر شول۔

| |
|---|
| فَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَسَاءَلُوْنَ ﴿٥٠﴾ قَالَ |
| نو مخامخ به شی بعض د دوی په بعضو باندے تپوسونه به کوی۔ وبه وائی |
| قَائِلٌ مِّنْهُمْ اِنِّيْ كَانَ لِيْ قَرِيْنٌ ﴿٥١﴾ يَّقُوْلُ اَئِنَّكَ لَمِنَ الْمُصَدِّقِيْنَ ﴿٥٢﴾ |
| یو ویونکے د دوی نه یقیناً وو ما لره یو دوست۔ هغه به ونیل آیا ته خامخا د منونکو |
| ءَاِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَّعِظَامًا |
| نه ئے (توحید او قیامت لره)۔ آیا کله چه مړهٔ شو مونږ او شو خاورے او هډوکی |
| ءَاِنَّا لَمَدِيْنُوْنَ ﴿٥٣﴾ قَالَ هَلْ اَنْتُمْ مُّطَّلِعُوْنَ ﴿٥٤﴾ |
| آیا مونږ له به بدله راکیدے شی۔ هغه به ووائی آیا تاسو ورښکاره کیدونکی یئ۔ |
| فَاطَّلَعَ فَرَاٰهُ فِيْ سَوَاءِ الْجَحِيْمِ ﴿٥٥﴾ قَالَ |
| نو ورښکاره به شی نو ویه وینی هغه لره په مینځ د جهنم کښې ۔ وبه وائی هغه |
| تَاللّٰهِ اِنْ كِدْتَّ لَتُرْدِيْنِ ﴿٥٦﴾ وَلَوْلَا نِعْمَةُ رَبِّيْ |
| قسم په الله نزدے وے ته چه زهٔ دِے هلاك کړے وے۔ او کچرته نهٔ وے نعمت د رب زما |
| لَكُنْتُ مِنَ الْمُحْضَرِيْنَ ﴿٥٧﴾ |
| خامخا وے به زهٔ د حاضر کړے شوو نه (په عذاب کښې)۔ |

**تفسیر** : ددے ځای نه تر (٦١) آیت پورے دا هم په بشارت کښې داخل دے ځکه چه په دشمن باندے عذاب راتلل او خپله د عذاب نه بچ کیدل لوی نعمت دے۔

جنتیان به یو بل ته مخامخ ناست وی شراب به څکی، خبرے به کوی، او په دنیا کښې چه په دوئ باندے څهٔ تیر شوی وو یو بل ته به ئے بیانوی۔ یو بل ته به وائی چه تهٔ جنت ته په څه وجه راغلے؟، تا به څه عملونه کول؟، او دا تپوس د یو بل نه د خوشحالئ په طور دے۔ نو ټول به دا وائی چه مونږ د الله تعالیٰ نه یریدو لکه دا خبره سورة الطور کښې راغلے ده۔ د جنت خادمان به د دوئ مخے ته راځی او قِسما قِسم هغه نعمتونه به وړاندے کوی چه هغه په دنیا کښې نهٔ کومے سترګے لیدلی وو، نهٔ کوم غوږ آوریدلی وو، او نهٔ په کوم زړهٔ کښې د هغے خیال راغلے وو۔

فَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ : ددے اقبال نه مراد متوجه کیدل او په خبرو کښې شروع کول دی، ځکه چه یو بل ته مخامخ والے مخکښې د (مُتَقَابِلِيْنَ) نه معلوم شو۔

دے وخت کښې به په دوئ کښې یو جنتی ووائی چه یو مشرک به په دنیا کښې زما سره کله نا کله کیناستهٔ، هغه به آخرت دروغژن ګنړلو او وئیلے به ئے چه آیا تهٔ دا خبره منے چه کله مونږ مړهٔ شو او خاورے شو، نو مونږ به دوباره ژوندی کیږو او مونږ له به زمونږ د عملونو بدله راکولے کیږی ؟! نو نن زمونږ رب خپله وعده رشتینے اوښودله، مونږه ئے جنت ته داخل کړو، او زما دغه ملګرے ئے جهنم ته دیکه کړے دے۔ آیا تاسو دا سړے په جهنم کښې لیدل غواړئ؟ بیا هغه جنتی به جهنم ته سر ورښکاره کړی، نو هغه به د جهنم په مینځ کښې ووینی، او د حیرانتیا او د ویرے نه به متاثره شی او هغه جهنمی ته به آواز وکړی او ورته به ووائی چه قَسَم په الله! نزدے وه چه تا زهٔ هم جهنم ته رسولے وے، او که الله تعالیٰ په ما خپل فضل او کرم نهٔ وے کړے نو نن به زهٔ هم تاسره د جهنم په کنده کښې پروت وے۔

قَرِيْنٌ : ددے نه مراد مقابله کونکے، یو عمر والا همزولے ځکه چه قرین یو عمر او قرن والا ته وئیلے کیږی۔ ددے نه چا د سورة الکهف والا دوه کسان مراد کړیدی چه یو مؤمن وو او بل مشرك د آخرت منکر وو۔ لیکن صحیح خبره دا ده چه په دنیا کښې تقریباً د هر موحد سره یو مقابله کونکے ملګرے وی، څوك آخرت نهٔ منی، څوك مشرك وی، څوك د رسول الله ﷺ تابعداری نهٔ منی نو جنتی به د هغه ملاقات ته راښکاره کیږی او د هغه سره به د هغه د خړ کولو او په خپل ځان باندے د الله تعالیٰ په نعمت باندے د

خوشحالي ښکاره کولو دپاره هغه سره دغه شان خبرې اترې کوي. او جنت کښې چکرې او ملاقاتونه او هر څه هر څه شته. او دلته چونکه د آخرت خبره شروع ده نو ځکه ئې هغه په مثال کښې راوړیدې، ورنه جنتي به د سنت مخالف ته وائي چه تا به د سنتو مخالفت کولو اُوس څنګه اُور ته راغلې!!.

**الْمُصَدِّقِيْنَ** : یعني پدې روستو خبره ستا تصدیق او یقین شته چه کله مونږ مره شو او خاورې او هډوکي شو نو آیا مونږ له به بدله او جزاء راکړې شي. یعني تهٔ آخرت او بیا په هغې کښې جزا او سزا منې؟.

**قَالَ هَلْ** : ځیني وائي چه د قَالَ ویونکے الله تعالیٰ دے، الله تعالیٰ به ورته ووائي چه ددے ملګري سیال وکړئ. لیکن ظاهر دا ده چه ددے نه مراد همدغه ملګرے دے چه هغه به نورو ملګرو ته ووائي چه راځئ چه زما د دغه کافر او منکر ملګري ملاقات وکړو او هغه ته ورښکاره شو چه په کوم حال کښې دے. جنت او د جهنم ترمینځ به الله تعالیٰ په یوه طریقه تعلق پیدا کړے وي نو جنتیان به جهنمیانویني.

**سَوَاءِ** : په معنیٰ د وسط (مینځ) دے.

**نِعْمَةُ رَبِّيْ** : ددے نه مراد بچ کول دي د شرك او د انکار د قیامت نه او مضبوطوالے دے په دین باندے. پدے کښې الله تعالیٰ مونږ ته اشاره راکوي چه ډیر خلك تاسو ګمراه کوي خو د الله تعالیٰ په احسان باندے بچ یئ ورنه شیطان، کافران او یهود او نصاریٰ او دهریه تاسو ګمراه کوي او کوشش هم وکړه چه د داسے غلطو ملګرو په وجه ګمراه نشئ، بیا به دے جهنم کښې دغه حال وي.

| |
|---|
| أَفَمَا نَحْنُ بِمَيِّتِيْنَ ﴿۵۸﴾ إِلَّا مَوْتَتَنَا الْأُوْلٰى وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِيْنَ ﴿۵۹﴾ |
| آیا نهٔ یو مونږ مرهٔ کیدونکي. مګر مرګ زمونږ اولنے دے او نهٔ یو مونږ عذاب |
| إِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۶۰﴾ لِمِثْلِ هٰذَا فَلْيَعْمَلِ |
| راکړے شوي. یقیناً دا خامخا کامیابي ده لویه. دپاره د دغسے جزا پس عمل دے |
| الْعٰمِلُوْنَ ﴿۶۱﴾ أَذٰلِكَ خَيْرٌ نُّزُلًا أَمْ شَجَرَةُ الزَّقُّوْمِ ﴿۶۲﴾ إِنَّا |
| اُوکړي عمل کونکي. آیا دا غوره دے په میلمستیا کښې که ونه د زقوم. یقیناً مونږ |

| جَعَلْنَاهَا فِتْنَةً لِّلظَّالِمِيْنَ ﴿٦٣﴾ إِنَّهَا شَجَرَةٌ تَخْرُجُ فِيْ أَصْلِ الْجَحِيْمِ ﴿٦٤﴾ |
|---|
| گرځولے ده دا ونه امتحان دپاره د ظالمانو۔ یقیناً دا ونه ده چه راخیژی په بیخ د جهنم |
| طَلْعُهَا كَأَنَّهُ رُؤُوْسُ الشَّيَاطِيْنِ ﴿٦٥﴾ فَإِنَّهُمْ |
| کښې۔ غونچکونه د هغے گویا که دا سرونه د مارانو دی۔ نو یقیناً دوی به |
| لَآكِلُوْنَ مِنْهَا فَمَالِؤُوْنَ مِنْهَا الْبُطُوْنَ ﴿٦٦﴾ ثُمَّ إِنَّ لَهُمْ |
| خامخا خوړونکی وی د هغے نه نو ډکونکی به وی د هغے نه خیټے۔ بیا یقیناً دوی لره |
| عَلَيْهَا لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيْمٍ ﴿٦٧﴾ ثُمَّ إِنَّ مَرْجِعَهُمْ لَإِلَى الْجَحِيْمِ ﴿٦٨﴾ |
| د هغے دپاسه گډون دیے د گرمو اُوبو نه۔ بیا یقیناً واپس کیدل د دوی دی گرمو اُوبو ته۔ |
| إِنَّهُمْ أَلْفَوْا آبَاءَهُمْ ضَالِّيْنَ ﴿٦٩﴾ فَهُمْ عَلٰى آثَارِهِمْ يُهْرَعُوْنَ ﴿٧٠﴾ |
| یقیناً دوی موندلی وو پلاران خپل گمراهان۔ نو دوی د هغوی په قدمونو پسے |
| وَلَقَدْ ضَلَّ قَبْلَهُمْ أَكْثَرُ الْأَوَّلِيْنَ ﴿٧١﴾ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا |
| زغلولے شو۔ او یقیناً گمراه شویدی مخکښې د دوی نه ډیر پخوانی۔ او یقیناً رالیږلی |
| فِيْهِمْ مُّنْذِرِيْنَ ﴿٧٢﴾ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنْذَرِيْنَ ﴿٧٣﴾ |
| وو مونږ په دوی کښې یره ورکونکی۔ نو اُوگوره څنګه شو انجام د یره ولے شوو۔ |
| إِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ﴿٧٤﴾ |
| (تکذیب کونکو) مگر بندگان د الله تعالیٰ چانړ کړے شوی (بچ ساتلے شوی)۔ |

**تفسیر** : أَفَمَا نَحْنُ بِمَيِّتِيْنَ : همزه د استفهام تقریری دپاره ده، او پدے کښې معنیٰ د تعجب ده او فاء د عطف دپاره ده په محذوف باندے [أَيْ أَنَحْنُ مُخَلَّدُوْنَ مُنَعَّمُوْنَ؟ فَمَا نَحْنُ بِمَيِّتِيْنَ] آیا مونږ به همیشه په مزو کښې یو پس نهٔ یو مره کیدونکی۔ یعنی همداسے ده چه اُوس همیشه مزیے او مرگ ختم۔ (فتح البیان)

بعض وائی چه دا همزه د متوجه کولو دپاره ده، او دا په ابتداء د کلام کښې د دغه غرض دپاره په عربئ کښې استعمالیږی۔

إِلَّا مَوْتَتَنَا الْأُولَىٰ : دا استثناء منقطع ده، او په داسے مقام کښې د تاکید او تعمیم د مستثنیٰ مِنۡهُ دپاره استعمالیږی یعنی مرګ بالکل نشته که استثناء چرته وکړو نو بیرته به د هغه اولنی مرګ وکړو. لکه جَآئَنِی الْقَوْمُ اِلَّا حِمَارًا.

مطلب دا وی چه قوم ټول په ټوله راغلی دی، استثناء نشم کولی مګر که استثناء کوم نو د خره به وکړم چه هغه پکښې نهٔ دے راغلے.

وَمَا نَحۡنُ بِمُعَذَّبِيۡنَ : یعنی زمونږ عذابونه آینده کښې بیخی ختم.

إِنَّ هٰذَا : یعنی دا همیشوالے او د جنت قسماقسم نعمتونه لویه کامیابی ده. بعض کفار وائی چه هر شے چه همیشه شی نو عذاب شی، دا خبره سو چه غلطه ده. د جنت همیشوالے جدا نعمت دے چه الله تعالیٰ ئے په قرآن کریم کښې بار بار ذکر کوی.

لِمِثۡلِ هٰذَا : اشاره ده دغه مذکور جنت ته،۞ یا دغه منزل ته ۞ یا دغه عطاء او فضل عظیم ته.

مخکښې دا وویل شو چه مثل لفظ په محاوره کښې د عین شی دپاره ذکر کیږی، دلته خو د جنت په شان بل ځای نشته چه انسان د هغے دپاره خواری او کوشش وکړی نو مراد تری نه عین جنت دے. او مطلب دا دے چه که د جنت په شان یو بل شے وی نو هغے له خواری پکار ده لیکن د جنت په شان خو بل شے نشته نو بس همدے جنت له خواری پکار ده. او دا (لِمِثۡلِ هٰذَا) یا قول د دغه صاحب دے چه خپل قرین ته رابنکاره شویدے، ۞ یا قول د الله تعالیٰ دے. (ابن عباسؓ) ۞ یا قول د ملائکو دے.

أَذٰلِكَ خَيۡرٌ نُّزُلًا : اُوس ددے په عکس د زیات وضاحت دپاره د اُور حال او د اُور والو حال بیانوی.

نزلا : هغه خوراك او غذاء ده چه ددے قابل وی چه خلك په هغے ورنازل شی او هغے ته دیره شی او دا هغه خوراك دے چه د میلمه دپاره تیاریږی. او دا تمییز دے. یعنی په اعتبارِ د میلمستیا سره، یا په میلمستیا کښې.

الزَّقُّوۡمِ : دا یوه ونه ده په جهنم کښې او دومره ترخه ده چه که د هغے یو څاڅکے دنیا ته راشی د هغے ټولے ونے بوټی او هر څه به خراب کړی لکه حدیث کښې دی :

[لَأَفۡسَدَتۡ عَلٰی اَهۡلِ الۡاَرۡضِ مَعَايِشَهُمۡ] نو د ټولے زمکے والو د ژوند اسباب به تباه کړی.

(صحیح ابن حبان ٧٤٧٠) اسناده صحیح علی شرط الشیخین – شعیب) واخرجه الترمذی وابن ماجه، وضعفه الالبانی بعنعنة الاعمش، وبین شعبة ومجاهد ابو یحیی عبد الله بن دینار القتات ضعیف

الضعیفة : ٦٧٨٢)
او زقوم د تَزَقُّمْ نه دے، او تزقم د یو شی تیرول دی په ډیر مشقت سره پدے وجه چه هغه بد کنړی او بدبویه وی۔ او دا ونه هم دغه شان ده۔
فِتْنَةً لِّلظّٰلِمِيْنَ : ١- یعنی عذاب دے دپاره د ظالمانو۔ ٢- یا فتنه معنیٰ ده امتحان۔ لکه سورة الاسراء کښې بیان شوے وو، چه قریشو چه کله د زقوم خبره واوریده نو دوی ووېل چه محمد وائی چه جهنم دومره سخت دے چه کانړی سیزی ﴿وَقُوْدُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ﴾ او بیا وائی چه په اُور کښې به ونے راخیژی۔ او دا ظالمان ددے نه خبر نهٔ وو چه د آخرت احوال د دنیا د احوالو نه جدا دی، دارنګه په دنیا کښې هم ددے مثالونه شته لکه سمندل په نوم باندے یو حیوان دے چه هغه په اُور کښې ژوند تیروی، او دا ورله مزه ورکوی۔ نو دغه ذات په آخرت کښې هم قادر دے چه په اُور کښې شنه ونه پیدا کړی۔ او مخکښې سورة یس (٨٠) آیت کښې ئے مثال ورکړو ﴿اَلَّذِیْ جَعَلَ لَکُمْ مِّنَ الشَّجَرِ الْاَخْضَرِ نَارًا﴾ د شنے ونے نه الله تعالیٰ اُور راوباسی۔
اَصْلِ الْجَحِیْمِ : یعنی د جهنم په بیخ کښې راخیژی، او د هغے څانګے د جهنم درکاتو ته پورته کیږی چه تولو جهنمیانو ته به د هغے نه ضرر رسیږی۔
رُءُوْسُ الشَّيٰطِيْنِ : ١- شیطانان د هر چا په خیال کښې یو بد رنګ مخلوق دے، پدے وجه ئے هغه ذکر کړیدی۔ ٢- یا شیاطین سرکش مارانو ته وئیلے شی چه هیبتناك شکلونه لری۔ (زجاج والفراء)۔ ٣- بعض وائی چه رؤوس الشیاطین یو انتهائی بدرنګ بوټے دے چه په یمن کښې پیدا کیږی او هغے ته استن هم وائی، او دارنګه الشیطان هم ورته وائی۔ ٤- بعض وائی چه دا زیړه بد بویه ترخه ونه ده چه بدرنګ شکل ئے دے، او د هغے میوے ته رؤوس الشیاطین وائی۔ او دا ونه عربو پیژندله نو پدے وجه دوی دپاره دا ذکر شوه۔
فَمَالِـٔوْنَ مِنْهَا الْبُطُوْنَ : یو ده شِبَع (یعنی موړوالے) چه انسان خوراك وکړی نو اروئ ئے مړه شی۔ دویم ده مِلْءُ الْبَطْنِ۔ چه انسان خوراك کوی او اروئ ئے نهٔ مړیږی، خیټه ئے ډیریږی لیکن لوږه یا تنده ئے ختمه نشی، لکه په روژه کښې کله داسے کیږی چه انسان ډیرے اُوبه وڅکی لیکن تنده ئے ماته نشی۔
لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيْمٍ : یعنی ګډون به ئے د ګرمو اُوبو نه وی۔ یعنی کله چه دوی زقوم وخوری نو په مریٔ کښې به ئے ونښلی، اُوبه به وغواړی نو ملائك به ورله داسے ګرمے اُوبه

راوړی چه په کونډو کښې به ئې نیولی وی چه کله هغه مخ ته رانزدې کړی نو د مخ څرمن به پکښې ورپریوزی، او چه کله ئې وڅکی نو کولمې به ورله په لاندې طرف باندې وباسی۔
او د شَوْب یوه معنیٰ دا ده چه د زقوم تریخوالے او د اُوبو ګرموالے به ګډوډ شی۔ یا مطلب دا چه دا ګرمې اُوبه به د جهنمیانو د وینو زوو سره ګډې کړې شوی وی۔
ثُمَّ إِنَّ مَرْجِعَهُمْ : هرکله چه د خوراك څكاك طبقه په جهنم کښې جدا ده، دائې لنګر خانه ده، او په اُور باندې سوزیدلو طبقه جدا ده، نو ددې وجه نه ئې وفرمایل چه روستو د خوراك څكاك نه به بیرته جحیم (ګرم اُور) ته واپس کړې شی۔
إِنَّهُمْ أَلْفَوْا : اُوس د مخکنی عذاب سبب بیانوی چه دوی د ګمراهانو تقلید کړے وو بغیر د سوچ او فکر او بغیر د دلیل نه۔
صاحب د محاسن التنزیل لیکی چه په (۶۹، ۷۰) آیتونو کښې دا خبره بیان شوې چه د مکې مشرکانو په غیر د غور او فکر او صرف د ړوند تقلید په بنیاد د خپل پلار نیکهٔ په تابعدارئ کښې تیزی وکړه۔
آبَاءَ هُمْ ضَالِّينَ : یعنی دوی او د دوی پلارانو سره هیڅ دلیل په شرك باندې نهٔ وو، او دوی د خپلو پلارانو تقلید کړے وو بے دلیله۔ ددې نه معلومه شوه چه په دین کښې به د مشرانو پسے په دلیل سره روانیږے ګنې ګمراه به شې۔
يُهْرَعُونَ : زغلولے او تیزولے به شول۔ مراد ترې نه دا دے چه دوی به دا تدبر او سوچ نهٔ کولو چه آیا هغوی په حق وو او که نهٔ، هر مشر او پلار نیکه خو په حق نهٔ وی، ډیر مشران او پلاران نیکونه ګمراهان تیر شویدی، په تولو به یو شان د ښه والی ګمان نهٔ کوے۔
۲- يُسْتَحَثُّونَ مِنْ خَلْفِهِمْ۔ (ابوعبیدهؒ) دوی به د روستو نه تیزولے شول۔ چه په خپلو باطلو معبودانو باندې کلك ودریږئ، او د اهل حقو خوا ته ورنشئ، نوے خلق دے، باباګان نهٔ منی، او کله به وائی چه علماء مجتهدین نهٔ منی۔
۳- کلبیؒ وائی : يَعْمَلُونَ مِثْلَ أَعْمَالِهِمْ ۔ (بغویؒ) یعنی د خپلو مشرانو ګمراهانو په شان اعمال به دوی هم کول۔ هغوی په خطاء نو دوی هم په خطاء پسے روان شو۔
وَلَقَدْ ضَلَّ : اُوس د اکثرو امتونو مرض او د جهنم سبب بیانوی۔
یعنی ددې موجوده کافرانو نه مخکښې ډیر امتونه د تقلید او د دلیل د پریخودو په وجه

گمراه شوی وو چه هیڅ سوچ او فکر به ئې نۀ کولو او غلط تاویلات به ئې کول او د انبیاؤ دعوت به ئې رد کولو۔ (فتح البیان)

فخر الدین رازی لیکی : که چرې په قرآن کریم کښې ددې آیت نه سِویٰ د تقلید په بدیٔ کښې بل کوم آیت نۀ وې نو هم به کافی وې۔

یعنی څوك چه خپل مشر او عالِم مونده کړی چه د هغه په خبره باندې د قرآن او د حدیث نه دلیل نۀ وی او بیا هم د هغه پسې روانیږی نو دې به یقینی گمراه وی۔

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا : یعنی مونږ هغوی ته ډیر رسولان ولیږل چه دوی ئې د عذاب نه او د بد انجام د تقلید نه او د بدو اعمالو د بد انجام نه ئې ویرول او دوی ته ئې حق بیان کړو لیکن دې هیڅ فائده ورنکړه۔

فَانظُرْ كَيْفَ : یعنی کومو خلقو چه د دویٔ دعوت قبول نۀ کړو هغویٔ مو هلاك کړل، او خپل هغه نیکان بندگان مو د دغه عذاب نه بچ کړل چه هغویٔ به په اخلاص او لِلّٰهیت سره زمونږ عبادت کولو۔

اِلَّا عِبَادَ اللهِ الْمُخْلَصِيْنَ : سوال پیدا شو چه یره ولې شوی خلق خو صحابه کرام او نور نیکان خلق هم دی، نو د هغوی انجام هم خراب شو؟ نو ددې استثناء کوی چه ډیر کم مخلص خلك داسې وو چه هغوی ته الله تعالیٰ د ایمان او د توحید توفیق ورکړو او هغوی دلیل غوره کړو او تقلید ئې پریخودو۔ المخلصین : هغه بنده گانو ته وائی چه یو اځې د الله تعالیٰ طاعت او عبادت ئې کړې وی، او دائې د بل شی سره نۀ وی گډوډ کړې۔ روستو به د منذرین (یره ورکونکو رسولانو) تفصیل ذکر کیږی۔

| وَلَقَدْ نَادَانَا نُوْحٌ فَلَنِعْمَ الْمُجِيْبُوْنَ ﴿۷۵﴾ |
|---|
| او یقیناً آواز اُوکړو مونږ ته نوح علیه السلام نو خامخا ښه یو مونږ جواب ورکونکی۔ |
| وَنَجَّيْنَاهُ وَاَهْلَهٗ |
| (نو ډیر ښه دعا قبلونکی یو مونږ) او بچ کړو مونږ هغه او کور والا د هغهٔ |
| مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ ﴿۷۶﴾ وَجَعَلْنَا ذُرِّيَّتَهٗ هُمُ الْبَاقِيْنَ ﴿۷۷﴾ |
| د غم لوئی نه۔ او اُوگرځول مونږ اولاد د هغهٔ هم دوی باقی (په دنیا کښې) |

| وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِينَ ﴿٧٨﴾ سَلَامٌ عَلَىٰ نُوحٍ |
|---|
| او مونږ پريخودو په دهٔ باندے په روستنو كښې (ښائسته صفت)۔ سلام دے وي په نوح |
| فِي الْعَالَمِينَ ﴿٧٩﴾ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ﴿٨٠﴾ |
| عليه السلام په مخلوقاتو كښې۔ يقيناً مونږ دغسے بدله وركوو ټولو ښائسته عمل كونكو |
| إِنَّهُ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ ﴿٨١﴾ ثُمَّ أَغْرَقْنَا الْآخَرِينَ ﴿٨٢﴾ |
| ته۔ يقيناً دا زمونږ د بندګانو مؤمنانو نه وو۔ بيا غرق كړل مونږ روستني۔ |

**تفسير** : د سركش او نافرمان قومونو د هلاكت ذكر كولو نه پس مناسب معلوميږي چه د دوئ نه د بعضو قومونو حالات لږ تفصيل سره بيان كړے شي۔ نو په دے وجه دلته د اوو انبياء كرامو او د هغوئ د قومونو واقعات بيان شوي دي۔

ددے واقعے راوړويو غرض د (عَاقِبَةُ الْمُنْذَرِيْنَ) او د (إِلَّا عِبَادَ اللهِ الْمُخْلَصِيْنَ) تشريح ده۔ (٢) د هلاك شوو خلكو د هلاكت وجے او د نجات والو مؤمنانو صفات به پكښې ذكر كيږي دپاره د دعوت او ترغيب د اقتداء د دوي۔ (٣) زمونږ مشائخ ددے نه داسے مقصد راوباسي چه پدے كښې رد د شرك دے چه دا پيغمبران الله تعالىٰ ته محتاج دي په بچاؤ كښې د عذابونو نه۔ نو دوي د الله تعالىٰ سره مهٔ شريكوئ۔

د ټولو نه اولنئ واقعه د نوح عليه السلام او د هغهٔ د قوم ده:

الله تعالىٰ وفرمايل چه نوح (عليه السلام) مونږ لره د خپل قوم خلاف د مدد دپاره را اوبللو (لكه چه د سورتِ المومنون په (٢٦) او (٣٩) آيتونو كښې راغلي : ﴿قَالَ رَبِّ انْصُرْنِيْ بِمَا كَذَّبُوْنِ﴾ (نوح دعاء وكړه، اے زما ربه! د دوئ په دروغژن ګڼړلو باندے تهٔ زما مدد وكړے)۔ او د سورتِ قمر په (١٠) آيت كښې راغلي : ﴿فَدَعَا رَبَّهٗ أَنِّيْ مَغْلُوْبٌ فَانْتَصِرْ﴾ (نوح د خپل رب نه دعاء وغوښته چه زهٔ كمزورے يم، تهٔ زما مدد وكړه)۔ نو دلته د نداء نه مراد دعاء ده۔

فَلَنِعْمَ الْمُجِيْبُوْنَ : أَيْ لِدُعَائِهٖ) نو مونږ ددهٔ دعاء قبوله كړه (څكه چه زمونږ نه سوئ څوك دے چه د يو پريشان حالي آواز واوري، مونږ ډير ښه دعا قبلونكي يو) او هغه او د هغهٔ خاندان والا مو (د هغهٔ د ښځے او د څوي كنعان نه سوئ) د لوي طوفان نه بچ كړل، او د دوئ نسلونه مو په دنيا كښې باقي وساتل۔ نو د نوح عليه السلام د قوم د هلاكيدو نه پس

دوباره تول دنیا د نوح علیه السلام د درے ځامنو سام، حام او یافث د اولاد نه آباده شوه۔
مفسرین لیکی چه د حام د اولادو نه سند، هند، نوب، زنج، حبش، سوډان، قبط او بربر وغیره دی۔ او د سام اولاد عرب، فارس، روم او بنی اسرائیل وغیره دی۔ او د یافث اولاد ترك، صقلب (صقالبه) یاجوج ماجوج او چینیان وغیره دی۔ او د یو ضعیف روایت نه معلومیږی چه د یافث په اولاد کښ رومیان دی۔ (فتح البیان)
وَنَجَّیْنَاهُ : دے نه معلومه شوه چه نجات انسان ته په دعاء او زاریٔ او عاجزیٔ او د الله تعالیٰ په طاعت باندے ملاویږی۔
الْكَرْبِ الْعَظِیْمِ : ۱- لوی غم نه مراد عذابی مرګ دے، او خاصکر طوفان ډیر لویه پریشانی پیدا کوی۔ ۲- دارنګه تول قوم سره د کچ بَچ نه غرقیدل لوی غم دے۔
۳- یا د کرب عظیم نه مراد د قوم اوږده زمانه تکذیب وو۔ او هغهٔ ته د هغوی د طرف نه قسماقسم تکلیفونه ورکول۔ ٤- یا د قیامت عذاب دے۔
سَلَامٌ عَلٰی نُوْحٍ : ۱- دا سلام جمله ده او د تَرَكْنَا دپاره مفعول دے۔ اَیْ یُقَالُ سَلَامٌ۔ چه چه وئیلے به شی چه سلام دِے وی په نوح علیه السلام چه روستو زمانه کښ مخلوق هغه ته دعاء کوی او داسے وائی (نوح علیه السلام)۔ (کسائیؒ)
یا تقدیر داسے دے : [تَرَكْنَا عَلَیْهِ فِی الْآخِرِیْنَ هٰذِهِ الْكَلِمَةَ سَلَامٌ عَلٰی نُوْحٍ] ما پریخوده په دهٔ باندے په روستنو خلکو کښ دا کلمه چه (سلام علی نوح) (مبردؒ)
۲- د تَرَكْنَا دپاره مفعول پټ دے [اَیْ ثَنَاءً جَمِیْلًا] ښائسته صفت۔ او سَلَامٌ مستقل کلام دے۔اَیْ سَلَامٌ مِنَّا۔ یعنی زما د طرفنه سلام دے په نوح علیه السلام په مخلوقاتو کښ۔
یا د سلام لغوی معنیٰ مراد ده اَیْ سَلَامَةٌ لَهٗ مِنْ اَنْ یُّذْكَرَ بِسُوْءٍ فِی الْآخِرِیْنَ] یعنی دهٔ دپاره سلامتیا ده ددے نه چه دے په روستنو خلقو کښ په بدیٔ سره یاد کړے شی۔
اِنَّا كَذٰلِكَ : دے کښ مقصد تعمیم پیدا کول دی۔ یعنی مونږ دغه شان بدله نیکانو ته ورکوو۔ هغه دا چه نجات ورکوو، دعاء ورله قبلوو، په دنیا کښ بقاء ورکوو، نسل ورله باقی پریدو، الثناء الجمیل۔ ښائسته صفتونه ورکوو، د خلکو دعاګانے ورله پریدو، نو د مخکښ تولو آیتونو سره ولګیدو۔
نَجْزِی الْمُحْسِنِیْنَ : هغه خلك دی چه خپلو اقوالو او افعالو کښ احسان کونکے وی، او پدے احسان کښ مضبوط شوے وی۔
الْمُؤْمِنِیْنَ : ایمان ډیر لوی شرافت او لویه مرتبه ده نو ځکه الله تعالیٰ نوح علیه السلام ته هم

مؤمن وونیلو۔ د ایمان او احسان د وجه نه دغه ټول خیرونه حاصلیږی۔

| وَإِنَّ مِنْ شِيعَتِهِ لَإِبْرَاهِيمَ ﴿٨٣﴾ إِذْ جَاءَ رَبَّهُ |
|---|
| او یقیناً د ډلے د هغه نه خامخا ابراهیم علیه السلام دے۔ کله چه راغے هغه رب خپل ته |
| بِقَلْبٍ سَلِيمٍ ﴿٨٤﴾ إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِ مَاذَا تَعْبُدُونَ ﴿٨٥﴾ |
| په زړهٔ روغ سره۔ کله چه اُووئیل هغهٔ پلار خپل ته او قوم ته د چا بندګی کوئ تاسو۔ |
| أَئِفْكًا آلِهَةً دُونَ اللَّهِ تُرِيدُونَ ﴿٨٦﴾ فَمَا ظَنُّكُمْ |
| آیا دروغ معبودان سوئ د الله تعالیٰ نه غواړئ تاسو۔ نو څه ګمان دے ستاسو |
| بِرَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٨٧﴾ |
| په رب د مخلوقاتو۔ |

**تفسیر:** دویمه واقعه د ابراهیم علیه السلام ده۔ الله تعالیٰ وفرمایل چه ابراهیم ایمان او توحید طرفته د خلقو په رابللو کښ د نوح په لاره روان وو۔ هغه هم خپل رب طرفته په داسے زړهٔ سره متوجه شوے وو چه هغه د شرك او شك د خیرونه بیخی پاك، او په فطری توګه توحید طرفته مکمل طور سره مائل وو۔ دے وجے نه هغهٔ د خپل پلار او د خپل قوم په بُت پرستئ باندے رد وکړو، او هغوئ ته ئے ووئیل چه آیا تاسو د الله تعالیٰ خلاف دروغ ترئ، د خپل ځان دپاره د هغهٔ نه سوئ نور معبودان جوړوئ، او د رب العالمین عبادت پریدئ او د نورو عبادت کوئ، حالانکه دا خبره ستاسو په وَهم او ګمان کښ هم نهٔ دی راتلل پکار چه د هغهٔ نه سوئ بل څوك د عبادت حقدار کیدے شی۔

مِنْ شِيعَتِهِ : ۱- شیعه ډلے او مددګارو ته وئیلے شی، نو دلته ترے مراد دا دے چه انبیاء علیهم السلام ټول یوه ډله ده، نو د نوح علیه السلام د ډلے نه په نبوت کښ او په بیان د توحید کښ ابراهیم علیه السلام هم دے۔ ۲- یا شیعه په معنیٰ د تابعدارو دے،

او پدے کښ معنیٰ د تشبیه ده، أَیْ وَإِنَّ مِنْ أَتْبَاعِهِ فِي التَّصَلُّبِ فِي الدِّينِ وَمُصَابَرَةِ الْأَعْدَاءِ] یعنی د هغهٔ د تابعدارو نه په دین باندے په مضبوط کیدو کښ او د دشمنانو د مخالفتونو په مقابله کښ په صبر کولو کښ۔

إِذْ جَاءَ رَبَّهُ : د راتللو نه مراد متوجه کیدل دی یعنی الله تعالیٰ ته په هر وخت کښ په

روغ زړهٔ سره متوجه وو، او جَاءَ کښې اشاره ده چه تر مرګه پورې ئې زړهٔ دغه شان وو. د قلب سلیم تشریح په سورة الشعراء کښې ذکر شویده ۱- چه روغ جوړ زړه دے چه نهٔ په کښې شرك وي، نهٔ حسد او نهٔ شبهات او شکوك.

۲- اَلنَّاصِحُ لِلّٰهِ فِيْ خَلْقِهٖ. د الله تعالىٰ دپاره د هغهٔ د مخلوق خیر خواه وو.

بعض وائی چه خپل رب ته راتللو نه مراد د هغهٔ توحید او طاعت ته دعوت ورکول دی په روغ زړه او اخلاص سره.

او پدے کښې استعاره تصریحیه تبعیه ده، ددهٔ د زړهٔ اخلاص ئې مشابه کړو د تحفے راوړلو سره ګویا که ابراهیم علیه السلام روغ زړه الله تعالىٰ ته د خپل طرف نه تحفه ورکړه یعنی په داسے ځیزونو کامیاب شو چه هغه د الله تعالىٰ د رضا سبب وو. (فتح البیان)

أَئِفْكًا آلِهَةً دُوْنَ اللّٰهِ تُرِيْدُوْنَ : ۱- اِفْكًا مفعول دے د تُرِيْدُوْنَ دپاره او دا مبدل مِنْهُ دے او آلِهَةً د هغے نه بدل دے. یعنی تاسو د دروغو اراده لرئ چه هغه سویٰ د الله نه نور آلهه دی. نو ګویا که دا آلهه دروغ دی، د ځان نه جوړ شویدی او هیڅ حقیقت ئې نشته. او د ارادے نه مراد د هغوی بندګی کول دی. دا ترکیب ظاهر دے. اَیْ أَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ آلِهَةً كِذْبًا، لَيْسَتْ بِآلِهَةٍ وَلَا تَصْلُحُ لِلْعِبَادَةِ. یعنی آیا تاسو د الله نه سویٰ د دروغجنو معبودانو عبادت کوئ چه هغه معبودان نهٔ دی او نهٔ د عبادت لائق دی. (السعديّ)

۲- اِفْكًا مفعول لَهُ دے یا حال دے په معنیٰ د آفِكِيْنَ سره. او آلِهَةً مفعول به دے د تُرِيْدُوْنَ. آیا تاسو اراده لرئ سویٰ د الله تعالىٰ نه د نورو آلهه ؤ د دروغو جوړولو دپاره. یا په داسے حال کښې چه تاسو دروغ جوړونکی یئ.

فَمَا ظَنُّكُمْ بِرَبِّ الْعَالَمِيْنَ : ۱- ددے یو مطلب دا دے چه ستاسو په رب العالمین څه ګمان دے چه هغه به تاسو ته د قیامت په ورځ کومه بدله درکوی چه تاسو د هغه سره د نورو بندګی کړیده. نو پدے کښې د دوی یره ول دی چه که دوی په دے شرك باندے پاتے شول نو سختے سزا سره به مخامخ شی.

۲- ظاهر دا ده چه اسماء او صفات مراد دی. یعنی تاسو د رب العالمین په اسماء او صفاتو څه ګمان دے، آیا الله تعالىٰ ستاسو حاجت نهٔ آوری، حاجت مو نشی پوره کولے، قادر نهٔ دے، رحم والا نهٔ دے، بخنه کونکے نهٔ دے، نو بیا څه وجه ده چه تاسو الله پریدئ. لکه یو مشرك ته څوك ووائی چه ولے الله تعالىٰ کمزورے دے چه تهٔ بابا ته رامدد شه وائے. په الله کښې کوم نقصان دے (العیاذ بالله) چه تاسو د هغه سره شریکان جوړوئ.

| فَنَظَرَ نَظْرَةً فِي النُّجُومِ ﴿٨٨﴾ فَقَالَ إِنِّي سَقِيمٌ ﴿٨٩﴾ |
|---|
| نو اُوکتل هغهٔ یو کتل په ستورو کښې۔نو دهٔ اُوونیل یقیناً زهٔ بیمار یم۔ |
| فَتَوَلَّوْا عَنْهُ مُدْبِرِينَ ﴿٩٠﴾ فَرَاغَ إِلَىٰ آلِهَتِهِمْ |
| نو واوړیدل دوی د هغهٔ نه شاګرځونکی۔ نو راغے هغه معبودانو د دوی ته |
| فَقَالَ أَلَا تَأْكُلُونَ ﴿٩١﴾ مَا لَكُمْ لَا تَنْطِقُونَ ﴿٩٢﴾ فَرَاغَ |
| نو وے وئیل آیا نهٔ خورئ تاسو۔ څه وجه ده تاسو لره چه خبرے نهٔ کوئ تاسو۔ نو شروع |
| عَلَيْهِمْ ضَرْبًا بِالْيَمِينِ ﴿٩٣﴾ فَأَقْبَلُوا إِلَيْهِ يَزِفُّونَ ﴿٩٤﴾ |
| شو په هغوی باندے په وهلو سره په ښی لاس۔ نو مخامخ شول دوی هغه ته چه منډے |
| قَالَ أَتَعْبُدُونَ مَا تَنْحِتُونَ ﴿٩٥﴾ وَاللَّهُ |
| وهلے۔ اُوونیل دهٔ آیا بندګی کوئ تاسو د هغهٔ څه چه تاسو ئے تراشئ۔ او الله تعالیٰ |
| خَلَقَكُمْ وَمَا تَعْمَلُونَ ﴿٩٦﴾ قَالُوا ابْنُوا لَهُ |
| پیدا کړی یئ تاسو او هغه څه چه تاسو ئے جوړوئ۔ (بتان)۔ اُوونیل دوی جوړ کړئ دهٔ |
| بُنْيَانًا فَأَلْقُوهُ فِي الْجَحِيمِ ﴿٩٧﴾ فَأَرَادُوا بِهِ كَيْدًا |
| لره آبادے نو ګوزار کړئ دهٔ لره په اُور کښې۔ نو اراده اُوکړه دوی په هغه باندے د چل |
| فَجَعَلْنَاهُمُ الْأَسْفَلِينَ ﴿٩٨﴾ وَقَالَ إِنِّي ذَاهِبٌ |
| نو اُوګرځول مونږ دوی لاندے (ذلیلان)۔ او ووئیل هغه یقیناً زهٔ تلونکے یم |
| إِلَىٰ رَبِّي سَيَهْدِينِ ﴿٩٩﴾ |
| رب خپل ته زردے چه لاربه اُوښائی ماته۔ |

**تفسیر**: شوکانیؒ او صاحب د فتح البیان د واحدیؒ مفسر په حواله د مفسرینو قول نقل کړے چه دا خلق د علمِ نجوم قائل وو، دے وجے نه ابراهیم علیه السلام ستورو طرفته وکتل وئیلے ماته داسے معلومیږی چه که زهٔ تاسو سره په میله کښې شریك شم نو بیمار به شم، دے دپاره چه خلق دهٔ لره په میله کښې د شرکت کولو نه معذوره وګنړی۔ او دے د هغوی

بتانو ته چل جوړ کړی او په هغوی باندے دلیل قائم کړی چه دا بتان معبودان نهٔ دی، یعنی د عبادت لائق نهٔ دی۔ هغوی صبا له د اختر ورځ وه چه هغے ته به وتل نو ابراهیم علیه السلام ته ئے هم دعوت ورکړو چه مونږ سره ووځه نو دهٔ اراده وکړه چه د دوی نه روستو پاتے شی او بتان ختم کړی نو د توریه په طور ئے ستورو ته وکتل او هغوی ته ئے وخودله چه ګویا که زهٔ په ستورو سره خپل حال معلوموم چه زهٔ تاسو سره تلے شم او که نهٔ۔ نو دغسے وشوه، خلقو دا په خپل حال پریښود، او په میله کښې د برخے اخستو لپاره لاړل۔ ابراهیم علیه السلام بتانو خواته راغے او هغوئ پورے د توقو کولو دپاره ئے ووئیل چه که تاسو د عبادت مستحق یئ نو ستاسو مخے ته دومره ډیر خوراکونه پراتهٔ دی دا ولے نهٔ خورئ، لیکن بتانو نهٔ خوراك اوخوړلو اونهٔ ئے د هغهٔ د خبرے جواب ورکړو، نو ابراهیم علیه السلام ووئیل اے بتانو ! تاسو خبرے ولے نهٔ کوی ؟! بیا په خپل ښی لاس کښې نیولی تبرګی سره ئے په هغوئ باندے راکیخودل او ټکړے ټکړے ئے کړل۔

مشرکان چه کله بیګاه له واپس راغلل، او د خپلو معبودانو دا خراب حالت ئے ولیدهٔ، نو فوراً ابراهیم علیه السلام خواته اورسیدل، او د هغهٔ نه ئے تپوسونه شروع کړل۔ ابراهیم علیه السلام په خپله دفاع کښې ووئیل چه دا څنګه ستاسو کم عقلی ده چه کوم بتان تاسو خپلو لاسونو سره اُوتراشئ د هغوئ عبادت کوئ، حالانکه ستاسو او ستاسو د معبودانو خالق الله تعالیٰ دے، دے وجے نه د عبادت مستحق هم صرف هغه دے۔

**فَنَظَرَ نَظْرَةً فِي النُّجُومِ** : دے کښې ظاهر تفسیر همدغه دے چه ابراهیم علیه السلام د هغوی د عقیدے مطابق کار وکړو او عملی او قولی توریه ئے وکړه چه زهٔ بیمار یم، دا په حقیقت کښې بیمار نهٔ وو او دے ته رسول الله صلی الله علیه وسلم دروغ وئیلی دی کما فی حدیث البخاری (۳۳۵۸) لیکن چونکه دا دروغ د الله تعالیٰ دپاره وو نو څکه پرے ابراهیم علیه السلام ګنهګار شوے نهٔ دے، مګر د ابراهیم علیه السلام شان ډیر اُوچت وو نو هغه به په قیامت کښې د دے نه هم یریږی او دا به وائی چه زهٔ د الله تعالیٰ مخے ته نهٔ ورځم ما له حیاء راځی۔

نو د دے دپاسه دا تفسیرونه او تاویلونه کول چه دا دروغ نهٔ دی او د فَنَظَرَ نه مراد سوچ کول دی او (اَلنُّجُوم) نه مراد د هغوی خبرے دی۔ او د سقیم معنیٰ ده (سَأَسْقَمُ) زړ دے چه زهٔ به بیمار شم او هر انسان ضرور بیماریږی او دا رشتیا ده۔ نو دا تاویلات د ظاهر د آیت او د صحیح حدیث (لَمْ يَكْذِبْ إِبْرَاهِيمُ إِلَّا ثَلَاثَ كَذِبَاتٍ) خلاف دی چه هیڅ ضرورت ورته نشته، او پدے باندے د ابراهیم علیه السلام په شان کښې ذره برابر فرق نهٔ راځی

ځکه چه زمونږ د دین نه دا معلومه ده چه د الله تعالیٰ دپاره دروغ وئیلو کښې اجر دے، هیڅ ګنهګاریدل پکښې نشته، لکه حدیث کښې دی :
[لَيْسَ الْكَذَّابُ الَّذِیْ يُصْلِحُ بَيْنَ النَّاسِ فَيَنْمِیْ خَيْرًا] هغه انسان دروغجن نهٔ دے چه د خلقو ترمینځ د جوړجاړی دپاره د خیر یوه زیاته خبره وکړی)۔
(بخاری : ۲٦۸۲) مسلم (٦۷۹۹)
او دے کښې دا خبره کول چه ابراهیم عليه السلام ته د دروغو نسبت راوی د ځان نه کړیدے، نو دا په صحیح ثقه راوی باندے تهمت دے چه جائز نهٔ دے۔
مَا لَكُمْ لَا تَنْطِقُوْنَ : د بتانو سره ئے داسے خبرے وکړے لکه د عقلمندو سره چه کیږی سره ددے نه چه دا خو جمادات دی په خبرو نهٔ پو هیږی، او نهٔ خبرے کولے شی؟،
پدے کښې د هغوی پورے توقے کول غرض وو او بل په مشرکانو باندے رد او د هغوی خړ کول وو، چه الله تعالیٰ به د ابراهیم عليه السلام خبره روستو رابښکاره کوی نو په مشرکانو به رد راشی۔
فَرَاغَ عَلَيْهِمْ : یعنی شروع ئے وکړه په هغوی باندے۔
ضَرْبًا : اَیْ يَضْرِبُهُمْ ضَرْبًا۔ چه وهل ئے هغوی لره په وهلو سره۔
بِالْيَمِيْنِ : ۱- په ښی لاس سره چه قوی دے۔ ۲- په قوت او طاقت سره یعنی ښه جوخت ئے ووهل۔ (سدیؒ) ۳- بِسَبَبِ الْيَمِيْنِ۔ په سبب د هغه قسم سره چه دهٔ کړے وو چه ﴿وَتَاللهِ لَأَكِيْدَنَّ أَصْنَامَكُمْ﴾ (ضحاکؒ والربیع بن انسؒ)
يَزِفُّوْنَ : د زَفِيْف نه دے، د شتر مخ ابتدائی منډے ته وئیلے شی۔ (زجاجؒ) دلته ترے مراد تیزه منډه وهل دی۔ (ضحاکؒ)
۳- مجاهدؒ وائی : يَمْشُوْنَ مَشْيَ الْخُيَلَاءِ۔ د تکبر مزل ئے کولو۔
وما تعملون : ۱- اکثرو متکلمینو دا آیت ددے دپاره دلیل ګرځولے دے چه انسان د خپلو اعمالو خالق نهٔ دے بلکه الله تعالیٰ ئے خالق دے، نو د (مَا) نه مراد عملونه دی، او مَا مصدریه ده۔ یعنی ستاسو او ستاسو د عملونو خالق دے۔
حافظ ابن القیمؒ وائی چه دا خبره صحیح ده، لیکن ددے آیت نه استدلال بعید دے۔
۲- بلکه دلته (مَا) موصوله ده او مراد ترے بتان دی۔ یعنی الله تعالیٰ تاسو هم پیدا کړی یئ او کوم څیزونه چه تاسو جوړوئ چه هغه بتان دی۔ یعنی الله تعالیٰ ستاسو او ستاسو د بتانو خالق دے۔

قَالُوا ابْنُوا لَهُ بُنْيَانًا : د ابراهیم ﷺ د قوم سره چه کله د خپل کفر او شرك په تائید کښې هیڅ دلیل باقي پاتے نشو، او د ابراهیم ﷺ صریح او ښکاره دلیل هغوئ بے جوابه کړل، نو هغوئ د ظلم او زیاتی لاره اختیار کړه، چه د حق آواز دباوولو دپاره د ظالمانو او جابرانو خلقو همیشه عادت پاتے شویے۔ هغوئ دا فیصله وکړه چه یو ډیر لوئے اُور بلول پکار دی، او ابراهیم ﷺ په هغے کښې غورزول پکار دی۔

فَأَرَادُوا بِهِ كَيْدًا : یعنی دوئ د ابراهیم ﷺ خلاف سازش وکړو او هغه ئے ښکته لیدل وغوښتل، لیکن الله ﷻ دوئ ذلیله او رسوا کړل، د دوئ سازش بیخی ناکام پاتے شو، وخت او مالونه ئے برباد شول او اور د ابراهیم ﷺ دپاره یخ او سلامتیا والا جوړ شو۔ او د دوی په خلاف دا ډیر لوی حجت قائم شو چه دومره سخت او لوی اُور هغه لره ونهٔ سیزلو دا دلیل وو چه دا د الله تعالیٰ حق نبی وو۔ لیکن دوی باندے هیڅ اثر ونشو بلکه اُلټه ئے نور تدبیرونه د هغه په خلاف جوړول شروع کړل نو پدے وجه هغه هجرت ته مجبور شو۔

وَقَالَ إِنِّي ذَاهِبٌ : د اُور نه د نجات موندلو نه پس ابراهیم ﷺ د خپل وطن نه د هجرت کولو فیصله وکړه، او هلته نه اُووتلو او د شام حرّان علاقے ته لاړو، او د تللو په وخت ئے د خپل رب نه دا امید ښکاره کړو چه هغه به دهٔ لره په خپل مقصد کښې کامیابوی، او هغه به دے په ایمان او توحید باندے ثابت قدم ساتی۔

رازیؒ لیکلی دی چه د ابراهیم ﷺ دا اقدام ددے خبرے دلیل دے چه کوم ځای کښې د اسلام دشمنان ډیر شی، (او هلته د دین کار بند شی نو) هلته نه هجرت کول واجب دی۔

إِلَىٰ رَبِّي : اَیْ حَیْثُ اَمَرَنِیْ رَبِّیْ - یعنی کوم طرفته چه ما ته خپل رب حکم کوی۔ نو شام ته ئے هجرت وکړو۔

مفسرین لیکی چه اول هجرت د رب دپاره ابراهیم ﷺ کړے وو

| رَبِّ هَبْ لِي مِنَ الصَّالِحِينَ ﴿١٠٠﴾ فَبَشَّرْنَاهُ بِغُلَامٍ |
| --- |
| اے ربه زما اُوبخښه ما ته (بچے) د نیکانو نه۔ نو زیرے ورکړو مونږ هغهٔ ته په یو هلك |
| حَلِيمٍ ﴿١٠١﴾ فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْيَ قَالَ يَا بُنَيَّ |
| صبرناك۔ نو هر کله چه اُورسیدو د هغه سره کار کولو ته، ووئیل دهٔ اے بچیه ! |

| إِنِّيْ أَرٰى فِي الْمَنَامِ أَنِّيْ أَذْبَحُكَ فَانْظُرْ مَاذَا تَرٰى |
|---|
| یقیناً زهٔ وینم په خوب کښې چه خامخا زهٔ ذبح کوم تا نو سوچ اُوکړه چه څه رائے ده |
| قَالَ يَا أَبَتِ افْعَلْ مَا تُؤْمَرُ سَتَجِدُنِيْ |
| ستا، اُووئیل هغهٔ، اے پلاره زما وکړه هغه چه حکم کیدے شي تا ته زردے چه مونده |
| إِنْ شَاءَ اللّٰهُ مِنَ الصَّابِرِيْنَ ﴿١٠٢﴾ فَلَمَّا أَسْلَمَا |
| به کړے ما لره که الله اُوغواړی د صبرناکو نه۔ نو هرکله چه دواړه تابع شول (د الله |
| وَتَلَّهٗ لِلْجَبِيْنِ ﴿١٠٣﴾ وَنَادَيْنَاهُ أَنْ |
| حکم ته) او وائے چولو هغه په اړخ د مخ باندے۔ او آواز اُوکړو مونږ هغهٔ ته چه |
| يَا إِبْرَاهِيْمُ ﴿١٠٤﴾ قَدْ صَدَّقْتَ الرُّؤْيَا إِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ ﴿١٠٥﴾ |
| اے ابراهیمه۔ یقیناً رشتینی کړو تا خوب، یقیناً مونږ دغسے بدله ورکوو نیکانو ته۔ |
| إِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْبَلَاءُ الْمُبِيْنُ ﴿١٠٦﴾ وَفَدَيْنَاهُ بِذِبْحٍ عَظِيْمٍ ﴿١٠٧﴾ |
| یقیناً دا خامخا امتحان وو ښکاره۔ او قربان کړو مونږ ددهٔ نه ذبح شوے (ګډ) لوئی۔ (داخلاص کړو مونږ دے په قربانی لوئی سره)۔ (او بدله ورکړه مونږ هغهٔ ته الخ) |

**تفسیر** : ابراهیم علیه السلام د شام مقدسے زمکے ته د رسیدلو نه پس دعاء وکړه چه اے زما ربه ! ماله یو نیك ځوی راکړے چه په مسافرئ کښې زما د اُنس او د زړهٔ د تعلق سامان جوړ شی، او ستا په طاعت او بندګئ کښې زما مدد وکړی۔ الله تعالیٰ د هغهٔ دعاء قبوله کړه، او د هاجرے د خیټے نه اسماعیل علیه السلام پیدا شو۔

ذبیح کوم یو وو؟ اسماعیل او که اسحاق علیهما السلام؟۔

**بِغُلَامٍ حَلِيْمٍ** : ددے نه مراد اسماعیل علیه السلام دے۔ او کومو مفسرینو چه اسحاق علیه السلام یاد کړیدے نو هغوی د بنی اسرائیلو د تورات د عبارت نه دلیل نیولے دے چه هغے کښې هغوی دَس او تحریف کړیدے هغے کښې داسے وو [اِذْبَحْ وَلَدَكَ وَحِيْدَكَ بَكْرَكَ إِسْحَاقَ] خپل ځوی چه یواځے دے اولنے دے چه نوم ئې اسحاق دے ذبح کړه) نو د اول او د آخر تعارض ئې راوستو ځکه چه بکر خو اولنی ته وائی او اولنے خو اسماعیل وو او دوی د

هغې په ځای د اسحاق نوم ورا چولې دې)۔ او دا ددې روستو آیتونو نه هم معلومیږي ﴿وَبَشَّرْنَاهُ بِإِسْحَاقَ نَبِيًّا﴾ چه اولنې بشارت په اسماعیل وو او دویم په اسحاق۔ او دا د احادیثو او د سیرت نه معلومیږي۔ اصمعيؒ وائي ما د ابو عمرو بن العلاءؒ نه د ذبیح په باره کښې تپوس وکړو نو هغه راته ووېل: [أَيْنَ عَزَبَ عَنْكَ عَقْلُكَ وَمَتَى كَانَ إِسْحَاقُ بِمَكَّةَ] ستا عقل چرته غائب شویدې اسحاق په مکه کښې چرته وو، مکه کښې خو اسماعیل ؑ وو او اسحاق ؑ خو په فلسطین کښې وو۔

اسحاق ؑ څنګه ذبیح کیدې شي، الله تعالیٰ خو د اسحاق مور له د اسحاق او یعقوب (علیهما السلام) زیرې په یو ځای ورکړې: ﴿فَبَشَّرْنَاهَا بِإِسْحَاقَ وَمِنْ وَرَاءِ إِسْحَاقَ يَعْقُوبَ﴾ (مونږ ساره ته د اسحاق زیرې ورکړو او اسحاق نه پس د هغهٔ د ځوئې یعقوب)۔ دا خبره محاله ده چه هغې له د اسحاق د ځوئې یعقوب زیرې ورکړې شي بیا د اسحاق د ذبح کولو حکم وکړې شي۔

د قرطبيؒ او څهٔ نورو خلقو خیال دې چه ذبیح اسحاق وو، لیکن دا د یهود او نصاریٰ فریب دې چه دوئ دروغژن روایتونه جوړ کړل او په مسلمانانو کښې ئې خوارهٔ کړل، دې دپاره چه د نبي کریم ؑ نه د ((اِبْنُ الذَّبِيْحَيْن)) یعنی د دوو ذبیحو اسماعیل او عبد الله د ځوی کیدو شرافت واخلي۔ حافظ ابن القیم رحمه الله په خپل کتاب (زاد المعاد) کښې لیکلي دي چه د صحیح قول مطابق د صحابو او تابعینو او نورو سلفو علماؤ په نیز ذبیح اسماعیل ؑ دې۔ د اسحاق ؑ ذبیح کیدل د شلو وجهو نه باطل دي۔

بیا د الله تعالیٰ په حکم سره مور او ځوی ئې د مکې په بې آب او ګیاه میدان ته ورسول، چرته چه الله په خپل فضل او کرم سره آبِ زمزم تیار کړل، او جُرهم قبیله ئې راوستله او آباده ئې کړله۔ اسماعیل ؑ چه کله ځوان شو نو الله تعالیٰ ابراهیم ؑ ته په خوب کښې د وحي په ذریعه حکم وکړو چه هغه د خپل رب د خوشحالئ دپاره د خپل خوږ ځوی قربانی وکړي، هغهٔ خپل خوب ځوی ته بیان کړو او هغهٔ نه ئې مشوره طلب کړه نو ځوی ووئیل: پلاره! تا ته چه کوم حکم شوې هغه وکړه، ان شاء الله چه تهٔ به ما صبر کونکې بیامومې۔ ابراهیم ؑ ځوی ځان سره واخستهٔ او مِنیٰ طرفته روان شو، او د جمراتو ځائې ته چه اُورسیدهٔ او هلته ئې هغه د تندي په طرف واچولو، او چارهٔ ئې د هغهٔ په څټ باندې کیخودله۔ ناڅاپه څهٔ ګوري چه هلته یو ګډ ولاړ دې، یو غیبي آواز راغې چه تهٔ خپل ځوی پریده او ګډ ذبح کړه۔

حلیم: پدے کښ بل زیری ته اشاره وه چه دا به لوی کیږی او بیا به حلیم (یعنی صبرناك) کرځی ځکه چه ماشوم ته حلیم نهٔ وئیل کیږی۔ او بل پدے کښ اشاره وه چه دا به هلك وی۔

فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْيَ : [أَیْ بَلَغَ أَنْ يَتَصَرَّفَ]۔ یعنی د تصرف کولو زمانے ته ورسیدو۔ ابن عباس رضی الله عنه معنیٰ کوی: [شَبَّ حَتّٰى بَلَغَ سَعْيُهُ سَعْيَ أَبِيهِ فِي الْعَمَلِ] یعنی ځوان شو تردے چه ددهٔ کوشش د پلار کوشش ته په عمل کښ ورسیدو۔ یعنی د هغه په شان کار ئے کولے شو او د هغه په دنیاوی کارونو کښ مددگار جوړ شو۔

فراء وائی: دیارلسو کالو ته ورسیدو۔

د سعی معنیٰ العمل لله ته هم وائی۔ یعنی پدے پوهه شی چه د الله تعالیٰ دپاره عملونه پکار دی۔

إِنِّىٓ أَرٰى فِى الْمَنَامِ أَنِّىٓ أَذْبَحُكَ : د ابراهیم علیه السلام د هاجرے رضی الله عنها نه دا یو بچے وو او ابراهیم علیه السلام ورسره ډیر محبت پیدا شوے وو نو الله تعالیٰ غوښتل چه په ابراهیم علیه السلام باندے امتحان وکړی او د هغهٔ محبت خالص د الله تعالیٰ دپاره شی اگرکه د بچو سره محبت روا دے، خو د پیغمبرانو او خاصکر د ابراهیم علیه السلام شان ډیر اُوچت دے نو الله تعالیٰ د هغهٔ زړه صرف د ځان دپاره خالص کولو چه ددهٔ په زړه کښ صرف د الله تعالیٰ دپاره مینه وی۔ او دا ډیر اُوچت ایمان دے۔

فی المنام: د انبیاء علیهم السلام وحی وی او په حقیقت باندے بناء وی او د امتی دپاره خوب صرف د تائید په درجه کښ وی، ددے وجه نه که د شریعت خلاف خبره په خوب کښ درته وشوه نو د هغے منل نشته، دا خوب به غلط وی یا به د هغے څه تاویل وی په بله معنیٰ۔ لکه خوب کښ درته وویل شی چه خوی حلال کړه یا فلانے مړ کړه نو ددے به بله معنیٰ وی۔ یا درته د گناه امر وشی نو دا به شیطانی امر وی۔ او انبیاء علیهم السلام باندے شیطان نهٔ کینی، د هغوی زړونه د خوب په حالت کښ هم ویښ وی او د نورو خلکو زړونه اُوده کیږی۔

فَانظُرْ مَاذَا تَرٰى : یعنی ته وگوره چه ستا څه رایه ده یعنی تا ذبح کړم او که نه؟ ځکه ما ته د الله تعالیٰ امر دے چه دا حلال کړه۔ سوال دا دے چه هرکله ابراهیم علیه السلام ته د الله تعالیٰ امر دے نو بیا د هغهٔ نه څه دپاره رایه اخلی بلکه چاړه دے راواخلی او همداسے دے پرے ورشی؟ ځکه که هغه هر طرفته رایه ورکړه په دواړو صورتونو کښ به د ابراهیم

عليه السلام دپاره د ځوی حلالول لازم وی؟ جواب : پدے کښ دوه کماله دی (١) اول خپل بچے معلومول او په دهٔ باندے امتحان کول چه دا څنګه دے، د الله تعالیٰ حکم ته غاړه ږدی او که نهٔ۔ (٢) دویم پدے کښ تصحیح النیة دے۔ یعنی د هغه نیت برابرول مقصد دے او مطلب دادے چه بچے خو به هسے هم حلالوم خو هغهٔ ته خبره کوی دے دپاره چه هغه هم د الله تعالیٰ دپاره نیت وکړی او اجر ورته ملاؤ شی۔

قَالَ يَا أَبَتِ افْعَلْ : هغه کښ دا کمال وو چه هغه دے خبرے ته سمدست تیار شو او د ورکوالی نه الله تعالیٰ پیغمبرانو کښ دا کمال اچولے وی۔

یا ابت : دا آدبی لفظ دے۔ پلار ته ئے د خیر مشوره ورکړه او بیا ئے ځان د صبرناکو نه وګرځولو او ان شاء الله ووئیله او بیا ئے په دغه وعده باندے پابندی هم وکړه۔ دا تول انتهائی اعلیٰ اخلاق او اعمال دی۔ او دا د نجات اسباب دی۔

او "ان شاء الله" وئیل سبب دے دپاره د توفیق د صبر۔

فَلَمَّا أَسْلَمَا : یعنی دواړه منقاد شو د الله تعالیٰ ددے امر۔

وَتَلَّهُ : أَيْ أَلْقَاهُ عَلَى تَلٍّ مِنَ الْأَرْضِ ۔ یعنی هغه ئے په اُوچته زمکه راګوزار کړو۔ او تَل غوړزولو او ارتولو او څملولو ته وئیلے شی۔ یعنی څیملولو په اړخ باندے۔

لِلْجَبِينِ : د تندی هر دواړو طرفونو ته جبین وئیلے کیږی، او جبهه تندی ته وئیلے کیږی۔

نو د (لَمَّا) جزاء پټه ده [أَيْ فَدَيْنَاهُ بِكَبْشٍ] مونږ هغه نه قربان کړو یو ګډ۔

وَنَادَيْنَاهُ : یعنی مونږ ابراهیم عليه السلام ته آواز اوکړو او ورته مو ووئیل چه تا خپل خوب رشتینے ثابت کړو، او د کامل طاعت او د عظیم ترین صبر او ثابت قدمیٔ دلیل دے پیش کړو۔ اُوس تهٔ ځوی مهٔ ذبح کوه۔ نو ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام ته الله تعالیٰ په صرف عزم باندے اجر ورکړو ځکه چه د هغوی د الله تعالیٰ حکم ته تابع کیدل راغلل اګرکه ذبح ونشوه۔ دے نه دا فائده معلومیږی چه د الله تعالیٰ حکم که په ظاهره کښ انسان ته ډیر مشکل هم وی لیکن الله تعالیٰ انسان ته د هغے توفیق ورکوی او رشتینی ارادے باندے ورته آسانی رالیږی۔ قرطبیؒ وائی : اهل السنة وائی چه ذبح نهٔ وه واقع شوے او که واقع شوے وے، نو بیا د هغے پورته کیدل ممکن نهٔ وو ځکه چه که هغه ذبح شوے وے نو بیا د ګډ قربانی ته ضرورت نهٔ راتللو۔ نو دے ته نسخ قبل العمل وائی۔ ددے ذبح متعلق مفسرینو مختلف خبرے کړیدی چه ابراهیم عليه السلام به چاړه رابنکله

لیکن هغه به راواپس کیده او پریکول به ئے نهٔ کول، یا کوم ځای چه به ئے پریکولو هغه به بیرته روغیدو، یا د هغه په مرئ باندے الله تعالیٰ د تانبے یوه حلقه تاؤ کړه نو ابراهیم علیه السلام به کوشش کولو لیکن هغه به نهٔ پریکیدو دا ټولے خبرے د الله تعالیٰ په قدرت کښې جائز دی لیکن دا صحیح نقل ته حاجت لری او ددے په باره کښې صحیح نقل نشته، نو بس ظاهر دا ده چه هغه ئے کله په اړخ واچولو او چاړه ئے پرے راښکله نو الله تعالیٰ منع کړو، او د هغهٔ خوب ئے په ګډ باندے واقع کړو چه ستا قربانی قبوله شوه۔

إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ : د محسنینو بدله دا ده چه د هغوی خوبونه رشتینی کوی (نو ځومره چه انسان رشتینی او نیک عمله وی نو خوب ئے رشتینی وی) او بله دا چه الله تعالیٰ ورته توفیق د نورو نیکیانو ورکوی۔ او هغوی ته نیکان بچی ورکوی او هغوی په امتحاناتو کښې کامیابوی۔

إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ الْبَلَاءُ الْمُبِينُ : بیشکه همدا هغه ښکاره آزمائش دے چه ددے په ذریعه د مخلص او غیر مخلص فرق راځی۔

دا ښکاره امتحان ځکه دے چه داسے نیک او زلمے او خوش اخلاقه بچے ذبح کول ډیر ګران کار دے، لیکن کله چه انسان د احسان درجے ته ورسیږی نو بیا د الله تعالیٰ دپاره قربانی ورکولو ته تیار وی۔ دے کښې مونږ ته دا سبق پروت دے چه د الله تعالیٰ دپاره به مال او ځان او وخت او بچی او ښځه قربانوے۔ کله چه د الله تعالیٰ حکم راشی ددے نه به تیریږے۔ ۲- بلاء نعمت ته هم وائی۔ یعنی دا ځوی بچ کول او ددے په ځای ګډ ذبح کول د الله تعالیٰ ښکاره نعمت وو په ابراهیم علیه السلام باندے چه الله تعالیٰ ورته د احسان په بدله کښې ورکړو۔ اوله معنیٰ د مقام سره زیاته لائقه ده۔

وَفَدَيْنَاهُ بِذِبْحٍ عَظِيمٍ : یعنی ما قربان کړو د اسماعیل علیه السلام نه یوه مذبوحه لویه۔

یعنی د هغه په ځای مے یو ګډ ذبح کړو۔ فدیه د چا په بدله کښې مال وغیره ورکول او هغه خلاصول۔

ذِبْحٍ: په زیر د ذال سره مذبوحے (حلال شوی حیوان) ته وئیلے شی، او په زور د ذال سره مصدر دے ذبح کولو ته وئیلے شی۔

عَظِيمٍ : دا لویه مذبوحه ځکه وه چه مرتبه او قدر ئے لوی وو۔ ځکه چه د لوی شخص په بدله کښې لوی سری ته ورکړے شوه۔ او هغه یو ګډ وو چه الله تعالیٰ د غیبو نه رالیږلے وو او ابراهیم علیه السلام ته حکم وشو چه دا ذبحه کړه۔ او دے ته ذِبح عظیم پدے وجه هم وائی

چه الله تعالیٰ د ابراهیم علیه السلام د زمانې نه روستو تولو دینونو والو ته حکم وکړو چه په اخترونو کښې قربانی وکړی۔ نو د هغې اقتداء وکړې شوه په دې وجه هغه عظیمه شوه۔

**فائده:** عبد الله بن عباس رضی الله عنهما ددې نه دلیل نیولې دې چه چا د خپل بچی د ذبح کولو نذر وکړو نو د ګډ په ذبح کولو دِ دے نذر پوره کړی لیکن دا هغه وخت چه د بچی ذبح کول حلال نهٔ ګنړی، او که حلال ئې ګنړی نو بیا دا نذر دے په ګناه سره او د ګناه نذر صحیح نهٔ دے۔

| وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِينَ ﴿١٠٨﴾ سَلَامٌ |
|---|
| او پریخودو مونږ په هغهٔ باندې په روستنو کښې (ښائسته صفت)۔ سلام دې وی |
| عَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ ﴿١٠٩﴾ كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ﴿١١٠﴾ إِنَّهُ مِنْ |
| په ابراهیم علیه السلام باندې۔ دغسې بدله ورکوو مونږ نیکانو ته۔ یقیناً دا د |
| عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ ﴿١١١﴾ وَبَشَّرْنَاهُ بِإِسْحَاقَ |
| زمونږ د بندګانو مؤمنانو نه وو۔ او زیرے ورکړو مونږ هغهٔ ته په اسحاق سره |
| نَبِيًّا مِنَ الصَّالِحِينَ ﴿١١٢﴾ وَبَارَكْنَا عَلَيْهِ وَعَلَىٰ إِسْحَاقَ |
| چه نبی وو د نیکانو نه وو۔ او برکتونه واچول مونږ په هغهٔ باندې او په اسحاق |
| وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِمَا مُحْسِنٌ وَظَالِمٌ |
| باندې او د اولادو د دواړو نه (بعض) ښائسته عمل والا دی، او (بعض) ظلم کونکی |
| لِنَفْسِهِ مُبِينٌ ﴿١١٣﴾ |
| د ځان سره دی، ښکاره۔ |

**تفسیر**: یعنی الله تعالیٰ په روستنو خلکو کښې د ابراهیم علیه السلام ښائسته کردار او صفت پریخودو چه تول امتونه ئې ښه صفت کوی۔ یهودی، نصرانی، او مسلمان تول د هغهٔ نوم په عزت او احترام سره اخلی، او هغهٔ دپاره د سلامتیا او رحمت دعاء کوی، او قیامته پورې به د هغهٔ ښائسته ذکر په قومونو کښې باقی وی۔

**كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ** : دلته ئې د خبرې عام کولو دپاره تشبیه ورکړه چه د دغه

لوی بدلے په شان بدله مونږ هر نیك عمل کونکو ته ورکوو. نو دے کښې الله تعالیٰ دعوت ورکوی چه ځان کښې احسان راولئ الله تعالیٰ به د نیك اعمالو توفیق درکړی، زیری به درکړی، په نیکانو کښې به مو شمار کړی.

مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ : ابراهیم علیه السلام زمونږ د رشتینے مومنانو بندګانو نه وو.

وَبَشَّرْنَاهُ بِإِسْحَاقَ : ابراهیم علیه السلام چه کله بوډا شو، او د هغهٔ ښځه ساره هم بوډئ شوه، نو الله تعالیٰ هغهٔ له د اسحاق علیه السلام زیرے ورکړو، دا زیرے هغه ملائکو راوړے وو چه هغوئ د لوط علیه السلام په قوم باندے د کلی اړولو دپاره رالیږلے شوی وو. ملائکو چه کله دواړو له دا زیرے ورکړو، نو سارے رضی الله عنها د خپلے او د خپل خاوند د بوډا والی په وجه سخت تعجب سره ووئیل : ﴿ أَأَلِدُ وَأَنَا عَجُوزٌ وَهَٰذَا بَعْلِي شَيْخًا ﴾ (آیا زهٔ به بچی راوړم حال دا چه زهٔ بوډئ شوے یم او زما خاوند هم بوډا شوے). (هود : ٧٢). اسحاق علیه السلام د اسماعیل نه دیارلس کاله کشر وو.

مِّنَ الصَّالِحِيْنَ : الله تعالیٰ پدے کښې دوه زیری ورکړی، یو دا چه د ابراهیم علیه السلام به بچے پیدا کیږی، او هغه به غټیږی او نبی به ګرځی او د نیکانو نه به ګرځی.

دلته ئے دا صفت خاص ذکر کړو پدے کښې دعوت دے چه د نیك عملو انسانانو حالت الله تعالیٰ برابروی.

وَبَارَكْنَا عَلَيْهِ : د دوی برکت دا وو چه الله تعالیٰ ورله اولاد زیات ورکړی وو. دویم برکت دا دے چه د دوی نه زیات انبیاء علیهم السلام پیدا شویدی، اول د ابراهیم علیه السلام نه پیغمبران پیدا شو بیا د اسحاق علیه السلام په اولاد کښې ټول پیغمبران راغلل او د اسماعیل علیه السلام په اولاد کښې صرف محمد رسول الله ﷺ راغے.

وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِمَا : یعنی د دوی اولاد دوه ډلے دی، موحدین او غیر موحدین.

نو پدے کښې اشاره ده چه که چا کښې ظلم او شرك راغے، اګرکه پلاران ئے پیغمبران وی نو دۀ ته نجات نشی ملاویدے، دغه شان د اولادو مشرك او ظالم کیدل پلار ته نقصان نهٔ رسوی کله چه هغه خپله صالح وی، هر سړے به په خپل عمل رانیولے کیږی.

عرب دے دا فخر نهٔ کوی چه مونږ د اسماعیل علیه السلام په اولاد کښې یو، او یهود او نصاریٰ دے فخر نکوی چه مونږ د اسحاق علیه السلام په اولاد کښې یو، بلکه په خپل عمل به خلاصے وی.

| |
|---|
| وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلٰى مُوْسٰى وَهَارُوْنَ ﴿۱۱۴﴾ وَنَجَّيْنَاهُمَا |
| او يقيناً احسان كړے وو مونږ په موسىٰ او هارون عليهما السلام۔ او بچ كړى وو مونږ |
| وَقَوْمَهُمَا مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ ﴿۱۱۵﴾ وَنَصَرْنَاهُمْ فَكَانُوْا هُمُ الْغَالِبِيْنَ ﴿۱۱۶﴾ |
| دوى او قوم د دوى د غم لوئى نه۔ او مدد كړے وو مونږ دوى سره نو وو دوى غالبه۔ |
| وَآتَيْنَاهُمَا الْكِتٰبَ الْمُسْتَبِيْنَ ﴿۱۱۷﴾ وَهَدَيْنَاهُمَا |
| او وركړے وو مونږ دواړو ته كتاب ډير ښكاره حكمونو والا۔ او روان كړى وو مونږ |
| الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ﴿۱۱۸﴾ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِمَا فِي الْآخِرِيْنَ ﴿۱۱۹﴾ |
| دواړه په لاره نيغه۔ او پريخودو مونږ په دواړو باندے په روستنو كښې (ښائسته |
| سَلَامٌ عَلٰى مُوْسٰى وَهَارُوْنَ ﴿۱۲۰﴾ إِنَّا كَذٰلِكَ |
| صفت)۔ سلام دے وى په موسىٰ او هارون عليهما السلام باندے۔ يقيناً مونږ دغسے |
| نَجْزِى الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۲۱﴾ إِنَّهُمَا مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۲۲﴾ |
| بدله وركوو نيكانو ته۔ يقيناً دا دواړه زمونږ د بندګانو مؤمنانو نه وو۔ |

**تفسير** : (۱) پدے واقعه كښې يو غرض دا دے چه الله تعالىٰ فرمائى : دا انبياء عليهم السلام مونږ ته محتاج دى، (مَنَنَّا) مونږ پرے احسان كړيدے، تول د جمع صيغے پكښې استعمال شويدى۔ (۲) پدے كښې تخويف او بشارت دے، چه نيكانو ته نجات په كومو نيكو صفاتو ملاؤ شو او قبط قوم هلاك شو په كومو بدو صفاتو۔ نو په ايمان كښې نجات او په كفر كښې هلاكت دے، بيا خصوصى صفات راوړى۔

الله تعالىٰ موسىٰ او هارون عليهما السلام له نبوت او رسالت او نور عظيم نعمتونه وركړى وو، دوئ او د دوئ قوم بنى اسرائيل ئے د فرعون او فرعونيانو د ظلم او زياتى او هغوئ د غلامئ نه خلاص كړل، او دوئ له ئے په هغوئ باندے غلبه وركړه۔

**الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ** : ددے نه مراد د فرعون غلامى وه او په دوى باندے د هغهٔ د طرفه مصيبتونه وو۔ او په بنى اسرائيلو كښې ايمان، احسان او صبر وو نو پدے وجه ئے دوى ته نجات وركړو۔

الْكِتٰبَ الْمُسْتَبِيْنَ : یعنی ښکاره احکامو او حدودو والا وو۔ مستبین خپله واضح ته وائی، د قرآن فضیلت زیات دے هغه (المبین) دے، خپله هم واضح او بل شے هم واضح کونکے دے۔ او دے کښې اشاره ده چه احسان ځان کښې پیدا کړه نو الله تعالیٰ به د کتاب علم درکړی۔ لکه كذلك نجزی المحسنین کښې ورته اشاره ده۔

الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ : ددے نه مراد هغه لاره ده چه هیڅ کوږوالے پکښې نهٔ وو چه هغه دین اسلام دے ځکه چه دا نیغه جنت ته رسیدلے ده۔

سَلٰمٌ : اَیْ مِنَّا۔ زمونږ د طرفنه دے سلام وی په موسیٰ او هارون علیهما السلام۔

اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِی الْمُحْسِنِيْنَ : اوس بیا خبره عامه کوی چه مونږ دغه شان احسان په هر هغه چا کوو چه هغوی کښې د احسان صفت وی، پدے کښې د احسان د صفت لوی قدر بیان شویدے، چه پدے سره د خلکو ښائسته صفتونه هم ملاویږی۔

| وَاِنَّ اِلْيَاسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۱۲۳﴾ اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖٓ اَلَا |
|---|
| او یقیناً الیاس ؑ خامخا د پیغمبرانو نه وو۔ کله چه وویل دهٔ قوم خپل ته آیا نهٔ |
| تَتَّقُوْنَ ﴿۱۲۴﴾ اَتَدْعُوْنَ بَعْلًا وَّتَذَرُوْنَ اَحْسَنَ |
| یریږئ (د الله نه)۔ آیا رابلئ تاسو (په حاجتونو کښې) بعل (بت) لره او پریدئ ښائسته |
| الْخَالِقِيْنَ ﴿۱۲۵﴾ اللّٰهَ رَبَّكُمْ وَرَبَّ اٰبَآئِكُمُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۲۶﴾ |
| د پیداکونکو نه۔ چه الله دے، رب دے ستاسو او رب دے دپلارانو ستاسو پخوانو۔ |
| فَكَذَّبُوْهُ فَاِنَّهُمْ لَمُحْضَرُوْنَ ﴿۱۲۷﴾ |
| نو دوی دروغژن اوګڼلو هغهٔ لره نو یقیناً دوی به خامخا حاضر کړے شی (په عذاب |
| اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ﴿۱۲۸﴾ وَتَرَكْنَا |
| کښې)۔ مګر بندګان د الله تعالیٰ چه چانړ کړے شویدی۔ او پریخودو مونږ |
| عَلَيْهِ فِی الْاٰخِرِيْنَ ﴿۱۲۹﴾ سَلٰمٌ عَلٰٓى اِلْ يَاسِيْنَ ﴿۱۳۰﴾ |
| په هغهٔ باندے په روستنو خلقو کښې (ښائسته صفتونه)۔ سلام دے وی په الیاسین |

إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ﴿۱۳۱﴾ إِنَّهُ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ ﴿۱۳۲﴾

ﷺ باندے۔ یقیناً دغسے بدله ورکوو مونږ نیکانو ته۔ یقیناً دا وو زمونږ د بندګانو مؤمنانو نه۔

**تفسیر**: پنځمه واقعه د الیاس ﷺ ده۔ د موسیٰ ﷺ نه روستو ډیر پیغمبران راغلی دی چه یو په هغې کښې الیاس ﷺ هم دے۔ کله چه حزقیل ﷺ وفات شو نو په بنی اسرائیلو کښې ډیر أحداث (تبدیلیانے) پیدا شوے تردے چه بت پرستی پکښې راغله، دوی په شام کښې وسیدل په بعلبك ښار کښې، شیطان راغے دوی ته ئے دعوت ورکړو نو دوی نه ئے بت پرست جوړ کړل، دوی یو بت جوړ کړو چه بعل ئے نوم دے، دهٔ څلور مخونه لرل، څلورو طرفونو ته به ئے خلکو عبادت کولو او شکل ئے د برېنډے زنانه وو چه ټول اندامونه ئے ښکاره کیدل، دا شل ګزه اوږد وو او څلور سوه منجوران ئے ورله مقرر کړی وو چه ددے عبادت او خدمت به ئے کولو او دا ئے ورله ځامن جوړ کړی وو۔ او هر قِسم نذر او نیاز او قربانی به ئے د بعل په نوم کوله، او د تورات احکام ئے شاته غورزولی وو۔

پدے بت کښې به شیطان ننوتو او د ګمراهئ خبرے به ئے کولے۔ نو الله تعالیٰ د دوی پسے الیاس ﷺ نبی راولیږلو، چه ددهٔ نوم د بنی اسرائیلو په کتابونو کښې (ایلیا) ذکر شوے۔ ددهٔ زمانه د سلیمان ﷺ نه پس وه۔ عبد الله بن مسعود ﷺ ته منسوب ده چه: ادریس او الیاس علیهما السلام یو دی، لیکن دا خبره مفسرینو نهٔ ده غوره کړے، ځکه چه ادریس ﷺ خو د نوح ﷺ نیکه دے، او الیاس د بنی اسرائیلو نبی دے۔ بعض وائی: الیاس ﷺ او خضر ﷺ یو دی۔

بعض وائی الیسع او الیاس یو دی، لیکن دا هم صحیح نهٔ ده ځکه چه دواړه الله تعالیٰ جدا جدا ذکر کړیدی۔ صحیح خبره دا ده چه دا الیاس بن بِشْرِ بن يَاسِين بن فَنْحَاص بن عِيْزَار بن هَارُوْن ﷺ دے، او د هارون ﷺ د نسل نه دے۔

او ددهٔ په باره کښې چه قرطبیؒ وغیره کوم حدیث راوړیدے چه هغه ژوندے دے، او د رسول الله ﷺ ورسره ملاقات شویدے نو سیوطیؒ د امام ذهبیؒ نه نقل کړیدی چه دا موضوع او منګھړت روایت دے۔ لکه څنګه چه صوفیاؤ بے سنده روایت د خضر او د الیاس د ژوندی پاتے کیدو ذکر کړیدے۔

بعل د بت نوم دے او بك د هغه ځای بادشاه وو او د خپل ښار نوم ئے بعلبك کیخودلے

وو۔
أَلَا تَتَّقُوْنَ : الیاس علیه السلام دوئ ته ووئیل چه آیا تاسو د الله تعالیٰ د عذاب نه نهٔ یریږئ چه د هغهٔ په ځای د بتانو عبادت کوئ؟ یا تاسو ځان کښې تقویٰ ولے نهٔ پیدا کوئ چه شرک او ګناهونه پریدئ او د الله تعالیٰ بندګی شروع کړئ. آیا تاسو دومره لاره ورکه کړیده چه د خپل لوی بُت (بعل) عبادت کوئ، او ښائسته پیدا کونکے الله تعالیٰ هیروئ چه هغه ستاسو او ستاسو د تیر شوو پلرونو نیکونو رب دے؟!. یعنی ستاسو د پلار او نیکه تربیت او پالنه چا کوله؟، هغه خو الله وو نو هرکله چه د هغوی تربیت ئے کولو نو ستاسو هم کوی، د الله تعالیٰ په قدرت او رحمت کښې خو هیڅ فرق نهٔ دے راغلے.
اتدعون : دعاء جزء د عبادت دے پدے وجه قرآن کریم کښې دعاء په معنیٰ د عبادت سره هم استعمالیږی. یعنی تاسو عبادت کوئ د بعل، دے ته سجدے لګوئ او دے ته رامدد شه وایئ او ددے په نوم نذر او منبتے کوئ.
أَحْسَنَ الْخَالِقِيْنَ : یعنی داسے ذات پریدئ چه د هر چا نه ئے ښائسته پیدائش کړیدے او ستاسو پیدائش ئے هم ښائسته کړیدے نو دا ښائسته مخ ولے د الله تعالیٰ نه سویٰ بل ته خکته کوی؟.
فَكَذَّبُوْهُ : په بعلبك والو باندے ددهٔ تقریر هیڅ اثر ونهٔ کړو، هغوئ د الله د وحدانیت اقرار ونهٔ کړو او الیاس علیه السلام ئے دروغژن وګنړلو، او تاریخی روایتونو کښې دی چه هغه ئے وشړلو او د هغه د وژلو اعلان ئے وکړو چه دا مړ کړئ، هغه د دوی نه په پټه هجرت وکړو نو الله تعالیٰ دوی په خپل مرګ باندے په خپل خپل وخت کښې مړهٔ کړل او سیده جهنم ته ورسیدل. سویٰ د هغه یو څو نیکو بندګانو نه چه هغوئ د هغهٔ د ایمان دعوت قبول کړے وو او د هغهٔ تابعداری ئے کړے وه، هغوئ الله تعالیٰ جنت ته بوتلل.
لَمُحْضَرُوْنَ : مطلق إحضار، د عذاب په ځای کښې استعمالیږی.
إِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ : پدے کښې اشاره ده چه انسان کښې چه نیکی راځی نو دا په خپل زور او هوښیارتیا سره نهٔ بلکه داد الله تعالیٰ مهربانی وی. او دا استثناء ده د (مُحْضَرُوْنَ) نه او پدے کښې اشاره ده چه د عذاب نه د بچاؤ سبب اخلاص او عبادت دے.
او بعض وائی چه دا د (فَكَذَّبُوْهُ) د ضمیر نه استثناء ده. یعنی تولو ئے تکذیب وکړو مګر مخلَصینو بندګانو ئے تکذیب ونکړو.
وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِيْنَ : یعنی مونږ ددهٔ نیک یاد په راتلونکو قومونو کښې باقی

وساتلو چه هر ایماندار کس د هغهٔ نوم په عزت او احترام سره اخلی، او هغهٔ لپاره او د هغهٔ د ملګرو لپاره د سلامتیا او رحمت دعاء کوی۔ دے نه پس الله تعالیٰ وفرمایل چه مونږ عملِ صالح والو له دغسے بدله ورکوو، او الیاس ﷺ زمونږ د رشتینے ایمان والا بندګانو نه وو۔

إِلْ يَاسِيْنَ : ۱- دے کښې غوره دا ده چه ددے نه مراد الیاس دے لیکن عرب په عجمی نومونو کښې ډیر تصرفات کوی چه په هغے سره مقصد ته نقصان نهٔ رسیږی۔

۲- بعض وائی چه دا په اصل کښې اِلْيَاسِيْنَ دے یعنی الیاس او د هغه تابعدار مراد دی۔ (الفراءؒ وابوعلی الفارسیؒ)

| وَإِنَّ لُوْطاً لَّمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿١٣٣﴾ إِذْ نَجَّيْنَاهُ |
|---|
| او یقیناً لوط ﷺ خامخا د پیغمبرانو نه وو۔ کله چه بچ کړو مونږ دهٔ لره |
| وَأَهْلَهُ أَجْمَعِيْنَ ﴿١٣٤﴾ إِلَّا عَجُوْزًا فِي الْغَابِرِيْنَ ﴿١٣٥﴾ |
| او ددهٔ کور والو ټولو لره۔ سوئ د یوے بوډئ نه چه په روستو پاتے کیدونکو کښې وه۔ |
| ثُمَّ دَمَّرْنَا الْآخَرِيْنَ ﴿١٣٦﴾ وَإِنَّكُمْ لَتَمُرُّوْنَ عَلَيْهِمْ |
| بیا هلاك كړل مونږ روستنی۔ او یقیناً تاسو خامخا تیریږئ په دوی باندے |
| مُّصْبِحِيْنَ ﴿١٣٧﴾ وَبِاللَّيْلِ أَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿١٣٨﴾ |
| په وخت د صبا کښې۔ او د شپے (بل کرته) آیا نو عقل نهٔ کوئ۔ |

**تفسیر** : پنځمه واقعه د لوط ﷺ ده، پدے کښې د لوط ﷺ احتیاج ذکر کوی په خپل نجات کښې او د هغه د اهل په نجات کښې او په هلاکت د قوم کښې سره د زجر او تخویف نه منکرینو ته۔ او پدے کښې د هلاکت اسباب دا خودلے شویدی چه شرك او بے حیائی او نور خبیث عملونه کول او د رسولانو مخالفت کول دی او د عذابونو نه بچاؤ د رسولانو په خبره منلو کښې دے۔ ددے وجه نه پدے واقعه کښې صرف عذاب ذکر شویدے او بیا عبرت اخستو ته دعوت ورکړے شویدے۔

إِلَّا عَجُوْزًا فِي الْغَابِرِيْنَ : پدے واقعه کښې د هغهٔ ښځه د ډیرو فائدو دپاره بار بار ذکر کیږی، (۱) یو دا چه الله تعالیٰ هغه ذات دے چه څوك د هغه بغاوت کوی نو که د

پیغمبر خپلوان وی بیا ئے هم رعایت نهٔ کوی۔ نو په نسب او نسبت باندے څوك نشی خلاصیدے، بلکه په عبادت او بندګئ به خلاصیږی۔ (۲) الله تعالیٰ ډیر لوی ذات دے، د معمولی انسان نه چه یوه بوډئ زنانه ده چه گمنامے ده، ددے نه هم د ایمان مطالبه کوی او چه کفر او شرك ئے وکړو نو الله تعالیٰ سزا ورکوی۔ ورنه زنانه څومره کمزورے مخلوق دے، چه بوډئ شی نو د ماشومے په شان وی لیکن الله تعالیٰ هغے سره هم حساب کوی، هغه هم د الله تعالیٰ په بندګئ باندے مکلف ده۔ نو د الله تعالیٰ قانون د اعمالو سره تړلے شویدے، ښه عمل چه د هر چا په بدن کښې وی هغه به خلاصیږی او بد عمل چه د هر چا په بدن کښې وی هغه به هلاکیږی۔

وَإِنَّكُمْ لَتَمُرُّونَ : دا مکے والو ته خطاب دے، کله چه به دوی شام ته د تجارت وغیره سفر کولو نو دلته نه چه به مابنام کښې روان شو نو څه ورځے پس به سهار وخت کښې د قوم لوط کلی ته رسیدل او که صبا وخت کښې به روان شو نو څه ورځے (اوه اته نهه ورځے) پس به د شپے وخت کښې هلته رسیدل او د قوم لوط په کلو به ئے د عذاب آثار لیدل لیکن عبرت به ئے نهٔ اخستو چه دا ولے هلاك شول؟۔ دا د شرك او بدو عملونو او د نبی د مخالفت په وجه۔

مُّصْبِحِيْنَ : اَیْ تَارَةً وَبِاللَّيْلِ اُخْرٰی : یعنی کله په سهار وخت کښې او کله د شپے په وخت کښې ورتیریږئ۔

اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ : یعنی د اِلٰهی عذاب چه کومے نښے نښانے اُوس باقی پاتے دی هغه بار بار وینئ، نو آیا ستاسو په عقلونو کښې دومره خبره نهٔ راځی چه که تاسو هم په خپل کفر او شرك باندے ټینګ پاتے شوئ نو ستاسو انجام به هم د هغوئ پشان شی ؟!

**فائده** : د لوط علیه السلام سره ئے (اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا او سَلَامٌ عَلٰی لُوْطٍ) ذکر نکړو ځکه چه د مخکنو انبیاء علیهم السلام په باره کښې د مرګ نه روستو خلکو د هغوی د اُلوهیت عقیدے ساتلے وے، نهٔ د لوط علیه السلام۔

دارنګه د هغوی د قتل ارادے شویدی نو الله تعالیٰ اشاره کوی چه دوی ته ما حفاظت ورکړو، او لوط علیه السلام دغه شان نهٔ وو۔

| وَاِنَّ يُوْنُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۱۳۹﴾ اِذْ اَبَقَ اِلَى الْفُلْكِ |
|---|
| او یقیناً یونس علیه السلام خامخا د پیغمبرانو نه وو۔ کله چه لاړو هغه (بے اجازته) کشتئ |

| الْمَشْحُوْنِ ﴿۱۴۰﴾ فَسَاهَمَ فَكَانَ مِنَ الْمُدْحَضِيْنَ ﴿۱۴۱﴾ فَالْتَقَمَهُ |
|---|
| ډکے شوے ته۔ نو خخنړے ئے واچولو نو شو د مغلوبه کړے شوو نه۔ نو تیر کړه دهٔ لره |
| الْحُوْتُ وَهُوَ مُلِيْمٌ ﴿۱۴۲﴾ فَلَوْلَا أَنَّهُ كَانَ مِنَ الْمُسَبِّحِيْنَ ﴿۱۴۳﴾ |
| ماهی او دے وو (د ځان) ملامته کونکے۔ نو کچرے نهٔ وے دے د تسبیح ویونکو نه۔ |
| لَلَبِثَ فِيْ بَطْنِهٖ إِلٰى يَوْمِ |
| خامخا وخت به ئے تیر کړے وے په خیټه د هغهٔ کښې تر هغه ورځے پورے چه دوی به |
| يُبْعَثُوْنَ ﴿۱۴۴﴾ فَنَبَذْنَاهُ بِالْعَرَاءِ وَهُوَ سَقِيْمٌ ﴿۱۴۵﴾ |
| دوباره ژوندی کړے شی۔ نو گوزار کړو مونږ هغه لره په میدان کښې او دے بیمار وو۔ |
| وَأَنْبَتْنَا عَلَيْهِ شَجَرَةً مِّنْ يَّقْطِيْنٍ ﴿۱۴۶﴾ وَأَرْسَلْنَاهُ إِلٰى مِئَةِ أَلْفٍ |
| او راززرغونه کړه مونږ په دهٔ باندے ونه د کدو نه۔ او راولیږلو مونږ دهٔ لره یو لاکھ خلقو ته |
| أَوْ يَزِيْدُوْنَ ﴿۱۴۷﴾ فَآمَنُوْا فَمَتَّعْنَاهُمْ إِلٰى حِيْنٍ ﴿۱۴۸﴾ |
| بلکه زیاتیدل۔ نو ایمان راوړو هغوی نو فائدے ورکړے مونږ دوی ته تر یو وخت پورے۔ |

**تفسیر** : شپږمه واقعه د یونس ﷺ ده۔ (۱) پدے واقعه کښې د یونس ﷺ عبدیت ذکر دے په پنځه طریقو سره، ۱- رسول وو۔ ۲- بے اجازته تلے وو۔ ۳- خسنړی اچولو کښې پړ شو۔ ۴- مهی (کب) تیر کړو۔ ۵- تسبیح ئے ووئیله۔ او د هغه احتیاج ئے په څلورو طریقو سره ذکر کړے، د مهی د خیټے نه راویستل، اُونه د هغه دپاسه راززرغونه ول، بیا لیږل په رسالت سره، بیا متاع ورکول۔ دا ټول دلیلونه دی چه یونس ﷺ الله تعالیٰ ته محتاج بنده وو نو هغه اِلٰه نشی کیدے۔ (احسن الکلام)

(۲) غرض : پدے کښې د نجات اسباب ذکر دی چه تسبیح ده، ایمان دے۔ دا واقعه په سورت یونس کښې د ترغیب الی الایمان دپاره ذکر شویده، او دلته وائی چه د نجات سبب ایمان دے۔ او دغه نور غرضونه هم دی۔

الله تعالیٰ یونس ﷺ د عراق د نینوٰی ښار والو دپاره نبی جوړولو سره رالیږلے وو۔ په

دغه زمانه کښې نینوئ د آشوریانو یو لوی ښار وو، چرته چه به د یو لکهو نه زیات بنی اسرائیل وسیدل، چه هغوئ لره آشوریانو قید کړی وو او ځان سره ئې بوتلی وو. الله تعالیٰ د د دوئ د هدایت دپاره یونس ﷺ نبی جوړ کړو او د فلسطین نه ئې نینوئ ته اولیږلو. یونس ﷺ هغوئ له د ایمان دعوت ورکړو، لیکن هغوئ قبول نهٔ کړو، نو یونس ﷺ هغوئ له د عذاب دهمکی ورکړه، او کله چه په عذاب راتلو کښې تاخیر وشو، نو یونس ﷺ ناراضه او تنګ زړے شو او د ښار نه اووتلو او سمندر طرفته روان شو. کله چه بندرګاه ته ورسیدهٔ نو هلته یوه کشتئ چرته د روانیدو دپاره روانه وه، په دے کښې سور شو. چونکه ددے وزن زیات وو، دے وجے نه د سمندر په مینځ کښې ودریده. ماړکی (کشتیبان) وویل چه د کشتئ وزن کمول ضروری دی ګنے ټول خلق به ډوب شی، په خسنړی کښې د یونس ﷺ نوم را اووتهٔ، نو خلقو هغه سمندر ته ګذار کړو، او یو لوی مهے راغے او هغه ئې ښوے تیر کړو، ځکه چه هغه د خپل رب د اجازت نه بغیر د خپل قوم د خوانه تلے وو. دا په هغه باندے امتحان وو. پدے کښې اشاره ده چه یو نبی د الله تعالیٰ د اجازے نه بغیر هجرت وکړی نو څو مره تکلیف ورته رسیږی نو د الله تعالیٰ امر ماتول به څومره ضرر لری. او پدے کښې اشاره ده چه غټ خلك که مخالفت وکړی هم مصیبت پرے راځی، ځکه چه الله تعالیٰ د ګناه سره مصیبت تړلے دے.

إِذْ أَبَقَ : اباق د غلام تښتیدو ته وئیلے کیږی او دے هم د الله تعالیٰ غلام دے چه د هغهٔ د اجازت نه بغیر وتلے وو.

الْفُلْكِ الْمَشْحُونِ : **مسئله** : زمونږ په دین کښې که خلك په کشتئ کښې زیات کیناستل او هغه غرقیدو ته نزدے شوه نو دوی به څه کوی؟ نو طریقه دا ده چه سامانونه به ګوزار کړی که بیا هم کار نهٔ کیدو نو هیڅوك به نهٔ ګوزاری بلکه ټول به د الله تعالیٰ امر ته صبر کوی. او پدے آیت کښې چه کومه مسئله راغلے ده، دا د پخوانو په دین کښې وو. او کیدے شی چه پدے وخت کښې یونس ﷺ ته ددے امر وو، یا نهٔ وو لیکن خلکو په خسنړی سره هغه ګوزار کړے وو. او زمونږ په دین کښې هم په ډیرو ځایونو کښې قرعے له اعتبار ورکړے شوے په نورو احکامو کښې.

فَسَاهَمَ : مساهمه د سهم نه دے، خپله حصه په خشنړی سره معلوم مول دی.

مفسرینو ددے خسنړی تفصیل داسے لیکلے دے چه کله دے په کشتئ کښې کیناستو نو کشتئ د دریاب په مینځ کښې ودریده، کشتیبان وویل چه مونږ سره یو غلام ناست

دے چه د خپل مولیٰ نه راتختیدلے ځکه چه دا د کشتئ رسم او عادت دے چه کله پدے کښې یو تښتیدونکے غلام وی نو کشتئ مخکښې نۀ ځی۔ نو دوی خسنړے واچولو نو په یونس ؈ بانـدے راوختـلو، هغه وویل چه آؤ، زۀ د خپل مولیٰ نه راتښتیدلے یم نو ځان ئے اُوبو ته گوزار کړو۔ (فتح البیان)

وَهُوَ مُلِيمٌ : ۱– ځان مـلامته کونکے وو۔ په (اِنِّیْ کُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِیْنَ) سره۔ ۲– یا آتٍ بِمَا يُلَامُ۔ داسے کارئے کړے وو چه د ملامتیا سبب وو۔

فَلَوْلَا أَنَّهُ كَانَ مِنَ الْمُسَبِّحِينَ : پدے کښې الله تعالیٰ د خپلے غِنیٰ تذکره کوی۔ یعنی یـونس ؈ چـونـکـه ددے ابتـلاء او آزمـائـش نـه بـه مـخکښے ډیر زیات مونځ کولو او همیشه به په تسبیح او تهلیل او ذکر او عبادت کښې مشغول وسیدلو، دلرنگه الله تعالیٰ ورته د ﴿لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ سُبْحَانَكَ إِنِّيْ كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ﴾ وظیفے الهام وکړو، دا به ئے وئیله چـه ددے پـه بـرکـت سـره مهی د الله تـعـالیٰ په حکم سره د سمندر غاړے ته راوړو او واچـولـو، گـنـے قـیـامـتـه پـورے بـه د مهی پـه خیـتـه کـښې پـاتے وے۔ د مهی په خیته کښې اکسیجن بند دے لیکن د الله تعالیٰ قدرت ته وگوره چه د خپل نزدے بنده څنگه عجیب حفـاظـت کـوی۔ څـوك چـه د الله تـعالیٰ نه ویرېږی نو الله تعالیٰ به ورله د هرے تنگئ نه فراخی او د هر مصیبت نه حل ورکړی او مشکلات به ئے آسانوی۔

الـمسـبحیـن : دۀ تسبیـح (پاکی) په دوه ځایونو کښې وئیلے ده یو په خیته د مهی کښې۔ دویم د هغے نه مخکښې زندگئ کښې ئے تسبیح وئیله او لوی ذاکر وو، نو د زړو تسبیحاتو پـه وجـه ورتـه الله تـعالیٰ دا مصیبت آسان کړو، ځکه چه دا د الله تعالیٰ قانون دے [تَعَرَّفْ إِلَى اللّٰهِ فِي الرَّخَاءِ يَعْرِفْكَ فِي الشِّدَّةِ] الله تعالیٰ ته ځان په فراخئ کښې وروپیژنه نو هغه به دے په تکلیف کښې وپیژنی۔ او کوم انسان چه صرف د مصیبت په وخت کښې الله تعالیٰ تـه چغے وهی نو دا خود غرضه دے بیا هم ورله الله تعالیٰ حاجت پوره کوی ځکه چه الله تعالیٰ بیحده مهربانه دے، لیکن دومره محبت ئے ورسره نۀ وی۔

تسبیـح مـانـځـه تـه هـم وئیلے شی۔ او ددے نه دا هم معلومه شوه چه عبادات، اذکار او صـدقـات انسان ته په مصیبت کښې فائده ورکوی لکه د اصحاب الغار واقعه پدے دلیل دے۔

فَنَبَذْنَاهُ بِالْعَرَاءِ : د مهی په خیته کښې د پاتے کیدو په وجه یونس ؈ بیمار شوے وو۔ الله تـعـالیٰ د هغۀ د حفاظت دا سامان تیار کړو چه هلته فورًا د کدو یوه وُنه زرغونه شوه

چه د هغې پانړو په هغهٔ باندې سورې وکړو، او هغه ئې د ګرمئ او مچانو نه بچ کړو.
مفسرین لیکي چه الله تعالیٰ هغهٔ دپاره یوه پئ ورکونکې اوسئ تابع کړه چه هغه به صبا بیګاه هغهٔ له پئ ورکولو دپاره د هغهٔ خواته راتلله، تردې چه هغه بیخي تندرست شو نو الله تعالیٰ ورته حکم وکړو چه بیرته قوم ته واپس لاړ شه، دې چه ورغې نو هغوی د عذاب آثار لیدلو په وجه ټول مسلمانان شوی دی، او د هغهٔ د تللو نه پس ئې د خپلو ګناهونو نه توبه کړې ده، دې وجې نه الله تعالیٰ د دوئ نه عذاب اړولې وو. نو دوی ته الله تعالیٰ حیاتِ طیبه مزیدار ژوند یعني (د الله د تعلق ژوند) ورکړو. او ددې نه معلومیږي چه دا ټول قوم جنتیان دی.
نو پدې واقعه کښې زمونږ دپاره دا سبق پروت دې چه د الله تعالیٰ نه بغاوت کول او ایمان نهٔ راوړل سبب د مصیبتونو او عذابونو دې، او ایمان راوړل او د الله تعالیٰ طاعت کول سبب د نجات دې.
مِّنْ يَّقْطِيْنٍ : کدو بوټی له مچان نهٔ راځي، زر راخیژي او پانړې ئې په جلتئ اوږدیږي او پانړې ئې غټې او پستې وي او سورې ئې یخ وي. پدې وجه ورته الله تعالیٰ دا رازرغون کړو.
وَاَرْسَلْنَاهُ : دې نه بعض خلکو دا دلیل نیولې دې چه یونس ﷺ ددې مصیبت نه روستو نبي جوړ شویدې لیکن صحیح داده چه مخکښې نه نبي وو لیکن اُوس دوباره ولیږلې شو لکه دا خبره قتادةؒ کړیده.
اَوْ يَزِيْدُوْنَ : دا (اَوْ) په معنیٰ د واو سره دې. یا دا شك په نسبت سره لیدونکو ته دې، یعني یو لاکهو کسانو ته مې ولیږلو لیکن که یو تن به ورته کتل نو بیا زیاتیدل. (مبردؒ، زجاجؒ، اخفشؒ) یا اَوْ په معنیٰ د (بَلْ) سره دې. یعني بلکه زیاتیدل ځکه چه د دوی به بچي هم پیدا کیدل. (مقاتلؒ، کلبيؒ، ابوعبیدةؒ) (فتح البیان)

| فَاسْتَفْتِهِمْ اَلِرَبِّكَ الْبَنَاتُ وَلَهُمُ الْبَنُوْنَ ﴿١٤٩﴾ اَمْ |
|---|
| پس ته تپوس وکړه د دوی نه آیا ستا رب لره لونړه دی، او دوی لره ځامن دی. آیا |
| خَلَقْنَا الْمَلٰٓئِكَةَ اِنَاثًا وَّهُمْ شٰهِدُوْنَ ﴿١٥٠﴾ اَلَآ اِنَّهُمْ مِّنْ اِفْكِهِمْ |
| پیدا کړیدي مونږ ملائك زنانه او دوی حاضر وو. خبر شئ یقیناً دوی د وجې د دروغو |

| لَيَقُولُونَ ﴿١٥١﴾ وَلَدَ اللهُ وَإِنَّهُمْ |
|---|
| د دوی نه خامخا وائی۔ ولد نیولے دے (ولد زیږولے دے) الله تعالیٰ او یقیناً دوی |
| لَكَاذِبُونَ ﴿١٥٢﴾ أَصْطَفَى الْبَنَاتِ عَلَى الْبَنِينَ ﴿١٥٣﴾ |
| خامخا دروغژن دی۔ آیا غوره کړیدی الله تعالیٰ لونړه په ځامنو باندیے۔ |
| مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ ﴿١٥٤﴾ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿١٥٥﴾ |
| څه وجه ده تاسو لره څنګه فیصله کوئ۔ آیا نو نصیحت نۀ اخلئ تاسو۔ |
| أَمْ لَكُمْ سُلْطَانٌ مُبِينٌ ﴿١٥٦﴾ فَأْتُوا بِكِتَابِكُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ﴿١٥٧﴾ |
| یا تاسو لره شته دلیل ښکاره۔ نو راوړئ کتاب خپل که یئ تاسو رشتینی۔ |

**تفسیر**: د عربو مشرکانو د ملائکو په باره کښې یو څو عقیدے وے، یوه دا چه ملائك زنانه دی۔ دا خبره ئے غلطه وه څکه چه ملائکو کښې د سړو او ښځو دواړه صفات نشته، د شهوت، د خوراك څکاك وغیره۔ دا بل یو ناشنا مخلوق دے۔ دویمه دا چه جینکۍ دی او د الله تعالیٰ نه پیدا دی۔ دریمه عقیده دا وه چه دوی د عبادت حقدار دی۔ مونږ چه د دوی عبادت وکړو نو دوی ئے الله تعالیٰ ته وائی او زمونږ حاجتونه پوره کوی، څکه د بچی تعظیم او اکرام داسے وی لکه د پلار تعظیم او اکرام۔ څلورمه دا چه دا د پیریانو نه پیدا شویدی۔ او جناتو کښې الله تعالیٰ زنانه په نکاح اخستی دی او د هغے نه ملائك پیدا شویدی۔ دا ټولے کفری عقیدے وے او د اوهام او خیالاتو نه راپیدا شوے، شیطان پرے لوبے کړے وے۔

ملائك د الله تعالیٰ بندګان دی او داسے مخلوق دے چه شهوات او خواهشات نۀ لری او الله تعالیٰ د خپلے بندګۍ او د دنیا د نظام چلولو دپاره پیدا کړیدی، او ډیر زیات مخلوق دے۔ الله تعالیٰ خپله په یو امر سره نظام چلولے شی لیکن پدے کښې د الله تعالیٰ تعظیم دے چه الله تعالیٰ چا ته امر وکړی چه داسے وکړه او زۀ به درته طاقت درکړم او هغه، هغه کار وکړی۔

او ملائك د هیچا نه پیدا نۀ دی بلکه د الله تعالیٰ په امر باندیے پیدا دی۔

بله دا چه الله تعالیٰ اولاد نۀ لری، د هغه سره په جنس کښې برابر هیڅوك نشته۔ الله

تعالیٰ پرے بل رد دا کوی چه ظالمانو ! الله تعالیٰ لره اولاد وایئ او بیا په اولاد کښې ادنیٰ مخلوق چه زنانه دی هغه ورله ثابتوئ، پدے آیتونو کښې الله تعالیٰ د مشرکانو دا عقیدے رانقل کړیدی او بیائے پرے رد کړے۔ او بیائے د ملائکو شان بیان کړے۔

**فَاسْتَفْتِهِمْ** : دلته الله تعالیٰ د دوئ په باطل گمان باندے د زجر او رټنے دپاره خپل رسول ته ووئیل چه لږ دوئ نه تپوس وکړه چه آیا دوئ له شرم نهٔ ورځي چه خپل ځانله خو ځوی ثابتوی چه دا د خپل عزت او شرافت باعث گنړی، او الله تعالیٰ دپاره لونړه ثابتوی چه دا د خپل ځان دپاره د ذلت او رسوائی سبب گنړی۔ آیا کله چه مونږ ملائك پیدا کول نو دوئ موجود وو او د دوئ په علم کښې دا خبره راغلے وه چه ملائك ښځے دی؟ یقینًا داسے څهٔ خبره نشته، دا خلق خالص دروغ تړی او وائی چه د الله تعالیٰ اولاد شته دے۔ ولادت خو د هغه جسمونو خاصه ده چه هغوئ نقص او فساد قبلوی او الله تعالیٰ خو د هر نقص او عیب نه پاك دے، دے وجے نه د دوئ په دروغژن کیدو کښې هیڅ شك نشته۔

**وَلَهُمُ الْبَنُوْنَ** : دا د مشرکانو طریقه وه چه خپل جانب ئے د الله تعالیٰ په جانب باندے غوره کولو۔ ځان دپاره شریك نهٔ منی او د الله تعالیٰ سره شریك منی، ځان دپاره ئے لور بدی شی، او د الله تعالیٰ دپاره ئے ثابتوی۔ دا د ډیرو انسانانو مزاج دے چه که څوك ئے لږه بے ادبی وکړی نو ډیر ناراضه او پریشانه وی، او خپله د الله تعالیٰ ډیره بے ادبی کوی او هیڅ پرواه ئے نهٔ وی۔ که څوك ئے خلاف وکړی نو ډیر خفه وی او د الله تعالیٰ هر وخت بغاوت کوی۔ دا په الله تعالیٰ باندے خپل ځان غوره کول دی۔

**مِّنْ اِفْكِهِمْ** : مِنْ اجلیه دے (یعنی د دروغو د وجه نه) یعنی دا دروغجن خلك دی او د دروغو ماده د دوی په زړونو کښې پرته ده نو ځکه د الله تعالیٰ دپاره اولاد ثابتوی۔یعنی هیڅ دلیل او شبهه د دلیل هم ورسره نشته بلکه دا بناء دی په ښکاره دروغو باندے۔

**وَاِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ** : ۱-یعنی دوی همیشه دروغجن دی، پدے خبره کښې هم دروغجن دی (وَلَدَ اللهُ) او نورو خیزونو کښې هم دروغ وائی۔ ۲- لَكٰذِبُوْنَ فِي الْاِسْتِدْلَالِ لِذٰلِكَ۔ یعنی دے دپاره چه کوم دلیل نیسی په هغے کښې هم دروغجن دی۔ یعنی دعوه ئے هم دروغجنه ده او دلیل ئے هم دروغجن دے۔

**اَصْطَفَى الْبَنَاتِ** : اُوس پرے الله تعالیٰ رد کوی۔ دلته همزه پټه ده۔ یعنی اَءِ اصْطَفٰی۔ یعنی آیا الله تعالیٰ داسے کړیدی چه جینکئ ئے غوره کړیدی په هلکانو باندے؟ داسے

خو الله تعالىٰ نۀ دي کړې.
مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُوْنَ : دا مطالبه د عقلي دليل ده د دوی نه، يعنى عقل خو دا نۀ منى چه الله تعالىٰ افضل نوعه (نارينه اولاد) پريږدي او لونړه ډېے غوره کړي، دا فيصله بے دليله ده. حُکم دلته بيان ته هم وائي. يعنى ستاسو دا بيان د عقل خلاف دے.
تقدير داسے دے أَيُّ شَيْءٍ ثَبَتَ لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُوْنَ لِلّٰهِ بِالْبَنَاتِ؟ . يعنى تاسو لره څه دليل ثابت دے، تاسو څنګه فيصله کوئ د الله تعالىٰ دپاره په لونړو.
أَمْ لَكُمْ سُلْطَانٌ : پدے کښې طلب د دليل نقلي دے د تير شوو انبياء عليهم السلام نه چه څه ښکاره ثبوت تاسو سره شته. نو وښايئ، آيا دا خبره تاسو سره په موجوده کوم آسماني کتاب کښې شته دے؟ د دوی سره خو دليل شته ليکن هغه واضح دليل نۀ دے او آسماني دليل نۀ دے بلکه د ځان نه دروغ او منګهړت دی.

| وَجَعَلُوْا بَيْنَهٗ وَبَيْنَ الْجِنَّةِ نَسَبًا وَلَقَدْ عَلِمَتِ |
|---|
| او ګرځولے دے دوی په مينځ د الله او په مينځ د پيريانو کښې نسب او يقيناً معلومه ده |
| الْجِنَّةُ إِنَّهُمْ لَمُحْضَرُوْنَ ﴿۱۵۸﴾ سُبْحَانَ اللّٰهِ |
| پيريانو ته چه يقيناً دوی به حاضر کړے شي (په عذاب کښې). پاك دے الله تعالىٰ |
| عَمَّا يَصِفُوْنَ ﴿۱۵۹﴾ إِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ﴿۱۶۰﴾ |
| د هغے نه چه دوی ئے ورله بيانوی. مګر بندګان د الله تعالىٰ چه چاڼ کړے شويدی. |
| فَإِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُوْنَ ﴿۱۶۱﴾ مَا أَنْتُمْ عَلَيْهِ |
| پس يقيناً تاسو او هغه چه تاسو ئے عبادت کوئ. نۀ ئے تاسو په هغه باندے |
| بِفَاتِنِيْنَ ﴿۱۶۲﴾ إِلَّا مَنْ هُوَ صَالِ الْجَحِيْمِ ﴿۱۶۳﴾ |
| ګمراه کونکی (چا لره). مګر هغه څوك چه داخليدونکے دے جهنم ته. |

**تفسير** : په دے آيت کښې د مشرکانو په بله عقيده رد دے، او دوی ته زجر او توبيخ ورکړے شويدے.
نَسَبًا : ۱ - أَيْ نَسَبَ الصِّهْرِ. (د سخرانے نسب) يعنى دوی وائي چه د الله تعالىٰ او د پيريانو ترمينځه د وادۀ د رشته شوے او د هغے نه ملائك پيدا شوی، حالانکه پيريانو

شيطانانو ته پته ده چه د قيامت په ورځ به د دوئ ځائے جهنم وی۔ كه چرے الله تعالىٰ سره د دوئ رشته وے، نو هغه به دوئ له د اُور عذاب ولے وركولو، د رشته دارئ تقاضا خو داده چه الله تعالىٰ دوئ له عذاب نهٔ وركولے۔ معلومه شوه چه د الله تعالىٰ په باره كښې دا بدترين دروغ دی۔ ځينې مفسرينو دلته د (الجِنَّة) نه مراد ملائك اخستى دی، او د آيت تفسير ئے دا بيان كړے چه د عربو كافران د الله تعالىٰ او د ملائكو ترمينځه رشته بيانوی۔ دا خبره د الله تعالىٰ خلاف دروغ تړل دی۔ ملائك هم پيژنى چه كوم كافران داسے خبره كوی د هغوئ ځای به جهنم وی۔ مګر اول تفسير راجح دے۔

٢- د نسب نه مراد نسبة د شراكت دے۔ يعنى دوی د الله تعالىٰ او د پيريانو ترمينځ نسبت د شركت جوړ كړيدے لكه څنګه چه الله تعالىٰ په غيبو پو هيږی او تصرفات كوی نو دغه شان پيريان هم دی چه په غيبو پو هيږی او تصرفات كوی، اولاد، عزت او ذلت وركوی۔

حسنؒ وائى چه دوی شيطان د الله تعالىٰ په عبادت كښې شريك كړے وو، نو دا هغه نسب دے چه دوی جوړ كړے وو۔ ابن عباس رضى الله عنهما فرمائى: دے د الله تعالىٰ دشمنانو وئيلى دی چه الله تعالىٰ او شيطان دواړه ورونړه دی۔ (والعياذ بالله) (فتح البيان)

﴿إِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ﴾: يعنى حساب ته به هم حاضر كړے شی او عذاب ته هم۔ نو كه دوی د الله تعالىٰ شريكان وے نو دوی ته به الله تعالىٰ عذاب څنګه وركړے وے۔

سدىؒ وائى: اِنَّهُمْ كښې ضمير مشركانو ته راجع دے، يعنى پيريانو ته معلومه ده چه څوك دا خبره كوی چه د پيريانو او د الله تعالىٰ د نسب تعلق دے نو دوی به خامخا اُور ته حاضر كړے شی۔ (الطبری) اول تفسير ظاهر دے۔

سُبْحَانَ اللّٰهِ: دا دويم جواب دے چه الله تعالىٰ د دوی ددے ګنده خبرو نه پاك دے۔

إِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ: ١- دا استثناء منقطع ده [اَیْ لٰكِنْ عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ يَبْرَئُوْنَ عَنْ أَنْ يَّصِفُوا اللّٰهَ بِشَیْءٍ مِنْ ذٰلِكَ]۔ ليكن د الله تعالىٰ چانړ كړے شوی بندګان ددے نه بيزاره دی چه الله تعالىٰ ته داسے ګنده نسبتونه وكړی۔ ٢- يا دا استثناء متصل ده د (لَمُحْضَرُوْنَ) نه۔ سوال پيدا شو چه ټول پيريان جهنميان دی؟ نو جواب وشو چه دوی كښې كوم د الله تعالىٰ د بندګئ دپاره چانړ كړے شويدی هغه به د عذاب نه بچ وی۔

٣- يا اِستثناء ده د جَعَلُوْا د ضمير نه۔ يعنى دوی د الله تعالىٰ او د پيريانو ترمينځ نسب جوړ كړيدے مګر مخلَص بندګان داسے خبرے نهٔ كوی۔ دويم تفسير غوره دے۔

فَإِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُوْنَ : اُوس د مشرکانو او د هغوی د معبودانو عجز بیانوی چه تاسو چه د کومو باطلو معبودانو عبادت کوئ د دوی په لاس کښ هیڅ نشته، انتهائی عاجز مخلوق دے۔تاسو د الله تعالیٰ په مقابله کښ د الله تعالیٰ بندګان نشئ ګمراه کولے سوئ د هغه خلقو نه چه هغوئ ستاسو غونته ګمراه دی، او د هغوئ په قِسمت کښ جهنمی کیدل لیکلے شوی وی، داسے خلق به هم هغه کار کوی چه هغه ئے جهنم ته اُورسوی، او همدا خلق به ستاسو په لاره ځی۔ یا تاسو په خپلو باطلو آلهه و سره هیڅوك نشئ ګمراه کولے مګر هغه څوك چه الله ورله تقدیر کښ لیکلی وی چه هغه به جهنم ته داخلیږی، هغه به پرے ګمراه کړئ۔ (مقاتل)

عَلَيْهِ : ضمیر الله تعالیٰ ته راجع دے۔ یا مَا تَعْبُدُوْنَ ته او عَلیٰ په معنیٰ د باء سره دے۔

بِفَاتِنِيْنَ : په معنیٰ د مُضِلِّيْنَ (ګمراه کونکو) سره دے۔

ددے آیتونو نه معلومه شوه چه هدایت او ګمراهي د الله تعالیٰ په اختیار کښ ده، او دا رد دے په منکرینو د تقدیر باندے۔

| وَمَا مِنَّا إِلَّا لَهُ مَقَامٌ مَّعْلُومٌ ﴿١٦٤﴾ وَإِنَّا لَنَحْنُ |
|---|
| او نشته مونږ نه (یو تن) مګر هغه دپاره ځائے معلوم دے. او یقیناً مونږ خامخا |
| الصَّافُّوْنَ ﴿١٦٥﴾ وَإِنَّا لَنَحْنُ الْمُسَبِّحُوْنَ ﴿١٦٦﴾ |
| صف تړونکی یو۔ او یقیناً مونږ تسبیح ویونکی یو۔ |

**تفسیر** : په دے آیتِ کریمه کښ الله تعالیٰ د ملائکو په ژبه د هغوئ د عبودیت (او بندګئ) اقرار بیانوی، او دے نه مقصد په هغه خلقو رد دے چه د ملائکو عبادت کوی۔ ملائك خپله په خپله ژبه د الله تعالیٰ دپاره د خپل عبودیت اقرار کوی، بیا نو هغوئ څنګه معبودان جوړیدے شی؟!۔

دا وینا د جبرئیل ﷺ او د نورو ملائکو ده چه هغوئ نبی کریم ﷺ ته ووئیله، او الله تعالیٰ د قرآن په ژبه کښ بیان کړه، چه په طاعت او بندګئ او احکامو باندے په عمل کولو کښ مونږ نه د هر یو ملائك یو حد مقرر دے، چه هغے نه هغه تجاوز نشی کولے، او مونږ ټول ملائك د الله تعالیٰ په حضور کښ صف تړلی اُودریږو او هر وخت د هغهٔ پاکی بیانوو۔

ترمذیؒ، ابن جریرؒ، او ابن مردویهؒ د ابوذر ﷜ نه روایت راوړیدې چه رسول الله ﷺ وفرمایل : [أَطَّتِ السَّمَاءُ وَحُقَّ لَهَا أَنْ تَئِطَّ مَا فِيهَا مَوْضِعُ أَرْبَعِ أَصَابِعَ إِلَّا وَمَلَكٌ وَاضِعٌ جَبْهَتَهُ سَاجِدًا لِلّٰهِ] آسمان وچغیدو او لائق ده هغې لره چه وچغیږي ځکه چه په هغې کښې د څلورو ګوتو په اندازه ځای نشته مګر یو ملك پکښې ولاړ دې تندې ئې الله ته په سجده ایخودې دې۔ (الترمذی فی فی الزهد باب ۹، رقم: (۲۳۱۲) وابن ماجه فی الزهد باب۱۹ رقم: ۴۱۹۰) واحمد فی المسند ۱۷۳/۵) برقم: (۲۱۵۵۵) واسناده حسن)

نو مطلب دا شو چه داسې مخلوق چه الله تعالیٰ ته هر وخت لاس په نامه صفونه تړونکی ولاړ وی، او هغهٔ ته عاجزی کوی، آیا دا د الله تعالیٰ سره شریکان جوړیدې شی؟ دا څومره ظلم کوئ لږ خو سوچ وکړئ۔

۱- مقام نه مراد ځای د ودریدو د الله تعالیٰ د بندګئ دې یعنی هر ملائك ته خپل خپل ځای د وسیدو او د بندګئ معلوم دې۔پدې کښې اشاره ده چه د ملائکو ډیر منظم ژوند دې او ګړبړیشن نهٔ دې چه پردی ځایونه مصروف کړی او جګړې ئې پیدا شی۔

۲- مقام مرتبې ته هم وائی۔ یعنی هر یو ته الله تعالیٰ یوه مرتبه ورکړې ده چه هغه الله تعالیٰ او هغه ملائك ته معلومه ده۔ نو ملائك په مرتبه ورکولو کښې هم الله تعالیٰ ته محتاج دی۔ دواړه معانی دلته مرادې دی۔

**الصَّافُّوْنَ** : دا یا په مانځه کښې صفونه مراد دی لکه په صحیح مسلم کښې د حذیفه ﷜ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل : (مونږ له په نورو خلقو باندې په درې خبرو سره فضیلت راکړې شوې : زمونږ صفونه د ملائکو د صفونو پشان دی، زمکه زمونږ دپاره مسجد جوړ شوې، او ددې خاوره زمونږ دپاره د پاکی حاصلولو ذریعه جوړه شوې)۔ (مسلم: ۱۱۹۳)

په یو بل روایت کښې دی : جابر بن سمره ﷜ فرمائی : مونږ باندې رسول الله ﷺ راووتو او مونږ په مسجد کښې وو نو وې فرمایل :

[أَلَا تَصُفُّوْنَ كَمَا تَصُفُّ الْمَلَائِكَةُ عِنْدَ رَبِّهَا؟] آیا تاسو داسې صفونه نهٔ تړئ څنګه چه ملائك د خپل رب په دربار کښې صفونه تړی؟ مونږ ووېل: اې د الله رسوله !

[ كَيْفَ تَصُفُّ الْمَلَائِكَةُ عِنْدَ رَبِّهَا؟] ملائك د الله په دربار کښې څنګه صفونه تړی؟ وې وفرمایل : (يُتِمُّوْنَ الصُّفُوْفَ الْأُوَلَ وَيَتَرَاصُّوْنَ فِي الصَّفِّ) هغوی اولنی صفونه پوره کوی او په صف کښې جوخت (یو بل سره انختی) ودریږی۔ (صحیح مسلم : ۹۹۶)

يا ددے نه مراد دا دے [لَـنَحۡنُ الصَّافُوۡنَ فِيۡ اَدَاءِ الطَّاعَةِ وَمَنَازِلِ الۡخِدۡمَةِ] چه د نورو طاعتو او عبادتـونـو پـه ځـايـونو کښې صف تړونکی ودريږی (مراح لبيد لکشف معانی القرآن المجيد ۳۰۹/۲) وابی السعود ۴۵۹/۵)

يا د عرش نه گير چاپيره ئے صف تړلے وی۔ (الماوردیؒ)

## شان نزول

ابن ابی حاتم د يزيد بن ابی مالك نه روايت راوړيدے چه په ابتداء کښې به مسلمانان په مـانـځـه کـښې جـدا جـدا ولاړ وو خو کله چه دا آيت نازل شو نو رسول الله ﷺ هغوی ته حکم وکړو چه هغوی صفونه جوړ کړی۔ (ابن ابی حاتم والتفسير المنير للزحيلی)

او بيا ئے دغه مخکښې ذکر شوی ارشادات هم بيان کړيدی۔

**الۡمُسَبِّحُوۡنَ** : يـعـنـی مونږ همیشه د الله تـعـالیٰ پـه تسبيحـاتـو او پاکئ بيانولو کښې مصروف يو۔ ملائك د الله په ذکر باندے نهٔ ستړی کيږی۔ تسبيح نه مراد مونځ هم دے۔ دواړو تـه شامل دے۔ د ملائکو پدے صفاتو ذکر کولو کښې يو غرض په مشرکانو رد دے او بـل مؤمنانو ته دعوت دے چه تاسو تشبه بالملائکه وکړئ، د هغوی په شان صفتونه ځان کښې پيدا کړئ د هغوی په شان بندگی وکړئ۔

| |
|---|
| وَاِنۡ كَانُوۡا لَيَقُوۡلُوۡنَ ﴿۱۶۷﴾ لَوۡ اَنَّ عِنۡدَنَا ذِكۡرًا مِّنَ الۡاَوَّلِيۡنَ ﴿۱۶۸﴾ |
| او يقيناً وو دوی خامخا وئيل به ئے۔ که چرته وے زمونږ سره نصيحت د اولنو۔ |
| لَكُنَّا عِبَادَ اللّٰهِ الۡمُخۡلَصِيۡنَ ﴿۱۶۹﴾ |
| خامخا وے به مونږ بندگان د الله تعالیٰ بچ ساتلے شوی (د گناه نه) (چاڼ کړے شوی) |
| فَكَفَرُوۡا بِهٖ فَسَوۡفَ يَعۡلَمُوۡنَ ﴿۱۷۰﴾ |
| نو کفر اُوکړو دوی په هغے باندے نو زر دے چه پو هه به شی دوی۔ |

**تفسير** : د عـربـو مشـرکـانـو بـه وئيل چه که د تورات او انجيل پشان مونږ له هم څهٔ کتاب راکړے شوے وے نو په دے باندے به مونږ عمل کړے وے او مونږ به هم د الله تعالیٰ مـخـلـص بـنـدگان جوړ شوی وے، او هغهٔ سره به مو نور شريکان نهٔ جوړولے، ليکن کله چـه الله تـعـالیٰ دوئ دپاره قرآن کريم نازل کړو چه د هغهٔ عظيم ترين کتاب دے، نو په دے بـانـدے د ايـمـان راوړلـو نـه ئے انکار وکړو۔ معلومه شوه چه د دوئ خبره خالص دروغ نه

آرزو وه، دے وجے نـه دوئ تـه بـه ډیر زر معلـومه شی چه د قرآن کریم د دروغژن گنړلو انـجام څـنـګه وی۔ یعنی دا خلك الله تعالیٰ ښه پوهه کړل او بهترین کتاب ئے ورته نازل کړو لیکن دوی ضد وکړو، نو زر دے چه د ضد او ددے انکار سزا به وڅکی۔ نو الله تعالیٰ دوی تـه دعـوت ورکـوی چـه راشئ په دے قرآن ایمان راوړئ، دا خو تاسو غوښتلے دے نو اُوس ترے څنګه انکار کوئ؟!۔

د عـربـو د مشـرکـانو دا دروغژنه آرزو الله تعالیٰ په قرآن کریم کښ په نورو ډیرو آیتونو کښ هم ذکر کړے ده۔ په سورتِ فاطر (٤٢) آیت کښ فرمائیلی :

﴿ وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ لَئِنْ جَآءَهُمْ نَذِيْرٌ لَّيَكُوْنُنَّ اَهْدٰى مِنْ اِحْدَى الْاُمَمِ فَلَمَّا جَآءَهُمْ نَذِيْرٌ مَّا زَادَهُمْ اِلَّا نُفُوْرًا ﴾ (او کـافـرانـو ډیـر زورور دار قسـم خوړلے وو چه که دوئ ته څۀ ویرونکے راشی نـو د هـریـو امـت نـه بـه زیات هدایت قبلونکی شی، بیا چه کله دوئ ته یو نبی راغے، نو د دوئ په نفرت کښ اضافه وشوه)۔

او پـه تـفـسـیـر د سـورت فـاطـر کـښ ددے تـفـصـیـل لیـکـلے شویدے۔ او د سورتِ انعام په (١٥٦، ١٥٧) آیتونو کښ هم ذکر دے۔

د انسـانانو دا خوئی دے چه کله موقعه نۀ وی راغلی نو د نیك اعمالو او بزرګئ دعوے او ارمـانـونـه کـوی خـو کـلـه چـه مـوقـعـه راشی نو بیا په امتحان کښ ناکام شی۔ (والله المستعان)۔

وَاِنْ كَانُوْا : (ان) مخفف من المثقل دے۔ اَیْ وَاِنَّهٗ۔ یقیناً شان دا دے۔

ذِكْرًا مِّنَ الْاَوَّلِيْنَ : یـعـنـی قـصـے او واقعات د تیر شوو انبیاء علیهم السلام۔ لکه چه پـدے سـورت کـښ ذکـر شـول نو د دوی تمنا پوره شوه بیا هم ایمان نۀ راوړی۔ یا د ذکر نه مراد ټول کتاب دے۔

فَكَفَرُوْا بِهٖ : ددے نـه مـخـکـښ تقدیر داسے دے، [فَـأَنْـزَلَ اللّٰهُ ذِكْرًا فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ/ اَوْ فِيْ هٰذِهِ السُّوْرَةِ]۔ الله تـعالیٰ په قرآن او پدے سورت کښ دغه ذکر راولیږلو، نو دوی پرے کفر وکړو او د لوی خیر نه محروم شول۔

| وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِيْنَ ﴿١٧١﴾ |
| --- |
| او یقیناً مخکښ شویده وعده زمونږ د بندګانو زمونږ سره چه رسولان دی۔ |

| إِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنصُورُونَ ﴿۱۷۲﴾ وَإِنَّ جُندَنَا لَهُمُ |
|---|
| چه یقیناً دوی سره به مدد کیدے شی۔ او یقیناً لښکرے زمونږ به خامخا هم دوی |
| الْغَالِبُونَ ﴿۱۷۳﴾ فَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتَّى حِينٍ ﴿۱۷۴﴾ وَأَبْصِرْهُمْ فَسَوْفَ |
| غالبے وی۔ نو مخ واړه وه د دوی نه تر یو وخت پورے۔ او گوره دوی ته زر دے |
| يُبْصِرُونَ ﴿۱۷۵﴾ |
| چه دوی به هم اُوگوری (د خان حال)۔ |

**تفسیر**: اُوس بیا د نجات او هلاکت خبره راوړی۔

ربط

مخکښې د قرآن په دروغژن گنړلو باندے مشرکانو له د همکی ورکړے شوه، نو اوس رسول الله ﷺ له اطمینان ورکولے شی چه الله تعالیٰ به ددهٔ خامخا مدد کوی۔ الله تعالیٰ وفرمایل چه مونږ چه خپل بندگان د انسانانو د هدایت لپاره رسولان جوړولو سره رالیږلی دی، دوئ سره زمونږ وعده ده چه مونږ به د دوئ خامخا مدد کوو، او آخر به غلبه هغه چاته ملاوېږی چه هغوئ د الله تعالیٰ فوج جوړ شی او د اسلام او مسلمانانو د سربلندئ دپاره جهاد کوی۔

كَلِمَتُنَا : ددے نه مراد وعده د مدد ده۔ لکه روستو آیت ئے بیان دے۔ اگرکه دا ډیرے جملے دی لیکن مقصد ئے یو دے، نو دے وجه نه ترے تعبیر په یوه کلمه سره وشو۔ او دارنگه بل آیت ﴿كَتَبَ اللَّهُ لَأَغْلِبَنَّ أَنَا وَرُسُلِي﴾ (المجادله: ۲۱) کښې ذکر ده۔

وَإِنَّ جُندَنَا لَهُمُ الْغَالِبُونَ : کله چه ایمان والا د دعوت کار او جهاد کوی نو الله تعالیٰ به ضرور غلبه ورکوی، او که په ځای ناست وی او دا طمع لری چه خپله به مدد راشی نو دا د الله تعالیٰ قانون نهٔ دے۔ او دا غلبه په اعتبار د انجام سره ده، یعنی اول کښې اگرکه لږ تکلیف به وی لیکن انجام به د دوی وی لکه اصحاب د رسول الله ﷺ اول کښې مغلوب بیا روستو غالبه شو۔

دلته بعض کسانو ته دا اشکال راغلے دے چه پیغمبران خو ډیر کرته وژلے شویدی او مؤمنان وژلے کیږی او الله تعالیٰ فرمائی چه زهٔ به خپله ډله غالبه کوم؟ جواب دا دے چه دا غلبه د پیغمبرانو په دوه طریقو سره ده (۱) یو بِالْحُجَّة ده، یعنی د دلیل په اعتبار سره

غلبه ده۔ دا خو په هر وخت کښې وی۔ (۲) دویم د دین په خورولو سره، څکه دا هم غلبه ده چه علاقه کښې دین خور شی اګر که نبی یا داعی د حق پرے مړ شی۔ او دا شهادت هم یو قسم غلبه ده۔ دریم دا چه دا غلبه په اعتبار د عاقبت سره ده، د دوی انجام الله تعالیٰ ښه کوی او د کافرانو انجام خراب وی۔ نو کوم خلك چه د انبياء عليهم السلام د قتل کیدو نه انکار کوی، او دا آیت په دلیل کښې پیش کوی نو دا ډیر زیاتے کوی چه د قرآن او د صحیح احادیثو مخالفت دے۔

**فَتَوَلَّ عَنۡهُمۡ** : أَیۡ اِصۡبِرۡ عَلٰی اَقۡوَالِهِمۡ وَاَذَاهُمۡ۔ نبی کریم ﷺ ته وئیلے کیږی چه ته اُوس د مشرکانو نه مخ واړوه، د هغوئ د خبرو جواب مهٔ ورکوه او د هغوی په ضررونو د صبر نه کار اخله، تردے چه حالات ستا دپاره سازګار شی، یا د دوئ په باره کښې د الله تعالیٰ حکم راشی، یا الله تعالیٰ دوئ په څهٔ آزمائش کښې مبتلا کړی۔

او تهٔ دوئ ته وښایه چه د کفر او سرکشئ انجام څهٔ وی، او د دلائلو په ذریعه د اسلام حقانیت او د هغوئ ضلالت او ګمراهی هغوئ ته ښکاره کړه۔ او که اُوس پو هه نشو نو کله چه د الله تعالیٰ نصرت او تائید، فتح او کامیابی تاته حاصله شی، بیا به خپله هر څهٔ وپیژنی۔

**وَأَبۡصِرۡهُمۡ** : یعنی دوی ته ګوره او انتظار کوه چه کله به په دوی باندے په قتل او قید سره عذاب نازل شی۔

| أَفَبِعَذَابِنَا يَسۡتَعۡجِلُونَ ﴿۱۷۶﴾ فَإِذَا نَزَلَ بِسَاحَتِهِمۡ |
|---|
| آیا پس عذاب زمونږ په جلتئ سره غواړی۔ نو کله چه نازل شی په میدان د دوی |
| فَسَاءَ صَبَاحُ الۡمُنۡذَرِينَ ﴿۱۷۷﴾ وَتَوَلَّ عَنۡهُمۡ حَتّٰى حِينٍ ﴿۱۷۸﴾ |
| باندے نو بد دے صبا د ویرولے شوو۔ او مخ واړه وه د دوی نه تر یو وخت پورے۔ |
| وَأَبۡصِرۡ فَسَوۡفَ يُبۡصِرُونَ ﴿۱۷۹﴾ سُبۡحَانَ رَبِّكَ رَبِّ |
| او ګوره نو زر دے چه دوی به اُوګوری (د خپل ځان حال)۔ پاك دے رب ستا چه رب د |
| الۡعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ ﴿۱۸۰﴾ وَسَلَامٌ عَلَى الۡمُرۡسَلِينَ ﴿۱۸۱﴾ |
| عزت دے د هغے نه چه دوی ئے بیانوی (هغهٔ لره)۔ او سلامتیا دے وی په رسولانو |

وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ ﴿۱۸۲﴾

باندے۔ او صفتونه د الوهیت خاص الله لره دی چه رب د مخلوقاتو دے۔

**تفسیر** : هرکله چه د عذاب ذکر وشو نو د مکے کافرانو د خپل کبر او غرور په نشه کښې نبی کریم ﷺ او صحابه کرامو ؓ ته وویل چه د کوم عذاب وعده تاسو مونږ سره کوئ هغه به کله راځی؟ د دوی مقصد استهزاء او مسخرے کول وو چه عذابونه نشته، دا هسے ګپ دے۔ نو الله تعالیٰ دوئ له دهمکی ورکړه چه آیا دا کم عقل خلق زمونږ عذاب په جلتئ سره غواړی؟ زمونږ عذاب خو داسے دے چه کله هغه راشی نو د هغه بد نصیبه قوم صبا به ډیر زیات خراب وی، هلاکت او تباهی به دوئ لره د هر طرفنه راګیر کړی۔

په بخاریؒ اومسلمؒ کښې د انس ؓ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ کله خیبر محاصره کړو، او یهودیانو د مسلمانانو فوجونه اولیدل او چغے ئے کړے، چه [مُحَمَّدٌ وَالْخَمِيْسُ] محمد او د هغه فوج راغلو۔ نو نبی ﷺ وفرمایل :

[اَللّٰهُ اَكْبَرُ! خَرِبَتْ خَيْبَرُ، اِنَّا اِذَا نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِيْنَ]

(نن د خیبر د بربادئ ورځ راغله، مونږ چه کله د یو قوم په میدان کښې قدم کیدو نو د هغوئ صبا ډیر زیات خراب وی)۔

**بِسَاحَتِهِمْ** : ساحه په اصل کښې د کور صحن او منډو ته وائی، دلته مراد دا دے چه عذاب په داسے جلتئ سره راشی چه بیخی کور ته ورننوزی چه بیا ترے د تیختے درک نۀ مومی۔

**صَبَاحُ** : سهار کښې دوی په غفلت کښې وی، نو پدے وجه عذابونه هم پدے وخت کښې راځی۔

**وَتَوَلَّ عَنْهُمْ** : دا ئے دویم کرته د تاکید دپاره راوړو، یا اول ځل کښې د دنیا عذاب او پدے جمله کښې د آخرت عذاب دے۔

**وَاَبْصِرْ** : په اول کښې ئے (وَاَبْصِرْهُمْ) مفعول سره راوړو، او دلته ئے بغیر د ضمیر نه ذکر کړو، اشاره ده چه د دنیا عذاب په بعض خاصو خلکو باندے راځی او د قیامت عذاب په ټولو منکرینو باندے راځی نو تخصیص ته حاجت نشته۔

**سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ** : په کوم روایت د علی ؓ کښې چه ددے آیتونو دا فضیلت

راغلے چه څوك د مانځه نه روستو دا آیتونه ولولی نو هغهٔ ته به الله تعالیٰ د قیامت په ورځ د اجرونو پوره پیمانه ورکړی نو هغه سنداً ضعیف دے۔

مصنف عبد الرزاق (۳۱۹۶) او دغه شان روایت د ابوسعید خدری رضی الله عنه نه مرفوعاً هم نقل دے (مسند الطیالسی: ۲۱۹۸) لیکن دا تول ضعیف دی۔

او دا په آخر کښې په ټول سورت باندے تفریع ده، او اثبات د توحید دے۔ یعنی هرکله چه د ملائکو او انبیاء علیهم السلام او د جناتو عجز او احتیاج ثابت شو، نو معلومه شوه چه دوی د الله تعالیٰ سره شریك نشی کیدے، الله تعالیٰ ددے نه پاك دے۔ دا د سبحان معنیٰ ده۔

پدے آیت کښې څو نظریے او عقیدے دی۔

سبحان: یعنی ستا رب پاك دے د اولادو، شریکانو او اندادو نه۔

رَبِّ الْعِزَّةِ: رب دلته په معنیٰ د مالك او مُتصف سره دے۔ یعنی د عزت مالك او په عزت باندے موصوف دے۔ دے لفظ راوړو کښې اشاره ده چه څوك د الله تعالیٰ سره شریکان جوړوی، نو د هغه بے عزتی نشی کولے، الله تعالیٰ پدے بیعزته کیږی نهٔ، بلکه دا خلك به بے عزته وی، دوی خپله خوله گنده کړه (عَمَّا يَصِفُونَ)۔ دا یوه عقیده شوه۔

العزة: غلبه او قوت ته وئیلے شی۔ او مراد دلته دا دے چه الله تعالیٰ د هر هغه عیب نه پاك دے چه د الله تعالیٰ د شریف شان او جلال سره مناسب نهٔ وی۔

بیا د عزت دوه معانی دی، یو دا چه دا د الله تعالیٰ ذاتی صفت دے چه هغهٔ ته عزت حاصل دے او هغه پرے متصف دے۔ یعنی رب د قوت او قدرت او غلبے دے نو پدے کښې کمال غلبے او قدرت ته اشاره ده۔ دویم هغه عزت چه الله تعالیٰ د خپل مخلوق ترمینځ موجود کړے وی، نو ددے مالك هم الله تعالیٰ دے۔ او دا عزت د الله تعالیٰ په توحید او د هغه د رسولانو په منلو سره حاصلیږی۔

وَسَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِينَ: ۱- الله تعالیٰ پیغمبرانو ته دعاء کوی چه زما د طرفنه دِے سلام وی په پیغمبرانو گویا که دا الله تعالیٰ په دوی باندے آفرین ووئیلو او دوی ته ئے د سلام دا تحفه پیش کړه پدے وجه چه دوی د الله تعالیٰ پیغامات خلکو ته ورسول او په خلکو باندے ئے حجت قائم کړو، او د الله تعالیٰ صحیح بندگی ئے وکړه او خلك ئے دے ته رادعوت کړل۔

۲- یا دا سلام په معنیٰ د امن او سلامتیا سره ده، یعنی دوی ته دِے الله تعالیٰ سلامتیا

ورکړی او الله تعالیٰ به ئې ورکوی. نو پدې کښې موضوع د سورت ته اشاره ده چه انبیاء علیهم السلام هم په سلامتیا کښې الله تعالیٰ ته محتاج دی.

دارنګه پدې کښې اشاره ده چه هرکله تولو پیغمبرانو ته سلامتیا ورکوی نو رسول الله ﷺ ته تسلی ده چه تا ته به هم الله تعالیٰ سلامتیا درکوی، عذاب به په تا نهٔ راځی.

نو دارنګه پدې کښې هغه چا ته هم تسلی ده چه د انبیاء علیهم السلام په لاره روان وی ځکه چه انبیاء علیهم السلام ته الله تعالیٰ سلامتیا ورکوی نو د هغوی اتباعو ته ئې هم ورکوی.

پدې کښې بل بشارت دا دے چه الله تعالیٰ یو رسول بچ کوی نو مخالفین به ئې هلاکوی.

او عما یصفون کښې اشاره شوه چه دا کافران غلطې خبرے کوی، دوی د هلاکت لائق دی نو دوی باندے به هلاکت راځی او الله تعالیٰ به ترے انبیاء علیهم السلام بچ کوی.

تقدیر د عبارت داسے دے: وَسَلَامٌ مِنَ اللّٰهِ تَعَالٰى عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ : د الله تعالیٰ د طرفنه ډیرے سلام وی په پیغمبرانو.

وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ : پدے کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ چه دا خلك هلاکوی او خپل دوستان بچ کوی نو پدے کښې هغه محمود دے، د هغه د کمالِ حمد تقاضا دا ده چه هغه د خپلو دوستانو دشمنان هلاك کړی او خپلو دوستانو ته نجات ورکړی. اُوس که الله تعالیٰ مؤمن او کافر په یو تله وتلی نو بیا خو دا کمال نشو. نو الحمد لله کښې دغه دوه حالتونو ته اشاره شوه.

مفسر نسفی لیکلی دی چه پدے سورت کښې د مشرکانو د الله تعالیٰ په باره کښې خبرے او هغه ته غلط نسبتونه ذکر شو چه الله تعالیٰ ددے نه بیخی پاك دے، او پیغمبرانو د هغوی د طرفنه ډیر مشکلات برداشت کړل، او بیا الله تعالیٰ هغوی ته د دشمنانو په مقابله کښې مدد ورکړو چه دا تول د الله تعالیٰ کمال وو، نو پدے وجه ئې په آخر کښې داسے جامع کلمات راوړل چه دے ته شاملیږی چه د مشرکانو د خبرو نه ئې پاکی بیان کړه او په پیغمبرانو ئې سلام راولیږلو او د خپل ځان دپاره ئې د کمال صفات ثابت کړل چه هغه دے پیغمبرانو ته ښائسته انجام ورکړو. (فتح البیان)

په سبحان الله کښې د الله تعالیٰ صفات سلبیه ؤته اشاره ده، او په الحمد لله رب العالمین کښې صفات ثبوتیه ته، او دا کمال دے. وبالله التوفیق.

## امتیازات د سورة الصافات

۱- پدې سورت کښې الله تعالیٰ د ملائکو احوال او د هغوی بندگیانې ذکر کړې.
۲- دوی په ملأ اعلیٰ (مجلس) کښې کینې او د بندگانو د کارونو تذکرې کوی.
۳- د دوه کسانو جګړه چه په دنیا کښې راغلې وه نو په آخرت کښې هم د هغې تکرار وشو.
٤- واقعات د انبیاء علیهم السلام په بل انداز ذکر شو چه د نجات او هلاکت اسباب پکښې بیانول مقصد وو. ایمان، احسان، تقویٰ، صبر، صلاحیت، عبادت، تسبیحات. د هلاکت سبب: شرك، مخالفة الرسول ﷺ، بت پرستی، د قیامت نه انکار، غلطې عقیدې دی.
ختم شو تفسیر د سورة الصافات په توفیق د رب العزة سره په رمضان (۲۳) ۱٤۳٦ هـ موافق (۱۰/۷/۲۰۱۵) اسریت کالام روډ سوات. او تصحیح په پشاور شیخ آباد کښې په (۱/۱۰/۲۰۱٦) کښې وشوه.

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ○

| رکوعاتها (٥) | (٣٨) سورة ص مكية (٣٨) | آیاتها (٨٨) |
|---|---|---|

سورتِ صٓ مکی دے، په دے کښې اته آتیا آیتونه، او پنځه رکوع دی

## تفسیر سورة صٓ

**نوم:** د سورت په شروع کښې د ((صٓ)) حرف راغلے دے، همدا ددے نوم دے۔ دے ته سورة داود علیه السلام هم وائی۔ ددے سورت طرز د سورتِ انبیاء په شان دے۔

په ظاهره کښې سورت کښې څه نۀ ښکاری، مګر دا مشتمل دے په څلور زرو حکمتونو باندے۔ دینی، دنیوی، عقیدوی، ایمانی، عملی او تاریخی فائدے پکښې دی او دینی قواعد پکښې ذکر دی۔

**د نازلیدو زمانه:** قرطبیؒ لیکلی دی چه دا سورت د ټولو په نیز مکی دے۔ ابن ابی شیبهؒ، احمدؒ، ترمذیؒ، نسائیؒ او حاکمؒ وغیره د ابن عباس ﷺ نه نقل کړی چه ابو جهل او نورو قریشی سردارانو د ابو طالب د مرګ په وخت د هغهٔ خواته لاړل او د رسول الله ﷺ شکایت ئے ورته وکړو چه دا زمونږ بتانو ته بد وائی، دے وجے نه مناسب ده چه تۀ په خپل ژوند کښې هغه ددے خبرے نه منع کړے۔ ابو طالب رسول الله ﷺ نه تپوس وکړو نو هغویٔ ﷺ وفرمایل چه دا خلق دے یو کلمه اووائی، ټول عرب او عجم به د دویٔ تابع شی، کافرانو ووئیل: هغه کلمه کومه یوه ده؟ نو نبی ﷺ وفرمایل:

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ کلمه، نو تمامو کافرانو خپلے جامے اُوڅنډلے او ګهبراویدو سره پاسیدل، وے وئیل: دا خو د ډیرو معبودانو په ځای د یو معبود خبره کوی، دا خو ډیره عجیبه خبره ده؟! نو ددے سورت د اول آیت نه تر (٨) آیته پورے نازل شو۔ ترمذیؒ او حاکمؒ دے حدیث ته صحیح وئیلی ووافقه الذهبیؒ۔

مناسبت

١- مخکښې بیان شو چه ملائک او معبودان ټول الله تعالیٰ ته محتاج دی نو پدے

سورت کښې په هغوی باندې ابتلاء ات ذکر کوی او په چا چه ابتلاء ات راځی نو هغه إلٰـه او معبود نشی کیدے۔ زمونږ مشائخ قرآن کریم اکثر د توحید په انداز لګوی، دا ښه خبره ده لیکن ټول سورت لګول ورسره مشکل وی، او دا یوه فائده وی په سورت کښې سره د نورو ډیرو فوائدو نه۔ ۲- هلته (وَاَبۡصِرۡ فَسَوۡفَ يُبۡصِرُوۡنَ) کښې عذابونو ته اشاره وشوه نو دلته بعض عذابونه ذکر کوی۔ (كَذَّبَتۡ قَبۡلَهُمۡ قَوۡمُ نُوۡحٍ) سره۔

۳- مخکښې سورت کښې براءت د عابدانو د یو بل نه په یو طریقه ذکر وو نو پدے سورت کښې ذکر کوی براءت په بلے طریقے سره۔

## د سورت موضوع او مقصد

۱- زمونږ مشائخ وائی چه پدے سورت کښې اثبات د توحید دے په ذکر د ابتلاء د نیکانو بندګانو سره۔ نو پدے کښې رد د شرك مقصد دے چه الله تعالیٰ سره برخه داران مهٔ جوړوئ ځکه چه پدے خلکو هم امتحانات راځی۔ لیکن دے سره ټول سورت ټول په ټوله نهٔ لګی۔

۲- ذِكۡرُ اللّٰهِ وَالۡيَوۡمِ الآخِرِ يَوۡمِ الۡحِسَابِ (الله یادول، او د آخرت ورځ چه د حساب ورځ ده یادول) ګویا که دے کښې داسے موضوع ده: اَلتَّحۡذِيۡرُ عَنِ الۡغَفۡلَةِ وَالتَّرۡغِيۡبُ اِلٰى ذِكۡرِ اللّٰهِ وَالتَّرۡغِيۡبُ اِلٰى ذِكۡرِ يَوۡمِ الۡقِيَامَةِ وَالتَّحۡذِيۡرُ عَنِ النِّسۡيَانِ۔ د غفلت نه یره ورکول او د الله تعالیٰ ذکر او د قیامت یادولو ته ترغیب دے او د نسیان (هیرولو) نه یره ورکول دی۔

د انبیاء علیهم السلام قصے به دے سره ډیرے ښے لګی، دا وجه ده چه پدے سورت کښې به د ذکر لفظ زیات استعمالیږی لکه (ذِي الذِّكۡرِ) (ءَ اُلۡقِيَ عَلَيۡهِ الذِّكۡرُ مِنۡ بَيۡنِنَا) آخر کښې وائی (هٰذَا ذِكۡرٌ) (اِنۡ هُوَ اِلَّا ذِكۡرٌ لِّلۡعَالَمِيۡنَ) پدے کښې به دعوت غرض وی چه الله تعالیٰ یاد کړئ، خپل خالق درنه هیر نشی، لوی غافلان مشرکان دی، هغوی د الله تعالیٰ نه غافل شو نو د هغه سره ئے نور شریکان جوړ کړل۔ دویم غفلت ئے دا دے چه دوی د خپل خیرخواه نبی نه خبر نهٔ دی، هغهٔ ته جادوګر او دروغجن وائی۔ دارنګه د یوم الحساب نه غفلت کوی۔ پدے وجه به پدے سورت کښې د حساب لفظ هم زیات استعمالیږی۔ دارنګه انبیاء علیهم السلام ته وګورئ چه هغوی د الله تعالیٰ څنګه عبادات کړیدی، الله تعالیٰ ئے څومره یاد کړیدے۔ د پیغمبرانو عبادت به ذکر کوی، دپاره د ترغیب او تشبه د هغوی سره۔ (اُولِي الۡاَيۡدِيۡ وَالۡاَبۡصَارِ)۔ دوی ډیر اُوچت بصیرت او اُوچت عمل والا وو۔

د انبیاء علیهم السلام په واقعاتو کښې راځي چه دوی باندې کله لږ شان بشري غفلت راغلې دې نو څومره ئې زر الله تعالیٰ ته رجوع کړیده۔ داود ؑ نه لږ میلان وشو، زر الله تعالیٰ ته راوګرځیدو، سلیمان ؑ نه مونځ تاخیر شو نو زر متوجه شو، او بل امتحان پرې راغې او د الله تعالیٰ نه ئې دعاګانې وکړې نو الله تعالیٰ څنګه لویه بادشاهي ورکړه، ایوب ؑ په راحت کښې هم د الله تعالیٰ بنده او په تکلیف کښې هم د الله تعالیٰ بنده۔ په آخر د سورت کښې به د آخرت تذکرې کوي او په آخر کښې به واقعه د آدم ؑ د ډیرو فائدو دپاره ذکر کیږي۔ یو پکښې د الله تعالیٰ د یادولو فائده ده۔

او دا خبره به ذکر کوي چه اې بندګانو! تاسو سره به په توحید، په رسالت، او په قرآن باندې حساب کیږي لږ راویښ شئ۔ او وائي به چه مشرك ډیر لوی غافل دې۔

| صٓ وَالْقُرْآنِ ذِي الذِّكْرِ ﴿١﴾ بَلِ الَّذِينَ |
|---|
| ص۔ قسم دې په قرآن چه یاداشت والا دې۔ (نصیحت والا دې)۔ بلکه هغه کسان |
| كَفَرُوا فِي عِزَّةٍ وَّشِقَاقٍ ﴿٢﴾ |
| چه کفرئې کړیدې په تکبر او دشمنئ کښې دي۔ (په خلاف کښې دي د حق نه)۔ |
| كَمْ أَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ قَرْنٍ فَنَادَوْا |
| څومره هلاك کړیدي مونږ مخکښې د دوی نه پیړئ، نو آوازونه اوکړل هغوی |
| وَّلَاتَ حِينَ مَنَاصٍ ﴿٣﴾ وَعَجِبُوْا أَنْ جَاءَ هُمْ |
| او نۀ وو دغه وخت د خلاصي۔ او تعجب کوی دوی ددې نه چه راغې دوی ته |
| مُّنْذِرٌ مِّنْهُمْ وَقَالَ الْكَافِرُوْنَ هٰذَا سَاحِرٌ كَذَّابٌ ﴿٤﴾ أَجَعَلَ |
| یره ورکونکې د دوی نه او وائي کافران دا جادوګر دروغژن دې۔ آیا ګرځولي دي دې نبي |
| الْآلِهَةَ إِلٰهًا وَّاحِدًا إِنَّ هٰذَا لَشَيْءٌ عُجَابٌ ﴿٥﴾ |
| معبودان معبود یو، یقیناً دا خامخا یو شې دې ډیر ناشنا۔ |

**تفسیر**: ((صٓ)) حرفِ مُقطع دې، الله تعالیٰ ته معلومه ده چه ددې نه څۀ مراد دې۔ او پدې کښې تاویلي تفسیرونه دا کړې شویدي چه دا د الله تعالیٰ نوم (صمد) ته یا (صَادِقٌ

الْوَعْدِ) (رشتينى وعدے والا) ته اشاره ده۔ او داسے نور ديارلس تاويلات شويدى خو غوره هغه ده چه كومه بار بار ذكر شويده چه ددے په مراد الله تعالىٰ پو هه دے۔ او د قرآن كريم اعجاز ته پكښ اشاره ده۔

وَالْقُرْآنِ : الله تعالىٰ په هغه قرآن كريم قسَم كرے چه هغه د تمامو انسانانو دپاره په خپل ځان كښ د پند او نصيحت بے شماره خبرے راجمع كرى، او دا ئے ښودلے ده چه معامله داسے نۀ ده، څنګه چه مشركان ګمان كوى چه محمد جادوګر، شاعر او دروغژن دے، بلكه د دوئ كبر او غرور او نبى كريم ﷺ او مسلمانانو سره د دوئ زورے دشمنئ دوئ لره په دے دروغو ترلو باندے را پارولى دى، ګنے دوئ ته ښه معلومه ده چه نبى ﷺ نۀ جادوګر دے، نۀ شاعر، نۀ هغه ليونے شوے دے، او نۀ دروغ وئيل د هغۀ عادت دے۔

ذِى الذِّكْرِ : دا ډير مقصودى لفظ دے۔ (۱) دے كښ چا ذِى الشَّرَف معنىٰ كړيده۔ (ابن عباسؓ) يعنى د شرافت والا دے۔ دا صفت هم قرآن كښ شته مګر دے سورت كښ دا معنىٰ دومره مقصودى نۀ ده۔

(۲) مقاتلؒ وائى : (ذِى الْبَيَانِ) د وضاحت او بيان والا كتاب دے۔

(۳) مګر ذكر په لغت كښ يادولو ته وئيلے شى يعنى ذِى الْمَوْعِظَة ۔ يعنى دا د وعظ او نصيحت والا كتاب دے، انسانانو ته هغه خبرے رايادوى چه دوى له په دنيا او په آخرت كښ فائده وركوى، چه غفلت مۀ كوئ، قيامت راروان دے، د رسول الله ﷺ تابعدارى وكړئ۔

جواب قسم نۀ دے ذكر ❁نو چا جواب داسے وئيلے دے [لَيْسَ الْاَمْرُ كَمَا يَقُوْلُ الْكُفَّارُ] خبره داسے نۀ ده لكه چه كافران ئے وائى چه دا د الله تعالىٰ رسول نۀ دے، شاعر دے يا ليونے دے يا كاهن دے لكه چه تفصيل ئے مخكښ وشو۔ نو قرآن خاوند د ياداشت دے چه دا د الله تعالىٰ رسول دے۔ ❁چا وئيلى دى [اِنَّ ذٰلِكَ لَحَقٌّ تَخَاصُمُ اَهْلِ النَّارِ] ئے جواب دے۔ ❁چا وئيلى دى چه (اِنَّهٗ لَحَقٌّ) ئے جواب دے يعنى دا كتاب حق دے۔

❁ مګر ظاهر دا ده چه جواب دا دے (اِنَّهٗ لَذِكْرٌ عَظِيْمٌ) دا ډير لوى د ياداشت كتاب دے، چه تاسو ته لوى خبرے رايادوى۔

بَلِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا : اُوس رد كوى په هغه خلكو چه د قرآن نه نصيحت نۀ اخلى، او ددے نه غفلت كوى۔ بَلْ د اِضراب دپاره دے او معنىٰ دا ده چه قرآن خو د ياداشت كتاب دے ليكن كافران ترے ياداشت او نصيحت نۀ اخلى بلكه دوى په تكبر كښ او په خلاف

کښې دی۔
عِزَّةٍ: ځان عزتمند ګڼړل او د هغې په وجه د حق منلو نه تکبر کول دی۔ او عزة په اصل کښې غلبې او قهر ته وئیلې شی۔ یعنې ځان په حق باندې غالب او قاهر ګڼړی او حق ورته معمولی او مغلوب ښکاره کیږی۔
وَّشِقَاقٍ: یعنې په مخالفت د حق کښې دی۔ نو عزة باطنی صفت دې او شقاق ظاهری دې۔ او دواړه ئې نکره راوړل دپاره د عظمت او ډیر والی۔ او مطلب ددې دواړو دا دې چه کافرانو دپاره پدې کار باندې هیڅ دلیل نشته بلکه خالص جاهلی غیرت، جګړې او تقلید راخستی دی۔
كَمۡ أَهۡلَكۡنَا: دا دنیاوی تخویف او دهمکی ده کافرانو ته۔ او دا د غفلت نه د رابیدارولو یوه طریقه ده چه هغه د الله تعالیٰ چابك دې چه انسانان پرې سموی۔ الله تعالیٰ فرمائی : ما دوی نه مخکښې ډیرې پیړئ او قومونه د رسولانو د تکذیب په وجه هلاك کړل چه هغوی ددې موجوده کافرانو نه په هر څه کښې ډیر قوی او مالونو والا وو نو د عذاب د راتللو په وخت کښې دوی هلاکتونو ته آوازونه کول او د افسوس لاسونه ئې مروړل لیکن دغه وخت د خلاصی او تیښتې نهٔ وو۔
وَّلَاتَ حِينَ مَنَاصٍ: لَاتَ په معنیٰ د لَيۡسَ سره دې۔ د وَّلَاتَ دپاره اسم پټ دې اَیٔ وَّلَاتَ الۡحِيۡنُ حِيۡنَ مَنَاصٍ ۔ یعنې دغه وخت وخت د خلاصی او تیښتې نهٔ وو۔ یا دوی یو بل ته آوازونه کول د (مناص) یعنې چه وتښتئ لیکن دغه وخت د تیښتې نهٔ وو۔ مناص مصدر دې د نَاصَ يَنُوۡصُ نه فوت کیدل، او تأخر (روستو کیدو) او تیښتې او تللو ته وائی۔
وَعَجِبُوٓا أَنۡ جَآءَهُمۡ: پدې کښې د غفلت بل سبب ذکر دې چه د معجزاتو د لیدو باوجود دا خلك انکار کوی۔ یعنې دې واقعاتو نه د مکې کافرانو دپاره عبرت حاصلول پکار وو، لیکن دې نه دوئ ته هیڅ فائده ونهٔ رسیده، او حیرانتیا او تعجب ئې وکړو چه څنګه په دوئ کښې یو انسان د الله تعالیٰ د رسول کیدو دعویٰ کوی۔ او په خپلو کښې ئې یو بل ته وویل چه دا خو جادوګر اودروغژن دې، دا څنګه کیدې شی چه د ګڼړو معبودانو په ځائې دې صرف یو معبود وی، دا خو ډیره عجیب او غریب خبره ده، او دا خبره دوئ څکه وکړه د دوئ پلرونه اونیکونه د اوږدې مودې راسې د همدې عقیدې والا وو، او دا خبره د دوئ په رګونو او پلو کښې ننوتې وه۔ دې وجې نه دوئ هم د هغوئ په روند

تقلید کښې د همدې عقیدې بارونکي دي، شرك د دوئ د زړهٔ ستر ګې ړندې کړي، او د حقې خبرې قبلولو صلاحیت دوئ نه اخستې شوې نو د یره ونکي خبرې ورته ناشنا ښکاره کیږي.

مُنۡذِرٌ: دې ته وائي چه د بدې خبرې یادونکې وي.

وَقَالَ الۡكَافِرُوۡنَ: اسم ظاهر ئې د ضمیر په ځای راوړو دپاره د اظهار د غضب په دوی باندې، چه پدې خبرو باندې هغه څوك زړه ورتیا کوي چه هغه په کفر کښې ډننه ننوتې وي، او انتهائي درجه ګمراه وي ځکه چه ددې نه بل غلیظ کفر بل کوم کیدې شي چه یو تن د الله تعالیٰ رشتیني بنده ته دروغجن او جاودګر ووائي او د الله تعالیٰ د توحید نه تعجب وکړي چه ښکاره حق دې او د شرك نه تعجب نهٔ کوي چه باطل شے دے.

سَاحِرٌ: یعني کلام کښې ئې اثر دې نو دا جادو دے، او کذاب: دروغ وائي په الله باندې. یعني ددهٔ معجزات جادو ده او دے په دعوه د نبوت کښې دروغجن دے.

أَجَعَلَ الۡاٰلِهَةَ اِلٰـهًا وَّاحِدًا: یعني د دوی په نیز دا عجیبه خبره وه چه ډیر آلهه څنګه پریدو او د یو اِلٰـه بندګي شروع کړو ؟! ځکه چه د دوی عقل کار نهٔ کولو او دا به ئې وئیل چه د یو تن قدرت تولو مخلوقاتو ته څنګه پوره شي او د هغه علم څنګه د ټول مخلوق حفاظت وکړي نو دوی غائب په حاضر باندې قیاس کړو، او دا خبره ورته ځکه ډیره عجیبه ښکاره کیدله چه د دوی مشران چه دوی ته ډیر عقلمند ښکاره کیدل هغوی په شرك باندې کلك ولاړ وو، نو دوی وویل چه دوی څنګه باطل پرست کیدې شي او یو انسان ډې وي او هغه ډې حق وي.

علامه کرخيؒ وائي که چرته تقلید حق وے نو دا شبهه خامخا لازمه وه. (یعني یو طرفته ډیر خلق دي او بل طرفته یو تن دے، او ظاهره خبره ده چه د ډیرو خبرو به حقه وي او د یو به غلطه وي لیکن اعتبار دلیل او وحي لره دے، نهٔ ډیر والي لره، کافران په خپل ډیر والي دهوکه شول او د حق نه ئې انکار وکړو).

عُجَابٌ: عجیب نفس عجیبه ته وائي او عجاب ډیر عجیبه ته وئیلې شي، پدې کښې تشدید د جیم او تخفیف دواړه یو شان معنیٰ لري.

او بعض وائي چه په تشدید د جیم سره وي نو هغه مبالغه ده په عجیب کښې. او عجاب په معنیٰ د نفس عجیبه سره دے. (قاله الجوهريؒ)

| وَانطَلَقَ الْمَلَأُ مِنْهُمْ أَنِ امْشُوا وَاصْبِرُوا |
|---|
| او روان شوه یوه ډله د دوی نه چه ځئ (ددے نبی نه) او صبر کوئ (کلك شئ) |
| عَلٰى آلِهَتِكُمْ إِنَّ هٰذَا لَشَيْءٌ يُرَادُ ﴿٦﴾ مَا |
| په معبودانو خپلو یقیناً دا یو شے دے چه اراده ئے کیدے شی (زمونږ نه)۔ نۀ دی |
| سَمِعْنَا بِهٰذَا فِي الْمِلَّةِ الْآخِرَةِ إِنْ هٰذَا إِلَّا اخْتِلَاقٌ ﴿٧﴾ |
| آوریدلی مونږ دا خبرے په دین روستنی کښں، نۀ دے دا مګر دروغ جوړ کړے شوی۔ |
| أَأُنْزِلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ مِنْ بَيْنِنَا بَلْ هُمْ فِي شَكٍّ |
| آیا نازل شویده په دۀ باندے وحی د مینځ زمونږ نه بلکه دوی په شك کښں دی |
| مِنْ ذِكْرِي بَلْ لَمَّا يَذُوقُوا عَذَابِ ﴿٨﴾ |
| د وحی زما نه بلکه لا تر اُوسه نۀ دے څکلے دوی عذاب زما۔ |

**تفسیر** : ددے آیت دوه تفسیره دی (۱) یو دا چه مشرکان د مکے په لارو کښں تقسیم شو او یو بل ته ئے دا وصیت وکړو چه دا نوے سرے راپیدا شویدے او ددۀ په وجه خپل باباګان او باطل معبودان پرینږدئ یعنی مشرانو کشرانو ته دا خبره وکړه۔ نو معنیٰ دا ده : [وَانْطَلَقَ الْمَلَأُ فِيْ طُرُقِ مَكَّةَ] روان شو دوی په لارو د مکه کښں۔

(۲) دویم په ابتداء د سورت کښں شان نزول ذکر شو چه کله رسول الله ﷺ د قریشنو د کافرانو نه د ((لا إله إلا الله)) کلمے مطالبه وکړه نو د ابو طالب د خوانه ئے لمنے وڅنډلے پاسیدل، او واپس تللو سره ئے یو بل ته په بت پرستئ باندے د ټینګ پاتے کیدو حکم وکړو او وے وئیل چه اے خلقو ! د خپلو پلرونو او نیکونو په طریقه باندے قائم وسیږئ، او محمد (ﷺ) زمونږ او زمونږ د معبودانو په باره کښں چه څۀ غواړی وائی دے، مونږ له د هغۀ په خبرو پرواه نۀ دی کول پکار، او د خپلو معبودانو عبادت نۀ دی پریښودل پکار۔ د محمد د تمامو تدبیرونو او کوششونو مقصد دا دے چه مونږ خپل معبودان پریدو۔ نو معنیٰ دا ده : [وَانْطَلَقَ الْمَلَأُ مِنْ مَجْلِسِ اَبِيْ طَالِبٍ] روان شوه دا ډله د مشرکانو د مجلس د ابو طالب نه۔

وَاصْبِرُوا عَلٰى آلِهَتِكُمْ : دا هغه صبر مذموم دے، چه په باطل باندے یو بل ته

وصیت کوی چه مضبوط ودریږئ، لکه ډیر باطل پرست خلق خپلو کشرانو ته وائی چه نوے خلق پیدا شویدے، په خپل دین کللك شئ چر ته مو وانهٔړوی او خپل دین ئے د شرك او د بدعت نه ډك وی، اول خو دوی له دا فکر پکار دے چه دا زمونږ دین کوم دین دے؟.

إِنَّ هٰذَا لَشَيْءٌ يُّرَادُ: دا علت دے د مخکښں امر کولو په صبر باندے یعنی دا توحید منل او زمونږ معبودان پریخودل محمد زمونږ نه غواړی دے دپاره چه دے په مونږ باندے مشر شی او مونږ ددهٔ تابع شو او دے چه په مونږ کښں څه فیصله کول غواړی هغه وکړی، دا هیڅرے نشی کیدے. مقصد ئے پدے کښں خلك د هغهٔ نه یره ول او د هغهٔ نه متنفر کول وو. (فتح البیان)

فِي الْمِلَّةِ الْآخِرَةِ: (۱) یعنی د کوم توحید خبره چه کیږی او په کوم شئ باندے د ایمان راوړو دپاره چه مونږ له دعوت راکولے شی، هغه خو د نصاراؤ سره هم موجود نهٔ دے، چه دا آخرنے (روستونے) دین دے. یعنی د هغوی په دین کښں هم توحید نشته څکه چه نصارئ هم د عیسیٰ علیه السلام عبادت کوی. دے نه معلومه شوه چه دا د محمد (ﷺ) دروغ تړل دی چه ددے دلیل هغهٔ سره د هغهٔ د کتاب نه سوئ بل هیڅ شے نهٔ دے چه هغے ته هغه قرآن وائی، او دعوئ کوی چه دا د الله تعالیٰ وحی ده. چونکه یهود او نصاراؤ د توحید مسئلے عربو ته نهٔ وے بیان کړے او نهٔ ئے خپله توحید اختیار کړے وو. لکه اُوس هم ډیر جاهلان وائی چه دا مسئلے د توحید او د سنت خو اُوسه پورے زمونږ مشرانو ملیانو نهٔ دی بیان کړی نو مونږ ددے منلو ته تیار نهٔ یو.

دا تفسیر د محمد بن کعب قرظیؒ، قتادهؒ، مقاتلؒ، کلبیؒ او سدیؒ دے او د ابن عباس ﷺ نه نقل دے. مګر دا تفسیر دومره غوره نهٔ دے.

(۲) غوره دا ده، مجاهدؒ وائی چه د الملة الآخرة نه مراد ملت د قریشو دے. یعنی هغه دین چه مونږ ته د پلارانو نه پاتے شویدے. او دے ته ملت آخره وئیل په محاوره بناء دی خلك وائی دا مسئله مونږ د پخوا نه تر اُوسنی دین پورے نهٔ ده آوریدلے. یعنی د متقدمینو د زمانے نه تر متأخرینو زمانے پورے دا مسئله چا نهٔ ده کړے، یعنی د پخوانو نه چه روستنو ته کوم دین پاتے شویدے په هغے کښں دا مسئلے نشته.

حسنؒ وائی: معنیٰ دا ده: [مَا سَمِعْنَا اَنَّ هٰذَا يَكُونُ فِيْ آخِرِ الزَّمَانِ] یعنی مونږ د پخوانو نه دا نهٔ دی آوریدلی چه په روستو زمانه کښں به داسے خبره کیږی. (فتح البیان)

إِلَّا اخۡتِلَاقٌ: يعنې دروغ دي چه محمد (ﷺ) د ځان نه جوړ کړيدي۔
أَأُنزِلَ عَلَيۡهِ الذِّكۡرُ مِنۢ بَيۡنِنَا: دا زجر دے په انكار د قرآن سره۔
❁ او پدے کښې دوی ددے خبرے نه انکار دے چه د محمد ﷺ په دوی باندے څه زياتی فضيلت او خصوصيت د نبوت په وجه ثابت وی۔
❁ او دے کښې بل غفلت ذکر دے۔ يعنې ددۀ خبره مونږ ځکه نۀ منو او دا خبره په دے وجه هم د حيرانتيا لائق ده چه زمونږ په مينځ کښې ددۀ نه زيات مالدار او صاحبِ حيثيت خلق موجود دی، نو ددۀ په ځائے بل چاله ولے نبوت نۀ ورکړے کيدۀ چه دے غريب له نبوت ورکړے شو؟!۔
دوی نبوت يو جاگيرداری گنړله چه مونږ مشران يو پکار ده چه مونږ ته راکړے شی۔
مفسرين ليکی چه د دوئ ددے خبرے نه د دوئ په سينو کښې د رسول الله ﷺ خِلاف پټ بغض او حسد ته اشاره کيږی۔ د دوئ په زړونو کښې اُور لگيدلے وو چه الله تعالیٰ د دوئ په ځائے محمد له ولے د نبوت شرافت ورکړو۔
بَلۡ هُمۡ فِي شَكٍّ مِّن ذِكۡرِي: الله تعالیٰ په دوی باندے رد کوی چه د قريشو کافران زما په يادولو او زما د توحيد او زما د کتاب (قرآن) په باره کښې په شك کښې دی، يعنې زما په توحيد او زما په ذات ئے يقين نشته، که د دوی زما په ذات يقين وے نو دوی به هيچرے داسے غلطے خبرے نۀ کولے۔
بَل لَّمَّا يَذُوقُوا عَذَابِ: او د دوئ دا شك په دے وجه نۀ ختميږی چه د قرآن نه په انکار کولو باندے دوئ ته لا سزا نۀ ده ملاؤ شوے، که چرے ددے په وجه په دوئ عذاب راغلے وے نو ټول شك او حسد به خود بخود لرے شوے وے۔
نو د انکار دوه وجے شوے، يو دا چه انسان کښې غفلت وی، او د الله تعالیٰ نه غافل وی، ځکه چه څوك الله تعالیٰ نۀ پيژنی نو هغه څه کوی چه په قرآن ايمان راوړی۔ دويمه وجه امن دے چه يو تن ته الله تعالیٰ امن ورکړے وی او عذاب ئے پرے نۀ وی نازل کړے نو ځکه سرکشه شوے وی که الله تعالیٰ ورله تنگ ورکړو بيا به ئے دماغ ځای له راشی او هرڅه به منی ليکن هيڅ فائده به نۀ ورکوی۔

| أَمۡ عِندَهُمۡ خَزَآئِنُ رَحۡمَةِ رَبِّكَ الۡعَزِيزِ الۡوَهَّابِ ﴿٩﴾ |
| --- |
| آيا د دوی سره خزانے د رحمت د رب ستا دی چه غالب دے بخشش ورکونکے دے۔ |

| أَمْ لَهُم مُّلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا |
|---|
| آیا دوی لره بادشاهي د آسمانونو او د زمکې ده او د هغه څه چه په مینځ د دواړو کښې |
| فَلْيَرْتَقُوا فِي الْأَسْبَابِ ﴿١٠﴾ جُندٌ مَّا هُنَالِكَ |
| دي، نو اوږدې خیژي په اندرپایو کښې۔ لښکر دے سپك شان په دغه ځائے کښې |
| مَهْزُومٌ مِّنَ الْأَحْزَابِ ﴿١١﴾ |
| په شکست ورکړے شي، د ډلو نه دي۔ (چه مخالفین د رسولانو دي)۔ |

**تفسیر** : ام عندهم خزائن رحمة ربك :پدې آیت کښې الله تعالیٰ په دوی باندې رد کوی چه آیا دا کافران ستا د رب د خزانو مالکان دي (چه په دې کښې نبوت او نور نعمتونه شامل دي) چه دوئ د خپلې مرضئ مطابق چاله غواړي ورکوی ئې او چاله غواړي نه ئې ورکوی؟ هر کله چه داسې څۀ خبره نشته، نو دوئ له چرته دا حق حاصل شو چه د نبی کریم ﷺ د نبوت په منصب باندې په کامیاب کیدو اعتراض وکړي۔

د سورتِ انعام په (١٢٤) آیت کښې الله تعالیٰ فرمائیلی دی : ﴿ اَللّٰهُ اَعۡلَمُ حَيۡثُ يَجۡعَلُ رِسَالَتَهُ ﴾ (الله بهتر پو هیږي چه د خپل رسالت منصب چاته سپاري)۔

مطلب دا چه نبوت او نور فضیلت ورکول د الله تعالیٰ په اختیار سره دی، هغه چه چا ته ورکول غواړي ورکوی ئې، د هغه دپاره څه مانع نشته۔

د رحمة نه مراد دلته نبوت دے۔

أَمْ لَهُم مُّلْكُ السَّمَاوَاتِ : دا بل رد دے یعنی آیا د قریشو کافران د آسمانونو او زمکې او ددې دواړو ترمینځه چه څۀ څیزونه دي د هغې مالکان دي؟ که چرې داسې خبره وے نو بیا خو دے دوئ مَنزل په منزل اوخیژي او اووم آسمان ته دې اورسي، او په نبی کریم ﷺ باندې دې وحی نازلیدل بند کړي۔ مفسرین لیکی چه په دې کښې د قریشو د کافرانو انتهائي درجه سپکاوے او د دوئ د عاجزئ اوبے وسئ بیان دے۔

فَلْيَرْتَقُوا : ددې نه مخکښې عبارت داسې دے [إِنْ كَانَ لَهُمْ ذٰلِكَ] که دوی ته دا اختیار حاصل وی نو بیا دې دوی وخیژي۔

الْأَسْبَابِ: نه مراد لارې او دروازې د آسمان دي۔ یا ددې نه مراد رسئ او پړی دي۔

جُندٌ مَّا هُنَالِكَ: الله تعالیٰ فرمائي چه دوی دومره اوچت خلك نۀ دے، آسمان ته ختل

خو په ځای پریده، بلکه دوی هلاکیدو والا دی. یعنی دا ډیر حقیر او سپك لښکر دے چه په نزدے زمانه کښې په بدر کښې به مردار شی او شکست به وخوری. او همیشه دپاره به د دوئ زور مات شی. دے وجے نه اے زما نبی ! ته د دوئ پرواه مه کوه، ستا خلاف به د دوئ هر سازش درے ورے شی. نو همدغسے وشوه چه د بدر په میدان کښې ډیر وران وران ووژلے شو، او څه چه بچ پاتے شول نو هغه قید کړے شول، او د مکے د فتح په ورځ پاتے شوے کمے پوره شو، او انتهائی ذلت او رسوائی سره د نبی کریم ﷺ مخے ته راغلل او د خپلو ځانونو د بخښولو سوال ئے وکړو ؟. دا اګرکه مکی سورت دے لیکن الله تعالیٰ ورته سخته دهمکی ورکړے ده او جهاد ته پکښې اشارات شویدی.

جُندٌ مَّا : (مَا) د تحقیر (سپکاوی) دپاره راځی، یعنی دا یو سپك لښکر دے.

هُنَالِكَ: ۱- په دغه ځای کښې چه مراد ترے بدر دے او د الله تعالیٰ په علم کښې وو.

۲- صاحب د فتح البیان وائی چه هُنَالِكَ اشاره مکے ته هم ده، ځکه چه دوی دا تکذیب په مکه کښې کړے وو، یعنی دوی به پدے مکه کښې شکست وخوری نو پدے کښې فتح د مکے ته اشاره ده چه د مکے مشرکانو په اتم کال په مکه کښې شکست وخوړو چه رسول الله ﷺ پرے راداخل شو او هغوی خړ سترګی وو. یعنی دوی خو اُوس داسے غټے خبرے کوی لیکن صبا له به سرکوزی وی.

مِّنَ الْأَحْزَابِ: یعنی دا د جنس د هغه ډلو نه دی چه د انبیاء علیهم السلام په مخالفت کښې به ئے ډله بازی او تعصب کولو. هغوی هلاك شو نو دوی به هم هلاك شی.

| كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَّعَادٌ وَّفِرْعَوْنُ ذُو الْأَوْتَادِ ﴿۱۲﴾ |
|---|
| تکذیب کړے وو مخکښې د دوی نه قوم د نوح ؑ او عادیانو او فرعون میخونو |
| وَثَمُودُ وَقَوْمُ لُوطٍ وَّأَصْحَابُ الْأَيْكَةِ أُولَٰئِكَ الْأَحْزَابُ ﴿۱۳﴾ |
| والا. او ثمودیانو او قوم د لوط ؑ او بنړ والو، دغه ډلے دی (مخالف د رسولانو). |
| إِن كُلٌّ إِلَّا كَذَّبَ الرُّسُلَ |
| نۀ وو دا ټول مګر تکذیب ئے کړے وو د رسولانو |
| فَحَقَّ عِقَابِ ﴿۱۴﴾ وَمَا يَنظُرُ هَٰؤُلَاءِ إِلَّا صَيْحَةً وَّاحِدَةً |
| نو ثابت شو (په دوی) عذاب زما. او انتظار نۀ کوی دا (موجوده) مګر د چغے یوے، |

مَا لَهَا مِن فَوَاقٍ ﴿۱۵﴾

نهٔ به وی هغې لره ایساریدل۔ (روستو کیدل)

**تفسیر**: دا تخویف دنیوی دے په ذکر د تیر شوی قومونو چه هغوی تکذیب کړے وو لکه موجوده کسانو چه تکذیب وکړو او لکه چه هغوی مراد ته ونهٔ رسیدل نو دا موجوده هم نشی رسیدلے او لکه چه هغوی هلاك شو نو دوی به هم هلاك شی۔

ذُو الْأَوْتَادِ: ۱- د فرعون ډیرو ظلمونو ته اشاره ده چه چا لره به ئے سزا ورکوله نو په لاسونو او خپو به ئے ورته میخونه ټك وهل۔ ۲- وتد میخ ته وائی لیکن په محاوره کښ ددے اطلاق په اَلْمَبَانِی الشَّدِیْدَة باندے کیږی۔ یعنی سختو او مضبوطو آبادیانو باندے۔ ۳- او دا کنایه وی د ثَبَاتُ الْمُلْكِ (د بادشاهئ د مضبوط والی) نه۔ او فرعون کښ درے واړه کارونه وو، نو په یو لفظ کښ د هغه درے واړو احوالو ته اشاره شوه۔

اُولٰئِكَ الْاَحْزَابُ: دا ئے په لفظ د احزاب سره ذکر کړل پدے کښ اشاره ده چه دوی په مختلفو قوتونو او طریقو سره د انبیاء علیهم السلام مقابلے کړے وے، قوم د نوح ؑ کښ کثرتِ سرکشی، په عادیانو کښ قوت د بدنونو، فرعونیانو کښ قوت د بادشاهئ او د ډیر ظلم وو، او په ثمودیانو کښ قوت د کاریګرئ (صنعت کارئ) او قوم د لوط ؑ کښ قوت د جهل او خباثت، او اصحاب الایکه کښ قوت مالی او تجارت وو چه ددے قوتونو په سبب ئے تکذیب کړے وو۔

اَلْاَحْزَابُ: اَیِ الْمُتَحَزِّبُوْنَ عَلَى الرُّسُلِ۔ یعنی دغه ډلے وے چه د رسولانو په خلاف به ئے ډله بازی او تعصب کولو۔

اِنْ كُلٌّ: اِنْ نافیه دے۔ یعنی نشته په دوی کښ هیڅ یو تن۔

فَحَقَّ عِقَابِ: اَیْ ثَبَتَ عِقَابِیْ عَلَیْهِمْ۔ زما عذاب په هغوی باندے ثابت شو۔

وَمَا یَنْظُرُ هٰؤُلَاءِ: مخکښ د تیر شوو قومونو کفر او شرك او د هغوی د هلاکت قصے بیان شوے نو اُوس موجوده کافرانو ته دهمکی ورکوی چه هسے نهٔ د دوئ انجام هم د دغه قومونو غوندے شی، او ورسره ورسره دوئ له د توبے او الله تعالیٰ ته د واپس کیدو دعوت هم ورکړے کیږی، دے دپاره چه الله تعالیٰ دوئ لره معاف کړی۔ یعنی تکذیب مهٔ کوئ راشئ په جلتئ سره د عذاب د راتللو نه مخکښ مخکښ ایمان راوړئ۔

یعنی دا موجوده کافران په ایمان راوړو کښې انتظار نهٔ کوي مګر ددے چه یوه چغه (عذاب) په دوی باندے راشي چه د هغې به بیا هیڅ ایساریدل او واپسی نهٔ وي۔

د صیحے نه مراد د دنیا عذاب دے چه جبریل ﷤ به په دوی باندے یوه چغه ووهي لکه چه په ډیرو پخوانو کافرانو ئے دغسے وهلے ده او ټول ئے هلاك کړیدي۔

بعض وائي چه ددے نه مراد د اسرافیل ﷤ شپیلۍ ده۔ او معنیٰ دا ده چه دوئ صرف د هغه شپیلۍ انتظار کوي چه قیامت ته نزدے به ویو کلے شي، او دے آواز سره به هر ساه والا هلاك شي، صرف د الله تعالیٰ ذات به باقي پاتے وي، یعني د جهنم عذاب او ددے ترمینځه صرف د اسرافیل ﷤ شپیلۍ پرده ده۔

فَوَاقٍ: ۱- یوه معنیٰ ده رجوع۔ (مجاهدؒ، مقاتلؒ) او ددے بیا دوه مطلبه دي، یو دا چه أَیْ لَایَرْجِعُوْنَ بَعْدَهَا ۔ یعني د هغې نه روستو به دوی نشي راواپس کیدے تویے ته۔ دویم دا چه د هغې رجوع به نهٔ وي، یو ټنګ به وي چه په هغې به هلاك شي، بار بار چغو ته به ضرورت نهٔ راځي۔ د انسان ګوزار کمزورے وي نو هغه بار بار ته ضرورت وي۔

۲- فواق کله فُتُور (سستوالی) ته وائي۔

۳- ابن زیدؒ، ابوعبیدهؒ او سدیؒ وائي چه فواق په فتحه د فاء سره راحت او افاقے ته ونیلے شي یعني په هغې کښې به رابیدار نشي او راحت به ورته ملاؤ نشي لکه څنګه چه مریض او بیهوشه انسان رابیداریږي۔ أَیْ لَیْسَ فِیْهَا اِفَاقَةٌ ۔ چه په هغې کښې به بیداریدل نهٔ وي بلکه همداسے بے هوشۍ حالت کښې به ددنیا نه روان وي۔

په بل قراءت کښې فواق په ضمه د فاء سره دے۔ چه معنیٰ ئے د تاخیر او انتظار ده، یعنې د هغې دپاره دومره تاخیر نهٔ وي څومره چه د اُوښے د دوه لښلو ترمینځ موده وي۔

او بعض اهل لغت وائي چه دواړه په یوه معنیٰ سره استعمالیږي۔ ضمه او فتح د فاء دواړه صحیح دي۔

| وَقَالُوْا رَبَّنَا عَجِّلْ لَّنَا قِطَّنَا |
|---|
| او وائي دوی اے ربه زمونږ په جلتۍ سره راکړه مونږ ته برخه زمونږ |
| قَبْلَ يَوْمِ الْحِسَابِ ﴿۱۶﴾ |
| مخکښې د ورځے د حساب نه۔ |

**تفسیر** : په قریشو کافرانو باندې د عذاب دهمکۍ اَلتِه اثر وکړو، د الله تعالیٰ د رسول ﷺ پورې ئې خندا کولو سره ووئیل چه قیامته پورې ولې انتظار وکړې شي، په دې دنیا کښې دې زمونږ برخه عذاب په مونږ را اولیږلې شي. ابن جریرؒ وائي چه دوئ رسول الله ﷺ او قیامت پورې خندا کولو سره ووئیل چه د قیامت ځله انتظار کوئ، د خیر یا شر چه د هر څۀ مونږ مستحق یو په همدې دنیا کښې مونږ له راکړې کیدل پکار دي. یعنی د جنت نه څه برخه دې مونږ ته دلته راکړې شي، تۀ وائې چه په جنت کښې نعمتونه او مزې دي نو څه برخه دې دلته راکړې شي، د مکې ګرمي دې ختمه شي، او دلته دې باغونه جوړ شي، او نهرونه دې روان شي، او څه فراخي دې راوستې شي. دا د دوی استهزاء وه.

**قِطَّنَا** : اَیْ نَصِیْبَنَا مِنَ الْجَنَّةِ ۔ یا نَصِیْبَنَا مِنَ الْخَیْرِ وَالشَّرِّ ۔ برخه زمونږ د جنت نه. یا برخه زمونږ د خیر یا د شر نه.

قط په لغت کښې کتاب الجوائز ته وئیلې شي. (کسائیؒ، ابوعبیدةؒ) یعنی هغه کتاب چه په هغې کښې ډالۍ او انعامات لیکلې شوي وي. دې سره د دوی دا غرض هم وو چه مونږ ته دې هغه عملنامه هم په دنیا کښې راکړې شي کوم کښې چه ستا د وینا مطابق زمونږ عملونه لیکلې شویدي. یعنی په دنیا کښې دې مونږ سره حساب وکړې شي او دلته دې د جنت برخه راکړې شي.

دا د دوی ناقوتیلي او ناقوالې وې چه راخوشې کولې به ئې.

| |
|---|
| اِصْبِرْ عَلٰی مَا یَقُوْلُوْنَ وَاذْکُرْ عَبْدَنَا دَاوٗدَ ذَا الْاَیْدِ |
| صبر کوه په هغه څه چه وائي دوی او یاد کړه بنده زما داود علیه السلام خاوند د قوت وو (په |
| اِنَّهٗ اَوَّابٌ ﴿۱۷﴾ اِنَّا سَخَّرْنَا |
| عبادت)، یقیناً هغه راواپس کیدونکے وو (الله تعالیٰ ته). یقیناً مونږ تابع کړي وو |
| الْجِبَالَ مَعَهٗ یُسَبِّحْنَ بِالْعَشِیِّ وَالْاِشْرَاقِ ﴿۱۸﴾ وَالطَّیْرَ |
| غرونه د هغۀ سره، تسبیح به ئې وئیله بیګائي او د نمرخاته وخت کښې. او مارغان |
| مَحْشُوْرَةً کُلٌّ لَّهٗ اَوَّابٌ ﴿۱۹﴾ وَشَدَدْنَا |
| راجمع کړې شوي، ټول هغۀ ته راګرځیدونکي وو. (یا الله ته) او مضبوط کړې وه |

| مُلْكَهٗ وَ آتَيْنَاهُ الْحِكْمَةَ |
|---|
| مونږ بادشاهي د هغهٔ او ورکړے وو مونږ هغهٔ ته پوهه د دين |
| وَفَصْلَ الْخِطَابِ ﴿۲۰﴾ |
| او فيصله کونکے خبرے۔ (واضح بيان) |

**تفسير** : اُوس الله تعالىٰ خپل رسول ﷺ تـه د کفارو په ضرر رسولو باندے د صبر کولو ښـودنـه کـوی او د نـورو انبيـاءِ کـرامـو واقـعـاتو آورولو سره ئے زيرے ورکړے چه د هغویٔ پشان به په هر حال کښ فتح او کاميابی صرف تاته ملاويږی۔

وَاذْكُرْ عَبْدَنَا: د تولو نه وړاندے تهٔ زمونږ د بنده داؤد (عليه السلام) ژوند خپلے مخے ته اُوساته چـه هغه د خپل رب په طاعت او بندگیٔ کښ، د امانت په ادائيگیٔ کښ، او د دعوت الی الله پـه کـارونو کښ ډير قوی واقع شوے وو، او الله تعالىٰ سره د هغهٔ تعلق دومره مضبوط وو چـه پـه خپـلـو تـولو دينی او دنيوی کارونو کښ به ئے الله تعالىٰ طرفتـه رجوع کوله، د هـغـهٔ ويـره به هر وخت د هغهٔ په زړهٔ کښ وه، او په هر حال کښ به د هغهٔ په بندگیٔ کښ مشغول وو۔ نبی کريم ﷺ د هـغـهٔ په باره کښ فرمائيلی چه هغه به يوه ورځ روژه وو، او يـوه ورځ کـوژه، دريـمـه حـصـه شپے پـورے بـه ئے مونځ کولو، او کله به چه دشمن سره مخامخ شو نو ميدان پريښودلو سره به نهٔ تختيدهٔ۔

دلتـه الله تـعـالـىٰ خپـل نبـی ضـروری خبرو تـه متـوجـه کـوی۔ دا واقعه په ډيرو فائدو مشتـمـل ده بعض دا دی : (۱) يو پدے کښ تسلی ده رسول الله ﷺ ته چه د داود (عليه السلام) په شان صبر وکړه۔ (۲) د داود (عليه السلام) پـه شان بـنده جوړ شه، هغه په ټولو انسانانو کښ زيات بندگی کونکے وو۔ نو هغهٔ سره ځان مشابه کړه۔ او په عبادت کښ مقصد دا دے چه دنيا هم ښه شی او د کافرانو د اعتراضاتو په مقابله کښ مضبوطوالے راځی۔

(۳) اشاره ده چه اَلْاَنْبِيَاءُ فِیْ وَادٍ وَالْمُشْرِكُوْنَ فِیْ وَادٍ ۔ يـعـنی دا خبره رايادة کړه چه انبياء عـلـيهـم السلام په يوه کنده کښ دی او مشرکان په بله کنده کښ۔ خلك د آخرت او د الله دپاره څومره تياری او خواری کوی، او مشرکان ترے څومره غفلت کوی۔ د انبياء عليهم السـلام تـابـعـداری پکار ده۔ (٤) او انسان باندے چه کله غفلت راشی نو زر الله تعالىٰ ته رجوع پکار ده لکه چه داود (عليه السلام) زر رجوع کړيده۔

ذَا الْأَیْدِ: لاسونه خو د هر چا شته، نو دلته ترې مراد ذِی الْقُوَّةِ فِی الْعِبَادَةِ دے، یعنی د الله تعالیٰ په بندگئ کښې ډیر طاقت والا سړے وو۔ اکثر انسانان په عبادت کښې زر سست شی، او په خواهشاتو او دکانداریانو کښې سستی نکوی، د داود ﷺ قوت ته وگوره چه سل بیبیانے لری او یوه ورځ روژه، او بله ورځ کوجه تول عمر، او دریمه حصه شپه عبادت، بیا د ورځے فیصلے کول، او ورسره جهاد ته به هم تللو او زبور به ئے په لږ ساعت کښې لوستلو۔ حکم به ئے وکړو چه په اسونو باندے زین واچوئ، هلته چه به زینونه اچولے کیدل دلته به دهٔ زبور ختم کړے وو۔ او دا به ئے ښه په آرام آرام لوستلو۔ لکه حدیث کښې دی: [خُفِّفَ عَلٰی دَاوُدَ الْقُرْآنُ] په داود ﷺ باندے لوستل د زبور آسان شوی وو۔ او په هغے کښې به ئے ژړاگانے کولے، او د دعا په شکل به ئے لوستلو۔ او بیا د هغے سره به ئے د دنیا کار هم کولو، زغرے به ئے جوړولے۔ او بیا هم د تولو انسانانو نه زیات عبادت گذار دے نو دا حالت د الله تعالیٰ نه غوښتل پکار دی۔

إِنَّهُ أَوَّابٌ: یعنی دا الله تعالیٰ ته ډیر راگرزیدونکے وو ځکه چه انسان باندے ضرور غفلت راځی نو دهٔ باندے چه به د خوب غفلت راغلو نو زر به الله تعالیٰ ته راواپس شو په عبادت، که خپلے بی بی سره به ملاؤ شو نو زر به ئے الله تعالیٰ ته رجوع وکړه۔ ابن عباس رضی الله عنه وائی چه اواب په لغت د حبشو کښې په معنیٰ د مُسَبِّح (تسبیح ویونکی) سره دے۔ مجاهدٌ وائی ما د ابن عمر رضی الله عنه نه تپوس وکړو نو هغه وویل چه اواب هغه شخص دے چه یواځے ځای کښې خپل گناهونه رایاد کړی نو د الله تعالیٰ نه بخنه وغواړی۔ د ابن عباس رضی الله عنه یو بل روایت دے چه اَوَّاب مُوْقِن (یقین والا) ته وئیلے شی۔ (فتح البیان)

یا دا هغه شخص دے چه کله ئے گناه په زړه کښې تیره شی نو زر اَسْتَغْفِرُ الله ووائی۔

إِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ: الله تعالیٰ په داؤد ﷺ باندے ډیر زیات انعامونه کړی وو، بعض دلته ذکر کیږی، دے دپاره چه په نبی کریم ﷺ کښې د هغهٔ د اقتداء رغبت پیدا شی، الله تعالیٰ وفرمایل چه مونږ غرونه د هغهٔ تابع کړی وو، کله به چه هغهٔ د مازیگر نه پس نمر پریواتهٔ پورے او د صبا په وخت د الله تعالیٰ تسبیح وئیله نو خوا اوشاته غرونو او مارغانو به د هغهٔ سره تسبیح وئیله، او خلکو به هغه آوریدله نو توله علاقه به د الله تعالیٰ په ذکر باندے آباده وه۔ چه جمادات، هم په ذکر او د الله تعالیٰ په تعظیم کښې لگیا وی، حیوانات هم، او انسانان هم، دا به څومره ښه فضاء وی۔

بِالْعَشِیِّ وَالْإِشْرَاقِ: د داود ﷺ د تسبیحاتو او د زبور د لوستلو دا دوه وختونه وو۔ او

دا بهترين اوقات دي پدے وجه احاديثو کښې د صبا او بيگاه په اذکارو ډير زور راغلے دے۔
وَالطَّيْرَ مَحْشُورَةً: دا مفعول د سَخَّرْنَا [أَيْ وَسَخَّرْنَا لَهُ الطَّيْرَ حَالَ كَوْنِهَا مَحْشُورَةً]
يعنې مونږ د هغهٔ دپاره مارغان تابع کړي وو پداسے حال کښې چه هغه به راجمع کړے شوي وو۔ ملائکو به راجمع کړي وو، يا هواء۔
يا الله تعالىٰ ورته په زړه کښې الهام کړے وو۔
كُلٌّ لَّهُ أَوَّابٌ : ١- يعنې داؤد ، غرونه او مارغان، ټول الله تعالىٰ طرفته رجوع کونکي وو، ټولو به د هغهٔ تسبيح وئيله او د هغهٔ په طاعت او بندگئ کښې به مشغول وو۔ هسے د سيل دپاره به ناست نهٔ وو۔
٢- يا دا ټول د وجه د تسبيح د داؤد  نه تسبيح ويونکي وو۔ ٣- يا دا ټول داود ته راواپس کيدونکي وو، يعنې د هغهٔ نه نشو تښتيدلے۔ اول قول غوره دے۔
حافظ ابن کثيرؒ ليکي چه الله تعالىٰ داؤد  دپاره غرونه مسخر کړي وو، چه صبا بيگاه به ئے هغهٔ سره شريکه تسبيح وئيله، دغه شان مارغانو به هم هغهٔ سره تسبيح وئيله، کله به چه هغوی په هواء کښې د آلوتو په وخت د زبور تلاوت واوريدو، نو ويه دريدل، او هغهٔ سره به ئے تسبيح لوستل شروع کړل۔ او دغه شان غرونو به هم ورسره تسبيحات وئيل۔ انتهىٰ۔
وَشَدَدْنَا مُلْكَهُ: نور نعمتونه بيانوی، چه مونږ د فوجونو او جنگي سامانونو په ذريعه د دشمنانو په زړونو کښې د هغهٔ رُعب او دبدبه کينوله، او د جنگ په ميدان کښې د فتح او نصرت په ورکولو سره مو د هغهٔ د حکومت بنياد مضبوط کړے وو، او مونږ هغهٔ له نبوت او لرے نظر لگيدل ورکړي وو، دے وجے نه د هغهٔ هيڅ قول او عمل د حکمت نه نهٔ خالي کيدهٔ او مونږ د خلقو ترمينځه په فيصله کولو کښې هغه حقے رائے والا جوړ کړے وو۔ مفسرين ليکي چه الله تعالىٰ چه هغهٔ له کوم زبور ورکړے وو هغه د قيمتي حِکمتونو خزانه وه، او هغهٔ به د خلقو ترمينځه دومره صحيح فيصله کوله چه ټولو خلقو به هغهٔ سره محبت کولو، او هيچا به د هغهٔ مخالفت نهٔ کولو۔
الْحِكْمَةَ: ١- پوهه د دين۔ ٢- په هره فيصله پوهيدل۔
٣- اَلْإِصَابَةُ فِي الْأُمُوْرِ۔ کارونو کښې حق ته رسيدل۔ او صحيح رائے والا کيدل۔
٤- هره خبره ئے د حق موافق وه۔ ٥- عدل (مجاهدؒ)
٦- السنة۔ (يعنې خپل اقوال او اعمال او طريقے د عبادت) (شريحؒ) دا ټولے معاني مراد

دی۔

وَفَصۡلَ الۡخِطَابِ: یعنی داسې بیان او داسې خبرې چه واضحه وې چه مخاطب به پرې ښه او زر پوهیدو۔ نو نبی هم وو، بادشاه هم وو او عابد هم او قاضی هم وو۔

۱ – فصل الخطاب لفظ شامل دې مختصر او جامع کلام ته۔

۲ – د حمد او صلاة نه روستو اَمَّا بَعۡدُ کلمې وئیلو ته چه دا دهٔ ایجاد کړې وه۔

۳ – د جګړو د صفائی صحیح طریقه یعنی ګواه اخستل، قسم ورکول، د مدعی په ذمه ګواه راوستل او مدعی عَلَیۡهِ ته قسم ورکول۔ پدې طریقه باندې فیصله ښکاره کیږي، او دا طریقه د انبیاء علیهم السلام او د نیکانو خلکو پاتې شویده او همدا طریقه پدې امت کښې رائج ده۔ (ابن کثیر وفتح البیان)

| |
|---|
| وَهَلۡ أَتَاكَ نَبَأُ الۡخَصۡمِ إِذۡ تَسَوَّرُوا الۡمِحۡرَابَ ﴿۲۱﴾ |
| او آیا راغلې دې تا ته خبر د جګړه کونکو کله چه اوختل دوی په دیوال د عبادت خانه |
| إِذۡ دَخَلُوا عَلَىٰ دَاوُودَ فَفَزِعَ مِنۡهُمۡ |
| باندې۔ کله چه داخل شو دوی په داود (علیه السلام) باندې نو اوبریدو هغه د دوی نه، |
| قَالُوا لَا تَخَفۡ خَصۡمَانِ بَغَىٰ بَعۡضُنَا عَلَىٰ بَعۡضٍ |
| دوی اووئیل مهٔ یریږه، مونږ دوه جګړه ماریو، زیاتې کړیدې بعض زمونږ په بعضو |
| فَاحۡكُمۡ بَيۡنَنَا بِالۡحَقِّ وَلَا تُشۡطِطۡ |
| باندې نو فیصله اوکړه په مینځ زمونږ کښې په حق سره، او زیاتې مهٔ کوه (د حد نه) |
| وَاهۡدِنَا إِلَىٰ سَوَاءِ الصِّرَاطِ ﴿۲۲﴾ إِنَّ هَٰذَا أَخِي لَهُ تِسۡعٌ وَتِسۡعُونَ نَعۡجَةً |
| او خودنه اوکړه مونږ ته د برابرې لارې۔ یقیناً دا زما ورور دې دهٔ لره نهه نوی ګډې دی |
| وَلِيَ نَعۡجَةٌ وَاحِدَةٌ فَقَالَ أَكۡفِلۡنِيهَا وَعَزَّنِي فِي الۡخِطَابِ ﴿۲۳﴾ |
| او ما لره ګډه یوه ده نو دې وائی اوسپاره ما ته دا، او دې زورور دې په ما باندې په خبرو |
| قَالَ لَقَدۡ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعۡجَتِكَ إِلَىٰ نِعَاجِهِ |
| کښې۔ اووئیل هغهٔ یقیناً ظلم کړیدې دهٔ په تا باندې په غوختلو د ګډې ستا د ګډو |

| وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْخُلَطَاءِ لَيَبْغِي |
|---|
| خپلو سره (په يو ځائے کولو) او يقيناً ډير د شرکت کونکو نه خامخا ظلم کوی |
| بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا |
| بعض د دوی نه په بعضو باندے مگر هغه کسان چه ايمان ئے راوړيدے او عمل ئے |
| الصَّالِحَاتِ وَقَلِيلٌ مَّا هُمْ وَظَنَّ دَاوُودُ أَنَّمَا |
| کړيدے نيک او ډير کم دی دا خلق، او گمان اُوکړو داود (عليه السلام) چه يقيناً |
| فَتَنَّاهُ فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهُ وَخَرَّ رَاكِعًا |
| مونږ امتحان اُوکړو په دۀ باندے نو بخنه ئے طلب کړه د رب خپل نه او پريوتو رکوع |
| وَأَنَابَ سجدة ﴿٢٤﴾ فَغَفَرْنَا لَهُ ذَٰلِكَ |
| کونکے او را اُوگرځيدو الله ته (په سجده سره)۔ نو اُوبخله مونږ دۀ ته دا خبره، |
| وَإِنَّ لَهُ عِندَنَا لَزُلْفَىٰ وَحُسْنَ مَآبٍ ﴿٢٥﴾ |
| او يقيناً دۀ لره زمونږ سره خامخا نزدے والے او ښائسته ځای د واپس کيدو دے۔ |

**تفسیر**: مخکښې د داود عليه السلام صفت ذکر شو نو اُوس هم ورله صفت کوی، ليکن په يوه واقعه کښې پرے معمولی شان غفلت راغلے دے، امتحان دے، نو هغه هم ورله ذکر کوی او په هغے کښې هم مقصد دا دے چه که تاسو باندے غفلت راشی نو الله تعالیٰ ته داسے زر راوپس شئ؛ لکه چه داود عليه السلام الله تعالیٰ ته زر راواپس شوے وو۔

وَهَلْ أَتَاكَ : هَلْ په معنیٰ د قَدْ سره دے ليکن په ابتداء د کلام کښې د متوجه کولو دپاره راځی۔ آيا تا ته راغلے دے يعنی آؤ راغلے دے متوجه شه۔

نَبَأ: د (۲۱) آيت نه تر (۲۵) آيته پورے الله تعالیٰ د داوُد عليه السلام يوه فيصله ذکر کړے چه هغه د دۀ په حکمت او پوهے، زُور نظرئ او د الله تعالیٰ نه په سختے ويرے باندے دلالت کوی۔

ددے آيتونو اجمالی مطلب دادے چه الله تعالیٰ نبی کريم ﷺ ته خطاب کوی فرمائی چه يوه ورځ داوُد عليه السلام خوا ته دوه سړی په دروازه بانـدے د داخليدو په ځائے په ديوال را

اوختـل او هغـه مـحـراب تـه رانـنوتل چه په هغې کښې به هغهٔ د الله تعالىٰ عبادت کولو، داؤد ﷺ چـه دا دواړه نـاساپه خپلې مخې ته اولیدل نو ګهبراؤ شو، نو هغوئ ورته اووئیل چه ګهبراوېږه مهٔ، زمونږ ترمینځه جګړه ده، په مونږ کښې يو کس په بل زياتے کړے، ستا خوالـه راغلي يو چه تهٔ د عدل او انصاف مطابق زمونږ ترمينځه فیصله وکړه، په هيڅا زياتے مهٔ کـوه، او صـحيـح لارے طـرفـته زمونږ رهنمائي وکړه۔ بیا هغه سړی چه هغهٔ خپـل ځان مظلوم ګنړلو اووئيل چه زما ددے مسلمان ورور سره نهه نوی ګډے دی، او ما سره صرف يوه ګډه ده۔ دے وائي چه تهٔ ماله خپله ګډه راکړه دے دپاره چه خپلو ګډو سره دا يو ځائے کړم، او د خپلې لمدے ژبے په وجه په ما زوروَر شو او ګډه ئے يوړه۔

داؤد ﷺ ووئيـل : هـغـه تـانه ستا د ګډے په غوښتلو سره په تا باندے زياتے کړے، ځکه چـه هغهٔ سره د نهه نوی ګډو باوجود تانه ستا د ګډے په زبردستئ باندے د اخستلو هغهٔ ته هيڅ ضرورت نهٔ وو۔ بيا ئے ووئيل چه ډير شريکان دغه شان د اُخوّت او صداقت خيال نهٔ ساتي، او زياتے کوی۔ حالانکه د وروړلئ تقاضا خو داده چه خپل ورور له په خپل ځان بـاندے غوره کړی۔ البته کوم خلق چه ايمان او تقوىٰ والا وی هغوئ داسے زياتے نهٔ کوی، او داسے خـلق ډير کم وی۔ د دواړو د واپس تللو نه پس د داؤد ﷺ پـه ذهـن کښې دا خبره راغله چه دا فيصله د الله تعالىٰ د طرفه ددهٔ امتحان وو، دے وجے نه د خپل رب نه ئے بخښه وغـوښتـه او د هغهٔ په زړهٔ باندے د الله تعالىٰ د ويرے داسے غلبه شوه چه په سجده پريواتهٔ او پـوره طور سره خپل رب ته متوجه شو، نو الله تعالىٰ هغه معاف کړو۔ د (۲۵) آيت په آخـر کښې الله تعالىٰ رسول الله ﷺ لـه خبر ورکړو چه داؤد مونږ ته ډير نزدے وو، او هغه به په جنت کښې په اوچته مرتبه کامياب وی۔

مـفسرين ليکي چه د داؤد ﷺ دا فـيـصـلـه د هـغهٔ په حکمت او ژور نظرئ باندے او په فـيـصـلـو کـښې د هغهٔ د رائے په حق کيدو او صريح کيدو باندے دلالت کوی۔ هغهٔ د چا د رعـايـت کـولـو نه بغير حقه خبره اوکړه او د مدعىٰ عَلَيۡهِ زياتے ئے په ډاګه ذکر کړو، په دے طـريـقـه ئے د مظلوم سترګو ته يخوالے اُورسولو، او ظالم خپل ظلم وپيژندهٔ، او ټولو ته دا مـعـلـومـه شـوه چـه عدل او انصاف په هره خبره مقدم دے، او دا چه زياتره خلقو کښې په نورو باندے د زياتی کولو صفت موندلے کيږی۔

### فوائد الآية :

۱ - فَفَزِعَ مِنۡهُمۡ نه معلومه شوه چه پيغمبران محتاج مخلوق دے يره هم پرے راځي۔

۲- وَلَا تُشْطِطْ : د تاکید دپاره یو عادل بادشاه او قاضی ته هم دا وینا صحیح ده چه د عدل فیصله وکړه او ظلم ونکړې، ګنې داود علیه السلام خو د حق فیصله کوله.

أَكْفِلْنِيهَا: یعنی ما ددې ذمه وار جوړ کړه او ما ته ئې راوسپاره. او کفالت یو ځای والی ته هم وائی یعنی زما د ګډو بزو سره ئې یو ځای کړه.

وَعَزَّنِي: عزة قوت ته وئیلې شي یعنی دا په ما باندې په خبرو کښې زور ور دې.

الْخُلَطَاءِ: د اکثرو شریکانو د یو بل سره جګړې راځي ځکه چه په یو بل باندې ظلم کوي، ددې وجه نه د چا سره شراکت نۀ دې پکار، چه شراکت کوې نو صحیح مؤمن سره به ئې کوې. نو بیا پکښې ډیر زیات برکت دې. رسول الله ﷺ فرمائی: [أَنَا ثَالِثُ الشَّرِيكَيْنِ مَا لَمْ يَخُنْ أَحَدُهُمَا] زۀ د دوه شریکانو ملګرې یم خو ترڅو چه یو پکښې خیانت ونکړي. مؤمن سرې غلا، خیانت، تګي نۀ کوي، دروغ نۀ وائی.

سنن ابی داود (۳۳۸۳) حاکم او ذهبیؒ ورته صحیح وئیلې دي. او شیخ البانیؒ ضعیف کړیدې.

بیا دلته د دوی شرکت څنګه وو، یا پدې طریقه وو چه د دواړو په شریکه ګډې اخستې دی، او یو تهولې خرڅې کړیدی صرف یوه ئې پریخودې ده، نو دا بل ملګرې ورته وائی چه تا تهولې ګډې خرڅې کړیدی، او دا پاتې صرف زما برخه ده. او دا بل وائی چه نۀ دا یوه پکښې زما پاتې ده. پدې جګړه وه. یا ورته په میراث کښې پاتې شوې نو شریك وو بیا یو ورور خپلې ګډې د ذبح په طریقه ختمې کړیدی او یوه ئې پاتې ده نو بل ورور ورته وائی چه ستا تولې ختمې دی، او دا وائی چه نۀ یوه پکښې پاتې ده. او که دا دواړه ملائك وی، نو بیا د مثال په طریقه وئیلې شویدې.

وَخَرَّ رَاكِعًا: دا پدې قصه کښې مقصودی لفظ دې. چه الله تعالیٰ ته ئې رجوع کړیده. بیا ئې د سجدې په ځای رکوع ذکر کړه، پدې کښې اشاره ده چه سجده د تلاوت د ولاړې نه بهتر ده، او په ناسته جائز ده. او دا مطلب نۀ دې لکه چه احناف ئې وائی چه په رکوع کښې ئې سجده وکړه. هغوی وائی چه رکوع ته راځکته شي نو دا سجده وشوه. دا قول ضعیف دې. او په مرفوع حدیث کښې ددې بیان په سجدې سره راغلې دې، سنن نسائی کښې دی چه رسول الله ﷺ پدې ځای کښې سجده وکړه او وې فرمایل: [سَجَدَهَا دَاوُدُ تَوْبَةً وَنَسْجُدُهَا شُكْرًا] دا سجده د داود علیه السلام د توبې په طور وه، او زمونږ د شکر په طور ده.

[نسائی باب سجود القرآن ۱۱ ص ۹۵۸ وسنده صحیح].

ابن عباس رضی الله عنه به ددې آیت په سجده باندې دا دلیل نیولو چه قرآن کښې الله تعالیٰ نبی

ته حکم کړېدے (فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ) تـهٔ ددے انبیاؤ د هدایت پسے روان شه، نو رسول الله ﷺ د هغوی پـه اقتداء باندے مامور وو، او دا ښکاره ثابتـه ده چه داود عليه السلام دا سجده کړے او رسول الله ﷺ هم دا سجده کړے۔

(صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة ص، ٤٨٠٧)

## د داود علیه السلام په امتحان کښ د مفسرینو اقوال

أَنَّمَا فَتَنّٰهُ: داود عليه السلام گمان وکړو چه مونږ په هغه باندے امتحان وکړو۔ دا امتحان قرآن نـهٔ دے ذکر کړے، تـاریـخ کـښ ذکر دے، او بـعـض عـلماؤ اجتهاد طریقے سره وئیلے دے۔ چونکه پدے آیتونو کښ هغه قصه ذکر کول مقصد نهٔ دے، بلکه مقصد دادے چه داود عليه السلام تـه د خپـلے خطائی احساس وشو نو الله تعالیٰ نـه ئے بخـنـه وغوښته او هغهٔ ته ئے رجـوع وکـړه، دا د انبیـاء علیهم السلام طریقه ده چه هغوی باندے لږ غفلت راشی نو الله تعالیٰ ته زر رجوع کوی او د مشرکانو په شان نهٔ وی چه د غفلت په کندوئے سر وی۔

د مـفسـرینـو ددے آیتـونـو متـعلق ډیرے رائے دی۔ (١) یوه غلطه واقعه ده چه یهود او نـصاراؤ جوړه کړیده، او بعض مفسرینو د هغوی نه بغیر د تثبت نه اخستے ده، ځکه چه ډیـر یهـودیان او نـصارئ داود او سلیمان علیهما السلام نهٔ منی او دے ته غاصبان وائی۔ لـکـه زمـونږ په امت کښ ئے شیعه گان مثال دے چه دوی ابوبکر او عمر او عثمان رضی الله عنهم ته غاصبین وائی (العیاذ بالله)۔

### غلطه قصه

هـغـه واقعه دا ده چه داود عليه السلام الله تـعالیٰ ته فرمایل چه اے زما ربه ! د شپے او د ورځے داسے وخـت نشته چه د داود د کورنئ نه پکښ څوك عبادت او ستا دپاره مونځ نهٔ کوی، نو د الله تـعـالیٰ دا خبره خوښه نشوه، هغه ته ئے وویل چه تهٔ دا زما په توفیق او مدد سره کـوے او پـه خپـل عزت او جلال مے ډے قسم وی چه تا به یوه ورځ خپل ځان ته وسپارم۔ داود عليه السلام ورتـه وفـرمـایـل : مـا تـه هغه ورځ وښایه، الله تـعالیٰ ورتـه وخـودله نو داود عليه السلام عبادتـخانے ته ننوتو او زبورئے راواخستو او تلاوت ئے شروع کړو او عبادتونه ئے کول چه پـدے کـښ یـوه مـرغـئ راغـلـه چه د سرو زرو وه او هر قسم رنگونه پکښ وو نو هغه ددهٔ مـخـے ته تاویده راتاویده، دهٔ ته رانژدے شوه نو داود عليه السلام اراده وکـړه چه هغه راونیسی نو

هغه شا ته توپ کړل نو داود ﷺ زبور بند کړو او هغې پسې پاڅیدو نو هغه والوته او د عبادتخانې په کړکۍ کښې کیناسته نو دا چه ورنږدې شو هغې لاندې چهت ته توپ کړل نو داود ﷺ ورپسې سر رابښکاره کړو نو لاندې د اُوریا په نوم باندې د یو سړي کور وو چه په هغې کښې د هغه ښځې غسل کولو نو ددهٔ نظر په هغې پریوتو، نو هغې هم دهٔ لره ولیدو نو هغې خپل ویښته په ټول بدن باندې راتاو کړل نو دهٔ ولیدل چه دا څومره ښکلې ښځه او څومره غټ ویښتـه ئې دي، نو په زړهٔ کښې ئې واقع شوه، نو کله چه داود ﷺ راواپس شو نو تپوس ئې وکړو چه دا ښځه د چا ده؟ وویل شو : د اُوریا ده، نو د مجاهدینو امیر ته ئې امر وکړو چه دا مخکښې صف ته ولیږئ او د تورات پورته کونکو خلکو کښې ئې وګرځوئ ځکه چه تورات چه به چا پورته کړے وو نو هغه به شهید کیدو یا به فتح راتلله۔ (په دهٔ باندې ئې فدائي حمله کوله) نو هغه شهید شو او د عدت د تیریدو نه روستو هغه ښځه داود ﷺ په نکاح واخسته خو هغې ورسره دا شرط ولګولو چه که زما بچے پیدا شو نو ستا نه روستو به خلیفه وي، نو دهٔ ورسره ومنله او په هغې باندې ئې د بني اسرائیلو پنځوس کسان ګواهان کړل او خط ئې ورسره ولیکلو، نو پدے کښې د داود ﷺ د هغه ښځې نه سلیمان ﷺ پیدا شو او ځوان شو نو پدے وخت کښې ورته دوه ملائك راغلل او امتحان پرے وشو۔ (ابن ابی شیبةؒ وابن ابی حاتمؒ)

لیکن دا روایت منګهړت او موضوع دے۔ په انبیاء علیهم السلام باندې لوی تهمت دے۔ جناب علي ﷺ به فرمایل : چا چه دا واقعه بیانه کړه نو زهٔ به ئې (۱٦۰) دُرے وهم ځکه چه په نبي باندې د تهمت لګولو همدا حد دے۔

دا قصه د ډیرو وجو نه غلطه ده : امام قاضي عیاضؒ فرمائي چه ددے قصے نقل کول جائز نهٔ دي، او نهٔ پدے باره کښې صحیح حدیث نقل دے، او نهٔ الله تعالیٰ د هغې وضاحت کړیدے۔

امام رازيؒ وائي چه پدے قصه کښې خو د مسلمان سړي په ناحقه باندې د قتل کوشش او بیا د هغه د ښځې طمع شویده او دا دواړه عظیم منکرات دي، نو هیڅ عاقل دپاره دا جائز نهٔ دي چه هغه په داود ﷺ باندې دا ګمان وکړي۔ څیني اهل علمو وئیلي دي چه الله تعالیٰ د داود ﷺ د قصے په ابتداء او په آخر کښې د هغهٔ ډیر زیات صفت کړیدے نو هیڅ عقلمند دا ګمان نکوي چه په مینځ د دوه مدحو کښې د هغهٔ بدي ووئیلے شي۔ او که دا کار څوك وکړي نو خلك ئې قبیح ګڼړي او الله تعالیٰ خو ددے نه مُنَزّه دے۔

د عمر بن عبد العزیزؒ په مجلس کښې یو تن دا قصه وکړه نو یو عالِم ورته جواب ورکړو چه کـه قصه هغه وی کومه چه د الله تعالیٰ په کتاب کښې ذکر ده نو د هغې خلاف لټول جائز نـهٔ دی، او دا عـظیم جرم دے چـه د قـرآن خـلاف قصـه وکړے شی، او کـه واقعی همـدغـه شان وی لکه چه تا ذکر کړه نو الله تعالیٰ خو په خپل نبی باندے پرده اچولے ده، نو تا له د هغې ښکاره کول جائز نهٔ دی نو عمر بن عبد العزیزؒ وفرمایل :

دا خبره آوریدل ما ته ډیر محبوب دی د ټولے دنیا نه چه نمر په هغې راخیژی۔

ابو السـعـودؒ وائـی چـه دا قـصه بهتان دے او ناروا بدعت (ایجاد) دے او د دهوکے نه ډك مـکـر دے چه غوږونه ددے د آوریدو نه نفرت کوی، الله دے هغه څوك تباه او هلاك کړی چه دا قصه ئے ایجاد کړے او بیا ئے خوره کړے۔ (فتح البیان)

داود ﷺ په مرغۍ څه کوی چه زبور پریدی او مرغۍ رانیسی، دا کار یو ادنیٰ مسلمان هم نـهٔ کـوی چه لا نبی، بیا زنانه د کوټے په سریا په ښکاره میدان لامبل۔ بیا د یو مسلمان د وژلو کوشش کول ټول تهمتونه دی۔

(۲) دویـم قـول دے تـه نـزدے دا دے چه اوریا بن حنان په یوه ښځه خِطبه (جرگه) کړے وه نو داود ﷺ د هغه د خِطبے دپاسه خِطبه وکړه نو خلکو دهٔ ته ورکړه د وجه د لوی شان ددهٔ نه، نو پدے کار باندے اُوریا غمجن شو نو الله تعالیٰ په داود ﷺ باندے ملامتیا راولیږله چه دا ښـځـه ئے ډیے جرگه کونکی ته پرینخوده۔ نو الله تعالیٰ پرے دا امتحان راوستو چه گـوره تا سره نهه نوی ښځے شته، او دا بله هم ځان سره یو ځای کوے او دغه یو شخص ته ډے دا ښـځـه پـریـنخوده۔ دا کار ناروا نهٔ وو لیکن دنیا ته لږ شان میلان وو چه د اَفضلیت خلاف وو، او د داود ﷺ د لـوی شان سره مناسب نهٔ وو نو ځکه پرے امتحان راغے او الله ورته تنبیه ورکړه۔

(۳) دریـم قول : دهٔ خپل یو امتی ته وویل چه تهٔ دا ښځه طلاقه کړه او زهٔ به ئے په نکاح واخلـم، او دا کـار نـاروا نـهٔ دے لکه زمونږ په امت کښې صحابه کرامؓ هم کله ناکله داسے کـړیدے لکه سعد بن الربیع ﷺ عبـد الرحمن بن عوف ﷺ تـه وویل چه زهٔ د دواړو ښځو نه یوه طلاقوم دے دپاره چه تهٔ ئے وکړے۔

مـکـر الله تعالیٰ ته دا خبره خوښه نشوه چه ستا ډیرے ښځے دی او د هغه یوه ده نو تا لره د هغـهٔ نـه ددے د طـلاقولو مطالبه نهٔ وه پکار نو دوه ملائك ئے وریسے راولیږل دے دپاره چه دے الله تعالیٰ ته رجوع وکړی۔ دا قول صاحب د فتح البیان غوره کړیدے۔

(٤) بل قول دا دے چه دهٔ د اُوریا په قتل باندے ډیر خفکان ونکړو لکه څنګه چه د نور لښکر په قتل به ئے ډیر خفګان کولو، بیا ئے د هغهٔ ښځه په نکاح واخسته نو الله تعالیٰ پرے ملامتیا ووېله، دا کار هم ناروا نهٔ دے، لیکن د نبی شان ډیر اُوچت وی.

(٥) داود ﷺ د هغه سری ښځے ته وکتل چه هغه اراده کړے وه چه په نکاح ئے واخلی (سعید بن جبیرؒ).

زجاجؒ وائی داود ﷺ قصداً نظر دغه ښځے ته نهٔ وو کړے بلکه دوباره نظر ئے ورته وکړو نو اول نظر ورته معاف وو، او دویم په هغه باندے حساب شو، نو الله تعالیٰ ورته پدے طریقه د ملائکو په ذریعه تنبیه ورکړه. او دا کار ناروا نهٔ دے، څکه چه نبی هم انسان وی، ښائسته او بد رنګ پیژنی، ښائسته والے خوښوی. رسول الله ﷺ په لاره کښں یوه زنانه ولیدله او په زړه کښں ئے واقع شوه بیا کور ته لاړو او بی بی سره ئے مباشرت وکړو او مسجد ته راووتو او دا ئے ووېل چه کوم یو تن ستاسو نه یوه زنانه وینی او په زړه کښں ئے واقع شی نو خپلے کور والا خواته دِ ورشی. (فَإِنَّ مَعَهَا مِثْلَ الَّذِيْ مَعَهَا) د هغے سره دِ ے مباشرت وکړی. څکه چه ښځے تولے (په مباشرت کښں) یو شان دی.

(الترمذی برقم: ١١٥٨) باب ما جاء فی الرجل یری المرأة، باسناد صحیح)

دا تاریخی وُجوه دی. او اجتهادی وجے چه علماؤ په خپل اجتهاد ایجاد کړیدی، دا دی:

(١) اول دا چه داود ﷺ په عبادت خانه کښں ناست دے، او دوه کسان پرے راواوریدل نو دهٔ څان سره ووېل چه د خلکو کارونه او حاجتونه دی، او ما څان پسے کوټه بنده کړیده او دننه ناست یم او د خلکو خدمت نهٔ کوم دا خو نقصان دے، نو الله تعالیٰ ته ئے توبه ویستله چه بیا به داسے نهٔ کوم، دهٔ یوه ورځ عبادت له او یوه ورځ فیصلو له ورکړے وه نو بیا ئے ووېل چه زهٔ به هره ورځ څه ناڅه فیصلے کوم. نو امتحان دا وو چه دهٔ ولے مکمل ورځ عبادت له ورکوله، پکار دا وو چه د خلکو خدمت وکړی. څکه چه د ډیر نفلی عبادت نه د عوامو خدمت غوره وی. لیکن دا قول ددے نهه نوی ګډو سره ښه نهٔ لګی. بلکه نفس امتحان دے.

(٢) بعض وائی چه امتحان دا وو چه داود ﷺ په دغه دوه کسانو بدګمانی وکړه او د هغوی نه ویریدو چه دا به غلهٔ وی نو هغوی ورته ووېل چه مونږ غلهٔ نهٔ بلکه جګړه مار یو. نو داود ﷺ د الله تعالیٰ نه بخنه طلب کړه چه ما په مسلمانانو بدګمانی وکړه. دا خبره هم بعید ده، د آیت الفاظ ورسره پوره نهٔ لګی.

(۳) بعض اهل علم وائی چه ابتلاء دا وه چه د یو جګړه مار خبره ئے واوریده او د بل ئے وانهٔ وریده، او فیصله کښې ئے جلتی وکړه۔ بیا روستو ورته سوچ ورغے چه دا خو ما ښه ونکړل چه د بل ملګری لا خبره مے نهٔ ده آوریدلے او فیصله مے وکړه۔ مګر دا هم اجتهادي وجه ده۔ ظاهر دا ده چه داود ﷺ د دواړو خبره آوریدلے ده ځکه چه مخکښې ئے الله تعالیٰ صفت وکړو په ﴿ وَآتَيْنَاهُ الْحِكْمَةَ وَفَصْلَ الْخِطَابِ﴾ سره، او د یو خبره آوریدل او د بل نهٔ آوریدل خو د حکمة خلاف ده۔

او مفسرین وائی چه د هغه فصل الخطاب دا وو چه [اَلْبَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِيْ وَالْيَمِيْنُ عَلٰى مَنْ اَنْكَرَ] مدعی به ګواه راوړی او منکر به قسم کوی۔ او بعضو د فصل الخطاب نه د اما بعد کلمه اخستے ده چه دا به ئے په خپل بیان کښې وئیله۔

(٤) حافظ ابن حزم رحمه الله په خپل کتاب (الفِصَل) کښې دغه مخکنۍ قصے ته د یهودو بهتان وئیلے دے۔ او بیا ئے وئیلی دی چه داؤد ﷺ خواته راتلونکی دوه ملائك نهٔ وو، بلکه انسانان وو، او د هغوئ جګړه واقعی د ګډو بزو په باره کښې وه لکه څنګه چه قرآن وئیلی دی او کومو خلقو چه وئیلی دی چه دغه دواړه ملائك وو، او مقصد ښځو طرفته اشاره کول وو، هغوئ په الله باندے دروغ تړلی دی۔ او استغفار طلب کول او سجده او الله ته عاجزی کول اُوچت عبادات دی، انبیاء علیهم السلام پدے باندے زیات لائق دی چه دا وکړی او هرچه دا قول دے ﴿ وَظَنَّ دَاوُدُ اَنَّمَا فَتَنّٰهُ ﴾ نو د داود ﷺ ګمان دا وو چه ما ته الله تعالیٰ کومه لویه فراخه بادشاهی راکړیده دا چرته د الله تعالیٰ د طرف نه فتنه نهٔ وی نو ددے ګمان نه ئے د الله تعالیٰ نه بخښنه غوختلے ده نو الله تعالیٰ ورته دا ګمان بخلے دے ځکه چه دهٔ ته الله تعالیٰ کومه بادشاهی ورکړے وه دا ددهٔ دپاره فتنه نهٔ وه۔ او همدا ظاهر د آیت دے۔ (انتهیٰ ترجمة قول ابن حزمؒ)

ددے اقوالو دپاره فتح البیان او محاسن التاویل د قاسمیؒ ته رجوع وکړه۔

د حافظ ابن حزمؒ ددے قول تائید د حافظ ابن کثیرؒ د قول نه هم کیږی، هغه لیکی چه مفسرینو دلته یوه قصه بیان کړے چه د هغے زیاتره برخه د اسرائیلیاتو نه اخستے شوے ده۔ په دے باره کښې د نبی کریم ﷺ نه یو حدیث هم ثابت نهٔ دے۔ دے وجے نه بهتره داده چه دا قصه لکه څنګه چه قرآن کښې راغلے، په همدے باندے اکتفاء وکړے شی، او ددے د تفصیل علم الله تعالیٰ ته حواله کړے شی، ځکه چه قرآن حق دے، او په دے کښې چه څهٔ بیان شوی هغه حق دی۔ (یعنی دا خبره ضروری نهٔ ده چه د هر شی تفصیلی علم دِے

انسان حاصل کړی بلکه ددې علم الله تعالیٰ ته سپارل پکار دی او په همدې کښې سلامتیا ده)۔

پدې تولو احتمالاتو کښې دویم او دریم او څلورم قول د نهه نوی کډو او د یوې کډې سره بنه لګی چه دا بـه بنـځو ته اشاره وی او دا د بعض سلفو نه هم نقل دی، او پدې کښې د نبی پـه شان کښې هیڅ نقصان نۀ راځی بلکه تاریخی روایاتو کښې دی چه داود ﷺ ددې امتحان نه روستو څلویښت ورځو پورې دومره ژړاګانې کولې چه زمکه به ئې لمده کړه او د هغه د سجدې په ځای په زمکه ګیاه راشنه شوه۔ (فتح البیان)

او د مخکښې حالت نـه ئې هم ځان ډیر ښـه کړو۔ لکه چه دلته ئې الله تعالیٰ صفت کړیدې۔ په (وَخَرَّ رَاكِعًا وَأَنَابَ) سره۔

| يَا دَاوُدُ إِنَّا جَعَلْنَاكَ خَلِيفَةً فِي الْأَرْضِ |
|---|
| اې داود! یقیناً مونږ کړځولې ئې تۀ خلیفه (فیصله کونکې) په زمکه کښې |
| فَاحْكُمْ بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوَىٰ |
| نو فیصله کوه په مینځ د خلقو کښې په حق سره او تابعداری مۀ کوه د خواهش |
| فَيُضِلَّكَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ ۚ إِنَّ الَّذِينَ يَضِلُّونَ عَنْ سَبِيلِ |
| نو ګمراه به دې کړی د لارې د الله تعالیٰ نه، یقیناً هغه کسان چه ګمراه شی د لارې |
| اللَّهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ بِمَا نَسُوا يَوْمَ الْحِسَابِ ﴿٢٦﴾ |
| د الله نه دوی لره عذاب سخت دې په سبب د هغې چه دوی هیره کړه ورځ د حساب۔ |

**تفسیر** : دا آیت د مخکښې سره متعلق دې، او پدې آیت کښې الله تعالیٰ داود ﷺ ته خطاب کوی او تنبیه مونږ ته راکوی ځکه چه پیغمبران الله تعالیٰ د خواهش د تابعدارئ او د ګمراهئ نه محفوظ کړیدی۔ او دا دلیل دې چه د داود علیه السلام مخکښې او روستنی حالت یو شان وو او په هغه کښې هیڅ قسم تغیر نۀ وو راغلې۔ الله تعالیٰ فرمائی چه مونږ داؤد ته ووئیل چه اې داؤده! مونږ تۀ په زمکه کښې خپل خلیفه جوړ کړې ئې، ددې دپاره چه تۀ خلقو ته د نیکئ حکم وکړې او د بدئ نه ئې منع کړې، او د خپل رب شریعت نافذ کړې، نو تۀ د خلقو ترمینځ په هغه عدل او انصاف سره فیصله کوه چه د

هغې تقاضا د الله تعالیٰ شریعت کوي، او د خپل نفس پیروي مۀ کوه چه د مال او جاه یا د دوستۍ او رشته دارۍ په وجه د عدل او انصاف نه واوړې، که چرې داسې دې وکړل نو تۀ به د الله تعالیٰ د هغۀ لارې نه لرې شې، چه په هغې باندې تللو سره قومونه د دنیا او د آخرت کامیابي حاصلوي، او چه د هغې نه آوړېدل د حاکم او محکوم د ټولو د هلاکت او بربادۍ سبب جوړېږي۔

إِنَّ الَّذِينَ يَضِلُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ : یعني کوم خلق چه په دې دنیا کښې د الله د لارې نه آوړي، هغوئ له به د قیامت په ورځ عذاب ورکړې کیږي، ځکه چه دوئ د الله ملاقات هیر کړې وو، او د ایمان او تقویٰ په ځای ئې د کفر او سرکشۍ ژوند غوره کړې وو۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکي : دا آیتِ کریمه حاکمانو دپاره د الله تعالیٰ د طرفه وصیت دې چه دوئ له د خلقو ترمینځه د الله د نازل کړي شریعت مطابق فیصله کول پکار دي، او د دې نه آوړېدل نۀ دي پکار، ګنې د الله تعالیٰ د شریعت نه به آوړېدلي ګڼلې کیږي، او څوك چه د الله د شریعت نه واوړي او د هغۀ ملاقات هیر کړي، الله هغۀ دپاره د قیامت په ورځ د سخت عذاب دهمکي ورکړې۔

## قصه

منصور بادشاه ته یو درباري ملا راغلو ورته ئې ووېل چه الله تعالیٰ څوك بادشاه کړي نو د هغه نیکۍ لیکلې کیږي او ګناهونه ئې الله نۀ لیکي، نو هغه د یو عالِم نه تپوس وکړو چه دا خبره رشتیا ده؟ هغه ورته ووېل : اے امیر المؤمنین ! هغه خلیفه (بادشاه) چه پیغمبر وي هغه غوره دې او که نفس بادشاه؟ هغه ووېل پیغمبر غوره دې۔ ورته ئې وفرمایل : پیغمبر ته الله تعالیٰ فرمائیلي دي

﴿يَا دَاوُودُ إِنَّا جَعَلْنَاكَ خَلِيفَةً فِي الْأَرْضِ فَاحْكُم بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوَىٰ فَيُضِلَّكَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ﴾ که د خواهش تابعداري دې وکړه نو د نیغې لارې نه به واوړې۔

پیغمبر ته الله تعالیٰ داسې دهمکي ورکوي نو ستا به څه حال وي که چرته د خواهش تابعداري دې وکړې، نو هغه ووېل چه الله تعالیٰ دې دا ملیان تباه کړي چه راځي مونږ ته د دروغو خبرې کوي، مونږ دهوکه کوي۔ او ولید بن عبد الملك ته هم داسې خبره شوې وه۔ دا د درباري چاپلوس ګروه ملیانو کار دې۔

فَيُضِلَّكَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ : د خواهش تابعداري د نیغې لارې نه ګمراه کېدل دي۔ لکه

سورة الاعراف کښې د ملا گمراهي د خواهش تابعدارۍ ذکر ده۔ (وَاتَّبَعَ هَوَاهُ)
بِمَا نَسُوا: هيره باندې خو نيول نهٔ وي، نو دلته د هيرولو نه مراد ترك (پريخودل) دی [بِمَا تَرَكُوا الْإِيْمَانَ وَالْعَمَلَ لِيَوْمِ الْحِسَابِ] پدې وجه چه دوی ايمان او عمل د حساب د ورځې دپاره پريخودو۔

| وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاءَ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا |
|---|
| او نهٔ دی پيدا کړی مونږ آسمان او زمکه او هغه چه په مينځ د دوی کښې دی |
| بَاطِلًا ذٰلِكَ ظَنُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
| باطل۔ (بې فائدې) (بې مقصده)۔ دا گمان د هغه کسانو دې چه کفرئې کړيدې |
| مِنَ النَّارِ ﴿٢٧﴾ أَمْ نَجْعَلُ |
| نو هلاکت دې هغه کسانو لره چه کفرئې کړيدې د اُور نه۔ آيا گرځوو به مونږ |
| الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ |
| هغه کسان چه ايمان ئې راوړيدې او عملونه ئې کړيدی نيك پشان د هغه کسانو |
| كَالْمُفْسِدِيْنَ فِي الْأَرْضِ أَمْ نَجْعَلُ الْمُتَّقِيْنَ كَالْفُجَّارِ ﴿٢٨﴾ |
| چه فسادونه کوی په زمکه کښې، آيا گرځوو به مونږ متقيان پشان د بدکارو۔ |

**تفسير:** ربط

دا د مخکښې آيت سره متعلق دې۔ د حساب ورځ يقينی راروانه ده ځکه چه الله تعالیٰ دا کائنات عبث او بې مقصده نهٔ دی پيدا کړی۔ بلکه په دې وجه ئې پيدا کړی چه خلق د هغهٔ په وحدانيت ايمان راوړی او صرف د هغهٔ عبادت وکړی، ليکن د مکې کافران او نور کافران په دې باطل گمان کښې مبتلا دی چه د دویٔ په پيدائش کښې هيڅ حکمت او مصلحت نشته۔

پدې دوه آيتونو کښې الله تعالیٰ اثبات د آخرت په يوه ناشنا طريقه سره کړيدې۔
بَاطِلًا: ١- أَيْ مُهْمَلًا لَا يُؤْمَرُ وَلَا يُنْهٰى۔ مُهمل، چه نهٔ به پکښې امر وی او نهٔ نهی۔ (حلال اوحرام به نهٔ وی) ٢- لَا يَدُلُّ عَلَى اللّٰهِ وَلَا عَلٰى إِثْبَاتِ الْآخِرَةِ ۔ چه په الله تعالیٰ او د

آخرت په اثبات بـه دلیـل نهٔ وی۔ نهٔ، بلکه دا الله تعالیٰ د یو دلیل دپاره پیدا کړیدی چه خلك پرے الله تعالیٰ او آخرت وپیژنی۔

دلتـه د باطل معنیٰ دا ده چه عبث نهٔ دی پیدا چه [لَا عِقَابَ وَلَا ثَوَابَ وَلَا اَمْرَ وَلَا نَهْیَ] چه نـهٔ سزا شتـه او نـهٔ ثـواب او نهٔ امر شته او نهٔ نهی۔ بیا خو ددے مطلب دا شو چه الله تـعـالیٰ یـو بیـکاره کار کړیدے چه آسمان او زمکه ئے پیدا کړل او اخوا نور هیڅ نشته۔ (والعیاذ بالله)

ذٰلِكَ ظَنُّ الَّذِیْنَ: یـعـنـی دا خو د کافرو گمان دے چه د آسمان او زمکے پیدائش عبث گنړی، نو آخرت چه څوك نهٔ منی هغه په الله تعالیٰ بدگمانه دے۔

فَوَیْلٌ: یـعـنـی د داسے کافرانو دپاره به د اُوسیدو ځای د جهنم هغه کنده وی چه هغے ته «وَیْلٌ» وائی۔ لنډ مطلب ئے دا دے چه اے کافرو! تاسو تباه شویٔ د اُور د وجه نهٔ چه هغه به ستاسو ځای د وسیدو وی۔

اَمْ نَجْعَلُ الَّذِیْنَ : دا دویـم دلیـل دے چـه د الله تعالیٰ په صفاتو کښ یو صفت دا دے چه هغه جمع بین المتناقضین نهٔ کوی لکه څنگه چه فرق بین المتماثلین نهٔ کوی۔ یعنی دوه کسـان چـه د یـو بـل ضـد وی هـغـه دواړه پـه جزا او سزا کښ یو شان کوی نهٔ، او دوه کسـان چـه یـو شان عـمـل کـوی نو الله تعالیٰ ئے په جزاء او سزا کښ جدا کوی نهٔ، تور او سپیـن یـو ځای کـوی نـهٔ، او دوه سپین جدا کوی نهٔ۔ نو دنیا کښ مؤمن او غیر مؤمن، متقیان او مفسدان جدا جدا دی، نو که آخرت رانشی نو ددے مطلب به دا شی چه څوك ایـمـان راوړی او څـوك کفر کوی دا دواړه یو شان دی، او مصلح او مفسِد یو شے دے۔ او دا خـو جمع بین المتناقضین ده، او دا ے انصافی او ظلم دے چه الله تعالیٰ ددے نه مُنَزَّه دے۔ ددے مـطـلـب خـو بـه دا شـی چه ایمان او کفر او تقویٰ او فساد الله تعالیٰ ته یو شے ښکاره کیږی (والعیاذ بالله) او دا خو ښکاره باطله ده۔

یـو تـن د الله تـعـالیٰ د حـدودو سخت پابند دے چه د شپے او د ورځے عبادتونه کوی، او د گناهونو نه ځان ساتی، او بل نافرمان دے، د حلالو او حرامو او فساد او غیر فساد پرواه نهٔ کـوی، او دواړه ډے پـه دنیـا کښ یو شان ژوند تیروی، او مزے دے کوی، او د دوی دپاره ډے جزاء او سزا نهٔ وی۔

الله تـعـالیٰ ددے دواړو تـرمینـځ ډیـر فرق کوی د وجه د کمال د هغهٔ نه، او په مونږ کښ کمال کم دے پدے وجه مونږ د ایمان او د کفر او نیکیٔ او د گناه فرق کوو لیکن لږ شان، په

نیکئ بیحده نهٔ خوشحالیږو او په ګناه یے حده نهٔ خفه کیږو. او د الله تعالیٰ ذات او صفات کامل دی، نو ددے وجه نه هغهٔ ته ایمان او نیك عمل په دومره اعلیٰ پیمانه کښې ښکاره کیږی چه ابدی ابدی دوستی ورسره اچوی، او همیشه جنتونو ته ئے داخلوی، او د کفر په وجه همیشه جهنم ورکوی.

نو هرکله چه د ایمان او د کفر، او د نیك عمل او د فساد، او د ظالم او د مظلوم فرق دے نو داسے ورځ به هم راځی چه د دواړو په بدلو کښې به فرق کیږی.

| كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ اِلَيْكَ مُبٰرَكٌ لِّيَدَّبَّرُوْا |
|---|
| دا کتاب دے نازل کړیدے مونږ تا ته، د برکتونو نه ډك دے، دے دپاره چه دوی سوچ |
| اٰيٰتِهٖ وَلِيَتَذَكَّرَ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿۲۹﴾ |
| اُوکړی په آیتونو ددے کښې او دے دپاره چه نصیحت واخلی خاوندان د عقلونو. |

**تفسیر:** اُوس قرآن کریم ته ترغیب ورکوی. یعنی قرآن کریم د حکمتونو خزانه ده، او دنیوی او اخروی ښیګړے انسان ته وربښائی، لکه الله تعالیٰ په دے آیتِ کریمه کښې بیان کړی چه دا قرآن یو مبارك کتاب دے، چه دا مونږ په خپل رسول ﷺ دے دپاره نازل کړے چه خلق ددے په آیتونو کښې غور او فکر وکړی، ددے په رڼاګانو خپل عقلونه او زړونه روښانه کړی، په الله تعالیٰ ایمان راوړی او نیك عمل وکړی، دے دپاره چه د دین او دنیا سعادت حاصل کړی، او دے دپاره چه عقل او هوش والا په دے کښې د موجود نصیحتونو نه فائده پورته کړی.

لِّيَدَّبَّرُوْا: دلته ئے په تدبر حکم وکړو ځکه چه پدے سورت کښې ډیر زیات رازونه دی چه په سوچ سره معلومیږی. قرآن څنګه مبارك دے دا خبره مخکښې ذکر شویده. او د تدبر پنځه طریقے په سورة النساء کښې ذکر شویدی، بیرته ورته رجوع بنه ده.

| وَوَهَبْنَا لِدَاوٗدَ سُلَيْمٰنَ نِعْمَ الْعَبْدُ اِنَّهٗٓ اَوَّابٌ ﴿۳۰﴾ |
|---|
| او اُوبخلو مونږ داود ؑ ته سلیمان ؑ، ښهٔ بنده وو دا، یقیناً دے راګرځیدونکے وو |
| اِذْ عُرِضَ عَلَيْهِ بِالْعَشِيِّ الصّٰفِنٰتُ |
| (الله ته). کله چه پیش کړے شو په دهٔ باندے په مازیګری کښې په درے خپو باندے |

الْجِيَادُ ﴿۳۱﴾ فَقَالَ إِنِّيٓ أَحْبَبْتُ حُبَّ الْخَيْرِ عَنْ

ولاړ کړه اسونه. نو اُوَوئیل هغهٔ یقیناً زهٔ مینه کوم مینه د مال (اسونو) سره د وجے د

ذِكْرِ رَبِّيْ حَتّٰى تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ ﴿۳۲﴾ رُدُّوْهَا عَلَيَّ

یادولو د رب زما نه تردے چه پټ شو په پرده کښ. راواپس ئے کړئ په ما باندے

فَطَفِقَ مَسْحًا بِالسُّوْقِ وَالْأَعْنَاقِ ﴿۳۳﴾

نو شروع شو په لاس رابنکلو په پونډو او ختونو (د اسونو باندے).

**تفسیر**: بـلـه واقـعـه، د سلیمان علیه السلام ده چـه پـدے کـښ هم غرض دا دے چه (اِنَّهٗ اَوَّابٌ) انبیاء عـلیهـم السـلام ډیر ښه بندګان وی، او الله ته ډیر راواپس کیدونکی وی، غفلت نهٔ کـوی، نـو دے کـښ ښـکلے صفات د سلیمان علیه السلام د هـغـه د اقتداء دپاره ذکر کیږی. بیا د هغهٔ ابتلاء ذکر کوی دپاره د رد په مشرکانو چه په چا باندے ابتلاء راځی، نو هغه اِلٰه او معبود نشی کیدے اګرکه نبی هم وی. او اشاره ده چه په انبیاء علیهم السلام باندے کله نـا کله غفلت راځی خو بیا د مخکښ حالت نه هم ډیر زیات ښه کیږی. نو د انسان کمال دا دے چه د غفلت نه روستو الله تعالیٰ ته زر راواپس شی.

وَوَهَبْنَا: یعنی په داؤد علیه السلام باندے د الله تعالیٰ یو انعام دا هم وو چه هغهٔ له ئے د سلیمان علیه السلام غـوننـه خـوی ورکـړے وو، چه د هغهٔ پښان نبی وو، لکه الله تعالیٰ د سورتِ نمل په (۱۶) آیت کښ فرمائیلی: ﴿ وَوَرِثَ سُلَيْمَانُ دَاوُدَ ﴾ (سـلیمان په نبوت کښ د خپل پلار داؤد وارث جوړ شو). د سلیمان علیه السلام ذکـر خـصـوصـی طور سره د هغهٔ د نبی کیدو د وجے نه شوے، ګنے ددهٔ نه علاوه د داؤد علیه السلام نور ځامن هم وو.

نِعْمَ الْعَبْدُ: الله تعالیٰ د سلیمان علیه السلام په باره کښ فرمائی چه دا د خپل رب ډیر ښهٔ بنده وو، د الله تـعـالیٰ بـنـدګی او طـاعـت کـونکے وو. او بله دا چه دا به د الله تعالیٰ په ذکر او د مغفرت په غوښتنه کښ ډیر زیات مشغول وو.

اِذْ عُرِضَ: دا دریـم صـفت دے، یعنی د جهاد فی سبیل الله او د رباط فی سبیل الله سره مـحبت کـول یعنی د جهاد دپاره اسونه ساتل او د هغے خدمت کول سبب د ډیر لوی اجر دے. او پدے کښ په سلیمان علیه السلام باندے امـتحان ذکر کوی.

زمـونږ رسول الله ﷺ بـه هم د سلیمان علیه السلام پـه تـابـعـدارئ کښ اسونه زغلول او د هغے

تربیت به ئے کولو۔ د هغهٔ د هر عمل تابعداری به ئے کوله۔
إِذْ عُرِضَ: دا متعلق دے (اُذْكُرْ) پورے۔ یعنی رایاد کړه هغه وخت۔
الصَّافِنَاتُ: جمع د صَافِنٌ ده، په آرام ولاړ۔ یا په دریے خپو ولاړ۔ او دا ئے د مستئ او کرهٔ والی علامه ده۔ ابو عبیدهٔ وائی: صافن هغه اس دے چه په دواړه لاسونه رایوځای کړی او برابر ئے کړی۔ کوم چه خپل سُم باندے ودریږی هغے ته متخیم وائی۔
الْجِيَادُ: جمع د جَوَادُ ده، کرهٔ اس تـه وئیلے شی چه تیزے منډے والا وی، مذکر وی که مؤنث۔ یا د جَیّد نـه دے، اُوږدو څټـونـو والا تـه وائی۔ دواړه صفتونه ئے ورله راوړل ځکه چه دا دواړه کمـالی صفات د آسونو دی، یعنی کله چه ولاړ وی نو په خپلو ځایونو کښې په آرام ولاړ وی۔ او کـلـه چـه مـنډه وهـی نـو تیز وی، او په منډه کښې سپک وی۔ وئیلے کیـږی چـه سـلیمان علیه السلام د دِمَشق او نـصیبین والـو سره غزا وکړه نو د هغوی نه ئے زر آسونه ونیول۔
بـعـض وائـی چـه دا ددهٔ پـلار د عمالقه ؤ نه نیولی وو، او دهٔ ته په میراث کښې پاتے شوی وو۔ او د یو صحیح حدیث نه معلومیږی چه ددے اسونو وزرے هم وے۔
أَحْبَبْتُ حُبَّ الْخَيْرِ: حُبَّ الْخَيْرِ مفعول دے د اَحْبَبْتُ دپاره یعنی ما غوره کړه مینه د مـال سره د ذکـر د رب نـه۔ یـا مـفعول مطلق دے۔ او دا خبره ئے د افسوس په طریقه وکړه لکه د مریم مور چه وئیلی وو ﴿رَبِّ اِنِّیْ وَضَعْتُهَا اُنْثٰی﴾ (العمران: ۳۶) (ابن عاشورؒ)
الْخَيْرِ: دا آسونو ته وئیلے شی لکه حدیث کښې دی [اَلْخَیْلُ مَعْقُوْدٌ فِیْ نَوَاصِیْهَا الْخَیْرُ] د اسونو په تندو کښې خیر تړلے شویدے۔ نو گویا که دا خپله خیر دے۔
❁ فـراءؒ وائـی چه عرب په خَیل لفظ کښې تصرف کوی او خیر ورته وائی۔ یعنی لام او راء په یو بل باندے بدلوی۔
ابن عباس رضی الله عنه وائی د خیر نه مراد مال دے۔
مَسْحًا: په عـربـئ ژبه کښې د مسح یوه معنیٰ د پاکولو ده۔ او کله په معنیٰ د پریکولو سره هم د عربو په اشعارو کښې راغلے دے۔

## آیت کښې دوه تفسیرونه

بیـا پدے آیت کښې دوه تفسیره دی (۱) یو دا چه اسونو له ئے په مازیگر کښې منډه ورکړه نو بیا ئے خلکو ته عذر وکړو (لکه چه د ډیرو خلکو دا گمان وی چه دا خو نبی دے او لاړو دنیـا پـرست شـو، په اسـونـو او د هـغـے پـه خـدمـت کښې ئے هسے وخت تیر شو لکه دا د

صوفیاؤ خبرے دی) نو سلیمان ؑ دے خلکو ته وویل چه زۀ د اسونو سره مینه کوم ﴿عَنْ ذِكْرِ رَبِّيْ﴾ عَنْ اجلیه دے یعنی د وجه د ذکر د رب زما، یعنی د الله د وجه نه ورسره مینه کوم ځکه چه پدے باندے جهاد کیږی، او د الله تعالیٰ بندګی پرے کیږی چه دا د الله تعالیٰ لوی ذکر دے۔

حَتّٰى تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ: تردے چه اسونه په پرده کښې پټ شو، یعنی په ګرد او غبار کښې یو طرف ته لاړل نو بیائے حکم وکړو چه دا ما باندے بیرته راواپس کړئ نو هغوی چه بیرته راغلل نو دے شروع شو چه د هغوی په څټونو او پونډوئے لاسونه راښکل د مینے د هغے نه، لکه دے سره اس تازه کیږی او خوشحالیږی۔ (رسول الله ﷺ به هم د بیت المال اسونه داغل او د هغے خدمت به ئے کولو)

امام رازیؒ ددے لاس راښکلو درے فوائد بیان کړیدی، یو دا چه دے ته ئے شرافت ورکولو او دائے غوره ګنړل ځکه چه دا د دشمنانو په دفع کولو کښې بهترین مددګار دی۔

دویم پدے کښې اشاره وه چه سلیمان ؑ داسے مضبوط سیاست او حکومت چلوی چه خپله کارونو ته وړاندے کیږی۔ دریم دا چه هغه د اسونو په احوالو او مرضونو او عیبونو باندے د بل چا نه بنه پو هیدو نو لاسونه ئے پرے راښکل دے دپاره چه د هغے مرضونه معلوم کړی۔

ددے تفسیر حاصل دا دے چه اسونه ئے د جهاد دپاره زغلول او د هغے سره ئے مینه کوله او دا د الله تعالیٰ دپاره مینه وه۔ نو دے کښې دعوت دا شو چه بنده له پکار دی چه د جهاد په کارونو کښې ځان مشغول کړی۔ او دا اسونه ساتل د پیغمبرانو سنت دی، او د بیت المال د مال حفاظت پکار دے۔ امام فخر الدین رازیؒ دا تفسیر غوره ګنړلے، او لیکلی ئے دی چه د قرآن الفاظ د همدے تفسیر سره موافق دی۔

صاحب د محاسن التنزیل لیکلی چه د رازیؒ نه مخکښې حافظ ابن حزمؒ همدا تفسیر بیان کړے، او د اسونو وژل ئے منګهړته قیصه ګنړلے۔ مګر دا تفسیر لږ مرجوح دے۔

(۲) راجح تفسیر دا دے چه د عَشِي لفظ د زوال نه تر غروب پورے وخت ته وئیلے شی، او عشاء د غروب د نمر نه او د شفق نه روستو ته وئیلے کیږی۔ نو سلیمان ؑ د مازیګر په وخت اسونه زغلول او پدے باندے مصروف وو تردے چه د هغهٔ نه د مازیګر مونځ قضاء شو۔ نو هغه وویل چه دا خو په مونږ باندے غفلت راغلو [أَيْ إِنِّيْ أَحْبَبْتُ حُبَّ الْخَيْرِ غَفَلَنِيْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّيْ] ما مینه وکړه مینه د مال سره چه زهٔ ئے د خپل رب د ذکر

(مونځ) نه غافل کړم تردے چه نمر پرېوتو په پرده کښې. نو په تَوَارَتْ کښې ضمیر شمس یعنی نمر ته راجع دے چه هغه د (عَشِیِّ) لفظ نه معلومیږی. بیا ئے خادمانو ته ووېل چه ﴿رُدُّوْهَا عَلَيَّ﴾ دا آسونه ماته راواپس کړئ نو شروع شو چه د هغوی څټونه او پنډئ په توره باندے وهلے ځکه دا سبب د مونځ د فوت کیدو وګرځیدل.

دلته صرف دا یو اشکال دے چه مونځ ددهٔ نه قضاء شو نو اسونو څه ګناه کړیده چه هغه وژنی؟ نو جواب دا دے چه دا ددهٔ کمال دے چه د کوم مال په وجه معمولی شان غفلت راغے نو هغه ئے د ځان نه جدا کړو. لکه دا د کاملانو طریقه ده چه کوم شے ئے د الله تعالیٰ نه غافل کوی، هغوی دغه شے د ځان نه لرے کوی، که ښځه وی، که مال وی.

زجاجؒ وائی : دا کار ئے پدے وجه وکړو چه هغه له الله تعالیٰ اجازه ورکړے وه، او زمونږ په شریعت کښې دا منع دی، نو پدے کښې هیڅ استبعاد نشته. (یعنی دا د بیت المال مال وو او سلیمان علیه السلام د بیت المال مشر دے په هغے کښې تصرف کولے شی او کیدے شی چه د هغے نه ئے نوره فائده هم اخستی وی، مسکینانو ته ئے د هغے غوښه ورکړی وی، په پیریانو به ئے خوړلی وی، نو ضائع کار ئے نهٔ دے کړے) او دے ته د الله تعالیٰ دپاره غیرت کول وائی. او حسن بصریؒ وائی چه سلیمان علیه السلام د الله دپاره غضب کړیدے. آه.

لکه مونږ دپاره حیوانات ذبح کول جائز دی، دارنګه رسول الله ﷺ د اختر په ورځ د خپل ځان او د اهل د طرفنه (٦٣) اُوښان ذبح کړل. او ددے مثال دادے لکه د الله تعالیٰ دپاره د هجرت کولو په وخت انسان خپل قیمتی مال کافر ته پریدی، یا هغه ضائع کړی نو دا جائز ده. او ددے نور هم ډیر مثالونه دی چه د دین د خاطره انسان خپل مال ضائع کړی. او بغیر د صحیح غرض نه مال ضائع کول منع دی. لکه رسول الله ﷺ هغه ګتوئ وارولے چه د غنیمت د تقسیم نه مخکښې په اُور باندے پخے شوے وے.

او ما د یو مراهق ماشوم نه بطور مزاح تپوس وکړو چه هغه د چرګانو والا سره شاګرد وو، چه تا خو ډیر روحونه ویستل، ډیر آزار دے وګټلو، هغه ډیر خکلے جواب راکړو چه زهٔ ئے په تعجب کښې واچولم وے وئیل چه دے کښې خو ثواب دے، ځکه چه په هر چرګ باندے د ذبح په وخت کښې بسم الله الله اکبر وئیل کیږی. (ابوزهیر)

صاحب د فتح البیان او شوکانیؒ وائی : ددے بل مثال دا دے چه بعض صحابه کرامؓ د مُحْتَکِر (ذخیره اندوزی کونکی) طعام سیزلے دے.

او دا تفسیر د علی رضی الله عنه، ابن عباس رضی الله عنه (بناء په یو روایت) د فراءؒ، زجاجؒ، حسن بصریؒ،

ابو عبیدةؒ) دے۔

او دا تفسیر علامه شوکانیؒ او صاحب د فتح البیان غوره کړیدے، او اول تفسیر ته ئے بارد (ضعیف) تفسیر وئیلے دے، او دا ئے وئیلی دی چه ددے تفسیر نه یو رکیک (ضعیف) تاویل او بعیدے توجیه ته د عدول هیڅ وجه نشته۔

د (رُدُّوْهَا عَلَیَّ) مطلب دا نهٔ دے چه الله تعالیٰ نه ئے دعا وکړه چه ما ته نمر راواپس کړه۔ بلکه دا حکم دے خپلو خادمانو ته په راواپس کولو د اسونو باندے۔

| وَلَقَدْ فَتَنَّا سُلَيْمَانَ وَأَلْقَيْنَا |
|---|
| او یقیناً امتحان کړے وو مونږ په سلیمان (علیه السلام) باندے او اچولے وو مونږ |
| عَلَىٰ كُرْسِيِّهِ جَسَدًا ثُمَّ أَنَابَ ﴿٣٤﴾ قَالَ رَبِّ |
| په کرسئ د هغهٔ باندے یو جوسه بیا هغه راوګرځیدو۔ (الله ته)۔ ووئیل هغهٔ اے ربه |
| اغْفِرْ لِي وَهَبْ لِي مُلْكًا لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ |
| زما بخنه اُوکړه ما ته او اُوبخښه ما ته بادشاهی چه مناسب نهٔ وی د هیڅ یو تن دپاره |
| مِنْ بَعْدِي إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ ﴿٣٥﴾ فَسَخَّرْنَا لَهُ الرِّيحَ |
| روستو زما نه یقیناً تهٔ بخښش ورکونکے ئے۔ نو تابع کړه مونږ هغه لره هوا |
| تَجْرِي بِأَمْرِهِ رُخَاءً حَيْثُ أَصَابَ ﴿٣٦﴾ |
| چه روانه وه په حکم د هغهٔ نرمه، کوم ځائے ته به چه دے تللو۔ (هغه رسیدل غوختل) |
| وَالشَّيَاطِينَ كُلَّ بَنَّاءٍ وَغَوَّاصٍ ﴿٣٧﴾ وَآخَرِينَ |
| او شیطانان هر آبادی جوړونکے او غوپے وهونکے۔ او نور |
| مُقَرَّنِينَ فِي الْأَصْفَادِ ﴿٣٨﴾ هَٰذَا عَطَاؤُنَا فَامْنُنْ |
| چه یو ځائے به تړلے شوی وو په زنځیرونو کښ۔ دا بخښش زمونږ دے نو احسان کوه |
| أَوْ أَمْسِكْ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٣٩﴾ وَإِنَّ لَهُ عِنْدَنَا لَزُلْفَىٰ |
| یا ئے بند ساته په غیر د حساب نه۔ او یقیناً دهٔ لره زمونږ سره خامخا نزدے والے |

وَحُسْنَ مَآبٍ ﴿٤٠﴾

او ښائسته ځائے د واپسئ دے۔

**تفسیر**: پدے کښې په سلیمان ﷺ باندے بل امتحان او معمولی شان غفلت ذکر کوی، او بیا د هغهٔ الله تعالیٰ ته راګرځیدل او د هغهٔ نه سوال کول ذکر دی۔ او پدے کښې هم د مخکښې په شان مونږ ته دا دعوت دے چه که په تاسو غفلت راشي، نو الله تعالیٰ ته زر راواپس کیږئ او د انبیاء علیهم السلام په نقش قدم باندے روان شئ، او د مشرکانو په شان مهٔ جوړیږئ چه همیشه په غفلت کښې پراتهٔ وی، لکه دا د سورت موضوع ده، پدے وجه ئے داسے واقعات پکښې راوړیدی۔ او دلته هم الله تعالیٰ د سلیمان ﷺ ددے امتحان تفصیل نهٔ دے کړے، او نهٔ د رسول الله ﷺ نه ددے تفصیل نقل دے ځکه چه دلته هم مقصودی لفظ (ثُمَّ اَنَابَ) دے، چه الله تعالیٰ ته ئے رجوع کړیده۔

فَتَنَّا: فتنه د هر چا د هغهٔ د شان مناسب وی، د انبیاؤ علیهم السلام فتنه په حکم کښې اجتهادی خطائی، یا په هغوی باندے سهو او نسیان راتلل دی، او دا ګناه نهٔ ده لیکن د "حَسَنَاتُ الْاَبْرَارِ سَيِّئَاتُ الْمُقَرَّبِيْنَ" د قانون په بناء دا سبب د خفګان د انبیاؤ دپاره ګرځی چه هسے نهٔ چه الله تعالیٰ رانه خفه شی۔ او کله فتنه دا وی چه په هغه باندے یو مصیبت راولی، د هغهٔ صبر خلکو ته ښکاره کوی۔

## د سلیمان علیه السلام فتنه څه وه؟

مفسرینو پدے کښې مختلفے قصے لیکلی دی چه یوه د هغے نه منکرت قصه ده:

(۱) سلیمان ﷺ جهاد ته لاړو، یوه جزیره ئے فتح کړه په هغے کښې یو بادشاه وو، د هغه لور ئے ونیوله، هغه ډیره ښائسته وه چه جراده نوم ئے وو، د هغے سره ئے ډیره مینه وه تردے چه هغے ورته وویل چه زهٔ هر وخت خفه یم، ما دپاره زما د پلار بت جوړ کړه نو هغه ئے ورله جوړ کړو، بیا هغے د هغه بت عبادت شروع کړو، بیا د سلیمان ﷺ یوه ګوتمه وه چه په هغے به ئے بادشاهی کوله، هغه ئے خپلے ښځے ته ګوتمه ورکړه نو شیطان راغلو د هغے نه ئے واخسته، او دریاب ته ئے ګوزار کړه چه د سلیمان بادشاهی ختمه شی نو شیطان د سلیمان ﷺ په شکل راغے او په کرسئ باندے کیناستو (نو د

جسد نه مراد شیطان دے) او یهودو ورسره دا خبره هم زیاتی کړیده چه د سلیمان علیه السلام (العیاذ بالله) بیبیانو ته هم راتګ کولو، او پدے طریقه ئے بادشاهی کوله او سلیمان علیه السلام لاړو د دریاب په غاړه د یو ښکاری سره مزدوری شروع کړه، مهیان به ئے نیول نو پدے کښې ئے یو ماهی ونیولو چه هغه ئے کولاؤ کړو نو ګوتمه پکښې راوختله نو بیرته سلیمان علیه السلام ته بادشاهی راواپس شوه، او پیریان او شیطانان ورته تابع شو، او دغه شیطان یوے جزیرے ته وتښتیدو نو سلیمان علیه السلام د هغهٔ په طلب کښې خلك ولیږل هغه نهٔ راتللو ډیر سرکشه وو، آخر دا چه د خوب په حالت کښې ئے ترے یوه ګوتمئ د قلاتی تاؤ کړه او په هغے کښې ئے راوستو بیا سلیمان علیه السلام هغه دپاره یو سورنګ جوړ کړو او هغه ئے پکښې وتړلو او بیا ئے دریاب ته ګوزار کړو. حافظ ابن کثیرؒ، قرطبیؒ، رازیؒ، شربینیؒ او ابوحیانؒ په خپلو تفسیرو نو کښې پدے باندے ردونه کړیدی. ابوحیانؒ په ((البحر المحیط)) کښې لیکی چه مفسرینو په باره د فتنه او جسد کښې داسے اقوال نقل کړیدی چه د انبیاء علیهم السلام براءت د هغے نه واجب دے، د هغے نقل کول (بغیر د رد کولو نه) مونږ له ناروا دی، او دا د یهودیانو او زندیقانو وضع کړے شوے خبری دی.

(۲) او ډیره ناشنا پکښې دا ده چه د سلیمان علیه السلام یو خوی پیدا شو، نو په هغه باندے د خلکو نه ویریدو چه قتل به ئے کړی نو هغهٔ ئے هوا ته وسپارلو چه هغهٔ ئے وساتی او هغے ته د سپینے وریځے اُوبه د پیو په ځای ورکړی نو لږ وخت لا تیر شوے نهٔ وو چه مرګ پرے راغے او هوا د سلیمان علیه السلام په کرسئ باندے راګوزار کړو دے دپاره چه هغهٔ ته پته ولګی چه مرګ به خامخا راځی ددے نه خلاصے نشته. او دا قصه د خلکو د خیالاتو مطابق مَعَرِیّ شاعر په خپل شعر کښې داسے ذکر کړیده:

| خَافَ غَدْرَ الْاَنَامِ فَاسْتَوْدَعَ الرِّیْحَ | ❁ | سَلِیْلًا تَغْذُوْهُ دُرُّ الْعِهَادِ |
|---|---|---|
| وَتَوَخّٰی النَّحَالَةَ وَقَدْ اَیْقَنَ | ❁ | اَنَّ الْحِمَامَ بِالْمِرْصَادِ |
| فَرَمَتْهُ بِهٖ عَلٰی جَانِبِ الْکُرْسِیِّ | ❁ | اُمُّ اللُّهَیْمِ اُخْتُ النَّآدِ |

دا هم هسے ډکوسله ده او د پیغمبر په شان کښې ګستاخی ده.

(۳) پدے کښې راجح دا ده چه کیدے شی چه دا یو حدیث کښې راغلے قصے ته اشاره وی رسول الله ﷺ فرمائی: سلیمان علیه السلام وئیلی وو [لَاَطُوْفَنَّ اللَّیْلَةَ عَلٰی مِائَةِ امْرَاَةٍ کُلُّهُنَّ یَلِدْنَ فَارِسًا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ] زهٔ به بیګاله شپه د خپلو سلو بیبیانو سره ملاویږم او هر یو به یو

بچې راوړي چه د الله تعالیٰ په لاره کښې به مجاهد وي. (یعنی سل مجاهدین پیدا کول غواړم) نو ملائك ورته ووېل چه ان شاء الله ووایه نو دهغه نه د زیات مصروفیت د وجه نه ان شاء الله هیره شوه (لکه دا تجربه ده چه ذهن کله په یو کار کښې سخت مصروف وي نو بیا د خلکو په خبرو هم نهٔ پو هیږي) نو په تولو وګرځیدو نو یوې بي بي هم بچې رانهٔ وړو سوئ دیوې نه چه هغې نیمائي انسان راوړو. رسول الله ﷺ فرمائي :

قسم په هغه الله چه د محمد نفس د هغهٔ په لاس کښې دے

[لَوْ قَالَ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ لَجَاهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فُرْسَانًا اَجْمَعُوْنَ] که هغهٔ ان شاء الله وئیلے وے نو خامخا ددهٔ به بچي پیدا شوي وے چه ټول به د الله تعالیٰ په لاره کښې شهسواران وے.

(بخاری باب من طلب الولد للجهاد رقم : ۲۸۱۹)

کله چه دا نیم ماشوم پیدا شو نو دائي ورله کرسي ته راوړو او د هغهٔ په تخت باندے ئې کوزار کړو. نو د فتنے نه مراد دا شو چه (خَيْبَةُ اَمَلِهٖ وَمُخَالَفَةُ مَا اَبْلَغَهٗ صَاحِبُهٗ] ددهٔ امید سر ته ونهٔ رسیدو او د ملائك د خبرے مخالفت ترے په هیره سره وشو) لیکن پدے تفسیر کښې هم دا یقین نشته چه دا ددے آیت مصداق دے بلکه خبره په احتمال باندے بناء ده.

ابن عاشورؒ لیکي چه د رسول الله ﷺ په کلام کښې دا نشته چه دا حدیث تفسیر د دغه آیت دے، او نهٔ امام بخاريؒ او ترمذيؒ دا حدیث د خپلو کتابونو په کتاب التفسیر کښې ذکر کړیدے او دا یقین هم نشته چه دغه نیمائي انسان چه دغه ښځې راوړے وو ژوندے وو، او نهٔ دا خبره په حدیث کښې شته چه دا ورته دائي راوړو او په کرسئ ئې ورته واچولو. او دا آیت پدے حدیث باندے تطبیق کول تکلف دے. (التنویر والتحریر ۲۳/۱۵۶)

پدے حدیث باندے دا اشکال نهٔ کیږي چه یو تن څنګه په یوه شپه کښې سلو بیبیانو ته نزدے شي. **جواب** دا دے چه د انبیاء علیهم السلام طاقتونه به په خپل ځان نهٔ قیاس کوي، هغوی ته الله تعالیٰ دا طاقت ورکړیدے او احادیث د رسول الله ﷺ په خپل عقل باندے تلل، او بیا هغه رد کول لوی ظلم دے. لکه بعض ناپوهه عقل پرست خلك د یو صحیح حدیث د بخاري نه په انکار کښې وائي چه (زهٔ څنګه هغه پیغمبر ومنم چه په یوه شپه کښې نهه بیبیانو ته نزدے کیږي) دا د رسول الله ﷺ د صحیح حدیث نه انکار دے. دویم جواب دا دے چه ددے روایت دا مطلب نهٔ دے چه په یوه شپه کښې به تولو بیبیانو ته نزدے کیږم بلکه د سلیمان ؑ مطلب دا وو چه زهٔ به بیګاه شپے نه نزدیکت شروع کوم مثلاً څه به نن شپه او څه صبا له او څه بله شپه او دغسے نورے شپے او ددے

نه به کال پس بچی پیدا کیږی.

نو دے کښې به دا اشاره وی چه سلیمان علیه السلام باندے لږ غفلت راغلو چه ان شاء الله ترے هیره شوه نو د ډیر خیر نه محروم شو لکه چه د رسول الله ﷺ نه ان شاء الله هیره شوه، نو ډیره موده وحی بنده شوه او پریشانه شو. نو وګوره چه نبی ته هم الله تعالیٰ کله نا کله تنبیه ورکوی څکه چه مرتبه ئے ډیره اُوچته وی لیکن د انبیاء علیهم السلام کمال دا دے چه الله تعالیٰ ته زر رجوع کوی، نو پدے کښې مونږ ته دعوت دے چه د الله تعالیٰ نه غفلت ونکړئ ګنے پریشانه به شئ.

(٤) بعض علماؤ دا هم وئیلی دی چه ددے جسد نه د سلیمان علیه السلام خپل بدن مراد دے. هغه دا چه سلیمان علیه السلام باندے ډیره سخته بیماری راغلے وه چه بدن ئے ورله ډیر زیات خوار کړے وو، نو په کرسئ به چه د فیصلو دپاره ناست وو نو داسے وو لکه یو بدن بغیر د روح نه. نو الله تعالیٰ پرے امتحان راوستے وو په مرض سره. بیا هغه الله تعالیٰ ته رجوع وکړه او د الله تعالیٰ نه ئے بخنه او استغفارونه وکړل او دعاء ئے وکړه نو الله تعالیٰ ورله درجات پورته کړل، او نور عوضونه ئے ورکړل چه هواء او شیطانان ئے تابع شو. دا خبره تفسیر قرطبی هم لیکلے چه کیدے شی چه دا امتحان وی.

(٥) صاحب د تدبر قرآن (جناب امین احسن اصلاحی) وائی: دا امکان هم شته چه د سلیمان علیه السلام په بادشاهئ کښې خینو علاقو باندے کافرانو حمله کړے وه، او بعض علاقے ترے نیولے شوے وے نو پدے وجه سخت خفه وو چه کافران راغلل او مونږ نه ئے علاقے ونیولے نو د خفګان په حالت کښې په کرسئ ناست وو نو الله تعالیٰ پرے امتحان وکړو په غلبه د کافرو، نو معنیٰ دا ده چه ما واچولو دهٔ په کرسئ باندے یو بدن چه دهٔ بدن دے، بیا هغه الله تعالیٰ ته رجوع وکړه، او دا ئے وویل چه زمونږ د تقصیر د وجه نه کافران غالبه کیږی، الله تعالیٰ ته توبه او استغفار کولو سره الله تعالیٰ هغهٔ ته بیرته غلبه ورکړه. آه. دا احتمال هم شته، مګر یقین پرے نشته. چونکه دلته د سلیمان علیه السلام انابت ذکر کول مقصود دی نو څکه ئے هغه امتحان او جسد نهٔ دے ذکر کړے.

اولنئ دوه واقعے سو چه غلطے دی.

قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي: استغفار او طلب د مغفرت مستلزم ګناه لره نهٔ وی چه ګنے هغه ګناه کړیده، نو څکه بخنه غواړی، نهٔ، بلکه دا د الله تعالیٰ حق دے چه بنده به ترے بخنه غواړی، دارنګه کله د بنده د غفلت او د تقصیر د وجه نه هم بخنه غوښتلے کیږی، رسول

الله ﷺ به په ورځ کښې اويا يا سل کرته بخنه غوښته، دا د الله بندګي ده.
وَهَبْ لِيْ: يعنی ما ته داسې بادشاهي راکړه چه آينده کښې ئې چا ته نۀ ورکوې، داسې کامله بادشاهي راکړه. بادشاهي ئې ولې غوښته؟ لِتَنْفِيْذِ اَحْكَامِ الشَّرْعِ. دې دپاره چه د الله تعالیٰ احکام نافذ کړي. او ﴿لَا يَنْبَغِيْ لِاَحَدٍ مِّنْ بَعْدِيْ﴾ حسد نۀ دې، بلکه دا دعاء د خصوصيت ده، هر نبي ته الله تعالیٰ د يوې دعاء د قبليدو خصوصيت ورکړې دې، نو هر نبي دا کوشش کړيدې چه د الله تعالیٰ سره يو خصوصيت وغواړي لکه رسول الله ﷺ د امت دپاره په قيامت کښې شفاعت قبليدل غوښتي دي. او ابراهيم ؑ د خپلو بچو دپاره دعاء کړيده او سليمان ؑ د بادشاهۍ دپاره غوښتلې ده، او پدې کښې به هغۀ ته ډير حکمتونه ښکاره کيدل، انبياء بادشاهي د هسې مزو دپاره نۀ غواړي، بلکه اسلامي خلافت او د الله تعالیٰ دين په عالَم کښې نافذول غواړي. او هغۀ ته معلومه شوې وه چه د هغۀ په بادشاهۍ کښې شيطانان او سرکش پيريان فسادونه کوي، او د خلکو ذهنونه خرابوي، او دين ګډوډ کوي نو ځکه ئې په هغوی باندې هم تسلط غوښتو.
فَسَخَّرْنَا لَهُ الرِّيْحَ: نو الله تعالیٰ ورله هواء تابع کړه چه نرمه وه.
حَيْثُ اَصَابَ: اَیْ اَرَادَ الْاِصَابَةَ. کوم ځاى ته به ئې چه اراده د رسيدو وکړه. په سورة الانبياء کښې (عَاصِفَةً) راغلې دې او دلته (رُخَاءً)، هلته مونږ وئيلي وو چه نرمه هم وه او سخته هم وه.
كُلَّ بَنَّاءٍ: يعنی هر يو د شيطانانو نه جوړونکې وو. چه د هغه دپاره به ئې آباديانې او محرابونه او تماثيل وغيره جوړول لکه تفصيل ئې په سورة سبا کښې تير شو.
وَّغَوَّاصٍ: يعنی بعض شيطانان پدې باندې مقرر وو چه هغوی به دريابونو ته ځي او غوپې به وهي او ملغلرې او جواهرات به راوباسي.
مُقَرَّنِيْنَ فِى الْاَصْفَادِ: نور پيريان او شيطانان به په زنځيرونو کښې تړلې شوي وو ځکه چه دوی فساديان وو. يحيٰی بن سلامؒ وائي چه دا کار به ئې د دوی د کافرانو سره کولو خو کله چه به ئې ايمان راوړو نو هغه به ئې پريخودل.
هٰذَا عَطَاؤُنَا: الله تعالیٰ ورته دا هم وفرمايل چه دا زمونږ عطيه ده او ورکړه ده چه مونږ تا ته درکړه، ستا خوښه ده چه چا سره پکښې احسان کوې او که د چا نه ئې بند ساتې، يعنی پوره اختيار الله تعالیٰ ورکړو. (حسنؒ، ضحاکؒ)
يا کوم پيريان چه آزادوې او که کوم تړې ستا خوښه ده. (ابن عباسؓ)

بِغَیۡرِ حِسَابٍ: ۱- دا یا متعلق دے د عَطَاؤُنَا پورے یعنی دا بے حسابه ورکړه ده. یعنی ډیره او عظیمه.

۲- یا معنیٰ دا ده چه په تا باندے به حساب نهٔ وی په دغه ورکړه یا بند ساتلو کښې. لکه رسول الله ﷺ ته هم الله تعالیٰ په غنائمو کښې داسے واک ورکړے وو چه یو تن ته به ئے سل اُوښان ورکړل او بل ته به ئے کم ورکړل او بل ته به ئے هیڅ ورنکړل.

لَزُلۡفَی: یعنی په آخرت کښې ددهٔ مونږ سره مرتبه ده، او ښائسته ځای ته به ئے الله واپس کوی. چه هغه جنت دے. پدے کښې اشاره ده چه په نیک عمل او الله تعالیٰ ته په انابت او رجوع سره انسان ته دنیا هم ملاویږی او آخرت هم. نو د غفلت نه بیداری پکار ده.

| وَاذۡکُرۡ عَبۡدَنَآ اَیُّوۡبَ اِذۡ نَادٰی رَبَّهٗۤ اَنِّیۡ |
|---|
| او یاد کړه بنده زمونږ ایوب علیه السلام کله چه آواز اُوکړو هغهٔ رب خپل ته یقیناً ما ته |
| مَسَّنِیَ الشَّیۡطٰنُ بِنُصۡبٍ وَّعَذَابٍ ﴿۴۱﴾ اُرۡکُضۡ بِرِجۡلِکَ |
| رسیدلے دے شیطان په مرض او تکلیف (د مال) سره. اُووهه (زمکه) په خپه خپله |
| هٰذَا مُغۡتَسَلٌۢ بَارِدٌ وَّشَرَابٌ ﴿۴۲﴾ وَوَهَبۡنَا لَهٗۤ اَهۡلَهٗ |
| سره، دا ځائے د لامبلو یخ دے او اُوبهٔ د څکلو دی. او اُوبخو مونږ دهٔ ته اهل ددهٔ |
| وَمِثۡلَهُمۡ مَّعَهُمۡ رَحۡمَةً مِّنَّا وَذِکۡرٰی لِاُولِی |
| او پشان د دوی د دوی سره، د وجے د رحمت زمونږ نه، او دپاره نصیحت د خاوندانو |
| الۡاَلۡبَابِ ﴿۴۳﴾ وَخُذۡ بِیَدِکَ ضِغۡثًا فَاضۡرِبۡ بِّهٖ |
| د عقلونو. او راواخله په لاس خپل سره جارو نو اُووهه په هغے سره (بی بی خپله) |
| وَلَا تَحۡنَثۡ ؕ اِنَّا وَجَدۡنٰهُ صَابِرًا ؕ نِعۡمَ الۡعَبۡدُ ؕ |
| او قسم مهٔ ماتوه، یقیناً موندلے وو مونږ هغهٔ لره صبرناك، ښه بنده وو هغه، |
| اِنَّهٗۤ اَوَّابٌ ﴿۴۴﴾ |
| یقیناً هغه راواپس کیدونکے وو (الله ته). |

**تفسير**: دا بله واقعه د ايوب عليه السلام د صبر او الله تعالىٰ ته د رجوع كولو ده۔
د هغهٔ نوم ايوب بن عيصو بن اسحاق بن ابراهيم الخليل عليهم السلام وو، دا د الله نبي او مالدار سړے وو، او د قوم په مشرانو كښې وو۔ د هغهٔ علاقه د بحرِ ميت په جنوبِ مشرق كښې د ادوم ښهرونو او د صحرائے عرب تر مينځه واقع وه۔ د دغه علاقے زمكه ډيره زياته زرخيزه وه، او د اُوبو ډيرے زياتے چينے په كښې موندلے كيږی۔
د ايوب عليه السلام صحت هم ښه وو او ښځه او زيات بچي هم الله تعالىٰ وركړی وو، اُوښان، ګډے بزے او نور مالونه ئے ډير زيات وو، د الله تعالىٰ يو عابد بنده وو او په خلكو كښې ددهٔ عبادتونه مشهور وو، دهٔ به خلكو ته دعوت وركولو چه د الله تعالىٰ بندګی وكړئ، ابليس په خلكو كښې دا مشهوره كړه چه ايوب څكه د الله ډيره بندګی كوی چه مالداره دے او هرڅه ئے پوره دی، او مونږه ئے څكه نهٔ كوو چه فراخي نشته، او دا ډير غلط دعوت دے، يو تن به وائي چه ما سره پيسے نشته نو زهٔ څه له عبادت وكړم، فلانے څكه د جهاد او د علم كار كوی چه فراخي ورسره ده، او مونږ خو د سير ورو پسے ورك يو، نو دا ئے د عبادت د پريخودو بهانه جوړه كړه نو الله تعالىٰ په دهٔ باندے امتحان راوستو۔
په تاريخي رواياتو كښې ذكر دی چه شيطان ته الله تعالىٰ ووئيل چه كه ما تهٔ په دهٔ باندے مسلط كړے، كه ددهٔ مال كم هم شی بيا به هم د الله بندګی كوی نو ابليس راغے د هغه ګډے بزے ئے مرے كړے (څكه چه ضروری شے دے) نو ايوب عليه السلام ته چا خبر وركړو چه ګډے دے مړی دی، نو هغه ووئيل چه د الله مال وو او الله واخستو، بيا ئے عبادت ډير كولو نو بيا ئے ورله اُوښان مړه كړل، دهٔ همدغه شان خبره وكړه۔
شيطانانو ووئيل چه صحت ئے روغ دے او ښځه او بچي ئے شته نو څكه بندګی زياته كوی، نو الله پرے بل امتحان راوستو او خلكو ته ئے خودله چه زما مخلص بندګان په هيڅ مصيبت راتللو سره زما بندګی نهٔ پريدی، نو الله تعالىٰ ورله بچي مړهٔ كړل او په دهٔ باندے ئے اتلس كاله بيماری راوسته، بيا به ئے همدغه شان بندګی كوله، او د الله نه به په هر حال كښې راضی وو۔
په خلكو باندے د حجت د قائمولو دپاره الله تعالىٰ په ايوب عليه السلام باندے دا امتحانات راوستل، يو بنده باندے الله تعالىٰ سخته راولی په نورو باندے حجت قائموی، په دے كښې د ايوب عليه السلام فضيلت شو او د روستو امت دپاره عبرت شو لكه دلته راځی ﴿وَذِكْرَىٰ لِأُولِي الْأَلْبَابِ﴾ عقلمند به ددے واقعے نه عبرت واخلی۔ او نور هم ډيرے فائدے

پدے واقعه کښې شته۔
په ایوب علیه السلام باندے په یو وخت کښې مصیبت دومره سخت شو چه ټولو خلکو پریخودو او صرف یوے ښځے به ورله خدمت کولو نو یو وخت کښې د هغې نه څه نقصان وشو (چه دغه نقصان په قرآن کښې ذکر نهٔ دے چه څه شے وو)
په تفاسیرو کښې یو دا ذکر شویدی لکه امام احمدؒ په کتاب الزهد کښې د ابن عباس رضی الله عنه روایت راوړیدے چه ابلیس په لاره کښې کیناستو او یو صندوق ئے راواخستو چه د خلکو دوائی ئے کوله (کله نا کله شیطان د انسان په شکل راځي دے دپاره چه خلك گمراه کړی) نو د ایوب علیه السلام ښځے ورته ووئیل چه اے د الله بنده! دلته یو سخت بیمار شخص دے آیا تهٔ د هغه علاج کولے شے؟ هغه ووئیل : آؤ، خو پدے شرط که زهٔ ورته شفاء ورکړم نو هغه به ما ته نسبت کوی، او داسے به وائی چه تا ما ته شفاء راکړه۔ (ابلیس شرك خوروِل غوښتل) هغې چه کله خاوند ته دا خبره وکړه، نو هغه ورته په غصه شو چه هلاکه شے دا خو شیطان وو (او تا اُوسه پورے توحید زدهٔ نکړو، خلك جوړول نشي کولے بلکه الله صحت ورکونکے دے)۔ لکه ډیر خلك ډاکټر ته نسبت کوی چه دهٔ روغ کړم، دا شرکی کلمه ده۔ نو هغه ورته قسم وکړو که الله تعالیٰ ما ته شفاء راکړه نو د الله تعالیٰ دپاره به تا سل دُرے وهم۔
دویمه واقعه داسے ده چه ابلیس ورته ووئیل چه ددهٔ شفاء زما په لاس کښې ده، زهٔ به ئے جوړ کړم خو یوه گډه به زما په نوم باندے ذبح کوے (او ښځه خو پدے غمژنه وی چه الله تعالیٰ ئے خاوند جوړ کړی) نو خاوند ورته پدے خبره سخت غصه شو او دغه قسم ئے ورته وکړو۔ (قاله یحیی بن سلامؒ وغیره)۔ (فتح البیان)
(۳) سعید بن المسیبؒ وائی چه ښځے ورته د معمول مطابق نه زیاته روټئ راوړه نو ایوب علیه السلام د هغې په خیانت باندے ویریدو نو قسم ئے ورته وکړو۔ (فتح البیان)
ظاهر دا ده چه شیطان ورته څه وسوسه اچولے وه او د هغې په وجه ورته ایوب علیه السلام غصه شو او قسم ئے ورته وکړو چه که الله تعالیٰ دهٔ له شفاء ورکړه نو دے ته به سل دُرے (کوړے) ورکوی لیکن د هغهٔ ښځه معذوره وه ځکه چه هغې ته معلومه نهٔ وه چه هغې سره خبرے کونکے شیطان وو۔ او د هغوئ په شریعت کښې کفاره نهٔ وه، گنے ایوب علیه السلام به کفاره ورکړے وے او د قسَم پوره کولو دپاره به د ښځے وهلو ضرورت نهٔ پیښیدلے۔ او قسم ماتول او ضائع کول هم ناروا دی نو الله تعالیٰ ورته یوه طریقه وخودله چه یوه جارو

(چوکه) راواخله چه په هغې کښې سل ډکې وې او په هغې باندې په یو ګوزار سره ښځه ووهه نو ستا قسم به پوره شي. (دې کښې به د الله حکم هم ضائع نشي ځکه چه د الله تعالیٰ د حدودو پابندي پکار ده او په معذور انسان به ظلم هم رانشي)

بعض خلکو وئیلي دي چه ښځې ته نهٔ وو غصه شوې بلکه په بعض وخت کښې ترې څه بې صبري شویده نو ځان ته غصه شوې وو او قسم ئې وکړو چه که زهٔ الله تعالیٰ روغ کړم نو خپل ځان به سل درې وهم. (تدبر قرآن)

لیکن دا خبره په پخوانو کتابونو د تفسیر کښې نشته بلکه روستنو بعض تفسیرونو والا اجتهادي ذکر کړیده.

هره واقعه چه وي خو الله تعالیٰ نهٔ ده ذکر کړې بلکه دلته مقصد د ایوب ﷷ صبر او د هغه الله تعالیٰ ته عاجزي او د هغهٔ نه دعا ذکر ده چه پدې کښې امت دپاره سبق پروت دې.

عَبْدَنَا: کښې اشاره ده چه ایوب ﷷ د الله تعالیٰ عبادت ګزار بنده وو او ددې وجه نه ئې الله تعالیٰ ته په مصیبتونو کښې آواز کړیدې.

مَسَّنِيَ الشَّيْطَانُ بِنُصْبٍ وَّعَذَابٍ: ۱- قتادهٔ او مقاتل وائي چه د نُصب نه بدني مرضونه او د عذاب نه خارجي مصیبتونه مراد دي چه هغه هلاکت د اهل او د مال دي. ۲- ظاهر دا ده چه د نُصب نه د اُورېد مرض په وجه ستړي والې مراد دې، او د عذاب نه مراد هر قسم دردونه دي نو دواړه بدن ته راجع دي. (فتح البیان)

دلته ئې شیطان ته نسبت وکړو اګرکه د ټولو کارونو د خیر او د شر او د ایمان او د کفر خالق الله تعالیٰ دې، لیکن ادب دا دې چه د شر کارونو نسبت شیطان ته وشي ځکه چه شیطان د نیکانو او انبیاء علیهم السلام په تکالیفو او مصیبتونو باندې خوشحالیږي او سبب ګرځي د هغه د وسوسو لکه یوشع ﷷ چه د نسیان نسبت شیطان ته کړې وو ﴿وَمَا أَنْسَانِيهُ إِلَّا الشَّيْطَانُ أَنْ أَذْكُرَهُ﴾ سورة کهف آیت (۶۳).

یا شیطان ته الله تعالیٰ دا طاقت ورکړې وو چه په هغه باندې داسې بیماري راولي ځکه چه شیطان یو ضرري مخلوق دې لکه حدیث کښې طاعون ته وَخْزُ الْجِنِّ وئیلې شویدې یعني د جناتو چونډاره ده. یوې زنانه باندې استحاض بیماري وه، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: [فَإِنَّهَا رَكْضَةٌ مِنْ رَكَضَاتِ الشَّيْطَانِ] دا د شیطان لته ده چه تا ته ئې درکړې ده. (ابوداود: ۲۸۷) شیطان کله ماشومان هم تبنتوي.

رسول الله ﷺ فرمائی : مابنسام کښې ماشومان بهر مهٔ پریدئ. (فَإِنَّ لِلْجِنِّ انْتِشَارًا وَخَطْفَةً) ځکه چه جنات راخوریږی او تښتول کوی. (بخاری : ۳۳۱۶)

نو دا بعیده نهٔ ده. بعض مفسرینو ته دا اشکال راغلے دے چه شیطان څنګه په پیغمبر باندے مسلط شی، نو بیا ئے جواب کړیدے چه د (مَسَّنِيَ الشَّيْطَانُ) معنیٰ دا ده چه ما ته شیطان وسوسه اچولے ده، لیکن دا جواب خطاء دے ځکه چه (بِنُصْبٍ وَعَذَابٍ) ورسره نهٔ لګی. معلومه شوه چه حقیقةً شیطان راغلے وو او په هغه باندے ئے څه چونډاره لګولے وه چه د هغے په وجه پرے بیماری راغلے وه. او اُوښان او ګډے بزے ئے ورله وژلی دی. او دا امتحان دے.

اُرْكُضْ بِرِجْلِكَ: دا د هغهٔ د دعا قبولوالے دے او د الله تعالیٰ د طرفنه د هغه دپاره طریقه د علاج ده. یعنی الله تعالیٰ ورته وفرمایل : چه په خپله خپه باندے دا زمکه ووهه (یوه زمکه ئے ورته وخودله) نو هغه ووهله نو یوه چینه راوته، الله تعالیٰ ورته وفرمایل : پدے کښې ولامبه او ددے نه اُوبه وڅکه نو هغه ولامبل او څه وبه ئے وڅکلے.

قتادة وائی چه دا دوه چینے وے چه د شام په زمکه جابیه علاقه کښې راوتے وے، نو د یوے نه ئے غسل وکړو نو دهغے په وجه الله تعالیٰ ددهٔ ظاهری بدن ښه کړو او د بلے نه ئے اُوبه وڅکلے نو الله تعالیٰ ترے باطنی بیماری لرے کړه او روغ رمټ شو. اول قول ظاهر د آیت دے. (فتح البیان)

وَوَهَبْنَا لَهُ أَهْلَهُ : او الله تعالیٰ په هغهٔ زیاتی رحم کولو دپاره د هغهٔ ختم شوے خاندان اولاد او مال او دولت ئے ورله دوباره ورکړو، بلکه د هغے دوچنده ئے ورکړو.

بعض وائی چه همغه بچی ئے ورله راژوندی کړل. او بعض وائی چه د هغوی په شان نور ئے ورکړل او دوچنده ئے ورکړل.

رَحْمَةً مِّنَّا: یعنی زمونږ رحم وو په دهٔ باندے او دا مفعول لهٔ دے د (وَهَبْنَا لَهُ) دپاره.

وَذِكْرَىٰ لِأُولِي الْأَلْبَابِ : عقلمند به داسے عبرت اخلی چه ایوب ؑ ته تکلیف رسیدلے وو، هغهٔ صبر کړے وو، هغه زما نه غوره وو نو ما ته به هم رسیږی.

دارنګه عقلمند داسے وائی چه په ما باندے د الله تعالیٰ طاعت او بندګی فرض ده که تکلیف وی که راحت، مرض وی که صحت، ګرمی که یخنی لکه ایوب ؑ په ټولو حالاتو کښې د الله تعالیٰ بندګی کړے وه.

عقلمند به وائی چه د الله تعالیٰ نه نا امیدی نهٔ ده پکار، الله تعالیٰ نعمت راکړے وو وائے

خستو بیا به ئې راکړی۔ او الله تعالیٰ عاجزی او زاری قبلوی او هغهٔ ته خوښ دی۔
وَخُذْ بِيَدِكَ ضِغْثًا : ضِغْث د کجورے یوه چوکه چه په هغے کښې ډیر ډکی وی۔ بعض وائی : ضغث په اصل کښې د مختلفو لمدو او وچو ګیاه ګانو نه یو موټی ته وئیلے شی۔
وَلَا تَحْنَثْ : یعنی قسم مهٔ ماتوه۔ دا د پخوانی دین مسئله ده۔ او زمونږ دین کښې مسئله دا ده چه یو تن چا ته قسم وکړی چه زهٔ به تا وهم او هغه د وهلو مستحق نهٔ وی نو قسم دې مات کړی او کفاره دې ورکړی۔ او د هغوی په دین کښې کفاره نهٔ وه۔
او ددې واقعې نه معلومیږی چه الله تعالیٰ ته د اسلام احکام ډیر آهم دی، پدې وجه که په ظاهره کښې په باطن کښې په هغے باندے عمل نشی کیدے، نو ظاهراً به د هغے مراسم ادا کوی۔ لکه یو تن په مانځه کښې خشوع نکوی نو هغه به ظاهراً مونځ کوی۔
او داسے واقعه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې هم راغلے وه۔ یو شَل غلام وو، زنا ئې کړے وه، د هغے په وجه د زنانه حمل شوے وو نو زنانه او هغه دواړو اقرار وکړو نو رسول الله ﷺ هغه سړے ولیدو چه ډیر خوار وو، نو وے فرمایل چه که دا سل دُرے ووهو دا خو مری، نو حکم ئې وکړو چه داسے چوکه (جارو) راوړئ چه په هغے که سل ډکی وی او دا پرے ووهئ په یو ګوزار نو سل دُرے به پوره شی۔

(ابوداود رقم : ٤٤٧٤ وابن ماجه (٢٥٧٤) فی الحدود باب ١٨) واسناده صحیح)

إِنَّا وَجَدْنَاهُ صَابِرًا : الله تعالیٰ د ایوب ؑ د صبر صفت کړے او وئیلی ئې دی چه دا د خپل رب ډیر زیات ښهٔ بنده وو او په هر حال کښې خپل رب ته رجوع کونکے وو۔ عبد الله بن مسعود ؓ فرمائی چه د قیامت په ورځ به ایوب ؑ د ټولو صبرناکو سردار وی۔ (فتح البیان)

| وَاذْكُرْ عِبَادَنَا إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ أُولِي |
| --- |
| او یاد کړه بندګان زمونږ ابراهیم او اسحاق او یعقوب (علیهم السلام) خاوندان |
| الْأَيْدِي وَالْأَبْصَارِ ﴿٤٥﴾ إِنَّا أَخْلَصْنَاهُم بِخَالِصَةٍ |
| د لاسونو (عملونو) او د سترګو وو (علم)۔ یقیناً مونږ غوره کړی وو دوی په غوره |
| ذِكْرَى الدَّارِ ﴿٤٦﴾ |
| والی سره چه یادول د کور روستنی دی۔ (یا په خاص صفت سره چه یادول د کور دی) |

وَإِنَّهُمْ عِنْدَنَا لَمِنَ الْمُصْطَفَيْنَ الْأَخْيَارِ ﴿٤٧﴾

او یقیناً دوی زمونږ په نیز خامخا د چاڼ کړے شوو غوره خلقو نه وو۔

**تفسیر** : الله تعالیٰ خپل نبی کریم ﷺ ته وفرمایل چه ته د داؤد، سلیمان او ایوب (علیهم السلام) پشان زمونږ بندګان ابراهیم، اسحاق او یعقوب (علیهم السلام) حالات هم رایاد کړه چه زمونږ په طاعت او بندګئ کښې به ئے ډیر قوت ښکاره کولو، او د دین ښه پوهه ئے لرله، او د شریعت د رازونو نه ښۀ خبر وو۔ او چونکه دا ټول هر وخت د آخرت په فکر کښې مشغول پاتے کیدل، د هغے د کامیابئ دپاره به کوشش کونکی وسیدل، او خلقو ته به ئے ددے دعوت ورکولو، او دنیا او ددے خوندونو له به ئے توجه نۀ ورکوله، دے وجے نه مونږ دوئ د خپل خالص او حقیقی محبت دپاره خاص کړی وو۔ او دا ټول زمونږ په نیز غوره شوی او د خیر والا خلق وو۔

أُولِي الْأَيْدِيْ وَالْأَبْصَارِ : لاسونه او سترګے خو زمونږ هم شته نو د دوی خصوصیت څه دے؟ نو ددے بله معنیٰ ده : اَیْ أُولِی الْقُوَّةِ فِي الْعِبَادَةِ وَالْأَبْصَارِ : أُولِي الْمَعْرِفَةِ بِاللّٰهِ۔

یعنی دوی په بندګئ کښې ډیر قوت والا وو او ابصار معنیٰ دا چه د الله معرفت ئے لرلو۔ (یعنی الله ئے پیژندو او د هغه بندګی ئے زیاته کوله)۔ او دا تفسیر د ابن عباسؓ دے۔

(فتح البیان)

بل تعبیر : انسان کښې دوه قوتونه دی، یو قوت نظری او بل قوت عملی۔ نو الله تعالیٰ د هغوی دواړه قوتونه بیانوی چه دوی کښې قوتِ عملی هم مضبوط وو او قوتِ نظری ئے هم کامل وو۔ ددے نه په قرآن او حدیث کښې کله تعبیر په (ایمان او عمل صالح) سره کیږی، او کله په علمِ نافع او عمل صالح سره۔ او کله دے ته بصیرت او صبر هم وائی۔ نو اولی الایدی صبر ته اشاره ده، او والابصار بصیرت ډے۔

ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی : والابصار نه مراد فقه فی الدین ده۔ یعنی ددین پوهه ئے هم لرله۔ دا مختلف تعبیرونه دی چه مطلب ئے یو دے۔

**فائده** : انسانان څلور قسمه دی (۱) یو هغه دی چه نۀ ئے عبادت شته او نۀ ئے بصیرت شته۔ یعنی نۀ الله تعالیٰ پیژنی او نۀ ورله عبادت کوی، لکه یهود، نصاریٰ او دهریه شو۔ (۲) او بعض خلك اولی الْأَیْدِیْ وی، یعنی عبادتونه ئے خو زیات وی لیکن اولی الابصار نۀ وی۔ عقیده او بصیرت ئے خراب وی۔ لکه دا د نصاراؤ پیران چه د انسان

(عیسیٰ ﷺ) او د الله تعالیٰ په مینځ کښې ئې فرق نشو کولے۔ یا زمونږ د امت صوفیاء واخله چه ټوله شپه عبادتونه کوی، لیکن عقیده ئې د وحدة الوجود وی او د قبرونو نه د فیوضاتو حاصلولو قائل وی۔ محمد رسول الله ﷺ به نۀ پیژنی او یو عالِم به ئې راپه شا کړے وی۔ دا هم لویه ګمراهی ده۔

(۳) او بعض خلك داسے وی چه الله تعالیٰ خو ډیر ښه پیژنی نظریه ئې ډیره مزیداره وی لیکن اُولِی الۡاَیۡدِیۡ نۀ وی، په عمل کښې کمزوری وی، د جمعے پابند نۀ وی، زکاة نۀ ورکوی، یا په دین باندے مال نۀ لګوی۔ فاسقان مؤمنان وی۔

(٤) نو کمالی انسان هغه دے چه د هغه نظریه د الله تعالیٰ او د هغۀ د اسماء او صفاتو او د رسول او د امامانو او د ټولو خلکو په باره کښې ښه برابره وی، او ورسره په عملونو کښې هم مخکښې وی۔ د الله تعالیٰ په عبادتونو کښې مصروف وی۔ او کله چه انسان د اُولِی الۡاَیۡدِیۡ وَالۡاَبۡصَار نه شو نو دۀ نه غفلت ختم شو۔

د اولی الایدی بله معنیٰ دا هم شویده چه یَدٌ په معنیٰ د نعمت دے یعنی دوی د خلکو سره احسانونه کړی وو په سبب د دعوت الی الله، او دعوة الی الخیر سره۔

إِنَّا أَخۡلَصۡنَاهُم بِخَالِصَةٍ ذِكۡرَى الدَّارِ: د خالصه نه مراد یو صفت او خصلت (خوئی) دے۔ او ذکریَ الدار د هغے نه بدل دے یعنی دغه صفت یادول د کور د آخرت دی۔

د ذکر الدار (۱) یو مطلب دا دے : (كَانُوا يَذۡكُرُونَ دَارَ الۡآخِرَةِ كَثِيرًا) دوی به د آخرت کور ډیر یادولو۔ او دا ډیر ښکلے او انسان لره برابرونکے صفت دے۔ او دوی به خلکو ته هم د آخرت تذکرے کولے۔

(۲) يُذَكِّرُ بِهِمۡ دَارَ الۡآخِرَةِ۔ د دوی په وجه به خلکو ته د آخرت کور رایادیدو۔

نو کافران د آخرت یوم الحساب هیره کړیده او پیغمبرانو ته د آخرت کور یادوی نو د سورت د موضوع سره ډیر مناسب لفظ دے۔

لَمِنَ الۡمُصۡطَفَيۡنَ الۡأَخۡيَارِ: یعنی دوی د لوی کارونو دپاره چانړ کړے شوی وو، او خپله غوره او نیکان خلك وو۔ الاخیار جمع د خَیِّر ده لکه اموات جمع د مَیِّت ده۔

وَاذۡكُرۡ إِسۡمَاعِيلَ وَالۡيَسَعَ وَذَا الۡكِفۡلِ وَكُلٌّ مِّنَ الۡأَخۡيَارِ ﴿٤٨﴾

او یاد کړه اسماعیل او الیسع او ذا الکفل علیهم السلام او دا ټول د غوره خلقو نه وو۔

**تفسیر** : یعنی اے زمونږ نبی ! تۀ د اسماعیل، الیسع او ذو الکفل حالات هم رایاد

کړه. دا نومونه په سورة انبیاء کښې هم ذکر شوی ځکه چه دا دے سورت او د هغه سورت موضوع یوه ده. اسماعیل علیه السلام ئے د خپل پلار، ورور او ورارهٔ نه روستو جدا ذکر کړو، اشاره ده چه دا په صبر کښې انتهاء ته رسیدلے وو.

وَالْيَسَعَ: ددهٔ تفصیل په سورة الانعام کښې ذکر شویدے. الیسع بن اخطوب بن العجوز دے، مفسرین لیکی چه دا الیاس علیه السلام په بنی اسرائیلو باندے خپله خلیفه مقرر کړے وو بیا الله تعالیٰ نبی جوړ کړو.

وَذَا الْكِفْلِ: ځینی وائی دا د اَلْیَسع د ترهٔ ځوی وو، یا دا بشر بن ایوب دے، د ایوب علیه السلام ځوی دے، او د هغهٔ د وفات نه روستو الله تعالیٰ نبی جوړ کړو. او دهٔ ته ئے ذا الکفل ووئیلو او دا په شام کښې وسیدو تردے چه د (۷۵) کالو په عمر وفات شو. او د ذا الکفل باقی تفصیل په سورة الانبیاء کښې گوره.

| |
|---|
| هٰذَا ذِكْرٌ وَإِنَّ لِلْمُتَّقِيْنَ لَحُسْنَ مَاٰبٍ ﴿۴۹﴾ جَنّٰتِ |
| دا (قرآن) یاداشت دے، او یقیناً متقیانو لره خامخا ښائسته ځای د ورګرځیدو دے. جنتونه |
| عَدْنٍ مُّفَتَّحَةً لَّهُمُ الْاَبْوَابُ ﴿۵۰﴾ مُتَّكِئِيْنَ |
| د همیشوالی دی، کولاوے کړے شوی به وی هغوی لره دروازے. تکیه وهونکی به |
| فِيْهَا يَدْعُوْنَ فِيْهَا بِفَاكِهَةٍ كَثِيْرَةٍ وَّشَرَابٍ ﴿۵۱﴾ وَعِنْدَهُمْ |
| وی په هغے کښې، راغواړی به په هغے کښې میوے ډیرے او د څکلو سامان. او د دوی |
| قٰصِرٰتُ الطَّرْفِ اَتْرَابٌ ﴿۵۲﴾ هٰذَا مَا تُوْعَدُوْنَ |
| سره به وی بندونکے نظرونو والا، همزولے جینکئ. دا هغه دی چه وعده ئے کیدے |
| لِيَوْمِ الْحِسَابِ ﴿۵۳﴾ اِنَّ هٰذَا لَرِزْقُنَا مَا لَهٗ مِنْ نَّفَادٍ ﴿۵۴﴾ |
| شی تاسو سره دپاره د ورځ د حساب. یقیناً دا رزق زمونږ دے، نشته دے لره ختمیدل. |

**تفسیر** :هٰذَا ذِكْرٌ : ۱ - دا یا د مخکښې سره متعلق دے، او هٰذَا کښې اشاره ده ددے انبیاء علیهم السلام ښائسته صفاتو ته،

[اَیْ هٰذَا ذِكْرٌ جَمِيْلٌ فِي الدُّنْيَا وَشَرَفٌ يُذْكَرُوْنَ بِهٖ اَبَدًا]

او معنیٰ دا ده چه دا ښائسته صفات د پیغمبرانو په دنیا کښې ښائسته ذکر دے او د دوی

همیشه شرافت دے چه دوی به پرے ذکر کیږي. یعني د دوئ دا ښهٔ ذکر په دنیا کښ د دوئ دپاره د شرافت باعث دے، او په آخرت کښ به الله تعالیٰ د خپلو تمامو متقیانو بندګانو دپاره ډیر زیات عُمده د وسیدو ځایونه ورکوی، چه په هغے کښ به دا انبیاء کرام په طریقه اولیٰ سره داخل وي. یعني دنیا او آخرت دواړه ورته ملاؤ شول.

۲- یا دا ترغیب دے قرآن ته، او د آخرت احوال بیانوی. یعني دا قرآن د یاداشت کتاب دے. یا عِظَةٌ: دا د وعظ کتاب دے.

وَإِنَّ لِلْمُتَّقِيْنَ: یعني تقویٰ والو سره چه د کوم عُمده اوسیدو ځائے وعده شوے، هغه به د همیشه پاتے کیدو جنتونه وي، چه د هغے دروازے به د جنتیانو په انتظار کښ هر وخت کولاوے وي. جنتیان به په دے جنتونو کښ تکیه وهلی ناست وي. کله چه غواړي د خپلے غوښتنے مطابق به ډیرے میوے او مشروبات راغواړي.

مفسرین لیکی چه دلته د طعام یعني خوراك ذکر ځکه نهٔ دے شوے چه د هغوئ خوراك ښباك به صرف د خوند حاصلولو دپاره وي، د دنیا د ژوند غونته د غذائیت حاصلولو دپاره به نهٔ وي.

او اهلِ جنت ته به داسے ښځے ملاویږي چه هغوئ به د خپلو خاوندانو نه سوئ نور سري نهٔ ویني، یا د هغوئ خاوندان به د هغوئ د ډیر زیات حُسن او جمال د وجے نه نورو ښځو طرفته نهٔ ګوري، او دغه ښځے به په عُمر کښ برابرے وي، د مجاهدؒ د وینا مطابق د دوئ عمر به (۳۳) کاله وي.

اَتْرَابٌ: هغه همزولی ته وائی چه د انسان سره ئے په خاورو کښ لوبې کړی وي. ځکه مشره ښځه د مور په شان وي، او وړه د لور په شان، او همزولتیا کښ ډیر لوی اثر وي. او د اتراب معنیٰ دا هم ده چه دوی به د سرو سره د ملګرو په شان مینه کوی، هیڅ بغض به ئے نهٔ وي، حسد به ئے نهٔ وي.

هٰذَا مَا تُوْعَدُوْنَ: یعني چه کله تقوٰی والا جنت ته داخل شی، او د هغه ځای د نعمتونو نه خوند واخلی نو الله تعالیٰ به دوئ ته ووائی چه همدا هغه جنت دے چه ددے وعده تاسو سره شوے وه، او وئیلے شوی وو چه دا نعمت به د قیامت په ورځ د حساب نه پس ملاویږي، او همدا زمونږه هغه روزی ده چه هیڅ کله به ختمیږی نهٔ.

إِنَّ هٰذَا لَرِزْقُنَا: یعني دا ذکر شوی نعمتونه او عزتونه او جنتونه او ددے صفات.

مَا لَهٗ مِنْ نَّفَادٍ: دا رد دے په هغه چا چه وائی چه جنت او جنتیان به یو وخت کښ

ختمیږي۔

هٰذَا وَإِنَّ لِلطَّاغِينَ لَشَرَّ مَآبٍ ﴿٥٥﴾ جَهَنَّمَ

دے ته هم سوچ اُوکړه۔ او یقیناً د سرکشانو دپاره بد ځائے د ورګرځیدو دے۔ جهنم دے

يَصْلَوْنَهَا فَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿٥٦﴾ هٰذَا فَلْيَذُوقُوهُ حَمِيمٌ

چه داخلیږي به هغے ته نو بد ځائے د آرام دے۔ دا نو اودې دے څکی دوی دے لره، ګرمې اُوبۀ

وَغَسَّاقٌ ﴿٥٧﴾ وَآخَرُ مِنْ شَكْلِهِ أَزْوَاجٌ ﴿٥٨﴾ هٰذَا فَوْجٌ مُّقْتَحِمٌ

او وینے زوی دی۔ او نور عذابونه دی پشان ددے قسماقسم۔ دا یوه ډله ده ننوتونکے ده

مَّعَكُمْ لَا مَرْحَبًا بِهِمْ إِنَّهُمْ صَالُوا النَّارِ ﴿٥٩﴾

تاسو سره نۀ دِے وي مرحبا (خوشحالي) دوی لره، یقیناً دوی داخلیدونکی دی اُور ته۔

قَالُوا بَلْ أَنْتُمْ لَا مَرْحَبًا بِكُمْ أَنْتُمْ قَدَّمْتُمُوهُ لَنَا

دوی به ووائی بلکه تاسو، مرحبا نشته تاسو لره، تاسو رامخکښ کړے دے دا مونږ ته

فَبِئْسَ الْقَرَارُ ﴿٦٠﴾ قَالُوا رَبَّنَا مَنْ قَدَّمَ

نو بددے ځائے د اُوسیدو (د دوی)۔ وبه وائی دوی اے ربه زمونږ چا چه مخکښ کړیدے

لَنَا هٰذَا فَزِدْهُ عَذَابًا ضِعْفًا فِي النَّارِ ﴿٦١﴾ وَقَالُوا

مونږ ته دا نو زیات کړه هغۀ لره عذاب دوچنده په اُور کښ۔ او وائی به دوی

مَا لَنَا لَا نَرَىٰ رِجَالًا كُنَّا نَعُدُّهُمْ مِّنَ الْأَشْرَارِ ﴿٦٢﴾

څه وجه ده مونږ لره چه نۀ وینو هغه سړی چه شمارل به مونږ د شریانو نه۔

أَتَّخَذْنَاهُمْ سِخْرِيًّا أَمْ زَاغَتْ عَنْهُمُ الْأَبْصَارُ ﴿٦٣﴾

آیا نیولی وو مونږ دوی لره په توقو یا کاږهٔ شویدی د دوی نه سترګے (زمونږ)

إِنَّ ذٰلِكَ لَحَقٌّ تَخَاصُمُ أَهْلِ النَّارِ ﴿٦٤﴾

یقیناً دا خامخا حق دے جګړه ده د اُور والو۔

**تفسير**: اُوس د جهنميانو حال بيانيږي.

هٰذَا: ١ - أيِ الْأَمْرُ هٰذَا. يعنى خبره دا ده. ٢ - يا إِحْفَظْ هٰذَا. دا مخكنئ خبره ياده لره.
٣ - هٰذَا كَمَا ذُكِرَ. دا د مخكښ شوى بيان په شان دے. ٤ - هٰذَا حَاصِلٌ وَثَابِتٌ. يعنى دا خبره ثابته او موجوده شوه.

هٰذَا: دا مبتداء ده او (حَمِيْمٌ وَغَسَّاقٌ) ئے خبرونه دى. يا اَلْأَمْرُ هٰذَا. يعنى خبره دا ده. يا هٰذَا ذِكْرٌ. يعنى دا هم يو نصيحت دے.

فَلْيَذُوْقُوْهُ: كښې (ه) ضمير روستو حميم وغساق ته راجع دى، او دا اضمار قبل الذكر صرف لفظاً دے.

وَغَسَّاقٌ: دا د جهنميانو وينے زوے دى.

وَآخَرُ: يعنى وَعَذَابٌ آخَرُ. يعنى يو بل عذاب دے دوى دپاره چه د مخكښې په شان دے او هغه قسماقسم عذابونه او ذلتونه دى.

هٰذَا فَوْجٌ: يعنى د كفر او شرك د مشرانو نه پس چه جهنم ته كله د هغوئ تابعدار داخل شى، نو د جهنم ذمه وار ملائك به د كفر دغه سرداران مخاطب كړى، او ورته به وائى چه اُوس د جهنم په تنګو كندو كښې ستاسو نه پس ستاسو مجرمان تابعدار هم داخليږى، نو دغه سرداران به د دغه تابعدارو په باره كښې وائى چه دوى ته ډے مرحبا نهٔ وى يعنى په جهنم كښې به د دوئ ځيونه هميشه تنګ وى، هيڅ كله به نهٔ فراخيږى، بيا د خپلے خبرے وجه بيانولو سره به وائى : (إِنَّهُمْ صَالُوا النَّارِ) يعنى دا خلق هم زمونږ پشان د خپلو بد عملونو په وجه جهنم كښې داخليږى، چرته چه عذاب عذاب دے، نو دوئ ته به راحت او فراخى د كومه ملاؤ شى.

د ﴿لَا مَرْحَبًا بِهِمْ﴾ دويم تفسير دا بيان شوے چه دا خبره به ملائك وكړى، او ددے نه مقصد د هغه عذاب سختى بيانول دى چه په هغے كښې به جهنميان مبتلا وى، او هغه وحشت او اجنبيت طرفته اشاره ده كوم به چه د سخت عذاب په وجه د دوئ ترمينځه موندلے كيږى.

مُقْتَحِمٌ: اقتحام دے ته وائى چه په زور سره تنګ ځاى كښې يو تن داخليږى.

لَا مَرْحَبًا بِكُمْ: كشران به مشرانو ته وائى چه تاسو ته ډے مرحبا نهٔ وى يعنى تاسو ډے دے نهٔ فراخى: (او تنګ ځاى ته د داخليدو) ډير حقدار يئ ځكه چه (أَنْتُمْ قَدَّمْتُمُوْهُ لَنَا) تاسو دا عذاب او دا ځاى مونږ دپاره رامخكښې كړے. يا (ه) ضمير كفر او شرك ته راجع

دے چه د مقام نه معلومیږي۔ یعني تاسو به په دنیا کښې مونږ ته شرك مخے ته کولو نو مونږ ستاسو په وجه ګمراه شو او اُوس دا دے جهنم ته راورسیدو۔

قَالُوْا رَبَّنَا مَنْ قَدَّمَ لَنَا : بیا به کشران الله تعالیٰ ته متوجه شي او وبه وائي چه اے ربه زمونږ! چا چه دا ځای مونږ ته مخکښې تیار کړیدے یعني د هغه د کفر او شرك په وجه چه مونږ ګمراه شوي یو نو هغه له خو دوچنده عذاب ورکړه، یو خپله ګمراهان وو او بل ئے مونږ ګمراهان کړو۔ لکه دا خبره په سورة الاحزاب (۶۸) آیت کښې هم تیره شوه: ﴿رَبَّنَا آتِهِمْ ضِعْفَيْنِ مِنَ الْعَذَابِ﴾ (اے زمونږ ربه! دوئ له دوچنده عذاب ورکړه)۔ نو سورة الاعراف (۳۸) آیت کښې تیر شویدي چه الله تعالیٰ به ووائي (لِكُلٍّ ضِعْفٌ) تاسو کښې هر یو تن دپاره دوچنده عذاب دے۔

عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي : د دوچنده عذاب نه مراد یو خو جهنم دے، او بل په هغے کښې ماران او لړمانان دي۔

وَقَالُوْا مَا لَنَا لَا نَرٰی رِجَالًا : دا قول د کشرانو او مشرانو ټولو دے۔ چه د موحدینو مؤمنانو په باره کښې به ئے وائي، چه مونږ کوم خلك په دنیا کښې شریان ګنړل (په هره زمانه کښې اهل حقو ته اشرار او شریان وئیل شویدي) لکه د بلال، عمار، او صهیب (رضی الله عنهم) په شان کمزوري او فقیران مسلمانان مونږ نۀ مومو، دا څه وجه ده؟ داسے پاکو خلکو پسے مونږ ټوقے کولے دا مو څومره لوی جرمونه کړیدي۔

أَتَّخَذْنَاهُمْ سِخْرِيًّا : دلته همزه استفهامیه شته او همزه وصلي پټه ده۔ اَیْ ءَ اِتَّخَذْنَاهُمْ سِخْرِيًّا : آیا مونږ دوي پورے په دنیا کښې ټوقے کولے او دوي مو سپك ګنړل نو مونږ پدے خبرو کښې په خطاء وو او که نۀ دوي هم په اُور کښې دي خو زمونږ نظرونه او سترګے د هغوي نه اړولے شویدي؟۔

حسن بصريؒ وائي چه دواړه کارونه دوي سره وشو چه دوي دغه مسلمانان سپك هم ګنړلي وو او اُوس په جهنم کښې د دوي په سترګو نۀ راځي ځکه چه هغوي خو جنت ته داخل شویدي۔

اَتَّخَذْنَاهُمْ کښې فراء وائي چه دا استفهام د توبیخ او تعجب دپاره دے۔

اَمْ زَاغَتْ عَنْهُمُ الْاَبْصَارُ : دا (اَمْ) منقطعه دے په معنیٰ د بَلْ سره اَیْ بَلْ اَزَاغَتْ عَنْهُمُ الْاَبْصَارُ۔ بلکه آیا کاږه شویدي د دوي نه نظرونه زمونږ۔ یعني دوي هم اُور کښې دي خو مونږ ته نۀ ښکاري، پدے سره به ځان ته تسلي ورکړي۔

او ددے بـل مطلب دا دے چه په دنیا کښې د دوی د مرتبے او د حقیقت نه زمونږ نظرونه بند وو۔ یعني دوی ته به مونږ د سپکوالی په وجه کتل هم نۀ۔ او نظرونه به مو ترے اړول۔

إِنَّ ذٰلِكَ لَحَقٌّ تَخَاصُمُ أَهْلِ النَّارِ : حَقٌّ مبـدل مِنْهُ او تَخَاصُمُ ئے بدل دے یعنی دا خبره بیـخی رشتینـے ده چـه جهـنـمیان به خپلو کښې په جنګ وی، یو بل باندے به الزامونه کوی، او سرداران او د هغوئ تابعدار به د یو بل بد خوښوی۔

یا تَخَاصُمُ خبر دے د (هُوَ) یعنی دغه رشتینی شے جګړے دی د اُور والو۔

| قُلْ إِنَّمَا أَنَا مُنْذِرٌ وَّمَا مِنْ إِلٰـهٍ إِلَّا اللّٰهُ |
| --- |
| ووایه ! یقیناً زۀ یره درکونکے یم۔ او نشتـه څوك حقدار بندګئ سوئ د الله تعالیٰ نه |
| الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ﴿٦٥﴾ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَمَا |
| چه یو دے زورور دے۔ رب د آسمانونو او د زمکے دے او د هغه څه چه |
| بَيْنَهُمَا الْعَزِيزُ الْغَفَّارُ ﴿٦٦﴾ قُلْ هُوَ نَبَأٌ عَظِيمٌ ﴿٦٧﴾ |
| په مینځ د دواړو کښې دی زورور دے بخنه کونکے دے۔ اُووایه دا (قرآن) خبر دے لوئی۔ |
| أَنْتُمْ عَنْهُ مُعْرِضُوْنَ ﴿٦٨﴾ مَا كَانَ لِيَ مِنْ عِلْمٍ بِالْمَلَإِ الْأَعْلٰى إِذْ |
| تاسو ددے نه مخ اړونکی یئ۔ نشتـه ما لره څه علم په مجلس اُوچت باندے کله چه |
| يَخْتَصِمُوْنَ ﴿٦٩﴾ إِنْ يُّوْحٰى إِلَيَّ إِلَّا أَنَّمَا أَنَا نَذِيرٌ مُّبِيْنٌ ﴿٧٠﴾ |
| دوی بحث کوی۔ وحی نۀ کیږی ما ته مګر دا چه یقیناً زۀ یره ورکونکے ښکاره یم۔ |

**تفسیر** : د انبیاء کرامو علیهم السلام د واقعاتو او د جنت او جهنم د څۀ حالاتو بیانولو نـه پس، الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ تـه حـکم کوی چه هغه قریشو مشرکانو ته داسے خبره وکړی چه په هغے کښې د دوی په کفر او شرك باندے دهمکی ده۔

او دارنـګه دوی ته په عبادت کښې د توحید دعوت هم دے۔ او پدے کښې صدق د رسول الله ﷺ دے۔ او دا متـعـلق دے د ابتداء د سورت سره (وَعَجِبُوْا أَنْ جَاءَهُمْ مُّنْذِرٌ) یـعنی دا منذر د کومے خبرے بیان کوی۔

الله فـرمـائی : چه اے زما نبی ! تۀ قریشـو کافرانو ته ووایه چه زۀ د الله تعالیٰ د عذاب نه هر هـغـه کـس ویـروونـکے یـم چـه د کفر لاره اختیاروی، او د الله تعالیٰ په ځای د شیطان

عبادت کوی۔ نۀ جادوگر یم او نۀ شاعر۔ او دوئ ته دا هم ووایه چه د الله تعالیٰ نه سوئ بل هیځوك د عبادت لائق نشته، چه هغه په خپل ذات او صفاتو او ربوبیت او عبادت کښې تنها او لاشریك دے۔ که دا دعوت زما نۀ منئ نو غرق کیږئ، دلیل دا دے چه الله تعالیٰ د آسمانونو او زمکے او د ټولو مخلوقاتو رب دے او په دوی باندے غالبه او زوره ور دے۔ د هر یو شئ مالك دے او الله تعالیٰ پدے کښې په غیر د شرکت د بل چانه تصرف کونکے دے، او کله چه نافرمانو ته سزا ورکوی نو هیڅوك هغه کمزورے کولے نشي، او د هر چا گناهونه معاف کوی چه په رشتینے زړۀ سره توبه وباسی۔

قُلۡ هُوَ نَبَؤٌاْ عَظِيمٌ : ۱- هُوَ ضمیر قرآن ته راجع دے او پدے کښې قرآن کریم ته ترغیب او ددے لوی والے د شان بیانوی۔

یعنی اے زما نبی! تۀ کافرانو ته دا هم ووایه چه دا قرآن کریم ستا د رب یو عظیم کتاب دے، چه په دے کښې د الله تعالیٰ د توحید، د خاتم النبیین د نبوت، د بعث بعد الموت، او د جنت او جهنم سره متعلق رشتینی او یقینی خبرونه دی، او د وحی په ذریعه په ما باندے ددے نازلیدل په غیر د شك نه زما د رشتین والی لوئے دلیل دے۔

لیکن اکثر انسانان داسے دی چه د قرآن د خبرو نه غافل او مخ اړونکی دی، الله خبر ورکړے چه جنت او جهنم راروان دی، قبر دے، عذابونه دی، مگر انسانان په هغے هیڅ پرواه نۀ لری۔ نو الله به ددے په باره کښې تپوس کوی۔

نَبَؤٌاْ عَظِيمٌ: یعنی دا قرآن عظیم خبرونه دی چه ددے اهتمام پکار دے۔ قتادۃ، مجاهدؒ، او مقاتلؒ وائی : دا قرآن ځکه لوی خبر دے چه د الله تعالیٰ عظیم ذات کلام دے۔

أَنتُمۡ عَنۡهُ مُعۡرِضُونَ : یعنی اے کافرانو! تاسو په خپل غفلت او بے حسیٔ کښې دومره وراندے تللی یئ، چه ددے نه مخ اړوئ۔ او دے کښې فکر نۀ کوئ چه ددے رشتینوالے معلوم کړئ او ددے په وجه مو د آخرت انکار ختم شی۔

۲- یا هُوَ ضمیر یوم القیامة ته راجع دے یعنی د قیامت ورځ ډیر لوی خبر دے چه تاسو ددے نه مخ اړوئ یعنی ددے دپاره عملونه نۀ کوئ۔

مَا كَانَ لِيَ مِنۡ عِلۡمِۭ بِٱلۡمَلَإِ ٱلۡأَعۡلَىٰٓ : پدے کښې د رسول الله ﷺ په نبوت باندے دلیل پیش کوی او دا متعلق دے د (إِنَّمَآ أَنَا۠ مُنذِرٌ) سره۔ یعنی زۀ ساحر کذاب نۀ یم، او نۀ شاعر یم بلکه زۀ تاسو ته د الله تعالیٰ د عذابونو نه یره درکونکے یم، او الله تعالیٰ رالیږلے یم۔

زما د نبوت د رشتینوالی دلیل دا دے چه زۀ د ملائکو د مجلس اعلیٰ خبرے تاسو ته

نقل کوم حال دا چه تاسو ته ښه معلومه ده چه د قرآن نازليدو نه وړاندے ماته ددے هيڅ خبر نهٔ وو چه کله الله تعالیٰ ملائکو ته ووئيل چه زهٔ د خاورے نه انسان پيدا کول غواړم، او زهٔ په زمکه کښې هغه خپل خليفه جوړوم، نو ملائکو د الله تعالیٰ سره بحث وکړو او وے وئيل چه اے الله ! آيا تهٔ په زمکه کښې داسے خلق پيدا کوے چه په دے کښې به فساد کوی او وينه به تويوی ؟ معلومه شوه چه دا خبره ما ته د وحی په ذريعه معلومه شوے ده۔ نو دومره زوړ تاريخ مے تاسو ته د ځان نه نهٔ دے بلکه په وحی سره نقل کړيدے۔

إِذْ يَخْتَصِمُوْنَ : کله چه دوی بحث کوی په تدبير د عالَم کښې چه وخت په وخت الله تعالیٰ ملائکو ته حکمونه صادروی چه دا وکړئ او دا وکړئ، او بيا ملائك ئے نورو ملائکو ته وائی۔ او حال دا چه په وخت زهٔ تاسو ته د ملأ اعلیٰ خبرے بيانوم او پخوانے تاريخ مے هم بيان کړو۔

إِنْ يُّوْحٰى : يعنی زهٔ چه تاسو ته کوم خبرونه درکوم نو دا هسے د معلومات درکولو خبرونه نهٔ دی، بلکه د اِنذار وحی ده يعنی که ومو نهٔ منله نو تباه کيږئ۔ يعنی ما ته چه کومه وحی نازليږی نو ددے مقصد دا دے چه زهٔ خلك د الله د عذاب نه ويروم۔

او پدے کښې سبب د علم د نبی ﷺ بيانوی چه هغه وحی ده او کوم علم چه سبب ته محتاج وی هغه ته شرعاً علم غيب نهٔ وئيلے کيږی۔

| إِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّيْ خَالِقٌ بَشَرًا مِنْ طِيْنٍ ﴿۷۱﴾ |
|---|
| کله چه اُووئيل رب ستا ملائکو ته يقيناً زهٔ پيدا کونکے د بنده يم د ختے نه۔ |
| فَإِذَا سَوَّيْتُهٗ وَنَفَخْتُ فِيْهِ مِنْ رُّوْحِيْ فَقَعُوْا |
| نو کله چه برابر کړو ما هغه او پوکے مے وکړو په هغهٔ کښې د روح خپل نه نو پريوځئ |
| لَهٗ سَاجِدِيْنَ ﴿۷۲﴾ فَسَجَدَ الْمَلَائِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُوْنَ ﴿۷۳﴾ إِلَّا إِبْلِيْسَ |
| هغه ته سجده کونکی۔ نو سجده وکړه ملائکو ټولو په يو ځائے۔ مګر ابليس (ونکړه) |
| اِسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ الْكَافِرِيْنَ ﴿۷۴﴾ قَالَ يَا إِبْلِيْسُ مَا مَنَعَكَ |
| لوئی ئے اُوکړه، او وو دے د کافرانو نه۔ ووئيل الله تعالیٰ اے ابليسه ! څه منع کړے |

أَنْ تَسْجُدَ لِمَا خَلَقْتُ بِيَدَيَّ

ددے نه چه ته سجده اوکړے هغه چا ته چه پیدا کړیدے ما په دواړو لاسونو خپلو،

أَسْتَكْبَرْتَ أَمْ كُنْتَ مِنَ الْعَالِينَ ﴿٧٥﴾ قَالَ أَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ

آیا لوئی اوکړه تا یا ئے ته د اوچتو خلقو نه۔ ووئیل هغه زه غوره یم ددهٔ نه،

خَلَقْتَنِي مِنْ نَّارٍ وَخَلَقْتَهُ مِنْ طِينٍ ﴿٧٦﴾ قَالَ فَاخْرُجْ

تا پیدا کړیدے ما لره د اور نه او پیدا کړیدے دهٔ لره د خټے نه۔ اووئیل الله پس اوځه

مِنْهَا فَإِنَّكَ رَجِيمٌ ﴿٧٧﴾ وَإِنَّ عَلَيْكَ لَعْنَتِي إِلَىٰ يَوْمِ

ددے نه یقیناً ته رټلے شوے ئے۔ او یقیناً په تا باندے لعنت زما دے تر ورځے

الدِّينِ ﴿٧٨﴾ قَالَ رَبِّ فَأَنْظِرْنِي إِلَىٰ يَوْمِ

د جزا پورے۔ اووئیل ده اے ربه زما پس مهلت راکړه ما ته تر هغه ورځے پورے

يُبْعَثُونَ ﴿٧٩﴾ قَالَ فَإِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِينَ ﴿٨٠﴾

چه دوی به دوباره ژوندی کولے شی۔ اووئیل الله یقیناً ته د مهلت ورکړے شو نه ئے۔

إِلَىٰ يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُومِ ﴿٨١﴾ قَالَ فَبِعِزَّتِكَ لَأُغْوِيَنَّهُمْ

تر ورځے د وخت معلوم ته۔ ووئیل دهٔ قسم دے په عزت ستا خامخا ګمراه کوم به دوی

أَجْمَعِينَ ﴿٨٢﴾ إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِينَ ﴿٨٣﴾ قَالَ فَالْحَقُّ

تول۔ مګر بندګان ستا د دوی نه کوم چه بېچ ساتلے شویدی۔ ووئیل الله پس دا وینا

وَالْحَقَّ أَقُولُ ﴿٨٤﴾ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكَ

حقه ده (یا حق زما وینا ده) او حق وایم زهٔ۔ خامخا ډکوم به جهنم ستا نه

وَمِمَّنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٨٥﴾

او د هغه چا نه چه تابعداری ئے کړیده ستا د دوی تولو نه۔

**تفسير**: دا د آدم ﷺ واقعه ده او دا اوم کرت دے چه په آخری ځل ذکر کیږی دے کښ

یو د (۶۹) آیت کښې د ملائکو د مذکوره جګړې تفصیل بیانیږي۔
دویم غرض پکښې دا دے چه الله تعالیٰ په ابلیس او په ملائکو باندے هم امتحان کړیدے لکه څنګه ئې چه په پیغمبرانو باندے کړیدے نو دوی د الله تعالیٰ سره شریك کیدے نشي او نهٔ د عبادت لائق دي او نهٔ د شفاعتِ قهري واك لري۔ (احسن الکلام)
دریم: ظاهره وجه دا ده چه پدے واقعه کښې غرض تَشَبُّهُ الْمُشْرِكِيْنَ بِإِبْلِيْسَ فِي الْاِسْتِكْبَار دے۔ یعنی مشرکان د ابلیس سره په تکبر کولو کښې مشابه دي۔ مشرکانو په رسول الله ﷺ باندے تکبر کولو او دائے وئیل ﴿ءَ اُنْزِلَ عَلَیْهِ الذِّکْرُ مِنْ بَیْنِنَا﴾ او ابلیس هم دغه شان خبره کړے وه چه څنګه آدم ته سجده وکړے شي او ما ته ونکړے شي۔ دا نهٔ منم۔ او پدے واقعه کښې د رسول الله ﷺ د نبوت رشتینوالے هم ذکر دے۔
خَالِقٌ بَشَرًا: سوال: ملائکو خو د آدم ؈ د پیدائش نه مخکښې بشر نهٔ پیژندلو نو څرنګ ورته خطاب کښې بَشَرًا ذکر کوی؟
جواب دا دے چه دلته وصفي معنیٰ مراد ده، یعنی داسے مخلوق پیدا کوم چه د هغه بدن او ظاهري څرمن به ښکاره کیږي مګر که په لباس وغیره سره ئې پټ کړي، او هرچه ملائك او جنات دي نو هغوی همیشه نهٔ ښکاره کیږي۔
یا د بشر نه مراد مُبَاشِرٌ لِلْاَرْض دے یعنی داسے مخلوق به پیدا کوم چه د زمکے سره به ئې تعلق وی، زمکه کښې به کرونده او خوراك څکاك کوی۔
مِنْ رُّوْحِيْ: یعنی هغه روح چه په هغه کښې د الله نه سوئ د بل چا ملکیت او اختیار نشته، او صرف د الله تعالیٰ د طرف نه دے، هیڅ ظاهري سبب ئې نشته۔ ددے خصوصیت د وجه نه ئې الله تعالیٰ ته اضافت وشو۔ نو دا اضافت تشریفي دے۔
بِيَدَيَّ: دلته د یَدُ تاویل په قدرت یا په حکم یا په رحمت سره کول غلط دي، چه یو رحمتِ خاصه او بل رحمتِ عامه دے او دلته رحمتِ خاصه مراد دے، دا صحیح نهٔ ده، بلکه دا صفا دلیل دے چه د الله تعالیٰ دوه لاسونه دي، او الله تعالیٰ د خپل شان مطابق د آدم ؈ خټه په خپلو دواړو لاسونو سره اغږلے ده، او د هغې نه ئې آدم ؈ جوړ کړیدے۔
پدے وجه انسان الله تعالیٰ ته محبوب هم دے چه د هغه په لاس سره جوړ شویدے او نور مخلوقات په امر (کُنْ) سره پیدا دي۔ او دا مذهب د ټولو سلفو صالحینو دے۔ او دلته همدا تعبیر ئې پدے وجه هم وکړو چه دا دومره شریف انسان دے چه زما په لاس سره پیدا دے نو بیا تا ولے دهٔ ته سجده ونکړه۔

أَسْتَكْبَرْتَ أَمْ كُنْتَ مِنَ الْعَالِيْنَ: ددے تپوس مطلب دا دے چه ستا د سجدے نۀ کولو علت به د دوه علتونو نه یو علت ضرور وی، یا به ډے هسے دعوئ د لوئی کړی وی، او یا به په حقیقت کښې لوی ئے۔ او مخکښې ئے بیان کړو چه دا مخالفت د امر د استکبار د وجه نه وو نو دلته دوباره تپوس کولو نه مقصد د هغه ذلیله کول او د هغه دروغ راښکاره کول دی۔

أَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ خَلَقْتَنِيْ مِنْ نَّارٍ: دا قیاس د ابلیس غلط وو ځکه چه اُور کښې کبر دے او هر شے سیزی، ضرر ئے زیات دے، او خاوره کښې تولے فائدے ورکول دی خلکو ته۔ ځکه چه خاوره کښې گندونه واچوه مګر بیا به هم تا ته مزیدار فصل او میوه جات درکوی، انکار نۀ کوی، دارنګه اُور د ختے دپاره د خادم په منزله دے، که ضرورت ورته وی نو راغونډتلے شی لکه خادم چه راغونډتلے شی۔ اُور ته ضرورت ډیر کم راځی او خاورے ته همیشه ضرورت دے۔ تول خوراکونه د خاورونه راوځی۔

دارنګه اُور بغیر د عنصر د زمکے نه نۀ پیدا کیږی لکه مثلاً اُور د لرګو او خشاکو نه لګیږی او هغه د زمکے پیدا وار دے۔ دارنګه انجام د اُور ایری دی چه هیڅ فائده پکښې نشته او خاوره او ختـه د هر راز رغونیدونکی شی دپاره اصل دے لکه انسان او ونه۔

إِلَىٰ يَوْمِ الدِّيْنِ: مطلب دادے چه کله د قیامت ورځ راشی نو بیا به په تا باندے د لعنت سره سره سزاګانے او عذابونه هم وی۔

او دا مطلب نۀ دے چه تر قیامته پورے به لعنت وی او بیا به نۀ وی۔

کله چه ابلیس په الله تعالیٰ باندے قسَم خوړلو سره ووئیل چه اے الله! زۀ به ستا د مخلصو بندګانو نه سوئ نور تول ګمراه کومه، نو د سدئ د قول مطابق الله تعالیٰ هم په خپل ذات قسَم وخوړلو او وے وئیل چه زۀ به هم جهنم ستانه او د هغه تولو خلقو نه ډک کړم چه هغوئ ستا پیروی کوی۔

فَبِعِزَّتِكَ: دلته ئے د عزت لفظ راوړو اشاره ده چه د ابلیس په مخالفت باندے د الله تعالیٰ عزت ختم نشو، ځکه چه څوك د چا خبره ونۀ منی نو د هغه یو قسم سپکاوے کیږی، لیکن د الله تعالیٰ سپکاوے رانغلو۔ یعنی ستا په عزت مے ډے قسم وی۔

او بله اشاره ده چه دا مشرکان که د محمد رسول الله ﷺ هر څومره مخالفت وکړی نو د هغه عزت پدے باندے نۀ ختمیږی بلکه اُلټه به دوی خپل ځان ذلیله کړی۔

فَالْحَقُّ: ۱ - فَالْحَقُّ قَوْلِيْ وَوَصْفِيْ ۔ حق زما وینا ده او زما صفت دے، او حق زۀ بیانوم۔

۲- فَالْحَقُّ مِنِّیْ۔ یعنی حق زما د طرفنه وی او حق زهٔ وایم۔
۳- فَالْحَقُّ اَنَا۔ زهٔ هم حق یم او زما وینا هم حقه ده۔
لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ: پدے کښې اشاره ده چه اے مشرکانو! تاسو محمد رسول الله ﷺ پریخودو او د ابلیس تابعداری مو شروع کړه نو اُور د جهنم مو ځای دے۔

| قُلْ مَا اَسْئَلُکُمْ عَلَیْهِ مِنْ اَجْرٍ وَّمَا اَنَا مِنَ الْمُتَکَلِّفِیْنَ ﴿۸۶﴾ |
|---|
| ووایه! نهٔ غواړم تاسو نه پدے باندے څه مزدوری، او نهٔ یم زهٔ د دروغ جوړونکو نه۔ |
| اِنْ هُوَ اِلَّا ذِکْرٌ لِّلْعَالَمِیْنَ ﴿۸۷﴾ وَلَتَعْلَمُنَّ |
| نهٔ دے دا (قرآن) مګر نصیحت دے دپاره د مخلوقاتو۔ او خامخا پو هه به شئ تاسو |
| نَبَاَهٗ بَعْدَ حِیْنٍ ﴿۸۸﴾ |
| په خبر ددهٔ باندے روستو د څه وخت نه۔ |

**تفسیر:** اُوس د رسول الله ﷺ رشتینوالے او د قرآن حقانیت بیانوی۔
ربط دا دے چه مخکښې ئے مخالفت کونکو ته تخویف او د هغوی بد انجام بیان کړو نو اُوس د رسول الله ﷺ اخلاص او حقانیت بیانوی چه ددهٔ په دعوت کښې مقصد د الله تعالیٰ د حکم عملی کول دی، د دنیا سامان او فائدے ئے غرض نهٔ دے، نو ددهٔ نهٔ منل هلاکت ته دعوت دے۔
الله نبی کریم ﷺ ته ووئیل چه کوم خلق ستا رسالت دروغژن ګنړی، هغوئ ته ووایه! چه زهٔ تاسو نه د دین په بیان باندے هیڅ عوض نهٔ غواړم، او زهٔ چه څهٔ تاسو ته آوروم هغه واقعی د الله تعالیٰ وحی ده، زهٔ خپله دا نهٔ جوړوم،
وَّمَا اَنَا مِنَ الْمُتَکَلِّفِیْنَ: یعنی دا خبره خو تاسو ته زما په باره کښې د مخکښې نه معلومه ده چه زهٔ د ماشوم والی نه دروغ نهٔ وایم، او د خپل ځان دپاره د کوم داسے صفت دعوئ نهٔ کوم چه هغه په ما کښې دننه د الله د طرفه نهٔ وی۔ دے وجے نه دا څنګه کیدے شی چه څلویښتو کالو عمر ته د رسیدو نه پس د نبوت دروغژنه دعوئ وکړم او د خپل طرفه یو کلام جوړ کړم او تاسو ته ئے واوروم، او اووایم چه دا د الله تعالیٰ کلام دے۔
پدے آیت کښې دوه څیزونه ذکر دی چه هغه د صدق او رشتینوالی نه مانع ګرځی، یو

دا چه طمع د اجر چه د هغے په وجه پوره حق نشي بيانيدے، او دويم د ځان نه خبرے جوړول نو دا دواړه څيزونه ئے دلته نفي کړل.

الْمُتَكَلِّفِينَ: تکلف د ځان نه خبرے جوړولو ته وائي او ځان کښ د داسے صفتونو دعوىٰ کول چه په هغه کښ نهٔ وي. متکلف: مَنْ يُنَازِعُ مَنْ فَوْقَهُ وَيَتَعَاطَى مَا لَا يَنَالُ وَيَقُوْلُ مَا لَا يَعْلَمُ. څوک چه ددهٔ نه پورته وي هغه سره جګړه کوي، (چه ددهٔ عزت کيږي زما ولے نهٔ کيږي؟ حالانکه د هغه په شان صفات ځان کښ نهٔ راولي) او هغه شي ته کوتے اچوي چه هغے ته رسيدے نشي. او وائي هغه خبرے چه نهٔ پرے پو هيږي).

عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي: څوک چه په يوه خبره او مسئله پو هيږي نو هغه دِے بيانوي او څوک چه په يوه مسئله نهٔ پو هيږي نو داسے دِے وائي: (الله اعلم) الله ښه پو هيږي، ځکه چه دا هم علم دے چه يو تن په يوه خبره نهٔ پو هيږي او داسے ووائي چه الله ښه پو هه دے. ځکه چه الله تعالىٰ خپل رسول ته فرمائيلي دي: [وَمَا أَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِينَ] ووايه ...... چه زهٔ نهٔ يم د تکلف کونکو نه.

او سيدنا عمر فاروق ﷺ فرمائي: نُهِيْنَا عَنِ التَّكَلُّفِ. (مونږ د تکلفاتو نه منع شوي يو)

إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَالَمِيْنَ: دا خو واقعي د الله تعالىٰ کلام دے چه هغهٔ دا د دنيا والو د عبرت او نصيحت دپاره نازل کړے. يعني دا قرآن د ياداشت خبرے دي چه انسان ته الله تعالىٰ او آخرت فائده منے خبرے رايادوي نو ددے نه نصيحت قبلول لازم دي.

وَلَتَعْلَمُنَّ نَبَأَهُ بَعْدَ حِيْنٍ: او تاسو به پو هه شئ ددے په خبر باندے پس د څه زمانے نه. يعني د قرآن د خبرونو رشتينوالے به تاسو ته د مرګ نه روستو او د قيامت په ورځ معلوم شي چه قرآن کوم خبرونه ورکړي وو نو دا حقيقت وو.

نَبَأَهُ: حقيقتِ حال د قرآن. يا خبر د انجام د انکار د قرآن. يا هغه خبرونه چه قرآن ورکړيدي.

بَعْدَ حِيْنٍ: نه مراد د مرګ نه روستو زمانه ده (فراءؒ، زجاجؒ، قتادةؒ) يا د قيامت ورځ ده. (ابن زيدؒ وعکرمةؒ) يا ددے نه مراد دے چه کله خلق ډلے ډلے اسلام قبلول شروع کړي، او هر طرفته د اسلام اسلام خبره شروع شي نو تاسو ته به د قرآن د حقانيت علم وشي.

مفسرين ليکي چه د قرآن کريم دا خبره د نبي کريم ﷺ د صداقت ډير لوي دليل وو، ځکه چه کله دا خبره وئيلے کيدله په دغه وخت د مسلمانانو شماره ډيره لږه وه، ځکه چه دا سورت مکي دے او هر وخت د دوئ په ذهنونو باندے د مشرکانو ويره را ښکته وه،

بیا په لږ وخت کښې حالات داسې اُلټه شول چه د مسلمانانو شماره زیاته شوه، او مسلمان یو عظیم قوت جوړ شو او دنیا کښې راښکاره شو، او د قرآن کریم پیشین ګوئی حرف په حرف رشتینې ثابته شوه. (القاسمی وفتح البیان)

## امتیازات د سورت

۱- پدې سورت کښې د ذکر او د یوم الحساب تذکرې ډیرې وې.
۲- پدې کښې د انبیاء علیهم السلام واقعات په ناشنا انداز وو.
۳- اولی الایدی والابصار جمله پکښې ناشنا دعوتی جمله وه.
٤- د ابو طالب د مجلس نه د قریشو پاڅیدل او د قرآن نه انکار په کښې خصوصی طور سره ذکر دې.

ختم شو تفسیر د سورة ص په توفیق د رب العالمین سره په اسریت سوات کښې.
تاریخ: رمضان المبارك۲٦/۱٤۳٦ هـ موافق: ۱۳/۷/۲۰۱۵ء.
بجه: ۲۰:۳. بعد الظهر.

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ○

| آياتها (٧٥) | (٣٩) سورة الزمر مكية (٥٩) | ركوعاتها (٨) |
| --- | --- | --- |

سورة الزمر مكي ده، په دے کښې پنځه اويا آيتونه، او اته رکوع دي

## تفسير سورة الزمر

**نوم :** دے ته سورتِ زُمَر وائي، زُمَر معنىٰ ده ډلے، نو پدے کښې هم جنت او جهنم ته تلونکے ډلے ذکر دي۔ دويم نوم ئے سورة غُرَف دے۔ (يعني بالاخانے)

**د نازليدو زمانه :** ابن عباسؓ، حسنؒ، عکرمہؒ، او جابر بن زيدؒ نه نقل دي چه دا سورت مکي دے۔ بعضِ خلقو ﴿قُلْ يٰعِبَادِيَ﴾ نه درے آيتونه مدني بنودلي۔

### مناسبت

١- مخکښې بيان شو چه پيغمبران الله تعالىٰ ته عاجز دي نو دلته وائي چه بندگي يوائے د الله تعالىٰ وکړئ، مخلوق عاجز دے۔

٢- مخکښې سورت کښې د مشرکانو انکار د توحيد نه ئے ذکر کړو نو پدے سورت کښې تفصيل د عقيدے د مشرکانو او عقلي دليلونه په توحيد باندے ذکر کوي۔

### موضوع د سورت

١- اَلْعِبَادَةُ لِلّٰهِ وَحْدَهٗ۔ يعني بندگي صرف د الله تعالىٰ پکار ده او رد د شرك في العبادات والالوهية باندے په عقلي دليلونو سره او په رد د ټولو اقسامو د شرك سره۔

٢- اَلْعِبَادَةُ لِلّٰهِ تَعَالٰى وَحْدَهُ الْمُوَلِّدَةُ لِلْاَخْلَاقِ الْحَمِيْدَةِ ۔ د الله تعالىٰ داسے عبادت کول چه ښائسته اخلاق په سړي کښې راپيدا کړي، ښه اخلاق څه شے؟ نو هغه هم دے سورت بيان کړي چه هغه اِنابت دے، اِقْشِعْرَارُ الْجُلُوْد۔ (غونے زيګ شي) لِيْنُ الْقُلُوْب۔ زړونه

نرم شي۔ د خلکو سره احسان او نيکي۔ تَأَثُّرٌ بِكِتَابِ الله ۔ صبر پيدا شي، روستو راځي د آخرت يره او د الله تعالیٰ د رحمت اميدونه۔

خلاصه: اول کښې ترغيب دے قرآن ته، بيا ئے په عبادت امر کړيدے او په مشرکانو ئے رد کړيدے چه د غير الله عبادت کوي، بيا ئے دلائل راوړيدي، بيا ئے د يو مشرك حال بيان کړيدے، چه په مصيبت کښې ورته الله تعالیٰ ياد وي، او په راحت کښې ترے هير وي۔ بيا ددے په مقابل کښې د علماؤ مؤمنانو عبادات ئے ذکر کړي۔ دے سورت کښې به اضداد زيات بيانيږي۔

## فضيلت

رسول الله ﷺ به نهٔ اُوده کيدو تردے چه سورتِ زمر او سورة بني اسرائيل به ئے ولوستلو۔ (ترمذی فی ثواب القرآن باب ٢١ رقم (٣٤٠٥) والدعوات باب ٢٢) واحمد (٦٨/٦) واسناده صحيح)

| |
|---|
| تَنزِيلُ الْكِتَٰبِ مِنَ اللهِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ ﴿١﴾ إِنَّا |
| نازلول ددے کتاب د طرف د الله نه دی چه زورَور حکمتونو والا دے۔ يقيناً مونږ |
| أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَٰبَ بِالْحَقِّ فَاعْبُدِ اللهَ مُخْلِصًا |
| نازل کړيدے تا ته کتاب د حق ښکاره کولو دپاره نو بندگي کوه الله لره خالص کونکے |
| لَّهُ الدِّينَ ﴿٢﴾ أَلَا لِلَّهِ الدِّينُ الْخَالِصُ وَالَّذِينَ |
| ئے هغهٔ لره عبادت۔ خبردار خاص د الله دپاره دے عبادت خالص او هغه کسان |
| اتَّخَذُوا مِن دُونِهِ أَوْلِيَاءَ مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا |
| چه نيولي ئے دي سوئ د الله نه دوستان (معبودان) مونږ بندگي نهٔ کوو د دوي مگر |
| لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللهِ زُلْفَىٰ إِنَّ اللهَ يَحْكُمُ |
| ددے دپاره چه نزدے کوي به مونږ الله ته په نزديکت سره، يقيناً الله به فيصله کوي |
| بَيْنَهُمْ فِي مَا هُمْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ |
| په مينځ د دوي کښې په هغه څه کښې چه دوي په هغے کښې اختلاف کوي، |

إِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي مَنْ هُوَ كَاذِبٌ كَفَّارٌ ﴿٣﴾

یقیناً الله هدایت نهٔ کوی هغه چا ته چه ډیر دروغژن ډیر کفر کونکے دے۔

**تفسیر**: په دے آیتِ کریمه کښې د قرآن کریم رښتینوالے بیان شوے چه دا قرآن کریم د هغه الله له اړخه نازل شوے چه په هر شئ غالبه او په خپلو ټولو کارونو کښې د حکمت خاوند دے۔ العزیز کښې اشاره ده صفاتو د قدرت ته، او الحکیم کښې اشاره ده صفاتو د علم ته۔

إِنَّا أَنْزَلْنَا: پدے کښې د قرآن کریم د نزول مقصد بیان شویدے چه د هغے نه ئے تعبیر په (بِالْحَقِّ) سره کړیدے، یعنی دا قرآن د یو حقیقت دپاره راغلے دے، او هغه حقیقت روستو په (فَاعْبُدِ اللّٰهَ) سره شویدے، یعنی یواځے د یو الله عبادت کول دی۔

دارنګه حق نه مراد دا دے چه پدے کښې هغه خبرے دی چه هغه حقے او رښتینی دی چه هغه د توحید او نبوت، آخرت او نور ټول اوامر اونواهي دی۔ معلومه شوه چه قرآن یو حقیقت لری او هسے بیکاره بے مطلبه نهٔ دے نازل۔

**فائده**: مخکښې ئے تنزیل لفظ ذکر کړو چه دلالت کوی په لږ لږ نازلیدو سره او روستو ئے (أَنْزَلْنَا) ذکر کړو چه دلالت کوی په یو ځل نازلیدو باندے۔ نو پدے کښې اشاره ده چه قرآن اول کښې لږ لږ نازل شوے او پدے طریقه پوره شویدے، او پدے لږ لږ نازلیدو سره پدے کښې هیڅ نقصان نهٔ دے راغلے بلکه ټول پوره شویدے۔

مُخْلِصًا لَّهُ الدِّيْنَ: دین په معنیٰ د طاعت او عبادت سره دے۔ او ددے سر توحید د الله تعالیٰ دے او دا چه د هغه هیڅوک شریك نشته۔ أَيْ مُمَحِّضًا لَّهُ الدِّيْنَ مِنَ الشِّرْكِ وَالرِّيَاءِ بِالتَّوْحِيْدِ وَتَصْفِيَةِ السِّرِّ۔ یعنی خالص کونکے هغه دپاره عبادت لره د شرك او ریاء نه په توحید او په باطنی صفائی سره۔ او په عبادت کښې اخلاص دا دے چه بنده په خپل عمل سره صرف د الله تعالیٰ مخ طلب کړی۔

دا آیت دلیل دے چه په عباداتو کښې نیت او اخلاص کول لازم دی ځکه چه اخلاص د زړهٔ صفت دے چه په زړه سره ادا کیږی۔ د مجاهدٌ نه نقل دی چه دلته الدین لفظ شامل دے ټولو اوامرو او نواهیو ته چه په ټولو کښې خلوص شرط دے دپاره د صحت او قبولیت۔

أَلَا لِلّٰهِ الدِّيْنُ الْخَالِصُ: د الله دپاره خالص دین وی۔ ۱ – یعنی هغه د خالص دین

حقدار دے۔ د شرك نه منزه دے او د خالص دین او عبادت حقدار دے۔ ۲ – یعنی الله خالص دین او خالص عبادت او بلنه قبلوی۔ دواړه معانی صحیح او مراد دی۔

او ددے مطلب دا هم دے چه په عبادت او الو هیت او وحدانیت کښې د الله تعالیٰ د یواځے والی تقاضا دا ده چه هر قِسم عبادت صرف هغهٔ دپاره خاص کړے شی، په دے طور چه د شرك بُوئـی په کښې بیانهٔ موندلے شی۔ او پدے معنیٰ به دا د مخکښې (مُخۡلِصًا لَّهُ الدِّیۡنَ) تاکید وی۔

وَالَّذِیۡنَ اتَّخَذُوۡا : اُوس رد په مشرکانو او د هغوی په غلط عذر باندے۔ قتادة وائی : کله چه به مشرکانو ته ووئیل شو چه ستاسو خالق او رب څوك دے؟ او آسمانونه او زمکه چا پیدا کړیدی او د آسمان نه اُوبه چا راورولی دی؟ نو دوی به وئیل چه الله، بیا به دوی ته ووئیل شو چه بیا ستاسو د بتانو عبادت څه معنیٰ ده؟ نو دوی به وئیل : ﴿مَا نَعۡبُدُهُمۡ اِلَّا لِیُقَرِّبُوۡنَاۤ اِلَی اللّٰهِ زُلۡفٰی﴾ مونږ خو د دوی عبادت صرف ددے دپاره کوو چه مونږ الله ته په مرتبه کښې نزدے کوی، او زمونږ دپاره د الله په دربار کښې سفارش کوی۔

والذین دا مبتداء ده او (اِنَّ اللّٰهَ یَحۡکُمُ بَیۡنَهُمۡ) ئے خبر دے۔

اَوۡلِیَآءَ: نه مراد ملائك، عیسیٰ علیهم السلام او بتان چه د دوی په شکل باندے جوړ کړے شویدی۔ نو دلته د اولیاء نه مراد معبودان دی۔

د مَانَعۡبُدُهُمۡ نه مخکښې (یَقُوۡلُوۡنَ) لفظ پټ دے۔ یعنی دوی په جواب کښې وائی۔

کلبیؒ وئیلی دی چه د دوی ددے بهانے جواب په سورة الاحقاف (۲۸) آیت کښې ذکر دے یعنی ﴿فَلَوۡلَا نَصَرَهُمُ الَّذِیۡنَ اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ قُرۡبَانًا اٰلِهَةً﴾ ۔ او دلته صرف زجر ورکوی څکه چه دوی د قرآن کریم د مقصد خلاف کار کوی۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکلی دی چه دغه مشرکانو د ملائکو مقربینو په شکلونو سره په خپل گمان بتان جوړ کړی وو، او د دغه شکلونو عبادت به ئے کولو پدے عقیده چه ددے شکلونو عبادت بعینه د ملائکو عبادت دے، او دا ددے دپاره چه الله تعالیٰ ته زمونږ سفارش وکړی په مدد کولو او په رزوی راکولو او نورو دنیاوی حوادثو کښې (څکه چه دا خلك د آخرت منکر وو) بیا فرمائی : دا شبهه د تیر شوو مشرکانو وه او اُوس هم ده او رسولان ددے شبهے د رد دپاره رالیږلے شویدی، آه۔ ددے نه معلومه شوه چه د ملائکو وسیلے نیول او د هغوی عبادت کول شرك دے، نو د پیرانو او قبرونو وسیلے نیول او هغوی ته سجدے لگول او د هغوی د قبرونو نه طوافونه کول او د هغوی نذرانے او

منبتے كول دا خو يقيناً شرك دے. مگر بيا هم ډير مشركان وائي چه شرك خو دے ته وائي چه بت ته سجده وكړے شي.

فِيْ مَا هُمْ فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ: الله تعالیٰ به د قيامت په ورځ د دوئ او د مومنانو ترمينځه فيصله كوي، او هر يو ته به د هغهٔ د عمل بدله وركړي. مومنانو له به انعام او اكرام وركړي، او كافران او مشركان به جهنم ته گذار كړو. دے كښې اشاره ده چه څوك د غير الله بندگي كوي نو هغه اختلاف جوړ كړيدے د ايمان والو سره.

دويم: پدے كښې اشاره ده سزا د مشركانو ته چه دوي خپل مينځ كښې د غير الله په عبادت كښې مختلفے طريقے جوړے كړيدي الله به ورله سزا وركړي. يا د دوي د عابدانو او معبودانو دواړو ترمينځ به فيصله وكړي او د يو بل نه به براء ت او بيزاري اعلان كړي.

كَاذِبٌ: چه دروغجن دے په دعوه د تقرب الى الله كښې، ځكه كه د دوي په زړونو كښې د الله تعالیٰ محبت وے نو شرك به ئے نهٔ كولے.

او كَفَّارٌ: منكر دے د توحيد د رب العالمين نه. ځكه چه څوك دغه شان بصيرت ورك كونكے وي نو هغه د هدايت قبلولو لائق نهٔ وي ځكه چه هغه فطرت بدل كړے وي او په گمراهئ كښې ئے ښه تجربه شوي وي.

دے نه دا هم معلومه شوه چه كوم خلك د رسول الله ﷺ د محبت دعوے كوي، او بيا د هغهٔ نه سوئ د طاعت دپاره نور اماماں نيسي، نو دا په دعوه د محبت كښې خامخا دروغجن دے كه ددهٔ محبت رشتينى وے، نو په رسول الله ﷺ باندے به ئے امتي نهٔ مخكښې كولے او د اُمتي په محبت كښې به ئے د رسول الله ﷺ د سنتو په خلاف جگړے نهٔ كولے.

| لَوْ أَرَادَ اللّٰهُ أَنْ يَّتَّخِذَ وَلَدًا لَّاصْطَفٰى |
| --- |
| كه چرته اراده كړے وے الله تعالیٰ چه اُونيسي اولاد خامخا غوره كړي به ئے وے |
| مِمَّا يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ سُبْحَانَهٗ هُوَ اللّٰهُ الْوَاحِدُ |
| د هغه چا نه چه پيدا كوي ئے الله څه چه وغواړي، پاك دے هغه، هغه الله معبود يو دے، |
| الْقَهَّارُ ﴿٤﴾ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ يُكَوِّرُ |
| زورور دے. پيدا كړي ئے دي آسمانونه او زمكه دپاره د ښكاره كولو د حق، راتاووي |

| اللَّيْلَ عَلَى النَّهَارِ وَيُكَوِّرُ النَّهَارَ عَلَى اللَّيْلِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ |
|---|
| شپه په ورځ باندے او راتاووی ورځ په شپه باندے او تابع کړی ئے دی نمر او سپوږمئ، |
| كُلٌّ يَجْرِى لِأَجَلٍ مُّسَمًّى أَلَا هُوَ الْعَزِيزُ الْغَفَّارُ ﴿٥﴾ |
| ټول روان دی دپاره د یوے نیټے مقررے، خبردار! هغه غالبه دے بخونکے دے۔ |

**تفسیر**: دا هم رد دے په مشرکانو باندے چه ملائك ئے د الله تعالیٰ لونړه ګنړل او عزیر او عیسیٰ علیهما السلام ئے د الله تعالیٰ ځامن ګنړل۔ نو الله فرمائی چه د الله هیڅ اولاد ته هیڅ حاجت نشته، هغه د اولاد نه پاك دے، خو بالفرض که الله تعالیٰ ځان له اولاد غوره کولے نو بیا ئے ستاسو مرضئ ته نۀ سپارل چه تاسو ئے ورله غوره کړئ بلکه هغه به یو غوره مخلوق پیدا کړے وے او خپل ځان له به ئے بچی نیولی وے۔
او مخلوق د هغۀ اولاد جوړیدل ځکه محال دی چه په خالق او مخلوق کښې هیڅ مجانست نۀ موندلے کیږی۔ دے وجے نه ددے نه سویٰ هیڅ صورت نشته چه مخلوق دے د هغۀ بندګان وی، نۀ اولاد۔ ځکه الله وفرمایل : الله تعالیٰ د هر نقص او عیب نه پاك دے۔
د اتخاذ الولد بله معنیٰ دا هم ده چه دوی به د غیر الله عبادت کولو، او بیا به ئے وئیل چه دا د الله تعالیٰ نازولی دی، الله تعالیٰ دوی خپل نائبان ګرځولی دی، او دوی ته ئے د الوهیت د کارونو اختیار ورکړیدے، او اُوس هم دا عقیده په ډیرو جاهلانو کښې موجوده ده چه شیخ عبد القادر جیلانیؒ ته غوث اعظم او دیولسمے ځوان وائی۔
**الْوَاحِدُ**: یعنی الله تعالیٰ یواځے دے په تصرف کولو کښې نو ولد ته ئے حاجت نشته۔
**الْقَهَّارُ**: په هر څه او په هر چا زورآور دے، نو ولد او نائب ته هیڅ ضرورت نۀ لری۔
**خَلَقَ السَّمَاوَاتِ** : اُوس د توحید فی العبادة دپاره عقلی دلیلونه بیانوی چه دا د الله تعالیٰ د معرفت او د شرك د رد پاره دلیلونه دی، یعنی د الله سره شریکان نشته اُوګوره داسے کارونه صرف هغۀ کړیدی او دا نعمتونه ورکونکے صرف الله دے۔
اول دلیل آفاقی دے، یعنی الله تعالیٰ خالق دے او رب او متصرف دے په اجزاؤ د زمانه کښې چه هغه شپه او ورځ دی او په اسبابو د تغیر د زمانه کښې چه نمر او سپوږمئ دی۔
**يُكَوِّرُ**: تکویر رانغختلو ته وائی مراد ترینه پټول دی تردے چه رڼا ئے ختمه شی۔ او یو

په بل باندے راتاوولو کښې کله یوه کمه شی او کله بله۔ او هر کله چه په شرعی حساب کښې شپه د ورځ نه مخکښې ده نو پدے وجه ئے دلته شپه مخکښې ذکر کړه۔

اَلْعَزِیْزُ الْغَفَّارُ : یعنی د الله تعالیٰ بخنه کول د عجز نه نهٔ دی بلکه سره ددے نه چه زورآور دے لیکن مؤمنانو ته بخنه کوی او د کافرانو نه عذابونه روستو کوی۔ او پدے کښې دعوت دے بندګانو ته چه راشئ الله تعالیٰ ته رجوع وکړئ هغه به درته ګناهونه معاف کړی، او که رجوع مو ونکړه نو الله ستاسو په رانیولو پوره غالب او زورور دے۔

| |
|---|
| خَلَقَكُمْ مِنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ ثُمَّ جَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَأَنْزَلَ |
| پیدا کړی ئے تاسو د یو نفس نه بیا ئے ګرځولے ده د هغے نه بی بی د هغهٔ او راليږلی ئے |
| لَكُمْ مِنَ الْأَنْعَامِ ثَمَانِيَةَ أَزْوَاجٍ يَخْلُقُكُمْ فِي بُطُوْنِ أُمَّهَاتِكُمْ |
| دی تاسو لره د چارپیانو اته جوړی، پیدا کوی تاسو په خیټو د میندو ستاسو کښې |
| خَلْقًا مِنْ بَعْدِ خَلْقٍ فِي ظُلُمَاتٍ ثَلَاثٍ ۚ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ |
| په پیدائش روستو د بل پیدائش نه په تیارو دریو کښې، دغه صفتونو والا الله دے |
| رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ |
| رب ستاسو دے، خاص هغهٔ لره بادشاهی ده، نشته حقدار د بندګئ سوئ د هغهٔ نه |
| فَأَنّٰى تُصْرَفُوْنَ ﴿٦﴾ إِنْ تَكْفُرُوْا فَإِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ |
| نو څنګه اړولے شی دوی (د حق نه)۔ که تاسو کفر کوئ نو یقیناً الله بے حاجته دے |
| عَنْكُمْ وَلَا يَرْضٰى لِعِبَادِهِ الْكُفْرَ وَإِنْ تَشْكُرُوْا |
| ستاسو نه او نهٔ خوښوی دپاره د بندګانو ناشکری (کفر) لره، او که تاسو شکر کوئ |
| يَرْضَهُ لَكُمْ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ أُخْرٰى ثُمَّ |
| پسند ئے تاسو لره۔ او نهٔ پورته کوی یو پورته کونکے بوج د بل چا، بیا به |
| إِلٰى رَبِّكُمْ مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا |
| خاص رب ستاسو ته ګرځیدل ستاسو وی نو خبر به درکړی تاسو ته په هغے عملونو |

كُنتُمْ تَعْمَلُونَ إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿٧﴾

چه تاسو ئے کوئ، یقیناً هغه پوهه دے په هغه خبرو چه سینو کښ دی۔

**تفسیر**: دا دویم عقلی انفسی دلیل دے، او دے کښ هم د الله تعالیٰ خالقیت، قدرت او تصرف د ربوبیت ذکر دے۔

فرمائی: الله تعالیٰ تمام انسانان صرف د یو آدم ﷺ نه پیدا کړی، او د هغهٔ ښځه حواء رضی الله عنها ئے د هغهٔ د ګسے پښتئ نه پیدا کړے۔ او یو دلیل دا هم دے چه هغهٔ اوښ، غوا، ګډه او بزه پیدا کړل، او د هر یو نه ئے نر او ماده دوه قِسمونه جوړ کړل۔ ټول اته قسمونه شو چه تفصیل ئے په سورة الانعام (٤٢) آیت کښ ذکر دے۔

دلته د (اَنْزَلَ) معنیٰ ده۔ (خَلَقَ) یعنی پیدا کړی ئے دی۔ یعنی چارپیان په بوټو سره ژوندی پاتے کیږی، او بوټی په اُوبو سره پیدا کیږی او اُوبه د برے نه نازل کړے شویدی۔ دارنګه ددے ټولو ځیزونو پیدائش په آسمانی اسبابو سره وی نو د هغے نه په انزال سره تعبیر کولے شی۔

**يَخْلُقُكُمْ فِي بُطُونِ أُمَّهَاتِكُمْ**: یعنی یو دلیل دا هم دے چه هغه انسانان د هغوئ د میندو په خیټو کښ د مختلفو مراحلو (پړاوونو) نه تیروی، اول د مور په رَحِم کښ نطفه قرارے نیسی، بیا د جَم شوے وینے شکل اختیاروی، بیا د غوښے د ټوټے پشان شی، بیا انسانی شکل او صورت اختیاروی او په هغهٔ کښ روح اچولے کیږی، ددهٔ پرورش د درے تیارو لاندے کیږی، د خیټے تیارهٔ، د رَحِم تیارهٔ او د مشیمے تیاره۔ یعنی د هغه پردے (پریوان/ملانئ) تیارهٔ چه په بچی باندے را تاو شوی وی۔ دے دپاره چه ماشوم ته په خوزیدو راخوزیدو سره تکلیف ونهٔ رسی۔ بیا چه کله ماشوم پیدا شی نو دا مشیمه وریورے انښتی وی نو هغه ترے ګوزار کړے شی۔

**خَلْقًا مِنْ بَعْدِ خَلْقٍ**: ددے نه مراد دغه مختلف مراحل او اطوار دی کوم چه تفصیلاً په سورة المؤمنون آیت (١٤) کښ ذکر دی۔

**ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ**: د مخکنو دلیلونه یوه دا نتیجه راووته چه دا ټول کارونه صرف د الله تربیت دے، که الله تعالیٰ ددے نطفے حفاظت په دغه ځای کښ ونکړی نو انسان خو لاړو ضائع شو۔ او دویم (لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ) دا دویمه نتیجه ده، هر کله چه دا کارونه الله کریدی نو بس عبادت به هم صرف د هغهٔ کولے شی۔

ذٰلِکُم مبتداء ده او (اَللّٰهُ) یو خبر او (رَبُّکُمْ) دویم خبر دے۔

فَاَنّٰی تُصْرَفُوْنَ: پدے کښې زجر دے یعنی هرکله چه دا کارونه صرف الله تعالیٰ کړیدی نو بیا خلق د هغهٔ نه سوئ د نورو عبادت ولے کوی ؟!۔

اِنْ تَکْفُرُوْا: مخکښې دلیلونه ذکر شو نو اُوس وائی چه ددے نه روستو دوه قسمه خلق پیدا کیږی، یو کفر کونکی (ناشکره) او بل شکر کونکی۔

بیا په اوله جمله کښې زجر او توبیخ دے او اشاره ده چه ستاسو د کفر کولو ضرر او نقصان الله تعالیٰ ته نهٔ رسی بلکه تاسو ته رسیږی نو کفر ولے کوئ؟!۔

او دویمه جمله جواب د سوال دے چه هرکله د کفر ضرر په الله تعالیٰ باندے نشته، نو بیا ترے ولے منع کول کوی؟ جواب وشو چه هیڅ مَولیٰ د خپل مرئی کفر (ناشکری) نهٔ خوښوی نو الله تعالیٰ خو ډیر رحم کونکے دے نو هغه د بندګانو دپاره کفر څرنګ خوښ کړی۔ یعنی دا د الله تعالیٰ د عظمت تقاضا ده چه د هغهٔ یو بنده ډے وی او کفر ډے کوی، دا ورله نهٔ خوښوی۔

ددے مثال دا دے لکه چه یو انسان د خپل ځوی دپاره دا نهٔ خوښوی چه هغه چرسی او پوډری جوړ شی، نو الله هم په خپلو بندګانو کښې شریان او فسادیان نهٔ دی خوښ۔ نو دے کښې دعوت دے چه د الله تعالیٰ صحیح بندګان جوړ شئ۔

وَلَا یَرْضٰی لِعِبَادِهِ الْکُفْرَ : دا آیت دلیل دے چه د الله تعالیٰ اراده عامه ده د کفر پورے هم متعلق کیږی، او د اسلام او د شکر پورے هم، بیا په کفر ناراضه دے او په شکر باندے راضي دے۔ نو د ارادے او د رضا ترمینځ فرق شته۔

یَرْضَهُ لَکُمْ: په لَکُمْ کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ ستاسو شکر ته محتاج نهٔ دے بلکه پدے کښې ستاسو فائده ده۔

امام مسلمؒ په خپل کتاب «الصحیح» کښې حدیث قدسی روایت کړے چه (اے زما بندګانو ! که چرے ستاسو اولنی او آخری خلق او ستاسو پیریان او انسانان په تاسو کښې د بدترین ګنهګار پشان جوړ شی نو دے سره به زما په بادشاهئ کښې هیڅ فرق رانشی)۔

وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ: دے کښې الله تعالیٰ بل قانون بیان کړیدے چه د هیچا بوج په بل چا باندے نهٔ بار کیږی، هر سړی سره به د هغه د عمل حساب کیږی۔ نو پدے کښې اشاره ده چه د کافر کفر بل چا ته نهٔ رسیږی۔ ضرر به ئے صرف په هغه باندے راواپس کیږی۔

وَإِذَا مَسَّ الْإِنسَانَ ضُرٌّ دَعَا رَبَّهُ مُنِيبًا

او کله چه اُورسی انسان ته تکلیف دعاګانے غواړی د رب خپل نه رجوع کونکے وی

إِلَيْهِ ثُمَّ إِذَا خَوَّلَهُ نِعْمَةً مِّنْهُ

(اخلاص کونکے وی) هغهٔ ته، بیا کله چه ورکړی دهٔ ته یو نعمت د خپل طرف نه

نَسِيَ مَا كَانَ يَدْعُوا إِلَيْهِ مِن قَبْلُ وَجَعَلَ

نو هیر کړی هغه حالت چه دهٔ به رابللهٔ الله تعالیٰ هغے ته مخکښې، او وګرځوی

لِلَّهِ أَندَادًا لِّيُضِلَّ عَن سَبِيلِهِ قُلْ تَمَتَّعْ

الله لره شریکان دے دپاره چه ګمراه کړی خلق د لارے د الله نه، اُووایه ! فائدے واخله

بِكُفْرِكَ قَلِيلًا إِنَّكَ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ ﴿٨﴾

سره د کفر نه لږه زمانه، یقیناً تهٔ د اُور والو نه ئے۔

**تفسیر** : اُوس د یو ناکاره انسان حال بیانوی چه بعض خلك داسے وی چه په نعمت کښې ناشکره وی، او چه کله پرے څه تکلیف راشی نو بیا ورته الله تعالیٰ یاد وی او دے ته خود غرضه عابد وائی، او د الله والا عبادت ګذار هغه دے چه په تکلیف او راحت دواړو کښې الله یادوی۔ او خود غرض دا دے چه کله چرے د هغهٔ غرض پوره کیدو نو عبادت کوی، او که نهٔ پوره کیدو نو نهٔ ئے کوی۔ نو پدے آیت کښې په هغهٔ باندے رد دے۔ او د هغهٔ په کردار کښې لوی تضاد ثابتول دی۔

**مُنِيبًا إِلَيْهِ** : یعنی د زړهٔ په رجوع او ډیره زاریٔ سره د الله تعالیٰ نه دعا غواړی او یواځے هغه یادوی او ډیر ورته متوجه وی چه زما ربه ! تهٔ زما تکلیف لرے کړه،

**ثُمَّ إِذَا خَوَّلَهُ** : بیا کله چه الله تعالیٰ ورته نعمت ورکړی او د مصیبت نه ئے خلاص کړی۔ نو هر څهٔ هیر کړی او د مخکښې پشان د بل چا عبادت کوی۔

**نَسِيَ مَا كَانَ يَدْعُوا إِلَيْهِ**: یعنی هیر کړی هغه حالت چه دهٔ به رابللو الله تعالیٰ هغے ته یعنی د هغه مصیبت حالت هیر کړی، چه په ما باندے داسے وخت راغلے وو چه په ما مصیبت وو او الله تعالیٰ راسره مدد وکړو نو اُوس خو به لږه د هغه بندګی وکړم۔

**وَجَعَلَ لِلَّهِ أَندَادًا**: یعنی د الله تعالیٰ احسان هیرول خو په ځای پریده چه دپاسه پرے الله

تعالیٰ دپاره شریکان وګرځوی، او دا وائی چه د فلانی بابا راباندے نظر وشو او د مصیبت نه ئے راخلاص کړم۔

لِّيُضِلَّ عَن سَبِيلِهِ: نور خلك د الله د لارے او د توحید نه ګمراه کوی، یعنی د ګمراهئ دعوت کوی په خپلو غلطو قصو سره، داسے وائی چه زما بچی نهٔ پیدا کیدل فلانی بابا له لاړم، هلته مے حاجت وغوښتو نو بچے مے پیدا شو او د فلانی مصیبت نه خلاص شوم۔

قُلْ تَمَتَّعْ: الله تعالیٰ د خپل نبی په ژبه هغهٔ ته ووئیل چه تهٔ ددے دنیوی ژوند نه د څهٔ ورځو دپاره خوند واخله، مرګ نه پس به ستا ځای جهنم وی۔

مفسرین لیکی چه د آیت په دے برخه کښ کافرانو او مشرکانو ته ډیره زیاته دهمکی ده، لکه څنګه چه الله تعالیٰ د سورتِ ابراهیم په (۳۰) آیت کښ فرمایلی: ﴿قُلْ تَمَتَّعُوا فَإِنَّ مَصِيرَكُمْ إِلَى النَّارِ﴾ (ورته اووایه چه ښے مزے واخلئ، ستاسو انجام خو آخر جهنم دے)۔

او ددے تَمَتَّعْ یو مصداق دا هم دے چه سره د شرك او كفر او سره د ناشكرئ نه الله تعالیٰ ددهٔ دعاګانے قبلوی او نعمتونه ورکوی، دا د دنیا متاع او فائدے دی چه کافرانو ته هم ورکیدے شی، او دا دلیل نهٔ دے چه ګنے دے حق پرست دے۔

| أَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ آنَاءَ اللَّيْلِ سَاجِدًا |
|---|
| آیا هغه څوك چه هغه عاجزی کونکے دے په ساعتونو د شپه کښ سجده کونکے |
| وَقَائِمًا يَحْذَرُ الْآخِرَةَ وَيَرْجُو رَحْمَةَ رَبِّهِ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي |
| او په ولاړه، یریږی د آخرت نه او امید لری د رحمت د رب خپل، اُووایه آیا برابر دی |
| الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ |
| هغه کسان چه پوهه لری او هغه کسان چه پوهه نهٔ لری، یقیناً نصیحت اخلی |
| أُولُوا الْأَلْبَابِ ﴿٩﴾ |
| صفا عقلونو والا۔ |

**تفسیر**: د مشرکانو صفتونو بیانولو نه پس اُوس د مومنانو صفتونه بیانوی، او

ددے د مخکښ سره تقابل تضاد دے، هغه انسان خود غرض وو نو اُوس د الله والا انسان حال بیانیږی چه ددے سورت په موضوع باندے عمل کونکے دے۔ ددے مؤمن ئے دلته درے صفتونه راوړی۔

قَانِتٌ : قنوت دلته په معنیٰ د عاجزیٔ سره دے۔ او دارنګه د طاعت معنیٰ ئے هم صحیح ده۔ او دا ئے اول صفت شو۔

آنَاءَ الَّيْلِ: د ورځے طرف ئے ذکر نکړو اشاره ده چه دے د شپے قیام او مونځونه کوی نو معلومه شوه چه د ورځے به ئے خامخا کوی۔

يَحْذَرُ الْآخِرَةَ : دا دویم صفت د خوف دے یعنی د آخرت د یرے د وجه نه د الله تعالیٰ بندګی کوی ځکه چه د آخرت یره سبب د عبادت دے۔

وَيَرْجُوْ رَحْمَةَ رَبِّهٖ: دا دریم صفت د رجاء دے۔ او خوف او رجاء چه د مؤمن په زړه کښ راجمع شی نو کامیاب شو۔

دلته بل جانب پټ دے أَیْ كَمَنْ لَا يَفْعَلُ شَيْئًا مِنْ ذٰلِكَ۔ آیا دغه شخص په شان د هغه چا کیدے شی چه دا یو کار هم نهٔ کوی۔ نو اُوس الله تعالیٰ دے دواړو اشخاصو ته نوم اږدی۔ یو ته عالِم وائی او بل ته جاهل۔ او پدے دوه آیتونو کښ دا خبره ذکر کیږی چه د عالم صفات څه دی او د غیر عالم څه؟،

په بل تعبیر: عالِم چا ته وئیل پکار دی؟ چه یو څو صفات پکښ وی یو خشوع لرب العالمین۔ دویم: چه الله دپاره د شپے او د ورځے په عبادتونو کښ لګیا وی۔ دریم خوف الآخرة۔ څلورم چا کښ چه رجاء (امید د رحمت د الله تعالیٰ) وی۔

پنځم ایمان او شپږم تقویٰ، اوم: صبر۔ دا درے روستو راروان دی۔ نو دا هغه خلك دی چه الله تعالیٰ ئے پیژندلے دے نو ځکه الله فرمائی:

قُلْ هَلْ يَسْتَوِى الَّذِيْنَ يَعْلَمُوْنَ وَالَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ : دے کښ غوره تفسیر دا دے چه د يَعْلَمُوْنَ او لَا يَعْلَمُوْنَ مفعول پټ دے أَیْ قَدْرَ مَعْبُوْدِهِمْ۔ یعنی آیا هغه خلك چه د خپل معبود قدر او مرتبه پیژنی (او د هغهٔ دپاره دغه بندګیانے کوی) دا برابر دی د هغه کسانو سره چه د خپل معبود قدر نهٔ پیژنی؟۔ یعنی هغویٔ د شرك او ګمراهیٔ په کندو کښ سرګردانه دی۔

او ددے نه معلومه شوه چه کوم عالِم کښ دغه صفتونه نهٔ وی، نو دے هم په نیز د الله تعالیٰ جاهل دے۔ او دا آیت دلیل دے په فضیلت د علم باندے، لیکن د علم نه مراد د

توحيد او د شريعت علم دے سره د عمل كولو نه۔ لكه ابوحيانؒ په البحر المحيط كښې وئيلي دي چه د علم نه مراد هغه دے چه د الله تعالىٰ معرفت پرے حاصليږي او د الله تعالىٰ د سَخَط (غضب) نه پرے بچ كيږي۔
زجاجؒ دے كښې داسے معنىٰ كوي: لكه څنګه چه عالِم او غير عالِم برابر نهٔ دي نو دغه شان مُطيع (فرمانبردار) او عاصي (نافرمان) برابر نهٔ دي۔
بعض علماء وائي چه دا آيت الله تعالىٰ په عمل شروع كړيدے او په علم باندے ئے ختم كړيدے ځكه چه عمل د باب د مجاهداتو نه دے او علم د مكاشفاتو نه دے، او كله چه دواړه حاصل شي نو انسان دپاره كمال او فضيلت حاصليږي۔ (فتح البيان)
يعني عمل كښې د الله دپاره ځان كړول دي او په علم سره د عمل طريقے واضح كيږي، او كله چه انسان د عمل طريقے پيژني، او بيا ئے په صحيح طريقے سره ادا كوي نو كاميابۍ ته رسيږي۔
﴿إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُولُوا الْأَلْبَابِ﴾: يعني ددے رباني تعليم نه هغه خوك فائده پورته كوي چه په خپلو جسمونو كښې عقلِ سليم لري۔

| ﴿قُلْ يَا عِبَادِ الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا رَبَّكُمْ﴾ |
|---|
| اُووايه ! اے بندګانو زما هغه كسان چه ايمان ئے راوړيدے، اُويريږئ د رب خپل نه |
| ﴿لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ﴾ |
| دپاره د هغه كسانو چه نيك عمل ئے كړيدے پدے دنيا كښې ښائسته حالت دے |
| ﴿وَأَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةٌ إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ أَجْرَهُم بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿١٠﴾﴾ |
| او زمكه د الله فراخه ده، يقيناً پوره به وركولے شي صبرناكو ته اجر د دوي بے حسابه۔ |

**تفسير**: مخكښې د ايمان والو اُوچت شان بيان كړے شو نو اُوس په دے آيتِ كريمه كښې د هغوي فرائض بيانوي، تقوىٰ، احسان، هجرت، او صبر او پدے باندے زيري بيانوي۔
د نبي كريم ﷺ په ژبه مومنانو ته په هر حال كښې د خپل رب نه د يريدو تعليم وركړے شوے، د آيت مطلب دادے چه اے هغه خلقو چه هغوئ د الله د وحدانيت تصديق كړے ! د خپل رب نه ويريږئ، د هغهٔ بندګي وكړئ، د هغهٔ د نافرمانۍ نه بچ اوسيږئ، او د هغهٔ

سره نور خوك شریکان مهٔ جوړوئ.

قُلْ يَا عِبَادِ : چونکه رسول الله ﷺ د الله تعالیٰ د طرفنه خبره رسونکے دے، او کلام د رسول کلامِ د مُرسِل وی۔ یعنی تهٔ زما د طرفنه داسے ووایه چه الله تعالیٰ وائی۔

لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا : دے نه پس الله تعالیٰ د تقویٰ فوائد بیان کړی او زیرے ورکوی۔ فرمائی چه کوم خلق په دے دنیا کښې نیك عمل وکړی، الله تعالیٰ به په آخرت کښې دوئ له جنت ورکوی۔

د اِحسان نه مراد هغه دے چه یواځے د الله تعالیٰ بندګی کوی او په توجه سره ئے کوی۔

حَسَنَةٌ: اَیْ حَسَنَةٌ عَظِيْمَةٌ فِى الآخِرَةِ وَهِىَ الْجَنَّةُ۔ یعنی د هغوی دپلوه ډیره ښائسته لویه بدله ده چه هغه جنت دے۔

یا د حسنة نه مراد په دنیا کښې ښائسته ژوند دے یعنی هغه ژوند او مالونه چه د دین او د آخرت دپاره خرچ کیږی۔ نو حَسَنَةٌ مبتداء مؤخره ده، او فِىْ هٰذِهِ الدُّنْيَا ئے خبر مقدم دے۔ مطلب دا دے چه کوم خلك چه نیك عمل کوی او په صحیح طریقے سره د الله تعالیٰ بندګی کوی نو د هغوی دپاره پدے ژوند دنیوی کښې ښائسته حالت او ژوند دے۔ نیك عمل سره د انسان ژوند ښائسته کیږی۔

وَاَرْضُ اللّٰهِ وَاسِعَةٌ : ربط او مناسبت :

مخکښې طاعاتو او احسان کولو ته ترغیب ورکړے شو نو اُوس وائی چه بعض کسانو ته د الله تعالیٰ طاعت او بندګی او احسان کول په خپل ملك کښې ګران شی نو د هغهٔ دپاره ضروری ده چه هجرت به کوی۔ او پدے کښې اشاره ده اهمیت د دین ته چه په دین باندے به په هر حال کښې عمل کوے، او دا به د دنیا او د خپل وطن د خاطره نهٔ پریدے بلکه که تعارض راشی، نو وطن به ورته پریدے لیکن د الله تعالیٰ بندګی پریخودل نشته۔

دا مکی سورت دے او پدے کښې د مکے مسلمانانو ته د هجرت ترغیب وو چه د الله تعالیٰ په لاره کښې هجرت وکړئ او د خپل رب بندګی پرینږدئ۔ او کوم خلك چه هجرت نهٔ کوی او په بندګیانو کښې نقصان راولی نو هغوی نه به الله تعالیٰ د ملائکو په ذریعه تپوس کوی لکه د سورتِ نساء په (۹۷) آیت کښې الله تعالیٰ فرمایلی : ﴿ اَلَمْ تَكُنْ اَرْضُ اللّٰهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوْا فِيْهَا ﴾ (د قیامت په ورځ به داسے خلقو ته ملائك ووائی : آیا د الله تعالیٰ زمکه فراخه نهٔ وه چه تاسو په کښې هجرت کړے وے؟)۔

(۲) بعضِ مفسرینو د ﴿أَرْضُ اللهِ﴾ (د الله د زمکے) نه مراد جنت اخستے، او وئیلی ئے دي چه دلته مقصد مومنانو ته د جنت حاصلولو ترغیب ورکړے شوے۔

إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ: او چونکه د الله تعالىٰ اطاعت او بندګی، دارنګه هجرت د صبر د صفت نه بغیر ممکن نهٔ دے، دے وجے نه د صبر فضیلت او د الله تعالىٰ په نیز ددے د عظیم اجر او ثواب ذکر شوے۔ الله تعالىٰ وفرمایل چه کوم خلق د قوم او وطن د پرېښودلو تکلیف برداشت کړی، او د الله تعالىٰ د رضا له خاطره تریخ کوټ اُوزغمی، الله دوئ له بے حسابه اجر او ثواب ورکوی۔ یعنی جنت ورکوی چه د هغے نعمتونه بے شماره او هیڅ کله نهٔ ختمیږی۔

علی بن ابی طالب ﷺ نه نقل دی چه د هر نیك عمل بنده ته په اندازه سره اجر ملاویږی سوئ د صبرناکو نه چه دوی ته اجرونه په لپو سره ورکولے شی۔ (فتح البيان)

| قُلْ إِنِّيْ أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ اللهَ مُخْلِصًا لَّهُ |
|---|
| اُووایه ! یقیناً ما ته حکم شویدے چه بندګی اُوکړم الله لره چه خالص کونکے یم هغهٔ |
| الدِّيْنَ ﴿۱۱﴾ وَأُمِرْتُ لِأَنْ أَكُوْنَ أَوَّلَ الْمُسْلِمِيْنَ ﴿۱۲﴾ قُلْ إِنِّيْ أَخَافُ |
| لره عبادت۔ او ما ته حکم شویدے چه زهٔ شم اول د تابعدارو نه۔ اُووایه یقیناً زهٔ یریږم |
| إِنْ عَصَيْتُ رَبِّيْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿۱۳﴾ قُلِ اللهَ أَعْبُدُ |
| که نافرمانی اُوکړم د رب خپل نه د عذاب د ورځے لوئی نه۔ اُووایه !خاص د الله عبادت |
| مُخْلِصًا لَّهُ دِيْنِيْ ﴿۱٤﴾ فَاعْبُدُوْا مَا |
| به کوم چه خالص کونکے به یم هغهٔ لره بندګی خپله۔ نو بندګی وکړئ د هغه چا چه |
| شِئْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ قُلْ إِنَّ الْخَاسِرِيْنَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْا |
| غواړئ تاسو سوئ د الله تعالىٰ نه، اُووایه یقیناً تاوانیان هغه کسان دی چه تاوان کښ |
| أَنْفُسَهُمْ وَأَهْلِيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۚ أَلَا ذٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِيْنُ ﴿۱۵﴾ |
| ئے واچول نفسونه خپل او اهل خپل په ورځ د قیامت، خبردار دا تاوان ښکاره دے۔ |

لَهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ مِّنَ النَّارِ وَمِنْ تَحْتِهِمْ

دوی لره به د بره طرف د دوی نه سوری (وریځې) د اور وی، او د لاندې د دوی نه به (هم)

ظُلَلٌ ۚ ذٰلِكَ يُخَوِّفُ اللّٰهُ بِهٖ عِبَادَهٗ ۚ يَا عِبَادِ فَاتَّقُوْنِ ﴿١٦﴾

سوری وی۔ دا، یره وی الله تعالیٰ پدې سره بندګان خپل، اې بندګانو زما نو اُویرېږئ زما نه

**تفسیر:** شان نزول

مقاتل وائی: د قریشو کافرانو یو ځل رسول الله ﷺ ته وویل: دا تا چه مونږ ته کومې خبرې راوړېدی پدې باندې په تا څهٔ باعث دے؟ د خپل پلار او نیکه دین ته نهٔ ګورې؟ ستا د قوم مشران او سرداران د لات او عزیٰ عبادت کوی نو تهٔ هم دا شروع کړه؟ نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو۔ چه تهٔ د قریشو مشرکانو ته دا ووایه چه ماته خو ددې خبرې حکم شوې چه زهٔ صرف د الله عبادت وکړم، او هغهٔ نه سویٰ هیچا طرفته ونهٔ ګورم۔

او دا جواب د سوال هم دے چه تهٔ ولې هجرت کوې؟

نو جواب وشو چه زهٔ هجرت پدې وجه کوم چه زهٔ د الله تعالیٰ په یواځې بندګئ باندې مامور یم نو چرته چه یواځې بندګی کولې شم نو هلته به ځم۔

وَاُمِرْتُ لِاَنْ اَكُوْنَ اَوَّلَ الْمُسْلِمِيْنَ: او ماته ددې خبرې هم حکم شوې چه په اخلاص او عمل او اطاعت او بندګئ کښې زهٔ د تمامو مسلمانانو نه مخکښې شم۔ نو نبی ﷺ اولنې انسان وو چه هغوئ د خپلو پلرونو نیکونو د دین مخالفت وکړو، او خلق ئې توحید طرفته را اُوبلل۔

او دا جواب د وَهم دے چه دا اعمال پټ وساته او صرف د زړهٔ اعمال کوه چه هغه پټ دی نو جواب وشو چه ماته حکم شوېدې چه زهٔ به اول د هغه چا نه یم چه اعمال به ښکاره کوی، یعنې دا مسئلې د پټولو نهٔ دی۔ بنا پدې به د اسلام نه مراد ظاهری عملونه وی۔

قُلْ اِنِّيْٓ اَخَافُ اِنْ عَصَيْتُ رَبِّيْ: او ماته دا هم حکم شوې چه زهٔ د قریشو کافرانو ته دا ووایم چه که ما د خپل رب فرمانی وکړه، او د کافرانو خبره مې ومنله، او د غیر الله عبادت مې وکړو، نو یرېږم چه د قیامت په ورځ به ونیولې شم، او په عذاب کښې به مبتلا شم۔ او پدې کښې تعریض دے په نور اُمت باندې چه څوك د الله د حکم مخالفت کوی هغه باندې د لوی عذاب نه یره ده، ځکه چه نبی هیڅکله مخالفت نکوی۔

او دا هم جواب د سوال دے چه تا ته اګرکه امر شویدے لیکن کیدے شی چه دا اَمر د وجوب دپاره نهٔ وی نو مخالفت کول به ترینه جائز وی؟ نو جواب وشو چه ددے امر مخالفت کول سبب د لوی عذاب دے۔

قُلِ اللّٰهَ اَعْبُدُ : د سوال او جواب نه روستو اُوس پدے دوه آیتونو کښې د مُوحد او د مشرك د لارے جدا والے بیانیږی۔ یعنی زهٔ خو خاص د الله تعالیٰ بندګی کوم چه زما په عبادت کښې به د شرك بوئی هم نهٔ وی۔ او اے د مکے مشرکانو ! که چرے تاسو زما دعوت نهٔ قبلوئ او د توحید نه انکار کوئ، نو ستاسو خوښه ده چه د هر چا عبادت کوئ زردے چه تاسو ته به خپل انجام معلوم شی۔

قُلِ اللّٰهَ اَعْبُدُ: دا حکم مخکښې هم ذکر شوے وو لیکن دلته پرے د عمل کولو اعلان دے۔

قُلْ اِنَّ الْخَاسِرِیْنَ: دوی خو خپل ځانونه او اهل په تاوان کښې په دنیا کښې اچولی دی لیکن دا تاوان به حقیقةً په قیامت کښې راښکاره کیږی، ځکه چه څوك اُور ته داخل شو نو دهٔ خپل ځان هم تاوانی کړو، او خپل اهل او تابعدار هم۔

او د جنت د نعمتونو نه همیشه دپاره محروم کړے شی۔ حقیقت کښې همدا هغه خساره ده چه ددے نه لویه بله هیڅ یوه خساره نشته، چه د غوښے او هډوکی نه جوړ انسانان د جهنم خشاك جوړ کړے شی۔

او دا تاوان انسان ته د غیر الله په عبادت باندے رسیږی، مشران راولګیږی خپلو کشرانو ته د شرك دعوت ورکړی، نو ټول په ټوله جهنم ته لاړ شی، دا ډیر لوی تاوان دے۔

ظُلَلٌ مِّنَ النَّارِ : یعنی د وریځو په شکل به اُور جوړ شوے وی، او د یو بل دپاسه به طبقات وی۔ یعنی په دوی باندے به اُور د بره نه د طبق په شان بلیږی۔ او دے ته ئے سوری وئیلی دی دپاره د تهکم او ټوقو کولو دپاره ځکه چه سورے خو د ګرمئ نه ساتل کول لیکن دا به ئے سوزوی۔

وَمِنْ تَحْتِهِمْ ظُلَلٌ: یعنی لاندے به هم د هغوی نه طبقے د اُور وی۔ او مطلب د دواړو دا دے چه اُور د جهنم به په دوی باندے د هر طرف نه احاطه کړی وی۔ او په سورة اعراف (٤١) آیت کښې پورته ظلل ته غواش او لاندینو ته مهاد وئیلے شویدے۔

ذٰلِكَ یُخَوِّفُ اللّٰهُ: اُوس د عذابونو ذکر کولو فائده بیانوی چه دے کښې مقصد دا دے چه بنده ګان ویریږی او د الله تعالیٰ صحیح بندګی شروع کړی۔ او په تقویٰ سره به ددے عذابونو نه انسان بچ کیږی۔

| وَالَّذِيْنَ اجْتَنَبُوا الطَّاغُوْتَ أَنْ يَّعْبُدُوْهَا وَأَنَابُوْا |
|---|
| او هغه كسان چه ځان ساتي د طاغوت نه چه بندگي اُوكړي هغې لره او رجوع كوي |
| إِلَى اللهِ لَهُمُ الْبُشْرٰى فَبَشِّرْ عِبَادِ ﴿۱۷﴾ الَّذِيْنَ |
| الله ته، نو دوي لره خوشحالي ده، نو زيرے وركړه بندگانو زما ته۔ هغه كسان دي |
| يَسْتَمِعُوْنَ الْقَوْلَ فَيَتَّبِعُوْنَ أَحْسَنَهٗ، أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ |
| چه غوږ ږدي وينا ته نو تابعداري كوي د ډير ښائسته د هغې، دا هغه كسان دي |
| هَدٰاهُمُ اللهُ وَأُولٰٓئِكَ هُمْ أُولُوا الْأَلْبَابِ ﴿۱۸﴾ |
| چه هدايت كړيدے دوي ته الله تعالىٰ او دا كسان دوي صفا عقلونو والا دي۔ |

**تفسير** : مخكښې د قيامت په ورځ د بتانو د عبادت كونكو بد انجام بيان شو نو اُوس د هغه موحدينو انجام بيانولے شي چه هغوئ د بتانو عبادت نكوي، او په خپل زړهٔ او دماغو او تمامو اندامونو سره الله تعالىٰ طرفته متوجه كيږي، او د هغهٔ نه سوئ هيچا له هيڅ حيثيت نهٔ وركوي۔

او پدے كښې د تقوئ بيان دے او ددے خبرے بيان دے چه د مخكنو عذابونو نه د بچ كيدو سبب د الله تعالىٰ يواځے بندگي كول او د غير الله د بندگئ نه ځان پوره ساتل او بيا الله تعالىٰ ته هميشه دپاره رجوع كول دي۔

الطَّاغُوْتَ: ددے نه مراد هر معبود من دون الله دے۔

أَنْ يَّعْبُدُوْهَا : دا بدل دے د الطَّاغُوْتَ نه يعني د طاغوت نه ځان ساتلو معنىٰ دا ده چه د طاغوت بندگئ نه ځان وساتي۔

وَأَنَابُوْا إِلَى اللهِ : دا كمال دے چه بنده د غير الله عبادت پريدي او بيا الله ته متوجه شي، او دا انسان هم صحيح نهٔ دے چه د غير الله عبادت خو پريدي ليكن بيا د الله عبادت هم نهٔ كوي۔

لَهُمُ الْبُشْرٰى: يعني د دوي دپاره به زيرے وي په ډير اجر چه هغه جنت دے۔ او دا زيرے دوي ته د رسولانو په ژبه وركړے شويدے، يا به د مرگ په وخت كښې د ملائكو په ژبه وي، يا به د قبرونو نه د راپورته كيدو په وخت كښې وي۔ يا به د الله تعالىٰ د طرفنه وي۔

بعض وائی: دوی دپاره خوشحالی ده په دنیا کښې په ښائسته صفتونو کولو سره د دوی په نیك عملونو. او بیا چه کله قبر ته لاړ شی او بیا چه کله د قبرونو نه آخرت ته راپورته کیږی او د حساب دپاره ودریږی او کله چه پل صراط باندے پورے وځی او جنت ته داخلیدو وخت کښې او جنت کښې دننه، غرض دا چه پدے تولو ځایونو کښې به دوی ته یو قسم خوشحالی په خیر او راحت سره حاصلیږی.

فَبَشِّرْ عِبَادِ: اشاره ده چه عبادت سبب د زیری دے.

الَّذِينَ يَسْتَمِعُونَ الْقَوْلَ : ۱-د قول نه مراد قرآن دے، ۲- یا حقه خبره د کتاب الله او سنت رسول مراد ده. یعنی دا هغه کسان دی چه د الله کتاب او د رسول الله ﷺ د سنت هره غوره او ښائسته خبره واوری او په هغے عمل کوی.

فَيَتَّبِعُونَ أَحْسَنَهُ: په اول صورت کښې دا اضافت بیانی دے ځکه چه قرآن تول احسن قول دے (یعنی ډیره ښائسته خبره ده).

۳- یا القول عام دے د هر چا خبرے ته، او اَحْسَنَهُ معنیٰ دا ده چه د هر چا ښه خبره راخلی، د هغے تابعداری کوی او غلطے او بے دلیله خبرے د هیچا نۀ قبلوی.

دے کښې بعض علماؤ دا هم وئیلی دی چه ددے نه مراد هغه شخص دے چه ښه او بده تولے خبرے آوری لیکن ښه خبره بیانوی او د بدے خبرے نه بندیږی هغه نۀ بیانوی.

ددے خلقو صفت کولو سره الله تعالیٰ وفرمایل چه همدا خلق په نیغه لاره روان دی، او په خپلو جسمونو کښې عقلِ سلیم لری.

علامه شوکانیؒ وائی چه پدے آیت کښې اشاره ده اتباع د سنتو ته او پریخودو د تقلید ته ځکه چه دلته الله تعالیٰ د متبعینو دا صفت بیان کړو چه دوی ته هدایت شویدے او دوی ته ئے عقلمند خلك وئیلے دے، او د تقلید او د تقلید کونکی صفت ئے د قرآن په هیڅ آیت کښې نۀ دے کړے بلکه د هغے ئے ډیره بدی بیان کړیده.

٤- د يَتَّبِعُونَ الْقَوْلَ معنیٰ دا هم ده چه علم حاصلوی د خبرو په آوریدو او (فَيَتَّبِعُونَ أَحْسَنَهُ) معنیٰ دا ده چه بیا د علم نه روستو په هغے باندے عمل کوی.

کـه د القول نه مراد قرآن او حدیث شی، نو بیا د اَحْسَن معنیٰ دا ده چه د قرآن او حدیث د اَحْسَن احکامو تابعداری کوی ځکه چه قرآن او حدیث کښې حسن او جائز احکام هم شته یعنی په عزیمتونو باندے عمل کوی او په اختلافی مسائلو کښې په راجح (غوره) باندے عمل کوی، غرض دا چه په احکامو کښې په ډیره غوره طریقه باندے عمل کوی.

| أَفَمَنْ حَقَّ عَلَيْهِ كَلِمَةُ الْعَذَابِ أَفَأَنْتَ تُنْقِذُ |
|---|
| آیا پس هغه څوك چه ثابت شی په هغه باندے فیصله د عذاب آیا نو ته بچ کولے |
| مَنْ فِي النَّارِ ﴿١٩﴾ لٰكِنِ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ |
| شے هغه څوك چه په اُور کښ وی۔ لیکن هغه کسان چه یریږی د رب خپل نه دوی |
| غُرَفٌ مِّنْ فَوْقِهَا غُرَفٌ مَّبْنِيَّةٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا |
| لره بالاخانے دی دپاسه د هغے نه نورے بالاخانے دی مضبوطے، بهیږی لاندے د هغے نه |
| الْأَنْهَارُ وَعْدَ اللّٰهِ لَا يُخْلِفُ اللّٰهُ الْمِيعَادَ ﴿٢٠﴾ |
| نهرونه، وعده کړیده الله تعالیٰ خلاف نهٔ کوی الله د وعدے خپلے نه۔ |

**تفسیر** : نبی کریم ﷺ ته د تسلیٔ په طریقه وئیلے کیږی چه کوم خلق د خپل ازلی شقاوت او بدبختیٔ په وجه د کفر او شرك او ظلم او سرکشیٔ ژوند تیروی، ته هغویٔ د اُور د عذاب نه نشے بچ کولے، ځکه چه الله تعالیٰ چا لره گمراه کړی هغهٔ له څوك هدایت نشی ورکولے او چاله چه هدایت ورکړی هغه څوك گمراه کولے نشی۔ دے وجے نه اے زما نبی ! تهٔ د دویٔ په غم کښ پریشانه کیږه مهٔ، دویٔ په خپل حال باندے پریده۔

شوکانیؒ لیکی چه په آیت کښ د ﴿ كَلِمَةُ الْعَذَابِ ﴾ نه مراد د سورتِ صٓ (٨٥) آیت کښ ابلیس ته د الله تعالیٰ دا قول: ﴿ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكَ وَمِمَّنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ أَجْمَعِينَ ﴾ او د سورتِ اعراف په (١٨) آیت کښ د هغهٔ دا قول: ﴿ لَمَنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكُمْ أَجْمَعِينَ ﴾ دے، چه ددے معنیٰ داده چه (اے ابلیس ! زهٔ به تانه او د هغه خلقو نه جهنم ډك کړم چه ستا پیروی کوی)۔

أَفَأَنْتَ تُنْقِذُ مَنْ فِي النَّارِ : دا استفهام انکاری دے، یعنی دوی تهٔ د گمراهیٔ نه نشے بچ کولے چه د هغے په وجه د جهنم نه خلاص شی۔

او فَأَنْتَ جمله جزاء د مخکښ (مَنْ) دپاره ده۔

لٰكِنِ الَّذِينَ : اُوس د تقابل په طریقه د متقیانو حال او د هغوی دپاره بشارت ذکر کیږی۔

یعنی د الله تعالیٰ نه یریدونکو خلکو دپاره به په جنت کښ بلند او بالا او عالیشان

محلونه وی، چه د هغې کمرې به په ډیرو منزلونو باندې مشتملې وی، او د هغې لاندې به نهرونه روان وی۔ دا د الله تعالیٰ وعده ده، چه حقه ده، د هغهٔ وعده هیڅ کله دروغ کیدې نشی۔

مَّبْنِيَّةٌ: یعنی مضبوطې به جوړې شوی وی چه نهٔ به راپرېوزی۔

| أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَسَلَكَهُ |
|---|
| آیا تهٔ نهٔ کورې چه بیشکه الله تعالیٰ رالیږلی دی د آسمان نه اُوبهٔ نو روانې کړی دې |
| يَنَابِيعَ فِي الْأَرْضِ ثُمَّ يُخْرِجُ بِهِ زَرْعًا مُّخْتَلِفًا أَلْوَانُهُ |
| لره چینې په زمکه کښې بیا را اُوباسی په هغې سره فصل چه مختلف وی رنګونه د |
| ثُمَّ يَهِيجُ فَتَرَاهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ يَجْعَلُهُ حُطَامًا إِنَّ |
| هغې، بیا اُوچ شی نو وینې به تهٔ هغه زیړ، بیا اُوګرځوی هغې لره مات رامات، یقیناً |
| فِي ذَٰلِكَ لَذِكْرَىٰ لِأُولِي الْأَلْبَابِ ﴿٢١﴾ |
| پدې کښې خامخا نصیحت دې دپاره د خالصو عقلونو والا۔ |

**تفسیر**: د قرآن عادت دې چه کله د قیامت تذکره وکړی نو بیا ورپسې یو عقلی دلیل د هغې د اثبات دپاره راوړی، او پدې دلیل کښې د بندګانو عبادت جلب کول هم مقصد دې چه الله تعالیٰ درباندې اُوبه څکی نو د هغهٔ بندګی وکړئ۔

او دا د الله تعالیٰ د وجود او د هغهٔ د قدرت او د هغهٔ د رحمت دلیل هم دې۔

او پدې کښې د دنیا او ددې د نعمتونو بې ثباتی بیانه شویده چه دنیوی ژوندون د هغه اوبو سره مشابه دې چه هغه د آسمان نه نازلیږی او د هغې په وجه تک شنهٔ بوټی زرغونیږی، په ونو کښې میوې اولګی، او بیا د څو ورځو نه پس ختم شی۔

نو اشاره ده چه دنیا به داسې فانی کیږی لکه څنګه چه دا فصل فانی کیږی، او آخرت به راځی۔ نو بس بندګی د هغهٔ پکار ده۔ خو ددې نه صفا عقلونو والا فائده اخلی۔

| أَفَمَن شَرَحَ اللَّهُ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ فَهُوَ عَلَىٰ نُورٍ |
|---|
| آیا پس هغه څوک چه کولاوه کړیده الله تعالیٰ سینه د هغهٔ اسلام ته نو هغه په رڼرا |

| مِّنْ رَّبِّهٖ |
|---|
| دے د طرف د رب د هغهٔ نه (پښان د هغه چا کیدے شی چه زړه ئے سخت وی) |
| فَوَيْلٌ لِّلْقَاسِيَةِ قُلُوْبُهُمْ مِّنْ ذِكْرِ |
| پس هلاکت دے وی هغه چا لره چه سخت دی زړونه د هغوی د یادولو |
| اللّٰهِ اُولٰٓئِكَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۲۲﴾ |
| د الله تعالیٰ نه، دغه کسان په ګمراهئ ښکاره کښ دی۔ |

**تفسیر** : پدے آیتونو کښ هم الله تعالیٰ فرق بیان کړیدے د مخکنو دواړو ډلو چه یو (حَقَّ عَلَيْهِ كَلِمَةُ الْعَذَابِ) والا۔ او دویم (لٰكِنِ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا) والا، او دوی ته ئے بیل نوم ایخودے دے۔ یعنی هغه انسان چه په هغه کښ الله تعالیٰ دوه صفتونه پیدا کړیدی، یو شرح صدر او بل نُورِ قلب۔ دویم هغه شخص دے چه قاسی القلب (سخت زړے) دے۔

نو آیا دا دواړه برابریدے شی؟ بیخی نشی برابریدے۔ د چا سینه چه اسلام ته کولاوه شوه نو دا مُهتَدی دے، دهٔ ته هدایت شویدے او هغه انسان چه زړه ئے سخت دے نو دے ګمراه دے، نو دواړو کښ ډیر فرق دے، او پدے فرق بیانولو کښ فائده د ترغیب او ترهیب ده۔ چه ځان کښ دا دوه صفتونه پیدا کړئ او د قسوت قلب نه الله تعالیٰ پورے پناهی طلب کړئ ځکه چه دا ګمراهی ده۔ د زړه سختول او نرمول خو د الله کار دے لیکن د انسان واك هم پکښ شته چه دا به څه اعمال کوی نو پدے وجه روستو آیت کښ به زړه نرمونکے شے بیانوی، سوال پیدا شو چه زمونږ زړونه سخت دی نو دا په څه شی سره نرم کړو نو جواب کوی (اَللّٰهُ نَزَّلَ اَحْسَنَ الْحَدِيْثِ) چه ددے دوه مناسبته روستو ذکر کیږی۔ یعنی قسوت د زړه په قرآن باندے زائله کیږی۔ نو الله د قرآن والو (ایمان والو) صفات راوړیدی چه دا هغه خلك دے چه د قرآن په وجه د دوی په زړونو کښ د الله یره پیدا کیږی او څرمنے او زړونه ئے د الله ذکر ته نرمیږی، یعنی خشیت او لِین پکښ پیدا کیږی، او دے ته الله تعالیٰ ته د هدایت نوم ورکړیدے (ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ)

بیا ددے برعکس انسان بیانوی۔ چه دا یو جهنم ته په خپل مخ روان دے، او بل انسان ته الله تعالیٰ هدایت کړیدے نو دواړو کښ څومره فرق دے۔ یعنی څوك چه نرم زړه والا دے، نو هغه به قیامت کښ په امن راروان وی او څوك چه سخت زړے وی نو هغه به په

مخ باندے راروان وي، بيا ئے د دنيا تزهيد بيان کړيدے چه پخوانو به د پيغمبرانو تکذيب وکړو نو الله تعالىٰ به ورله دنيا کښ سزا ورکړه او د آخرت عذاب خو ډير سخت دے۔ او دے ته تخويف دنيوي وائي يعني د دنيا په عذاب باندے ويرول۔

بيا قرآن ته ترغيب دے او مثال د رد د شرك دپاره راوړے شويدے۔

بيا نبي کريم ﷺ ته خطاب دے چه په تا باندے مرګ راتلونکے دے، او پدے خبر ورکولو کښ ډيرے فائدے دي، بيا د قيامت په ورځ د مؤمنانو او کافرانو ترمينځ د جګړے بيان دے۔

اَفَمَنۡ شَرَحَ: پدے آيت کښ دوه ډلے بيانوي، او روستو آيت کښ بيا د دوه ډلو صفات بيانوي يو (ذٰلِكَ هُدَى اللهِ) او دويم (وَمَنۡ يُّضۡلِلِ اللهُ)

بيا د (اَفَمَنۡ شَرَحَ) ددے جزاء پټه ده (كَمَنۡ قَسَا قَلۡبُهُ مِنۡ ذِكۡرِ اللّٰهِ وَطُبِعَ عَلٰى قَلۡبِهٖ فَلَمۡ يَهۡتَدِ)۔ دا په شان د هغه چا کيدے شي چه د هغهٔ زړه د الله تعالىٰ د ذکر نه سخت وي، او الله تعالىٰ پرے مهر وهلے وي۔ او هدايت ئے نهٔ وي قبول کړے۔نو دواړو کښ ډير فرق دے، نو ددے فائده دا شوه چه د الله تعالىٰ نه شرح صدر او نور قلب وغواړئ او د قسوت قلب نه د هغه پورے پناهي طلب کړئ۔ نو پدے آيت کښ ترغيب او ترهيب غرض دے۔

ربط

مخکښ آيت کښ دليل ذکر شو نو اُوس ددے دليل نه د فائدے اخستو دپاره علت ذکر کوي چه هغه شرح د صدر ده۔

شَرَحَ اللهُ صَدۡرَهٗ: سينه کولاويدل څه معنىٰ ده؟ ددے مطلب دا دے چه الله تعالىٰ په سينه کښ فراخي پيدا کړي دپاره د قبلولو د اسلام، د شرح په مقابله کښ ضيق (تنګوالے) راځي، چه کومه خبره د اسلام راځي نو د هغې قبلولو ته تيار نهٔ وي۔

نو د شرح صدر معنىٰ ده: (قَبُوۡلُ الۡاِسۡلَامِ بِفَرَحٍ وَطَمَانِيۡنَةٍ) ۔ د اسلام احکام قبلول په خوشحالئ او اطمينان سره لکه دا خبره ورته راغله چه د الله تعالىٰ سره برخه داران جوړول ناروا دي، نو دے ئے زر قبوله کړي چه دا خو صحيح خبره ده۔ د قيامت ورځ حقه ده، هغے له تيارے پکار دے، نو دا هم قبلوي، داسے هره خبره د اسلام چه راځي نو د هغے نه نفرت نهٔ کوي، او داسے نهٔ وائي چه مونږ خو دا خبرے نهٔ دي آوريدلي۔

يو حديث کښ دي: عبد الله بن مسعود ﷛ فرمائي: يوه ورځ رسول الله ﷺ دا آيت ولوستلو نو مونږ ووېل: اے د الله نبي! (كَيۡفَ انۡشِرَاحُ صَدۡرِهٖ؟) د مؤمن د سينے

کولاویدو څه نښه ده؟ نو د هغې درې نښې ئې ذکر کړو: (اَلتَّجَافِيْ عَنْ دَارِ الْغُرُوْرِ، وَالْإِنَابَةُ إِلٰى دَارِ الْخُلُوْدِ وَالتَّأَهُّبُ لِلْمَوْتِ قَبْلَ نُزُوْلِ الْمَوْتِ) د دنیا د دهوکې کور نه ځان جدا کول۔ (یعنی په هغې باندې ځان د آخرت نه نهٔ غافل کول) او جنت دپاره انابت کول، او د مرګ د راتللو نه مخکښې د مرګ دپاره تیارې کول) (الحاکم، ومصنف ابن ابی شیبة ۷۶/۷ ۳۴۳۱۴) دا روایت بعض علماؤ ضعیف کړیدې، او حافظ ابن کثیرؒ، ابن القیمؒ، شوکانیؒ حسن درجه کښې ګڼړلې دې۔ مګر راجح دا ده چه ددې روایت ډیر طرق دی خو ټولو کښې سخت ضعف دې۔ (دا ګویا که دا د شرح صدر دپاره اسباب دی او نښې هم)

بیا الله تعالیٰ خپل ځان ته د شرح صدر نسبت وکړو، پدې کښې اشاره ده د هغهٔ فضل ته، یعنی سینه کولاویدل د الله تعالیٰ په فضل سره کیږی که د الله تعالیٰ فضل شاملِ حال نشی نو زړه به ورله تنګ کړی لکه قرآن او حدیث دنیا کښې ښه واضح موجود دی لیکن ډیر انسانان ئې نهٔ قبلوی۔ ډیر خلك په مسلمانانو کښې وی، او سنت طریقې ورته بیانې شی لیکن هغوی ضد کوی، سینه ئې نهٔ وی کولاوه۔ په آمین بالجهر آوریدو سره ئې سینه ویرسیږی چه دا ولې ووئیلې شو۔ که څوك ورته په یوه مسئله او واقعه کښې یو صحیح حدیث بیان کړی، او بل طرفته ورته یو ملا خپل مذهب ذکر کړی چه دا زمونږ مذهب کښې نشته، نو پدې ئې ذهن نهٔ کولاویږی چه دا یو ملا حدیث وائی او دا بل ملا خپل مذهب ذکر کوی، د چا خبره حقه ده؟!۔

فَهُوَ عَلٰى نُوْرٍ مِّنْ رَّبِّهٖ: د نور دوه مصداقه دی۔ (۱) ایمان۔ یعنی د سینې کولاویدو نه روستو ورته ایمان ورکړې شو۔ نو که د چا سینه کولاوه شوه، او اسلام او د اسلام اعمال او سنت طریقې ښه ګڼړی لیکن عمل پرې نهٔ کوی نو دې له هم اعتبار نشته۔

(۲) دویم د نور نه مراد نور د وحی دې۔ یعنی وحی په ذریعه دهٔ ته رڼړا ملاؤ شوه۔ نو شرح صدر کښې د اسلام قبلول شو او بیا د اسلام قبلولو نه روستو په قرآن باندې پوهه شی، نو پدې نور سره هغه په اسلام باندې مضبوط او پوخ شی۔ دا د کفر د دین په شان نهٔ دې چه بنده د کفر عملونه کوی، نو هیڅ دلیل او رڼړا پرې نهٔ وی بلکه په پټو سترګو روان وی، او اسلام هغه دین دې چه پدې کښې د وحی په رڼړا سره ددې فائدې او ددې خیرونه پیژنی، وخت په وخت د اسلام عظمت او کمال ئې په زړه کښې راځی۔

نو مؤمن سره دواړه څیزونه وی، ځکه چه ایمان بغیر د قرآن نه او قرآن بغیر د ایمان نه کار نهٔ ورکوی۔

فَوَيْلٌ: يعنى د دواړو ډلو هيڅ برابرى نشى كيدے، اول شخص كامياب او دويم شخص گمراه دے، او د گمراهئ سره تباه هم دے۔

لِلْقَاسِيَةِ قُلُوبُهُم مِّن ذِكْرِ اللَّهِ: د الله تعالىٰ د ذكر نه د زړه سختيدو دوه مطلبه دى۔

(۱) يو دا چه (مِنْ قَبُوْلِ ذِكْرِهٖ) يعنى د الله تعالىٰ د ذكر د قبلولو نه ئے زړه سخت دے، هغه نهٔ قبلوى، د الله تعالىٰ ذكر قرآن او د الله تعالىٰ يادول دى۔ نو كوم ځاى چه د الله ذكر راشى نو دے ورته د زړه دروازه بنده كړى۔

(۲) مِنْ سَمَاعِ ذِكْرِ اللّٰهِ۔ يعنى زړونه ئے سخت دى د آوريدو د ذكر د الله تعالىٰ نه۔ يعنى د الله ذكر آورى ليكن هغه پرے اثر نكوى ځكه چه زړونه ئے سخت دى۔ كومه يره او خشيت او خشوع او انابت ئے نهٔ پيدا كيږى۔ نو اوله درجه د كافر ده چه ذكر نهٔ قبلوى او دويمه درجه كله نا كله په فساق مؤمنانو كښ هم راتلے شى چه د الله آيتونه او ذكر پرے هيڅ اثر نكوى۔

ذِكْرِ اللّٰهِ: (۱) القرآن۔ لكه سورة الحديد آيت (۱٦) كښ راغلى دى۔ ﴿اَلَمْ يَاْنِ لِلَّذِيْنَ آمَنُوْا اَنْ تَخْشَعَ قُلُوْبُهُمْ لِذِكْرِ اللّٰهِ﴾ سوال دا دے چه دا كار خو مونږ مؤمنانو سره هم ډير كرته كيږى چه د الله قرآن آورو خو صحيح ليكن زړه باندے دومره اثر نكوى؟

جواب دا دے چه دا آيت د كافر په باره كښ دے، مؤمنان ان شاء الله داسے نهٔ دى، وجه دا ده چه كافر د الله تعالىٰ د كتاب نه نفرت كوى، او مؤمن د الله كتاب منى او د هغے عظمت ئے په زړه كښ دے، او ددے نښه دا ده چه كله قرآن قبول كړى نو دے د الله بندگى كوى، او د قرآن په احكامو عمل كوى، او دا وائى چه كه زهٔ د الله بندگى ونكړم نو الله سزا راكوى نو دا دليل دے چه د مؤمن زړه نرم دے۔

نو لنډه دا چه څوك د الله تعالىٰ د حكمونو پابندى كوى او د هغهٔ بندگى كوى او د هغه نه يريږى، معلوميږى چه زړه ئے نرم دے۔ دا بيا اعلىٰ درجه ده چه مؤمن ته ئے الله تعالىٰ ورنصيب كړى چه كله د الله قرآن آورى د هغه غوږے رازيږ شى او زړه ئے د اُوښكو نه ډك شى، دا د اعلىٰ مؤمنانو حال دے۔

(۲) ذكر الله نه مراد د الله تعالىٰ نوم او عام اذكار شرعيه دى۔ يعنى كله چه د الله نوم په تقرير او بيان كښ واخستے شى نو د دوى په زړونو باندے هيڅ اثر نكوى، په خلاف د مؤمن نه چه هغه ته د الله نوم واخستے شى نو هغه پرے اثر كوى۔

او قسوت ډير لوى مصيبت دے۔ د مالك بن دينارؒ وينا مونږ بار بار نقل كړيده: [مَا

ضَرَبَ اللّٰهُ عَبْدًا بِعُقُوْبَةٍ اَعْظَمَ مِنْ قَسْوَةِ الْقَلْبِ، وَمَا غَضِبَ اللّٰهُ عَلٰى قَوْمٍ اِلَّا نَزَعَ مِنْهُمُ الرَّحْمَةَ] الله تعالیٰ يو بنده ته د قسوتِ قلب نه لويه سزا بله نهٔ ده ورکړې او يو قوم ته چه الله په غضب شي نو د هغوی د زړونو نه رحمت (شفقت) وباسي۔ لکه دا په مرفوع حديث کښ هم راغلي دی۔ [لَا تُنْزَعُ الرَّحْمَةُ اِلَّا مِنْ شَقِيٍّ] رحمت نهٔ وځی مگر د بد بختـه نه۔ (ابوداود (٤٩٤٤)، ترمذی (١٩٢٣)، احمد (٧٩٨٨) وابن ابی شيبه واسناده حسن)

مِنْ ذِكْرِ اللّٰهِ: کښ مِنْ اجليه هم صحيح دے، او مطلب دا دے چه د الله تعالیٰ د ذکر د وجے نه د دوی په زړونو کښ قسوت پيدا شي لکه ﴿وَلَا يَزِيْدُ الظّٰلِمِيْنَ اِلَّا خَسَارًا﴾

او صاحب د فتح البيان ددے مثال داسے ورکړيدے چه کله يو نفس خبيث جوهر او خړ عنصر (اصل) والا وی، نو د الله په ذکر سره نور هم سختيږی او خړ والے پکښ پيدا کيږی ددے مثال د نمر دے چه کله ددے گرمائش په شمع ولگيږی نو نرميږی او چه په مالگه ولگيږی نو هغے کښ سختی پيدا کوی۔ نو دغه شان قرآن د مؤمنانو زړونه نرموی او د کافرانو سختوالے زياتوی۔ د دویٔ حال د هغه مريض دے چه هغه دپاره دوائی د هلاکت باعث جوړه شي۔

| |
|---|
| اَللّٰهُ نَزَّلَ اَحْسَنَ الْحَدِيْثِ كِتٰبًا مُّتَشَابِهًا مَّثَانِيَ |
| الله تعالیٰ نازل کړيده ښائسته خبره چه کتاب دے يو بل سره مشابه، بار بار بيانيږی، |
| تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُوْدُ الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ ثُمَّ تَلِيْنُ |
| را زيږ کيږی ددے نه څرمنے د هغه کسانو چه يريږی د رب خپل نه بيا نرميږی |
| جُلُوْدُهُمْ وَقُلُوْبُهُمْ اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ ؕ ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ |
| څرمنے د دوی او زړونه د دوی ذکر د الله تعالیٰ ته، دا هدايت د الله تعالیٰ دے، |
| يَهْدِيْ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ |
| هدايت کوی پدے سره چا ته چه اُوغواړی او هغه څوك چه گمراه ئے کړی الله تعالیٰ |
| مِنْ هَادٍ ﴿۲۳﴾ |
| نو نشته هغهٔ لره څوك هدايت کونکے۔ |

**تفسير:** ربط او مناسبت

۱- دا جواب د سوال دے چه زمونږ زړهٔ سخت دے دا به په څه نرم شي؟ جواب : په قرآن سره۔ دا کتاب ووایه، واوره، نو اثر به دریاندے وشي۔ ۲- دا د ذکر الله بیان دے، یعني د هغه شخص زړهٔ د الله د ذکر نه سخت دے چه قرآن الله مزیدار کتاب رالیږلے دے او دے ترے نفرت نکوي۔ چا کښې ئے ډیر تغیرات پیدا کړل او څوك د دیوال په شان بے اثره پاتے شول۔ او پدے آیت کښې د قرآن کریم اُوه صفتونه ذکر شویدي۔

﴿ أَحْسَنَ الْحَدِيثِ ﴾ (ښائسته خبرو) نه مراد قرآن کریم دے، قرآن ته حدیث په نورو پنځه آیتونو کښې وئیلي شویدے ځکه چه حدیث معنیٰ ده هغه کلام چه بیانیږي، او دا به هم رسول الله ﷺ د نزول مطابق خپل قوم ته بیانولو۔ نو قرآن لفظاً هم احسن (ښائسته) دے، چه ډیر فصیح او بلیغ دے چه د شعر او نورو خطبو او رسالو د جنس نه نهٔ دے، بلکه یوه بله نوعه ده چه د ټولو نه په اسلوب او طرز کښې جدا ده۔ او آوریدونکي او لوستونکي ته خوند ورکوي۔ دارنګه معنیً هم احسن دے ځکه چه د تناقض او اختلاف نه پاك دے، په تیرو شوو او راتلونکو خبرونو او قصو کښې ئے هیڅ دروغ نشته او عجائبات ئے نهٔ ختمیږي۔ (فتح البیان)

کِتَابًا : دا دویم صفت دے۔ د کتاب معنیٰ ده جمع کول، یعني راجمع کونکے دے هر خیر لره۔ او دا بدل دے د احسن الحدیث نه، یا د هغے نه حال دے۔

مُّتَشَابِهًا: دا دریم صفت دے ۱-یعني په حُسن، په رشتینوالي، او په مضبوطوالي او د فصاحت او د بلاغت کمال ته په رسیدو کښې او د معنیٰ په صحیح والي او د الفاظو په قوت کښې ټول آیتونه او سورتونه یو شان دي۔ اګرکه په درویشت کالو کښې نازل شویدے نو که دا د مخلوق کلام وے، نو په دومره زمانه کښې په جوړولو باندے به ئے ډیر تفاوت او اختلاف راغلے وے۔

۲- یا دا مشابه دے د مخکنو آسماني کتابونو سره۔ اول مطلب غوره دے۔

مَّثَانِيَ : دا څلورم صفت دے۔ مثاني جمع د مَثنیٰ ده یا د تَثْنِيَة دے۔ تکرار ته وائي۔

۱- اَیْ کَرَّرَ الْقِصَصَ وَالْاَحْکَامَ وَالْوَعْدَ وَالْوَعِیْدَ) یعني ددے قصے او احکام او وعد او وعیدونه بار بار ذکر شویدي۔ ۲- دارنګه تلاوت ئے بار کیږي، او زړه ترینه نهٔ مړیږي۔

۳- د ابن عباسؓ نه نقل دي چه ددے مضامین د یو بل سره مشابه دي، او په یو بل باندے ور واپس کیږي۔ (یعني قرآن بعض د بعضو تفسیر کوي) (فتح البیان)

بیا قرآن کریم کښې مضامین ولے بار بار بیان شویدي، یو جنت دے بار بار ئے الله تعالیٰ

یادوی۔ ددے حکمة دا دے چه (لِأَنَّهَا لِلْقُلُوبِ بِمَنْزِلَةِ الْمَاءِ لِلْأَشْجَارِ) ځکه چه د انسانانو زړونه د بوټو په شان دی چه دے ته بار بار اوبه اچولے کیږی، بوټی ته خلك یو ځل اوبه نهٔ اچوی، بلکه هغه ورته بار بار ضرورت لری۔ او الله تعالیٰ زمونږ د بندګانو د زړونو په تربیت باندے د هر چا نه ښهٔ پو هیږی، پدے طریقه باندے زړونه جوړیږی، ورنه الله تعالیٰ داسے هم کولے شو چه په ټول قرآن کښې ئے د اول نه تر آخره پورے به هره خبره ناشنا او جدا جدا وے ځکه چه د الله تعالیٰ سره ناشنا عجائب او غرائب شته لیکن په هغے تربیت نهٔ کیدو صرف قصے او د غرائبو معلومات به ئے جمع کړی وے لیکن اثر به ئے نهٔ کولے۔

ددے نه دا خبره هم معلومیږی چه بالفرض که یوه ورځ اُونه ووائی چه تاسو ما ته هره ورځ اُوبه را چوئ نو یوه ورځ خو غوړی یا شهد یا تیل هم راوا چوئ نو دا به ددے ونے جهالت وی، بلکه هغه په دغه څیزونو سره خرابیږی، تربیت ئے نهٔ کیږی نو دغه شان که یو انسان ووائی چه قرآن کښې یو شان خبرے بار بار کیږی، جدا خبرے پکار وے، نو دا به ددهٔ لوی جهالت وی۔

تَقْشَعِرُّ : دا پنځم صفت دے۔ اقشعرار : دے ته وائی چه د الله تعالیٰ د ویرے د وجه نه د انسان په بدن باندے ویښته نیغ ودریږی یعنی غونے ئے زیږ شی۔ او دا حالت د زړه د خشیت نه پیدا کیږی ددے وجه نه ئے ورسره (يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ) ذکر کړو۔

ثُمَّ تَلِينُ جُلُودُهُمْ وَقُلُوبُهُمْ : دا شپږم صفت دے۔ د مخکنی صفت مطلب دادے چه زړهٔ کښې ئے خشیت پیدا شو نو عبادتونه کوی، او ددے صفت مطلب دا دے چه پدے عبادتونو سره ئے زړه نرم شی، یعنی عبادت ورله خوند ورکوی۔

یا مطلب دا دے چه د زړه دغه ویره او د څرمنے زیږ والے سبب وګرځی د اطمینان او د محبت نو د هغے د وجه نه نرموالے راشی په څرمن باندے ویخته په ځای ځای کینی۔ نو دارنګه اندامونه د دغه انسان د الله تعالیٰ د ذکر او طاعت دپاره استعمالیږی، او په زړه کښې ایمان مُحکم او زیات شی۔ او دا د قرآن کریم کمال دے چه ویره ئے سبب د اطمینان ګرځی په خلاف د نورو تخویفاتو چه په هغے سره د زړه نفرت پیدا کیږی۔ او هرکله چه د زړهٔ د یرے اثر په څرمن باندے ښکاره کیږی نو ځکه ئے (تَقْشَعِرُّ) مخکښې ذکر کړو۔ او دا آیت داسے دے لکه سورة السجده (۱۵) آیت کښې ذکر شو ﴿إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا الَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا بِهَا خَرُّوا سُجَّدًا﴾ یعنی د الله تعالیٰ آیتونه چه ورته بیان شی نو په سجده پریوزی۔ په سجده ولے پریوزی؟ ځکه چه زړونه او څرمنے ئے نرمے شوی وی۔

**فائده** : دلته تفسیر قرطبی، البحر المحیط او ابن کثیر او السراج المنیر د شربینیؒ او صاحب د فتح البیان وغیره په دے مقام کښ په هغه متصوفه ؤ سخت رد کړیدے چه په وخت د ذکر کولو کښ په هغوی باندے جذبے اوبے هوشی راځی، یا ګډا کوی، یا توپونه وهی او دیته جذبه وائی او دا کمال او عبادت ګنړی، نو که دا کمال او ښه صفت وے نو الله به د صحابه کرامؓ او نورو مؤمنانو په صفت کښ پدے آیت کښ ذکر کړے وے، بلکه په عبادت سره خو د مؤمنانو اطمینان او سکون او آرام زیاتیږی۔

عبد الله بن عمر ﷺ د عراق والو په یو سړی ورتیر شو چه پریوتے وو، هغه تپوس وکړو: دے سړی له څه حال دے؟ خلکو ووبل: په دهٔ باندے چه کله قرآن ولوستے شی یا د الله ذکر واوری نو دا غورزیږی۔ نو ابن عمرؓ وفرمایل:

[إِنَّا لَنَخْشَى اللَّهَ وَمَا نَسْقُطُ] مونږ خو به د الله نه یریدو او بیا هم نهٔ پریوتو۔

(مطلب دا چه ددے سړی په زړه کښ څه فساد شته، ریاکار دے، ځکه ئے داسے حالت په ځان راوستے دے)

او د هغه نه یو بل روایت داسے دے چه شیطان د دوی د یوتن په زړه کښ ننوزی (نو بیا غورزیږی) (مَا كَانَ هٰذَا صَنِيعُ أَصْحَابِ مُحَمَّدٍ ﷺ) دا کار خو د رسول الله ﷺ د ملګرو نهٔ وو۔ (تفسیر القرطبی، واللباب، والبحر المحیط والمحرر الوجیز، الکشف والبیان، السراج المنیر، تفسیر الخازن، تفسیر الطبرانی)

عبد الله بن عروه بن الزبیرؓ فرمائی: ما د خپلے نیا اسماء رضی الله عنها نه تپوس وکړو، د رسول الله ﷺ د ملګرو څه حال وو کله به چه په هغوی باندے قرآن کریم لوستلے کیدو؟ وے فرمایل: [كَانُوا كَمَا نَعَتَهُمُ اللَّهُ تَدْمَعُ أَعْيُنُهُمْ وَتَقْشَعِرُّ قُلُوبُهُمْ]

هغوی به داسے وو لکه چه الله د هغوی صفت ذکر کړیدے چه سترګو نه به ئے اوښکے روانے وے او زړونه به ئے غونی زیږی شو۔ (ویره یریدل)۔

بیا ما تپوس وکړو: دلته څه خلك دی چه کله قرآن واوری نو په هغوی باندے بیهوشی راشی؟ وے فرمایل: أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ ۔ (یعنی دا شیطانی حرکت دے)۔ (سنن سعید بن منصور ۲۳۱/۲) رقم (۹۵) وشعب الایمان (۱۹۰۰) وسلسلة الآثار الصحیحة للشیخ ابی عبد الله الدانی رقم: ۳۲۷) اسناد صحیح)

قتادة وائی: [هٰذَا نَعْتُ أَوْلِيَاءِ اللَّهِ، نَعَتَهُمْ بِأَنَّهُمْ تَقْشَعِرُّ جُلُودُهُمْ وَتَطْمَئِنُّ قُلُوبُهُمْ إِلَى ذِكْرِ اللَّهِ وَلَمْ يَنْعَتْهُمْ بِذَهَابِ عُقُولِهِمْ، وَالْغِشْيَانِ عَلَيْهِمْ إِنَّمَا ذٰلِكَ فِي أَهْلِ الْبِدَعِ وَهُوَ مِنَ

الشَّيْطَانِ]

دا د الله تعالیٰ د اولیاؤ صفت دے چه د دوی غوږے زیږ کیږی او زړونه ئے د الله ذکر ته اطمینان او آرام کوی، او الله د دوی دا صفت نهٔ دے بیان کړے چه د دوی عقلونه ځی او بے هوشی پرے راځی بلکه دا کار په بدعتیانو کیږی او دا د شیطان د وجه نه کیږی).

ابن سیرینؒ وائی: زمونږ د دوی سره شرط دا دے چه په دوی کښې دے یو تن د کوټے په سر یا دیوال باندے کینی چه خپے ئے خورے کړی وی، بیا دے په هغه باندے قرآن کریم د اول نه تر آخره پورے ولوستلے شی که ځان ئے ګوزار کړو (جذبه کښې راغلو) نو دا به رشتینی وی.

بیا دلته ئے جُلُوْدُهُمْ یواځے ذکر کړو او بیا ئے ورسره په دویم ځل زړونه هم یو ځای کړل ځکه چه د خشیت محل زړه دے، نو د څرمنو ذکر سره خپله د زړونو ذکر راځی. یعنی کله چه څرمنے متأثر شی معلومیږی چه زړه کښې ئے خشیت پیدا شویدے.

یا خوف مقصود نهٔ دے بلکه رجاء مقصود ده نو په خوف سره څرمنے زیږے شی او کله چه رجاء حاصله شی نو بیا زړه کښې اطمینان پیدا شی او څرمن نرمه شی.

(فتح البیان والقاسمیؒ)

**ذٰلِكَ هُدَى اللهِ:** ١- یعنی دا غوږے زیږ کیدل او د زړونو نرمیدل د الله تعالیٰ هدایت دے. لکه مخکښې ئے قسوة قلب والو ته ګمراهان وویل.

٢- یا ذٰلك کښې اشاره ده قرآن کریم ته. یعنی صرف قرآن کریم د هدایت ذریعه ده، الله چه چاته هدایت ورکول غواړی، هغهٔ ته په دے باندے د ایمان راوړلو او ددے مطابق د عمل کولو توفیق ورکوی. او په آخر کښې ئے وفرمایل چه چالره د کفر او عناد او کبر او سرکشئ د وجے نه د الله د طرفه ګمراهی لیکلے شوی وی، هغهٔ له څوك هدایت نشی ورکولے.

| أَفَمَنْ يَتَّقِي بِوَجْهِهِ سُوءَ الْعَذَابِ يَوْمَ |
|---|
| آیا پس هغه څوك چه ځان بچ کوی په مخ خپل سره د بد عذاب نه په ورځ د قیامت |
| الْقِيَامَةِ وَقِيلَ لِلظَّالِمِينَ |
| (پشان د هغه چا کیدے شی چه په امن کښې وی ددے نه) او وبه وئیلے شی ظالمانو ته |

| ذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَكْسِبُوْنَ ﴿٢٤﴾ كَذَّبَ الَّذِيْنَ |
| --- |
| اُوڅکئ سزا د هغه عملونو چه تاسو کول۔ تکذیب کړے وو هغه کسانو |
| مِنْ قَبْلِهِمْ فَاَتَاهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿٢٥﴾ |
| چه مخکښې وو د دوی نه نو راغے هغوی ته عذاب د هغه ځائے نه چه نۀ پو هیدل۔ |
| فَاَذَاقَهُمُ اللّٰهُ الْخِزْيَ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَلَعَذَابُ |
| نو اُوڅکوله دوی ته الله تعالیٰ شرمندګی په ژوند دنیوی کښې او خامخا عذاب |
| الْاٰخِرَةِ اَكْبَرُ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿٢٦﴾ |
| د آخرت ډیر لوئی دے، که چرته دوی پو هیدلے۔ |

**تفسیر** : اُوس د مخکنو ګمراهانو سخت زړو سزا بیانیږی۔ یعنی د سخت زړو کفارو او مشرکانو په دنیا کښې دا حال بیان کړے شو چه دوئ د ګمراهئ په کندو کښې سرګردانه اوسیږی، او په آخرت کښې به د دوئ حال دا وی چه د دوئ لاسونه به شا طرفته یا څټه پورے تړلے شوی وی، او پرمخے به جهنم ته ورګذار کړے شی۔ الله تعالیٰ د دوئ شقاوت او بدنصیبی بیانوی فرمائی چه آیا دا خلق د هغه چا پشان کیدے شی چه هغوئ د جنت په باغونو کښې پُر امن ژوند تیروی ؟۔

عطاءؒ او ابن زیدؒ وائی چه د جهنمی دواړه لاسونه به د هغۀ شاته اوتړلے شی او پرمخے به اُور ته ګذار کړے شی نو اُور به ئے اول د مخ سره لګیږی۔

او مجاهدؒ وائی چه هغه به پرمخے جهنم ته وارتولے شی، او ظالمانو جهنمیانو ته به د زجر او توبیخ په توګه وئیلے کیږی چه د خپلو کړو خوند اوڅکئ۔

دلته د (اَفَمَنْ) دویم طرف پټ دے۔ (كَمَنْ يَّاْتِيْٓ اٰمِنًا يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ) په شان د هغه چا کیدے شی چه د قیامت په ورځ بنه په امن کښې راشی؟۔ نو دے کښې هم دعوت دے چه هرکله دا دواړه کسان برابر نۀ دی نو د دوی د کسبونو نه ځان وساته او ځان کښې د مخکنی شخص صفتونه پیدا کړه چه د عذابونو نه په امن شے۔

بِوَجْهِهٖ سُوْٓءَ الْعَذَابِ : په دنیا کښې دا قانون دے چه کوم مصیبت او تکلیف په بدن راځی نو لاس ورته فطرۃً غیر اختیاری طور سره ورمخکښې کیږی، اګرکه د انسان به

يقين وي چه زما لاس به خوږيږي، سوزيږي ليکن هغه ته مخ او سر ډير قيمتي ښکاري نو هغه بچ کوي، نو د مخ د بچ کولو دپاره خلك خپه هم ماتوي او لاس هم.
نو الله دے آيت کښې فرمائي چه د قيامت په ورځ به ددے خلکو برعکس حال وي چه لاسونه به ئے تړلے شوي وي او کوم تکليف چه راځي نو په مخ به ګوره ديکه ورکوي نو کوم شے چه زيات عزتمند او نازك دے په هغے باندے به اول عذاب وي ځکه چه دهٔ دا مخ د الله په بندګئ کښې نهٔ وو ذليله کړے۔ او په حديث کښې راغلي دي چه کله دوي اُور ته روان وي نو په مخ به روان وي۔ [أَمَا إِنَّهُمْ يَتَّقُوْنَ بِوُجُوْهِهِمْ كُلَّ حَدَبٍ وَشَوْكٍ ] دوي به هر اوچته ډيره کئ او ازغي په مخ باندے ديکه کوي۔

(احمد ٢/٣٥٤/٨٦٣٢) والترمذى ٣١٤٢) اسناده حسن-شعيب)

وَقِيلَ لِلظَّالِمِيْنَ : يعني د جهنم خزانچيان ملائك به ورته د توبيخ دپاره وائي۔ او ظالمين لفظ ئے راوړو دپاره د تسجيل په دوي باندے چه دا خلك ظالمان وو ځکه ورته عذاب ورځکوي۔
مَا كُنْتُمْ تَكْسِبُوْنَ: يعني دغه عملونو نه به ورله عذاب جوړ شوے وي۔
كَذَّبَ الَّذِيْنَ : اُوس فرمائي چه د ظالمانو دپاره يواځے په آخرت کښې عذاب نهٔ دے بلکه دنيا کښې ئے هم عذابونه واوره۔ نو د قريشو کافرانو د عبرت او نصيحت دپاره مثال د پخوانو راوړي چه هغوي هم د رسولانو تکذيب کړے وو نو الله هغوئ په دنيا کښې ذليله او رسوا کړل، څوك ئے په زمکه کښې ښخ کړل، د چا شکل او صورت ئے مسخ کړو، او په چا باندے ئے د کانړو باران اُوورولو، او څوك ئے په قيدو بند کښې مبتلا کړل۔ او د آخرت عذاب خو د دنيا د عذاب نه ډير زيات سخت دے، چه دا به خامخا دوئ ته رسيږي۔
کاش ! کافران په دے خبره يقين کولے نو د رسولانو تکذيب به ئے نهٔ کولو او په خپل خالق او مالك به ئے ايمان راوړے وے نو هلاکت او بربادي به د دوئ انجام نهٔ وے۔
فَأَذَاقَهُمُ: مبرد وئيلي دي چه هر اندام ته چه څه اثر رسيږي هغے ته ذوق وائي که هغه درد وي او که تريخوالے او که خوږوالے وي۔
لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ: أَیْ حَقِيْقَةَ الْحَالِ لَمَا كَذَّبُوْا ۔ يعني که دوي په حقيقتِ حال پوهيدے نو دوي به تکذيب نهٔ کولے۔ مؤمن بنده چه کله ګناه کوي نو په هغه باندے هم پدے وخت کښې ذهول او غفلت راغلے وي او جاهل شوے وي۔

| وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِيْ هٰذَا الْقُرْآنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ |
|---|
| او یقیناً بیان کړیدی مونږ خلقو لره په دے قرآن کښې د هر قسم بیان نه، |
| لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۲۷﴾ قُرْآنًا عَرَبِيًّا غَيْرَ ذِيْ عِوَجٍ |
| دے دپاره چه دوی نصیحت واخلی۔ قرآن عربی دے نهٔ دے کږلیچ والا |
| لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿۲۸﴾ |
| دے دپاره چه دوی اُویریږی۔ |

**تفسیر:** اُوس قرآن ته ترغیب ورکوی۔ ربط ئے د مخکښې لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ سره دے یعنی د علم دپاره اسباب شته خو خلك پرے ځان نهٔ پوهه کوی چه هغه سبب قرآن دے۔ نو مخکښې (لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ) کښې د غافلانو حال بیان شو اُوس د بیدارولو حال بیانیږی۔

یعنی: الله تعالیٰ د انسانانو د هدایت دپاره په قرآن کریم کښې ډیر مثالونه، د تیر شوو قومونو واقعات او قصے بیان کړی، هر قسم بیان پکښې موجود دے، دے دپاره چه په دے کښې په غور او فکر کولو سره دوئ عبرت حاصل کړی۔ او دا قرآن ئے په عربئ ژبه نازل کړو، چه د هر تناقض او التباس او سختئ نه پاك دے، ددے هره خبره واضحه او هره خبره په ډاګه ده، چه ددے په آوریدو سره عربئ ژبه باندے پوهیدونکی خلق ددے په غرض او غایت باندے پوهیږی۔ او الله په انسانانو باندے دا کرم په دے وجه وکړو چه خلق په دے کښې د موجود اوامرو او نواهیو اتباع اوکړی او خپل ځان د جهنم د عذاب نه بچ کړی۔

مِنْ كُلِّ مَثَلٍ: کل نه مراد هغه دی چه هغے ته حاجت وی۔ او د مثل نه مراد یا مثالونه دی۔ یا د مثل نه مراد قِسمونه د بیان او د وعظونو دی، یا د مثل نه مراد نمونے د عذاب د مخکنو دی۔

عَرَبِيًّا: یعنی عربی ژبے والا۔ ځکه چه عربی ژبه ډیره فصیحه او بلیغه ده۔ یا وضاحت والا۔ واضح مقصد والا۔

غَيْرَ ذِيْ عِوَجٍ: یعنی په معنیٰ او احکامو او عقائدو کښې ئے کوږوالے نشته، سیده عقائد او احکام ئے دی۔ حاصل معنیٰ ئے دا هم ده: ۱- غَيْرَ مُتَنَاقِضٍ فِيْهِ۔ تناقض او اختلاف او ګډوډ والے پکښې نشته چه انسان پرے پوهه نشی۔ (ضحاكؒ)

۲- غَیۡرَ مَخۡلُوۡقٍ۔ مخلوق نهٔ دے۔ ۳- غَیۡرَ ذِیۡ لَحۡنٍ۔ یعنی غلطی پکښې نشته۔
٤- غَیۡرَ ذِیۡ شَكٍّ۔ شك والا نهٔ دے۔ (فتح البیان)
٥- یعنې د شکونو او شبهاتو او اعتراضاتو نه بچ کونکے دے۔ پدے وجه ئې په آخر د آیت کښې (یَتَّقُوۡنَ) لفظ راوړو۔

| ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا رَّجُلًا فِیۡهِ شُرَكَآءُ مُتَشٰكِسُوۡنَ |
|---|
| بیان کړیدے الله تعالیٰ مثال د سړی چه په هغهٔ کښې برخه داران وی بد اخلاقه |
| وَرَجُلًا سَلَمًا لِّرَجُلٍ هَلۡ یَسۡتَوِیٰنِ |
| (جګړه مار) او بل سړے وی سلامت د یو سړی دپاره، آیا دوی برابر کیدے شی |
| مَثَلًا ؕ اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ ۚ بَلۡ اَكۡثَرُهُمۡ لَا یَعۡلَمُوۡنَ ﴿۲۹﴾ |
| په حالت کښې، ټول صفتونه خاص الله لره دی، بلکه ډیر د دوی نهٔ پو هیږی۔ |

**تفسیر**: دا آیتِ کریمه په قرآن کښې د مذکوره ګڼرو مثالونو نه یو مثال دے، دے دپاره چه خلق په دے کښې غور او فکر وکړی او عبرت حاصل کړی۔ او د غیر متقی بیان دے چه هغه مشرك دے۔ نو الله د شرك د رد دپاره مثال راوړی دے دپاره چه په خلکو کښې تقویٰ پیدا شی، او د توحید خبره رایاده کړی چه مونږ د الله بندګۍ له پیدا یو۔
دا مثال د یو مشرك او د یو موحد ترمینځه د فرق واضح کولو دپاره بیان شوے۔ الله تعالیٰ وفرمایل چه یو داسے غلام چه د هغهٔ ګڼړ آقاګان (مالکان) وی، او ټول بد اخلاقه او بد چلنه وی، او ضدیان وی، یو تن چه دے مرئی ته دیو کار حکم وکړی نو بل د هغهٔ په ضد کښې د بل کار حکم وکړی او دواړه اتفاق هم نهٔ کوی او معافی هم نهٔ کوی، احسان هم نهٔ کوی او که ددے مرئی څه حاجت پیښ شی یا پرے څه مصیبت راشی نو د مولاګانو نه یو کس هم ددهٔ مدد نهٔ کوی ځکه چه بد اخلاقه دی، نو دا مرئے به همیشه حیران او پریشانه او تنګ ژوند تیروی چه د چا خبره ومنی او د چا نافرمانی وکړی؟، او څنګه ټول راضی کړی؟، داسے غلام د هغه غلام پشان کیدے نشی چه د هغهٔ صرف یو آقا وی، هغه سخی او کریم وی، د غلام سره احسانات کوی، او ظلم پرے نهٔ کوی او کوم حاجت او مصیبت چه پرے راشی نو مدد ئې کوی نو دے به ضرور د اطمینان والا ژوند تیروی۔ همدا حال د مشرك او موحد دے۔

مشـرك د مـختلفو معبودانو ترمينځه حيران او پريشان وسبږي، د دوی دا معبودان چه پـه صـورت د بـابـاګـانـو اولياؤ او مشركانو پيرانو او مُلیانو کښې دی هغه بد اخلاقه دی، يـعـنـی عـنـاديـان دی او حـرصـنـاك دی نو که دا مشرك د يو عبات کوی نو بل ترينه خفه کيـږی، او کـه بتـان تـرے مراد کړے شی نو بيا مشرکان د هغوی په باره کښې دا خيال لری چه کـه فـلانـی بـابـا او بـت لـه لاړ شـم او څـه نذرانه ورپيش کړم نو هغه بل خفه کيږی، دارنـګـه پـه يو وخت کښې ئے ډير حاجتونه وی نو حيران وی چه که دے يو دربار ته لاړ شم نـو د بـل حـاجـت دپاره رانه بل پاتے کيږی، نو دا مشرك ډير په تنګ او پريشانه ژوند کښې وی۔ او مـوحـد د رب الـعـالـمـيـن عبادت کوی، او ددهٔ زړهٔ د اطمينان او سکون د دولت نه مالا مال وی۔

د مشرك دے حيرانتيا او د موحد دے سکون او اطمينان طرفته يوسف ﷺ اشاره کړے وه، هر کله چه د قرآن په ژبه کښې هغهٔ د جيل ملګروته ووئيل : ﴿ ءَأَرْبَابٌ مُّتَفَرِّقُونَ خَيْرٌ أَمِ اللَّهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ﴾ (آيا جدا جدا ډير معبودان بهتر دی اوکه يو الله چه قهر او جبروت والا دے)۔ (يوسف : ۳۹) نو مشرك ډير پريشانه ژوند تيروی او موحد د راحت ژوند۔

خـطـيـب شـربيـنیؒ وئيلی دی چه دا مثال د هغه چا دے چه دوی د علماؤ او پيرانو عبادت کـوی پـدے عـقـيـده چه هغوی به زمونږ دپاره شرکی سفارش کوی، او هر يو عقيده لری چه زمـا عـالِـم او پير په حق باندے دے، او دا بل په باطل باندے دے۔ دا هغه متشاكسون دی۔

مُتَشَاكِسُونَ: يـعـنی جګړه مار او ضديان دی چه په انصاف هم نهٔ رضا کيږی او يو بل سـره اتـفـاق هـم نـهٔ کـوی۔ تَشَاكس : تخالف او اختلاف ته وائی يعنی د يو بل مخالفت کـول او يـو بـل سـره اخـتـلاف کـولـو تـه وئيلے شی۔ او په اصل کښې بد اخلاقئ او تنګ مزاجئ ته وائی۔ چه دا سبب د اختلاف او د جګړو ګرځی۔

سَلَمًا لِّرَجُلٍ : يـعـنـی الله تعالىٰ په مؤمن باندے ډير عبادتونه نهٔ دی مقرر کړی چه ددهٔ ژونـد پـريـشـانـه شی بلکه لږ عمل ئے پرے ايښے دے۔ او بيا پرے انعامات هم ورکوی، رزق هم ورکـوی او مـحـبـت هـم ورسـره سـاتـی او دنـيـا او آخرت ورلـه دواړه ښـه کـوی۔او پـه مـصـيبـت کـښې ورسـره مدد هم کوی۔ نو دا به پدے غلامئ کښې هميشه خوشحاله وی چه خپل مالك ورسره څومره احسانات کوی۔

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ : دلتـه د الله حـمـد راوړے شويدے پدے کښې موحد ته دا خبردارے ورکوی چه

تهٔ د الله حمد ووايه په خپل ښائسته حال باندے چه تا له د توحيد كوم نعمت چه در كړے شويدے دا صرف د الله په توفيق سره دركړے شويدے، او دومره لوى نعمت دے چه پدے باندے هر وخت د الله شكر ادا كول پكار دى. (ابو السعودؒ)

۲- يا مطلب دا دے چه الله لره حمد دے چه دواړه سړى ئے يو شان برابر كړى نهٔ دى.

۳- دريم مطلب دا دے چه د الله دپاره د كمال ښكلے صفات دى او ستاسو د معبودانو دپاره ښكلے صفات نشته بلكه متشاكسون (بد اخلاقه ضديان) دى. نو د داسے كمالى ذات غلامى پكار ده چه احسان كونكے وى او مدد كونكے وى.

بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ : اكثر خلك نهٔ پوهيږى چه د كمال والا ذات پريدى او د بد اخلاقو په غلامئ كښې ځان داخلوى.

يا د شرك او توحيد او د مشرك او موحد فرق د ښكاره كيدو باوجود، مشركين دا نهٔ پيژنى او د شرك او گمراهئ په كندو كښې ډغرے وهى.

إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُمْ مَيِّتُوْنَ ﴿۳۰﴾ ثُمَّ إِنَّكُمْ

يقيناً تهٔ مړ كيدونكے ئے او يقيناً دوى هم مړهٔ كيدونكى دى. بيا يقيناً تاسو به

يَوْمَ الْقِيَامَةِ عِنْدَ رَبِّكُمْ تَخْتَصِمُوْنَ ﴿۳۱﴾ فَمَنْ أَظْلَمُ

په ورځ د قيامت كښې په نيز د رب خپل جگړے كوئ. نو څوك دے ډير ظالم

مِمَّنْ كَذَبَ عَلَى اللهِ وَكَذَّبَ بِالصِّدْقِ إِذْ جَآءَهٗ

د هغه چا نه چه دروغ وائى په الله باندے او دروغژن گنړى رشتياؤ لره كله چه راغے دهٔ

أَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكَافِرِيْنَ ﴿۳۲﴾ وَالَّذِيْ جَآءَ

ته، آيا نشته په جهنم كښې ځائے د اُوسيدو كافرانو لره. او هغه څوك چه راوړے ورو

بِالصِّدْقِ وَصَدَّقَ بِهٖٓ أُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ ﴿۳۳﴾ لَهُمْ مَّا

رشتيا لره او تصديق ئے اُوكړو په هغے، دغه كسان دوى متقيان دى. دوى لره هغه څه

يَشَآءُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ ذٰلِكَ جَزَآءُ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۳٤﴾

دى چه غواړى ئے دوى په نيز د رب د دوى، دا بدله ده د ښائسته عمل كونكو.

| لِيُكَفِّرَ اللّٰهُ عَنۡهُمۡ أَسۡوَءَ الَّذِىۡ عَمِلُوۡا |
|---|
| دے دپاره چه اُورژوی الله تعالیٰ د دوی نه بد هغه عملونه چه دوی کړیدی |
| وَيَجۡزِيَهُمۡ أَجۡرَهُمۡ بِأَحۡسَنِ الَّذِىۡ كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ ﴿۳۵﴾ |
| او بدله ورکړی دوی ته د اجرونو د دوی په ښائسته هغه عملونو چه دوی کول۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې رد دے د قول د مشرکانو چه هغوی به وئیل چه دے نبی خو مونږ تنګ کړو زمونږ د معبودانو دپاره مثالونه بیانوی، او هغے پسے خبرے کوی نو دے به مړ شی مونږ به ترے خلاص شو، او دا ارمان ئے وکړو۔ لکه د حق د داعیانو په مرګ باندے باطل پرست خوشحالیږی چه دا به کله مری؟ نو پدے کښې د دوی جواب وشو چه مرګ خو په تولو باندے راځی، نو ددے نبی په مرګ باندے خوشحالی کول هیڅ فائده لری، او دارنګه په مرګ سره د جګړے خلاصیدل نشته بلکه د مرګ نه روستو دوباره ژوند کښې به هم جګړے وی او بیا به الله تعالیٰ فیصله کوی۔ او داسے رد الله تعالیٰ په ډیرو آیتونو کښې کړیدے۔ ﴿وَمَا جَعَلۡنَا لِبَشَرٍ مِّنۡ قَبۡلِكَ الۡخُلۡدَ أَفَإِنۡ مِّتَّ فَهُمُ الۡخَالِدُوۡنَ﴾ (الانبیاء :۳٤) (او مونږ د هیڅ انسان دپاره ستا نه مخکښې همیشوالے نۀ دے ګرځولے، آیا که تۀ مړ شے نو دوی به همیشه وی؟!)

بل ځای فرمائی : ﴿نَتَرَبَّصُ بِهٖ رَيۡبَ الۡمَنُوۡنِ قُلۡ تَرَبَّصُوۡا فَإِنِّىۡ مَعَكُمۡ مِّنَ الۡمُتَرَبِّصِيۡنَ﴾ (طور: ۳۱/۳۰) (مونږ انتظار کوو په دۀ باندے د حوادثو د زمانے، ووایه، انتظار کوئ یقیناً زۀ تاسو سره د انتظار کونکو نه یم)

تول به مرو، تول به الله تعالیٰ له ورځو۔ نو مرګ حق دے الله له به ورځئ د هغے دپاره تیارے او غم وکړئ۔

دویمه فائده دا ده چه الله تعالیٰ خپل نبی ته فرمائی چه تۀ وفات کیدونکے ئے نو بندګی د الله تعالیٰ ډیره کړه لکه إِذَا جَاءَ نَصۡرُ اللّٰهِ کښې دا خبره راغلے ده۔ او دے سورت کښې هم د الله تعالیٰ د بندګئ دعوت دے، چه دا نور خلك هم مری، دوی له هم د الله بندګی پکار ده۔

دریمه فائده : د رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته الله تعالیٰ خبر ورکړو چه ددے نبی نه دین په جلتئ زدۀ کړئ صبا به درنه مړ وی، بیا به دین د چا نه زده کوئ۔

قرطبيؒ وائي : دا خبر الله تعالیٰ ددے دپاره ورکړو چه څوك د نبی په مرګ کښې خلاف ونکړی۔
او دا آيت صريح دليل دے چه په رسول الله ﷺ باندے مرګ راغلے دے۔ څکه چه د الله تعالیٰ خبر رشتينی دے، نو کوم خلك چه د حياة النبی قائل دی، نو دوی د قرآن او د حديث خلاف غلطه عقيده لری لکه حياتيان ډله دا عقيده لری۔
تَخْتَصِمُوْنَ: دا جګړے به اول د مؤمن او کافر وی، بيا به د مسلمانانو خپل مابين کښې وی، د اهل السنة او اهل البدعة ترمينځ به وی۔
عبد الله بن عمر رضی الله عنهما نه نسائیؒ او ابن جريرؒ نقل کړيدی چه دا آيت په مونږ نازل شو ليکن مونږ ددے په مطلب نۀ پوهيدو تردے چه د صفين جنګ (يعنی د علی او معاويه رضی الله عنهما ترمينځ) راغے نو مونږ ته پته ولګيده چه د مسلمانانو به خپل مينځ کښې هم جګړے راځی، او د قيامت په ورځ به ئے دوباره راځی۔ او دغه شان خبره د ابوسعيد خدری ﷺ نه هم نقل ده۔
زبير بن العوام ﷺ وفرمايل : اے د الله رسوله ! آيا په مونږ باندے به ز مونږ د دنيا جګړے دوباره کولے شی؟ وے فرمايل : آؤ په تاسو به دوباره کولے شی تردے چه هر حقدار ته به د هغۀ حق ادا کړے شی۔ زبير ﷺ ووئيل [فَوَاللّٰهِ اِنَّ الْاَمْرَ لَشَدِيْدٌ] چه قسم په الله چه خبره خو ډيره سخته ده۔ (مسند احمد ١/١٦٧ باسناد حسن)۔ (فتح البيان)
امام ابن القيمؒ په قصيده نونيه کښې دا خبره ذکر کړيده چه مونږ او مبتدعين به د الله تعالیٰ په دربار کښې جګړه کوو، مونږ به وايو چه اے الله ! مونږ ستا ټول صفتونه او نومونه ستا د شان مناسب منل، که دا خبره حقه وی مونږ له اجر راکړه، او که نۀ وی مونږ ته سزا راکړه، او مبتدعينو نه به تپوس کوی نو دوی به وائی چه اے الله ! مونږ تا دپاره نومونه او صفتونه نۀ منل څکه چه پدے کښې کفر لازميدو او مونږ ته پکښې نقصان ښکاره کيدو، او د فلاسفه او حکماؤ آراء راته لوی ښکاره کيدل۔ نو الله تعالیٰ به کومه فيصله کوی۔
دغسے زمونږ او د هغه کسانو چه د رسول الله ﷺ د سنتو دشمنان دی مقابله وی، مونږ به وايو چه اے الله ! تا مونږ ته يو رسول راليږلے وو، هغه مونږ منلے دے، د هغه ټولے سنت طريقے مونږ منلی دی، هر عالِم سره چه وی او د علماؤ اکرام مو کولو، او ټول علماء مو منل او د هغوی سره چه کوم حق وو هغه مو ترے راخستل، او يو مو په بل

بانـدې نـهٔ غـوره کوو۔ او تقلید جامد والا به وائی چه اے الله ! تا پیغمبر رالیږلے وو خو د هغـه په خبرو بـاندې څوك نهٔ پو هیدل صرف یو امام ابو حنیفهٔ پو هیدو نو بس مونږ د هغه پسے روان شو، د هغه په لاره کښې هدایت وو او قرآن او حدیث خو یو معمه وه، پدے باندے څوك چرته پو هیدل، دا صرف تا یو کس ته رالیږلی وو،

نـو فـکـر وکـړه چـه الله تـعالیٰ بـه کـومه فیصله کوی، هر سړے دې ځان له جواب تیار کـړی۔ نـو تـهٔ چـه کـو مه عقیده او عمل لرې دا د الله تعالیٰ په دربار کښې صحیح کړه چه خپـلـه دعـویٰ او دلیـل پیش کولے شے۔ ځکه چه د الله تعالیٰ په دربار کښې دا خبرے بیرته راواپس کیـږی۔ او دغـه شان مشرکان او موحدین به جګړے کوی څنګه ئې چه په دنیا کـښې دلیـلـونـه وئیـل۔ او دغه شان د چا چه د یو بل سره په پوله پټی، دکان باندې جګړه وی هلتـه به دوباره راواپس کیږی۔ نو الله تعالیٰ به د ټولو خلکو مخامخ فیصله کوی او یو به پړ کوی او بل به وړ کوی۔

فَمَنْ اَظْلَمُ: پدے کښې د (یَخْتَصِمُوْنَ) اختصام فیصله ذکر کوی۔ یعنی کوم مومنان او کـافران چه د قیامت په ورځ د الله تعالیٰ مخے ته جګړه کوی د هغویٔ حال بیانیږی، چه د هغـه انسـان نـه لوئے ظالم بل نشی کیدلے چه هغه په الله تعالیٰ دروغ تړی، او وائی چه د هغـهٔ څوك شریك یـا ځوی یا ښځه شته دے، او څوك چه د هغه دین او د هغه د قرآن تـکذیب وکړی چه په هغے باندې نبی کریم ﷺ رالیږلے شوے، د داسے کافرانو د پاتے کیدو ځای جهنم دے۔ او ددے په مقابله کښې نبی کریم ﷺ او په هغهٔ باندې ایمان راوړونکی په حقیـقـی مـعـنـو کښې د الله نه یریدونکی دی، او د قیامت په ورځ به دویٔ له د دویٔ د رب خواتـه هـر هـغـه نعمت ملاویږی چه دویٔ ئې خواهش کوی، او نیك عمل کونکو له الله دغـسے بـدلـه ورکـوی، هـغـه بـه د دویٔ ټول واړهٔ او غټ ګناهونه معاف کړی، او د دویٔ د نیکو عملونو به دویٔ له بهترینه بدله ورکړی۔

کَذَبَ عَلَی اللّٰہِ: پـه الله بـانـدې دروغ تـړل نسبت د شـریـکـانو کول هغه ته، یا د الله په صـفـاتـو کـښې د ځان نه تاویلات کوی چه هغه د ځان صفت وئیلے دے، (یَدٌ) لاس) او دے وائـی چـه ددے نه قدرت مراد دے لکه چه جهمیه او مؤوله دا کار کوی۔ یا د ځان نه حرام او حلال جوړ کړی۔

بِالصِّدْقِ: د صـدق نـه مراد قرآن او رسول الله ﷺ او ټول احکام شرعیه دی چه رسول الله ﷺ راوړی وی۔

إِذْ جَاءَهُ: کښې اشاره ده چه د قرآن د راتللو سره سمدست بغیر د سوچ او فکر نه تکذیب کوی، او د حق او د باطل ترمینځ فکر نهٔ استعمالوی۔ نو د داسې دروغجنو ځای جهنم دے۔

وَالَّذِىْ جَاءَ بِالصِّدْقِ: اُوس د مؤمنانو حال بیانوی۔ د اَلَّذِیْ نه مراد رسول الله ﷺ او د هغهٔ تابعدار دی۔

جَاءَ بِالصِّدْقِ وَصَدَّقَ بِهٖ: دے آیت کښې هم مفسرینو ډیر مصداقات ذکر کړیدی چه آیت ئې ګران کړیدے (۱) چا وئیلی دی چه وَالَّذِىْ جَاءَ بِالصِّدْقِ نه مراد جبریل دے، او وَصَدَّقَ بِهٖ نه مراد رسول الله ﷺ دے۔ او جواب ئې دا دے (اُولٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ) یعنی دا دواړه متقیان دی۔ دا تفسیر د روستو (اولئك) جمعو صیغو سره نهٔ لګی۔

دارنګه (لِيُكَفِّرَ اللّٰهُ عَنْهُمْ اَسْوَاَ الَّذِىْ) ورسره نهٔ لګی ځکه چه د جبریل او رسول الله ﷺ بد عملونه نشته۔

(۲) والذی نه مراد رسول الله ﷺ او وَصَدَّقَ بِهٖ نه مراد ابوبکر رضی الله عنه دے۔ او د (لِيُكَفِّرَ اللّٰهُ عَنْهُمْ اَسْوَاَ الَّذِىْ) نه مراد ابوبکر رضی الله عنه او د هغه په شان نور مؤمنان به واخلے۔ (قاله علی بن ابی طالب رضی الله عنه)

(۳) چا پکښې وئیلی دی وَالَّذِىْ جَاءَ نه مراد رسول الله ﷺ او وَصَدَّقَ بِهٖ نه مراد مؤمنان دی۔

(٤) چا وئیلی دی چه جاء بالصدق انبیاء دی او وصدق به نه مراد د هغوی تابعدار دی۔ دا مخکنی مطلبونه د آیت اشارات کیدے شی لیکن حقیقی مصداق ئې نهٔ دے۔

(٥) ظاهر مصداق دا دے چه ددے نه مراد هر مؤمن دے چه د الله توحید ته ئې دعوت ورکړے او د هغه شریعت ئې خلکو ته خودلے دے۔ او دا قول ابن جریرؒ غوره کړیدے۔ او هر مؤمن به دوه صفته لری یو اتیان بالصدق۔ او بل تصدیق بالصدق۔

دویم تعبیر: اتیان بالحق۔ یعنی حق راوړل او دویم یقین بالحق۔ په حق به یقین کوی۔ یعنی حقه خبره به کوی او بیا به په هغې باندے یقین هم لری، نو هله به ئې الله تعالیٰ کامیابوی او ګناهونه به ترے رژوی او جنت ته به ئې داخلوی۔

ددے تفصیل دا دے چه یو تن غلطه عقیده ولرله یا ئې غلطه خبره باندے عمل وکړو نو ددهٔ یقین شته خو عقیده ئې غلطه ده، نو دے ته غرور وائی، او دا د یهودو مرض وو (وَغَرَّهُمْ فِىْ دِيْنِهِمْ مَا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ) د دوی یقین وو چه مونږ جنتیان یو لیکن خبره ئې

غلطه وه۔ حقیقت نۀ وو۔ دهوکه شو۔ ددے برعکس د یو تن خبره رشتیا ده لیکن خپله ئے پرے یقین نشته، نو دا منافقت دے، منافقانو په حقیقت راتګ کړے وی لیکن زړه کښ کافر وی پدے ئے یقین نۀ وی۔ نو دے مؤمنانو کښ دا دواړه بد صفات نشته، نۀ دهوکه دی، او نۀ منافقان دی، بلکه حقیقت وائی او په حقیقت باندے یقین لری، نو دا خلك په صحیح معنو کښ متقیان دی۔

جَاۤءَ بِالصِّدْقِ : د راتګ نه مراد دا نۀ دے چه بل ځای نه راغلے وی بلکه معنیٰ دا ده : (قَالَ بِالْحَقِّ وَعَمِلَ بِهٖ) ۔ یعنی خبره ئے حقه وکړه او عمل ئے په حق باندے وکړو۔ لکه محاوره کښ خلك دا وائی چه فلانی په حقه خبره راتګ وکړو یعنی حقه خبره ئے وکړه۔

بِالصِّدْقِ : صِدْق وائی مُطَابَقَةُ الْخَبَرِ لِلْوَاقِعِ ۔ یعنی د واقع او حقیقت مطابق خبرے کول۔ نو دلته د صدق نه مراد قرآن دے یعنی قرآن ته حق وائی او بیا عملونه هم کوی د قرآن مطابق۔

وَصَدَّقَ بِهٖ : او بیا تصدیق او یقین وکړی پدے قرآن چه دا زۀ څه وایم او څه کوم دا بالکل سچ او یقینی دی۔ ځکه چه که یقین ډیر نۀ وی نو منافق کیږے او که صدق ډیر رانۀ وړو نو دهوکه کیږے۔ نو مؤمن به په خپله خبره باندے یقین کوی۔ لا اله الا الله ئے ووئیله او په زړه کښ ئے پرے یقین نۀ وی دا منافقت دے۔

او که یو تن په یو شی باندے یقین لری مثلاً چه د الله اولیاء او قبرونو والا هم مددونه کولے شی نو دا دهوکه ده۔

او دا بیا د هر نیك عمل او رسالت او بدعت او شرك سره لګیږی۔ بدعتی دعاء بعد السنة ښه په یقین سره وکړه چه پدے کښ اجر دے نو دا جاء بالصدق نشو بلکه جاء بالبدعة شو۔ دا متقی نشو۔ یو تن د الله تعالیٰ صحیح ذکر وکړو لیکن یقین ئے نشته نو دا هم متقی نۀ دے۔

اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ : دا څنګه په دوه خبرو متقی شو؟ نو وجه دا ده چه یقین انسان تولو اعمالو ته راکاږی۔

اَسْوَاَ الَّذِیْ عَمِلُوْا : اسوأ صیغه د اسم تفضیل ده۔ نو پدے کښ اشاره ده چه د ایمان او د عمل صالح په وجه به الله تعالیٰ د دوی نه ډیر ناکاره عملونه ورژوی نو عام ګناه به خامخا رژوی۔ یا اسوأ په معنیٰ د سَیِّئُ سره دے، نو د ټولو ګناهونو معاف کولو زیرے دے۔

| أَلَيْسَ اللّٰهُ بِكَافٍ عَبْدَهٗ وَيُخَوِّفُوْنَكَ بِالَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِهٖ |
|---|
| آیا نهٔ دے الله کافی د بنده خپل، او یروی دوی تا لره په هغه کسانو چه سوئ دی د الله |
| وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ ﴿۳۶﴾ |
| نه، او چا لره چه گمراه کړی الله تعالیٰ نو نشته هغهٔ لره څوك لاره خودونکے۔ |
| وَمَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ مُّضِلٍّ |
| او چا ته چه هدایت اُوکړی الله تعالیٰ نو نشته هغهٔ لره څوك گمراه کونکے۔ |
| أَلَيْسَ اللّٰهُ بِعَزِيْزٍ ذِي انْتِقَامٍ ﴿۳۷﴾ |
| آیا نهٔ دے الله تعالیٰ زورور بدله اخستونکے۔ |

**تفسیر** : دا متعلق دے د (اِنَّكَ مَيِّتٌ) سره یعنی مشرکانو رسول الله ﷺ ته دوه خبرے کړے وے، یو دا چه دے به مړ شی او مونږ به ترے خلاص شو، د هغے جواب ورکړے شو۔ دویمه ئے دا خبره کړے وه چه زمونږ دا اولیاء او معبودان به ډیے ووهی او هلاك به ډیے کړی، او بچی به ډیے مړه کړی او د رسول الله ﷺ بچی به مړهٔ کیدل نو دوی به وئیل چه وگوره زمونږ آلهه ؤ ووهلو ځکه چه زمونږ د آلهه ؤ پسے خبرے کوی.

دلته ابن جریرؒ لیکلی دی : (خَوَّفَتِ الْاُمَمُ رُسُلَهُمْ مِنْ اَنْ تَنَالَهُمْ آلِهَتُهُمْ بِسُوْءٍ) تولو پیغمبرانو به خپل رسولان ددے نه یرول چه د دوی آلهه به دوی ته تکلیف او تکره ورکړی۔ نو دلته ئے رسول الله ﷺ ته دا دهمکی ورکړے وه چه غرق کیږے، زمونږ د باباگانو نه قلار شه۔ لکه اُوس هم ډیر خلك وائی چه د اولیاؤ پسے خبرے مهٔ کوئ (دا مهٔ وایئ چه دوی هیڅ نشی کولے) گنے خوله به مو گونگه شی، کټ به دریاندے واړوی او مال به ډیے غرق شی، او کله نا کله په مؤمن باندے امتحانات راشی نو دوی وائی چه وگوره زمونږ باباگانو ووهلو۔

## واقعه د خالد بن ولید ﷺ

رسول الله ﷺ د مکے د فتح نه روستو خالد بن ولید بطن نخله ته ولیږلو چه هلته د عزیٰ پیریٔ زیارت دے هغه وران کړه او عزیٰ پیریٔ قتل کړه چه دا به په ونه کښ خلکو ته راښکاره کیده او هغوی ته به ئے آوازونه کول، او خلك به ئے پدے طریقه په شرك

باندے کلکول۔ خالد بن الولید ﷺ چه کله ورغے نو عزیٰ ته ئے وویل:

كُفْرَانَكِ لَا سُبْحَانَكِ اِنِّىْ رَاَيْتُ اللّٰهَ قَدْ اَهَانَكِ

اے عـزیٰ! نن به مونږ په تا کفر کوو او ستا پاکی به نهٔ بیانوو، زما په الله یقین دے چه تا به ذلیله کوی۔ نو د هغه ځای منجور ورته وویل چه اے خالده! (اُحَذِّرُكَ مِنْ عُزّٰى) زهٔ تا د عزیٰ نه یروم چه دا بـه دربانـدے حـمـله وکړی او مړ به دِے کړی۔ هغهٔ ورته وویل هغه عقیـدے اُوس ختمے شـویـدی چه مـونـږ بـه ددے نـه یـریـدو، مونږ ته الله تعالیٰ توحید رانـصیـب کـړیـدے، بیا ئے یوه ونه ووهله، او رسول الله ﷺ ته راغلو رسول الله ﷺ ورته وفرمایـل: تـا څـه ولیـدل؟ وے وئیـل: نهٔ، بیرته ئے ورته وویل چه تا نهٔ ده وژلے۔ هغه بیا راغے بلـه ونـه ئے ووهله نو د هغے نه پیریٔ رابښکاره شوه د انسان په شکل، نو هغه ئے په توره ووهله نو رسول الله ﷺ وفرمایل چه اُوس دِے قتل کړه۔

نـو الله تـعالیٰ دلتـه خپل رسول ته فرمائی چه الله ستا دپاره کافی دے، نورو معبودانو ته ضـرورت نشـتـه، دویـم دا چـه د هـغـوی نـه یریږه هم مهٔ۔ که څوك ووائی چه زما خو ډیر حاجتـونـه دی، نو دا به یو الله څنګه پوره کړی نو الله فرمائی چه زهٔ ستا دپاره د هر څه نه کافی یم۔ مشـرکـانو چه کوم معبودان مقرر کړی وی، نو د یو حاجت دپاره چه هغه بل حاجت نشی پوره کولے۔ نو الله فرمائی زهٔ ستاسو هر حاجت پوره کولو دپاره کافی یم۔

وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ: اُوس تـقابـل د دوه فـریـقینو بیانوی چه ګمراهان مشرکان دی او بل مؤمنانِ موحدین دی۔

ذِىْ انْتِقَامٍ: الله تعالیٰ د قریشو نه په بدر او نورو معرکو کښې بدله واخسته او په فتح د مکے سره ئے ذلیله کړل۔

| وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ لَيَقُوْلُنَّ |
|---|
| او که تپوس اُوکړے ته د دوی نه چه چا پیدا کړیدی آسمانونه او زمکه خامخا وائی |
| اللّٰهُ قُلْ اَفَرَاَيْتُمْ مَّا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ |
| به دوی الله، ورته اُووایه خبر راکړئ په باره د هغه چا کښې چه تاسو ئے رابلئ سویٰ |
| اللّٰهِ اِنْ اَرَادَنِىَ اللّٰهُ بِضُرٍّ هَلْ هُنَّ كٰشِفٰتُ |
| د الله تعالیٰ نه، که اراده اُوکړی الله ما ته د ضرر رسولو آیا دوی لرے کونکی |

| |
|---|
| ضُرِّهِ أَوْ أَرَادَنِيْ بِرَحْمَةٍ هَلْ هُنَّ مُمْسِكَاتُ رَحْمَتِهِ |
| د ضرر د هغهٔ دی، یا که اراده اُوکړی ما ته د رحم کولو آیا دوی بندونکی د رحمت د |
| قُلْ حَسْبِيَ اللّٰهُ عَلَيْهِ يَتَوَكَّلُ |
| هغهٔ دی، اُووایه کافی دے ما لره الله تعالیٰ، خاص په هغهٔ باندے ځان سپاری |
| الْمُتَوَكِّلُوْنَ ﴿۳۸﴾ قُلْ يَا قَوْمِ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ إِنِّيْ عَامِلٌ |
| ځان سپارونکی۔ اُووایه اے قومه زما عمل کوئ په خپله طریقه، یقیناً زهٔ (هم) عمل |
| فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿۳۹﴾ مَنْ يَأْتِيْهِ |
| کونکے یم (په خپله طریقه) نو زردے چه تاسو به پو هه شئ۔ چه چا ته به راځی |
| عَذَابٌ يُخْزِيْهِ وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُقِيْمٌ ﴿۴۰﴾ |
| عذاب چه شرموی به ئے او نازلیږی به په هغهٔ باندے عذاب همیشه۔ |

**تفسیر**: دا څلورم عقلی اعترافی دلیل دے دپاره د نفی د خالقیت او تصرف د غیر الله نه په اقرار د مشرکانو سره۔ او دا د الله تعالیٰ د عظمت دلیل دے، او په دے کښې د مکے د کافرانو جهالت او ناپوهی او د هغوئ د کم عقلئ بیان شوے چه تهٔ کله دوئ نه تپوس وکړے چه د آسمانونو او زمکے پیدا کونکے څوک دے؟ نو فوراً جواب ورکوی چه الله دے۔ نو بیا دا خلق د زمکے او آسمان خالق پریدی او د بتانو عبادت کوی ؟!

او ربط ئے د ماقبل سره دا دے چه هرکله تاسو دا اقرار کوئ چه ددے کائناتو خالق الله تعالیٰ دے نو بیا تاسو زما نبی ولے په باطلو معبودانو سره یروئ، دا معبودان خو د نفع اود ضرر مالکان نهٔ دی۔

قُلْ أَفَرَأَيْتُمْ: دے وجے نه الله تعالیٰ د نبی ﷺ په ژبه د هغوئ نه تپوس وکړو چه که الله ماله تکلیف راکول غواړی، نو تاسو چه د کومو بتانو عبادت کوئ، آیا هغوئ به زما دا تکلیف لرے کړی ؟ او که هغه په ما باندے په خپل فضل سره پیرزو وغواړی نو آیا دغه بتان به دا بند کړی؟ جواب یقیناً په نفی کښې دے، ځکه چه په دوئ کښې د نفع او نقصان رسولو طاقت نشته۔ دے وجے نه اے د قریشو کافرانو ! زما دا اعلان واورئ چه زما الله ماله کافی دے، زهٔ په همدهٔ باندے بهروسه کوم او د هم دهٔ عبادت کوم، ځکه چه تمام

بهروسه کونکې په همدهٔ باندے بهروسه کوی۔ هر سړے ځان سپاری، څوك ئې ځان ته سپاری چه زهٔ به داسے کار وکړم، او څوك ئې پیسو ته، څوك یو بل ژوندی انسان ته او څوك ئې قبر ته، خو شرعی توکل دا دے چه په الله باندے وشی۔ یعنی زما الله تعالیٰ شته، ما په هغه باندے ځان سپارلے دے نو تول انسانان دِے هغه ته ځان وسپاری چه حاجتونه ورله پوره کړی۔ یعنی زهٔ ستاسو د آلِهَه ؤ نه نهٔ یریږم۔

د هود ﷺ قوم چه کله هغهٔ ته ووئیل چه زمونږ معبودانو ستا عقل ته نقصان رسولے، نو هغهٔ ووئیل: ﴿إِنِّي أُشْهِدُ اللَّهَ وَاشْهَدُوا أَنِّي بَرِيءٌ مِمَّا تُشْرِكُونَ مِنْ دُونِهِ فَكِيدُونِي جَمِيعًا ثُمَّ لَا تُنْظِرُونِ إِنِّي تَوَكَّلْتُ عَلَى اللَّهِ رَبِّي وَرَبِّكُمْ مَا مِنْ دَابَّةٍ إِلَّا هُوَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهَا إِنَّ رَبِّي عَلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ﴾ (زهٔ الله گواه جوړوم او تاسو هم گواه اُوسئ چه زهٔ د الله نه سوئ ددے تولو نه بیزاره یم چه هغه تاسو شریکان جوړوئ، نو تاسو تول یو ځائے شئ او زما خلاف چلونه جوړ کړئ او ماله بیخی مهلت مهٔ راکوئ، زما بهروسه صرف په الله تعالیٰ ده چه زما او ستاسو د تولو رب دے، څومره په خپو باندے گرځیدونکی چه دی د تولو تندے هم هغهٔ نیولے دے، یقیناً زما رب بیخی په صحیح لاره دے)۔

د عبد الله بن عباس ﷺ نه په روایت شوی یو اوږد حدیث کښې رسول الله ﷺ وفرمایل چه که تول خلق تاته نقصان رسول غواړی چه هغه تاله الله نهٔ دے مقرر کړے، نو هغوئ تاته نقصان نشی رسولے، اوکه چرے تول خلق تاته څهٔ نفع رسول اوغواړی چه هغه تاله الله نهٔ وی مقرر کړے نو هغوئ تاته دغه نفع نشی رسولے۔

(ترمذی رقم: (٢٥١٦)، مسند احمد (٢٦٦٩)۔

**فائده**: پدے آیت کښې ئې مؤنث صیغے ذکر کړے، وجه دا ده چه دلته په خاصو مشرکانو رد وو چه هغوی د عزیٰ پیرئ عبادت کولو او هغه مؤنثه وه یا اُوس زمانه کښې بعض خلك د زنانه د قبر (پیره ابئ) عبادت کوی یا تانیث کښې اشاره ده کمزورئ د معبودانو د دوی ته څکه چه مؤنثات په کمزورئ سره مشهور دی۔

قُلْ يَا قَوْمِ اعْمَلُوا: په دے آیتِ کریمه کښې مسئله د براء ت ده او پدے براء ت کښې دهمکی غرض ده۔ یعنی تاسو خپل عمل کوئ (د حق سره دشمنی کوئ) او مونږ خپل عمل کوو (یعنی زهٔ هم په ایمان او توحید او د الله تعالیٰ په طاعت او بندگئ باندے ولاړ وسیږم)، خو دهمکی ورکوی چه تاسو ته به ډیر زر معلومه شی چه په دنیا کښې رسوا کُن عذاب په چا باندے راځی، او د جهنم ابدی عذاب د چا استوگنه جوړیږی۔

او دا هم د دعوت یوه ښه طریقه وی چه مخالف ته ووائی چه ته خپل بد عمل کوه او کومه عقیده چه لرے پدے روان اوسه او زما خپله عقیده ده، روستو به پته ولګی چه چا له الله تعالیٰ عزت ورکوی او څوك ذلیله کوی، او چا باندے به عذاب راځی، نو که هغه عقلمند وی سوچ وکړی چه راځئ چه د خپلے عقیدے او عمل غم وکړو چه دا به غلط وی او که صحیح، نو کله چه خپلے عقیدے ته متوجه شی بیا ورته الله تعالیٰ هدایت کوی۔

عَذَابٌ يُخْزِيهِ: ددے نه دنیاوی عذاب مراد دے۔ نو دغسے وشوه چه د بدر په میدان کښې الله تعالیٰ دوئ خوار او ذلیله کړل۔ زیاتره متکبرین قریش ووژلے شول، او د دوئ لاشونه په یو کوهی کښې دننه وارتولے شول، او کوم چه بچ شول هغوئ په زنځیرونو اوتړلے شول او مدینے ته راوستے شول۔

وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُّقِيمٌ: ددے نه د آخرت عذاب مراد دے۔

| |
|---|
| إِنَّا أَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ لِلنَّاسِ بِالْحَقِّ فَمَنِ اهْتَدٰى |
| یقیناً مونږ نازل کړیدے په تا باندے کتاب دپاره د خلقو په حق سره نو چا چه |
| فَلِنَفْسِهٖ وَمَنْ ضَلَّ فَإِنَّمَا |
| هدایت اُوموندلو نو خپلے فائدے دپاره ئے دے او څوك چه ګمراه شو نو یقیناً |
| يَضِلُّ عَلَيْهَا وَمَا أَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيلٍ ﴿٤١﴾ |
| ګمراه کیږی چه ضرر به ئے په هغه وی او نه ئے ته په دوی باندے ذمه وار۔ |

**تفسیر** : دا اُوس د هغه عمل بیان دے کوم چه د رسول الله ﷺ د طرفنه وویل شو، یعنی زما عمل خو قرآن بیانول دی چه که دے ته څوك راغے خپله فائده ئے ده، او که څوك رانغے خپله ضرر ئے دے۔

او پدے آیت کښې رسول الله ﷺ ته تسلی هم ده۔ د قریشو په کفر باندے د تینګیدو په وجه به نبی کریم ﷺ ته تکلیف کیدهٔ، الله تعالیٰ هغهٔ له تسلی ورکړه چه مونږ ته په حق کتاب درکولو سره رالیږلے ئے، او ستا ذمه واری د تبلیغ او بیان نه پس ختمیږی۔ ته هیچا ته هدایت نشے کولے۔ کوم کس چه په قرآن ایمان راوړی او د ایمان او نیك عمل

ژوند غوره کوی، ددے فائده به صرف دهٔ ته ملاویږی چه دا به د جهنم نه خلاصے مومی او د جنت حقدار به جوړیږی، اوکه څوك گمراه شو نو ددے بد انجام به دا خپله برداشت کوی او همیشه دپاره به جهنم ته گذارلے شی او د الله تعالیٰ د لعنت او غضب مستحق به گرځی۔

لِلنَّاسِ : یعنی د خلکو د فائدے دپاره۔ او دا دلیل دے چه قرآن د ټولے دنیا انسانانو او پیریانو دپاره نازل شوے کتاب دے۔

شوکانیؒ لیکی چه دا آیت، د جهاد په آیت سره منسوخ دے، چه په هغے کښې الله تعالیٰ هغهٔ ته د کافرانو سره د جهاد کولو حکم ورکړے تردے چه دویٔ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ کلمه ووائی او د اسلام د احکامو پابند شی۔ لیکن ظاهر دا ده چه منسوخ کیدو ته ضرورت نشته ځکه چه په آیت کښې د رسول الله ﷺ نه د هدایت ذمه واری ساقطول غرض دے۔ او دا په هر دور کښې د رسول الله ﷺ نه ساقط دے۔

| اَللّٰهُ يَتَوَفَّى الْاَنْفُسَ حِيْنَ مَوْتِهَا وَالَّتِيْ لَمْ تَمُتْ |
|---|
| الله پوره اخلی روحونه په وخت د مرګ د هغے کښې او هغه روحونه چه نهٔ مړهٔ کیږی، |
| فِيْ مَنَامِهَا فَيُمْسِكُ الَّتِيْ قَضٰى |
| (اخلی ئے) په خوب د هغے کښې، نو بند ساتی (ځان سره) هغه روحونه چه فیصله ئے |
| عَلَيْهَا الْمَوْتَ وَيُرْسِلُ الْاُخْرٰى اِلٰى اَجَلٍ مُّسَمًّى |
| کړے وی په هغے باندے د مرګ او راپریدی نور روحونه تر نیتے مقررے پورے |
| اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ﴿۴۲﴾ |
| یقیناً پدے کښې خامخا نخے دی دپاره د هغه قوم چه فکر کوی۔ |

**تفسیر :** مناسبت

۱- دا آیت متعلق دے د (هَلْ هُنَّ مُمْسِكٰتُ رَحْمَتِهٖ) سره۔ ❁ پدے کښې د الله تعالیٰ د تصرفاتو بیان دے، او د معبودانو عجز پکښې ذکر دے۔

❁ دارنګه پدے آیت کښې عقلی دلیل ذکر دے په ترقیٔ سره د ماقبل نه ځکه چه مخکښې دلیلونه د خلق او د تربیت او د مالکیت د نفع او د ضرر ذکر شو نو اُوس د الله

تعالىٰ تصرف ذكر كيږي په خوب او په مرګ سره. (احسن الكلام)
د معبودانو عجز پدې طريقه ذكر دے چه په خوب كښ انسان نۀ څه آوري او نۀ تصرف كولے شي، نو دغه شان مړي دي چه نۀ آوريدل كولے شي او نۀ تصرف كولے شي. بيا تاسو ولے د مړو عبادت كوئ، د ژوندي ذات عبادت وكړئ چه هر څه آوري او په هر كار قادر دے.
نو په آيت كښ بيان د توحيد او رد د شرك دے.
❁ دويم دا آيت كريمه د بعث بعد الموت سره لګي، د قيامت ورځ حقه ده خامخا به راځي دليل ئے پدے آيت كښ ذكر دے.
❁ دريم د موضوع د سورت سره ئے هم تعلق دے چه بندګي د الله تعالىٰ پكار ده ځكه چه ددے الله په لاس كښ ستا مرګ دے، صبا به ئے درنه روح اخستے وي نو الله ته به پيش شے، نو مخكښ نه څه توبه ځان سره واخله. دے الله باندے ستا ديره كيدل دي، روح به دے د هغه سره وي نو مخكښ نه ځان سره څه واخله. او په ظاهر د آيت كښ د الله تعالىٰ تعارف دے.
مطلب د آيت: الله تعالىٰ خپلو بندګانو له دا خبر وركړے چه په ټولو كائناتو كښ هم هغه د خپلے مرضئ مطابق تصرف كوي، هغه د ملائكو په ذريعه د انسانانو روحونه د هغوئ د جسمونو نه وباسي، چه ددے نه پس هغوئ قيامته پورے مړۀ كيږي، او هم هغه په انسانانو باندے خوب راولي، چه ددے په سبب ددۀ ظاهري حواس كار پريدي.
بيا په دوئ كښ چه الله چالره د دنيا نه وچتول غواړي، هغۀ له په خوب كښ واقعي مرګ وركوي، او ددۀ روح ددۀ د جسم نه وباسي او ځان سره ئے وساتي. او د چا مرګ چه نۀ وي ليكلے شوے د هغۀ روح واپس راځي.
بخاريؒ او مسلمؒ د ابو هريره ﷛ نه روايت كړے چه رسول الله ﷺ وفرمايل:
((كله چه په تاسو كښ څوك بسترے ته راشي نو هغه دے د لنګ په يو طرف باندے اوڅنډي، او بسم الله دے ووائي ځكه چه دۀ ته پته نشته چه ددۀ نه پس څۀ شے په دے باندے راغلے. بيا دے اُووائي: بِاسْمِكَ رَبِّيْ وَضَعْتُ جَنْبِيْ، وَبِكَ اَرْفَعُهٗ اِنْ اَمْسَكْتَ نَفْسِيْ فَارْحَمْهَا وَاِنْ اَرْسَلْتَهَا فَاحْفَظْهَا بِمَا تَحْفَظُ بِهٖ عِبَادَكَ الصَّالِحِيْنَ) اے زما ربه! زۀ خپل اړخ ستا په نوم سره ګدم، او ستا په مدد به ئے اوچتوم، كه چرے تا زما روح قبض كړو نو په دے باندے رحم اوكړه او كه هغه دے دوباره را پريښودلو نو ددے داسے حفاظت اوكړه څنګه

چه ته د خپلو نیکو بندګانو حفاظت کوې))۔ (بخاري: ٦٣٢٠) مسلم: ٧٠٦٧)

**اَلْاَنْفُسُ**: جمع د نفس ده روح ته وئیلے شي۔

**حِيْنَ مَوْتِهَا**: روح خو نۀ مری نو ددے معنیٰ ده (حِيْنَ مُفَارَقَتِهَا اَبْدَانَهَا) په وخت د جدائي د روحونو کښې د بدنونو نه۔ روح چه د بدن نه جدا شي نو دا مړ شو۔ ځکه چه روح کښې چه زور دے نو دا پدے وجه چه په بدن کښې دننه راګیر دے او کله چه بدن نه بهر وځي نو بیا ئے هغه زور نۀ وي۔ او بدن هله زور کوي چه روح پکښې وي۔

ددے مثال د ګاړي تاثر دے چه دے کښې هواء هله فائده ورکوي چه ربړ ترے چاپیر وي او ربړ چه لرے کړے نو هواء یواځے کار نۀ ورکوي او چه ربړ وي او هواء پکښې نۀ وي هم کار نۀ کوي۔

**وَالَّتِيْ لَمْ تَمُتْ فِيْ مَنَامِهَا**: یعني هغه روحونه اخلي چه نۀ مړه کیږي هغه په خوب کښې اخلي۔ (والتی) دا په الانفس باندے عطف دے (اَيْ وَيَتَوَفَّى الَّتِيْ) او پوره اخلي په خوب کښې هغه روحونه چه نۀ مړۀ کیږي۔

**فَيُمْسِكُ**: یعني ځان سره ئے وساتي، یا به په جنت کښې وي یا په جهنم کښې یعني بیرته دنیا ته نۀ راځي۔ دا دلیل دے چه کوم روحونه د بدنونو نه وځي نو هغه بیرته دنیا ته نۀ راواپس کیږي، نو د مشرکانو دا خبره غلطه ده چه د فلاني بابا روح په بلئ ناست دے او د جُمعے په شپه دنیا ته راځي او وائي چه زما په اروا باندے خیرات وکړئ۔

**فائده**: پدے کښې د علماؤ اختلاف دے چه په بدن کښې دوه روحونه دي او که یو؟ اول قول دا دے چه روح یو دے، خو صفتونه ئے دوه دي، یو صفت د تمییز دے او بل د حیاة۔ یعني روح کښې دا کمال دے چه د څیزونو تمییز راولي، او په بدن کښې ژوند هم پیدا کوي۔ نو کله چه مري نو الله ترے د حیات صفت واخلي نو تمییز ورسره خپله ختم شي او (وَالَّتِيْ لَمْ تَمُتْ) او کله چه خوب کښې وي، نو بیا ترے صفت د تمییز واخلي او صفت د حیات پکښې باقي پاتے وي۔ ددے وجه نه کله چه بدن رابیداریږي نو تمییز ورته راواپس شي، او ژوند ئے د مخکښې نه وي۔

(۲) دویم قول دا دے چه بدن کښې دوه روحونه دي، یو روح الحیاة دے او بل روح التمییز دے۔ روح د حیات په وخت د مرګ کښې اخستے کیږي، او روح د تمییز په خوب کښې اخستلے کیږي۔ نو په خوب کښې یو روح اخستلے کیږي، او یو باقي وي او د مرګ په وخت کښې چه روح د حیات واخستے شي نو روح د تمییز ورسره خپله وځي، هغه تابع

دے د روحِ الحیاة۔ دا ظاهر د آیت دے۔

وَيُرْسِلُ الْاُخْرٰى : د الله تعالىٰ حکمة ته وګوره چه د انسان روح په خوب کښې لرے دنیا ته تلے وی، کله آسمانونو ته ختلے وی، جنت ته لاړ شی، خو چه کله څوك خوب والا ته آواز وکړی چه پاځیږه نو سمدست دا روح ورته په یو سیکنډ کښې راورسیږی، د یو کرنټ په شان وی۔ نو ددے نه معلومه شوه چه اے انسانه! ستا مرګ او ژوند او خوب او بیداریدل د الله تعالىٰ په لاس کښې دی نو د هغهٔ بندګی وکړه۔

اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ : پدے کښې د فکر کونکو دپاره ډیرے نخے دی چه بعض مخکښې بیان شوے، او دا نښه ده د بعث بعد الموت دپاره هم لکه څنګه چه ماسخوتن کښې اُوده شے او سهار راپاڅیږے، نو دغه شان به یوه ورځ مړ شے، او د جُمعے په سهار کښې به دے د قیامت په ورځ راپورته کړی۔

لکه رسول الله ﷺ همدے ته اشاره کړیده په (اَللّٰهُمَّ بِاسْمِكَ اَمُوْتُ وَاَحْيَا) او په (اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِىْ اَحْيَانَا بَعْدَ مَا اَمَاتَنَا وَاِلَيْهِ النُّشُوْرُ) سره۔

| |
|---|
| اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ شُفَعَآءَ قُلْ اَوَلَوْ كَانُوْا |
| آیا نیولی دی دوی سویٔ د الله تعالىٰ نه سفارشیان، اُووایه! آیا اګرکه دی دوی |
| لَا يَمْلِكُوْنَ شَيْـًٔا وَّلَا يَعْقِلُوْنَ ﴿۴۳﴾ قُلْ لِّلّٰهِ الشَّفَاعَةُ |
| چه اختیار نهٔ لری د هیڅ شی او نهٔ پوهیږی۔ ووایه! د الله په اختیار کښې دے سفارش |
| جَمِيْعًا لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۴۴﴾ |
| ټول، خاص هغهٔ لره بادشاهی د آسمانونو او د زمکے ده، بیا به خاص هغهٔ ته ورګرځولے |
| وَاِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَحْدَهُ اشْمَاَزَّتْ |
| شئ تاسو۔ او کله چه یاد کړے شی الله تعالىٰ په یو اځوالی سره (نو) تنګ شی (نفرت |
| قُلُوْبُ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ وَاِذَا ذُكِرَ |
| وکړی) زړونه د هغه کسانو چه ایمان نهٔ لری په آخرت، او کله چه یاد کړے شی |

الَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِهٖٓ اِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُوْنَ ﴿٤٥﴾

هغه کسان چه سوئ د الله تعالیٰ نه دی، دغه وخت دوی خوشحالی کوی۔

**تفسير**: دا زجر دے په عقيده د شفاعتِ شرکيه باندے يعنی دوی په مخکنو دليلونو کښ فکر نهٔ کوی او د الله تعالیٰ د توحيد نهٔ اوری او ځان دپاره دا بهانے ګوری وائی چه مونږ ددے معبودانو عبادت ددے وجه نه نهٔ کوو چه ګنے دوی آلِهه دی بلکه صرف سفارشيان ئے ګنړو۔

مِنْ دُوْنِ اللهِ: يعنی د الله تعالیٰ اجازه پکښ نشته، او د ځان نه ئے مخلوق سفارشيان ګنړلی دی چه دوی به په زوره په الله تعالیٰ باندے زمونږ کارونه کوی۔

اَوَلَوْ كَانُوْا لَا يَمْلِكُوْنَ: دا په هغوی باندے رد دے يعنی د دوی نهٔ اختيار شته او نهٔ پوهيږی ځکه چه يا خو د کانړو او خاورو نه جوړ بتان دی، يا مړی دی، نو داسے خلك ځان دپاره سفارشيان نيول خو لويه بے وقوفی ده۔

قُلْ لِّلّٰهِ الشَّفَاعَةُ جَمِيْعًا: دا بل رد دے په هغوی باندے چه د شفاعت ټول اختيار خو د الله تعالیٰ سره دے، د هغه د اِذن نه بغير هيڅوك شفاعت نشی کولے، چونکه د شفاعت ډير قسمونه دی پدے وجه ئے (جَمِيْعًا) لفظ ووئيلو۔

لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ: يعنی د شفاعت د ټولو قِسمونو مالك خو الله دے چه هغه د آسمانونو او زمکے مالك دے، په هغهٔ باندے د هيچا زور نهٔ چليږی، او نهٔ هغه د چا نه شرميږی او نهٔ د چا نه مجبوره دے۔ او هم هغهٔ طرفته د هر يو شئ ورګرځيدل دی۔ د هغهٔ د اجازت نه بغير هيڅوك شفاعت نشی کولے، دے وجے نه د شفاعت اجازت ددهٔ نه تالاش کړئ۔

وَاِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَحْدَهُ: پدے کښ زجر دے مشرکانو ته د هغوی په يو قبيح خصلت باندے۔ د شرك يوه بدترينه نتيجه دا هم ده چه د مشرکانو مخے ته چه کله صرف د الله تعالیٰ نوم اخستے کيږی، او وئيلے کيږی چه د هغهٔ نه سوئ بل هيڅوك د عبادت لائق نشته، نو د دوئ زړونه تنګ شی او نفرت وکړی چه ددے اثر د دوئ په مخونو کښ ښکاره کيږی، او کله چه د دوئ د دروغو معبودانو نوم اخستے کيږی نو د خوشحالئ له مخه د دوئ تندی فراخيږی۔ د دوئ بد نصيبی اوګوره چه په دواړو حالتونو کښ دوئ آخر سرته رسيږی۔ کله چه صرف د الله نوم راشی نو د ډير غم نه د دوئ د مخونو رنګ

زیږ شي، او کله چه د دروغو معبودانو نوم اخستے کیږی نو په جامو کښې نهٔ ځانیږی، او د خوشحالئ آثار د دوئ په مخونو کښې راښکاره کیږی۔

ذُكِرَ اللهُ: د الله تعالیٰ د ذکر نه مراد دا چه د الله توحید ذکر شي په قرآن کښې یائے یو داعي بیان کړی۔

اشْمَأَزَّتْ: اَیْ نَفَرَتْ، وَانْقَبَضَتْ وَاسْتَكْبَرَتْ ۔ نفرت وکړی، راغوند شی، او تکبر وکړی۔

لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ: په آخرت باندے ایمان انسان هر خیر ته راکاږی، او چه په آخرت ایمان نهٔ لری، نو هغه به د الله د توحید نه منکر وی۔

﴿فَالَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْآخِرَةِ قُلُوْبُهُمْ مُنْكِرَةٌ وَهُمْ مُسْتَكْبِرُوْنَ﴾ ۔ نو ددے نه دا قانون راووتو چه هر هغه څوك چه د آخرت منکر وی، په هر باطل باندے چه رد کیږی هغه به پرے خفه وی او چه مؤمن بالآخرة وی نو هغه په رد د منکر باندے خوشحالیږی۔

وَإِذَا ذُكِرَ الَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِهٖ: یعنی کله چه د الله نه ماسوئ د نورو معبودانو تذکره کیږی په تعظیم سره چه فلانے بابا خو ډیر مړنے دے حاجتونه پوره کولے شي او تك په تك بابا دے، نو دغه وخت دوی خوشحاله وی چه دا د باباګانو منونکے دے۔

او دے کښې دا هم داخلیږی چه بعض مرضیانو خلکو ته چه کله د اولیاؤ یا د امامانو تذکره کیږی، نو ښه خوشحاله وی او چه کله ورته د الله د توحید یا د رسول الله ﷺ د سنتو تذکره کیږی، نو هیڅ غوږ پرے نهٔ ګروی بلکه پدے باندے خفه وی چه دا نوے دین بیانوی۔

| قُلِ اللّٰهُمَّ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ عٰلِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ |
|---|
| اُووایه اے الله پیدا کونکے د آسمانونو او د زمکے، پوهه په هر پټ او په ښکاره باندے، |
| اَنْتَ تَحْكُمُ بَيْنَ عِبَادِكَ فِيْ مَا كَانُوْا فِيْهِ |
| تهٔ به فیصله کوے په مینځ د بندګانو خپلو کښې په هغه څه کښې چه دوی په هغے |
| يَخْتَلِفُوْنَ ﴿٤٦﴾ وَلَوْ اَنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مَا |
| کښې اختلاف کولو۔ او کچرته شي دپاره د هغه کسانو چه ظلم ئے کړیدے هغه څه |

| فِی الْاَرْضِ جَمِیْعًا وَمِثْلَهٗ مَعَهٗ لَافْتَدَوْا بِهٖ مِنْ سُوْٓءِ |
|---|
| چه په زمکه کښې ټول او پشان ددې، ددې سره شي، خامخا دوی به قربانوی هغه د بد |
| الْعَذَابِ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ وَبَدَا لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مَا |
| عذاب نه په ورځ د قیامت او ښکاره به شي دوی ته د طرف د الله نه هغه څه |
| لَمْ یَكُوْنُوْا یَحْتَسِبُوْنَ ﴿۴۷﴾ وَبَدَا لَهُمْ سَیِّاٰتُ مَا كَسَبُوْا |
| چه دوی ئې ګمان نۀ کولو۔ او ښکاره به شي دوی ته بد هغه عملونه چه دوی کړی وو |
| وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ یَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۴۸﴾ |
| او راګیر به کړی دوی لره هغه څه چه دوی وو چه په هغې پورې ئې توقې کولې۔ |

**تفسیر**: نبی کریم ﷺ له تعلیم ورکړے کیږی چه کله د دوئ او د مشرکانو ترمینځ اختلاف سخت شي او د دۀ زړۀ تنګ شي، نو خپل رب طرفته دې تیزئ سره ورمنډه کړي، دعاء دې وکړي، او خشوع او خضوع سره دې اووائي چه اے د آسمانونو او زمکے پیدا کونکیه، او د غائب او حاضر پیژندونکیه! صرف تۀ به د خپلو مومنانو او کافرانو بندګانو ترمینځ په هغه خبرو کښې فیصله کوے چه په هغې کښې دوئ اختلاف کولو، تۀ حق طرفته زما رهنمائي اوکړه۔

دا په ظاهره کښې تعلیم د دعاء دے او په مینځ کښې پکښې دهمکی ده مشرکانو ته۔ د قرآن کریم طریقه دا ده چه کله دعوت په طریقه د دعاء سره کوي۔ او مقصد پدے دعاء کښې تسلی ده رسول الله ﷺ ته او منکرینو ته وعید دے۔ (قاسمیؒ)

مطلب دا شو چه کله کافر دا خبره واوري چه آسمان او زمکه الله تعالیٰ پیدا کړیدي او هغه به د قیامت په ورځ فیصله کوي، نو هر سړے به د خپل ځان غم وکړي او خپل عمل ته به متوجه شي۔

یَخْتَلِفُوْنَ: په حدیث کښې ورسره دا جمله زیاته کړے شویده۔ (اِهْدِنِیْ لِمَا اخْتُلِفَ فِیْهِ مِنَ الْحَقِّ بِاِذْنِكَ اِنَّكَ تَهْدِیْ مَنْ تَشَاءُ اِلٰی صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ) ۔(ما ته هدایت وکړه هغه حق ته چه خلقو په کښې اختلاف کړیدے په خپل مدد سره یقیناً تۀ چا ته چه وغواړے نیغې لارے ته هدایت کوے) او رسول الله ﷺ به دا دعاء په تهجدو کښې کوله۔

وَلَوۡ اَنَّ لِلَّذِيۡنَ : په دے آیت کښې د آخرت د عذاب سختي او خطرناکي بیان شوے ده چه د شرك په کولو سره په خپل ځان باندے ظلم کونکي خلق چه کله د قیامت په ورځ عذاب په خپلو سترګو ووینی، نو د هغے د سختئ اندازه به وکړی او دا آرزو به وکړی چه دوئ سره دُکه زمکه دولت وے او دومره دولت نور وے، او دا ټول ئے ورکړے وے، او د الله ددے عذاب نه نجات ملاؤ شوے وے نو دوئ به په دے کار کولو کښې د ذرے هومره تاخیر نهٔ کولے، ځکه چه دا به داسے خطرناك او دردناك عذاب وی چه د دوئ په خیال او ګمان کښې هم نهٔ وو، او په دنیا کښې ئے چه کوم ګناهونه کول د هغے خراب انجام به د هغوئ د سترګو مخے ته شی، او کوم عذاب پورے به ئے چه خندا کوله هغه به دوئ د هر طرف نه راګیر کړی۔

لَافۡتَدَوۡا بِهٖ: یعني دوی به ئے په فدیه کښې ورکوی لیکن سورة المائده (۳۶) آیت کښې تیر شوی وو ﴿مَا تُقُبِّلَ مِنۡهُمۡ﴾ د دوی نه به هیڅ کله نهٔ قبلیږی۔

مَا لَمۡ يَكُوۡنُوۡا يَحۡتَسِبُوۡنَ : ۱- یعنی بعث۔ او قیامت به ورته ناڅاپی راشی چه دوی ددے مخکښې نه هیڅ ګمان نهٔ لرلو۔ د چا چه په یو دشمن ګمان نهٔ وی او هغه پرے ناڅاپی راواوړی نو دا به ډیر ومره پریشانه کیږی۔

۲- جَزَاءَ اَعۡمَالِهِمُ الَّتِىۡ ظَنُّوۡهَا حَسَنَةً۔ (مجاهدؒ والسدیؒ)

یعنی دوی ته به رابښکاره شی سزا د هغه عملونو چه دوی به ګمان کولو چه دا نیك اعمال دی۔ ځکه چه دا عملونه به ئے نیك نهٔ وی۔

ددے وجه نه سفیان ثوریؒ به ددے آیت نه یره کوله او دا به ئے فرمایل: (وَيۡلٌ لِّاَهۡلِ الرِّيَاءِ) ریاکار هلاك شو ځکه چه د دوی ګمان دا دے چه مونږ مونځ وکړو، قرآن مو ولوستلو، او نیك عمل مو وکړو، الله به اجر راکړی، زهٔ بښه سرے یم، نو الله به ورته داسے سزا رابښکاره کړی چه ددهٔ به پرے ګمان هم نهٔ وی، او دغه عملونه به ورله برباد کړی۔

محمد بن مُنۡكَدِرۡؒ باندے به هم دے آیت ډیر اثر کولو، یوځل ئے د شپے دا آیت ولوستلو نو په تیزئ سره ئے ژړا شروع کړه تردے چه کور والا ئے راپاڅیدل، هغوی ورله تسلی ورکوی لیکن دے خبرے نهٔ کوی او همداسے ژاړی، نو چا ووئیل چه ابو حازمؒ ددهٔ ملګرے ورله راوغواړئ چه تسلی ورکړی، هغه ئے ورله راوغوښتو، هغه ترے تپوس وکړو چه ولے ژاړے؟ نو دهٔ ورته دا آیت ولوستلو ﴿وَبَدَا لَهُمۡ مِّنَ اللّٰهِ مَا لَمۡ يَكُوۡنُوۡا يَحۡتَسِبُوۡنَ﴾ نو هغه هم ورسره په ژړا شو۔ دا د سلفو طریقه وه چه د قرآن نه به ئے داسے اثر اخستو۔

او محمد بن المنکدرؒ د مرگ په وخت کښې بیا ډیر سخت وژړل چا ترې د سبب تپوس وکړو ؟ نو هغه وویل : زهٔ د قرآن کریم ددې آیت نه یریږم۔ ﴿ وَبَدَا لَهُمْ مِنَ اللّٰهِ مَا لَمْ يَكُوْنُوْا يَحْتَسِبُوْنَ﴾ زهٔ یریږم چه ما ته به هغه څه رابښکاره شي چه زما به گمان هم نهٔ وي.

(فتح البیان)

نو دا آیت مشرکانو او مبتدعینو او تولو ظالمانو ته شاملیږي چه گناه کبیره والا وي۔

وَبَدَا لَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا كَسَبُوْا: ١- یعنی بد عملونه به ورته رابښکاره شي۔ (ددې نه معلومیږي چه د وېډیو په شکل به ورته رابښکاره کیږي)۔ او اضافت د سيئات، مَاكَسَبُوْا ته اضافتِ بیاني دې۔ یعني دغه سیئات بعینه هغه عملونه دي چه دوی کړیدي۔

٢- حاصل تفسیرئې دا دې : چه سیئات عقوبات (عذابونو) ته وائي۔ یعني دوی ته به عذابونه د هغه عملونو رابښکاره شي چه دوی کړیدي۔

| فَإِذَا مَسَّ الْإِنْسَانَ ضُرٌّ دَعَانَا ثُمَّ إِذَا خَوَّلْنَاهُ |
|---|
| نو کله چه ورسیږي انسان ته تکلیف دعاگانې غواړي مونږ نه بیا کله چه ورکړو مونږ هغه ته |
| نِعْمَةً مِّنَّا قَالَ إِنَّمَا أُوتِيتُهُ عَلٰى عِلْمٍ بَلْ هِيَ |
| یو نعمت د خپل طرف نه نو وائي، یقیناً راکړې شویدې ما ته دا په علم (زما) بلکه دا |
| فِتْنَةٌ وَّلٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٤٩﴾ قَدْ قَالَهَا |
| (نعمت) امتحان دې، لیکن ډیر د دوی نه نهٔ پوهیږي۔ یقیناً وئیلې وه دا خبره |
| الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَمَا أَغْنٰى عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا |
| هغه کسانو چه مخکښې د دوی نه وو نو دفع نکړو د دوی نه هغه کارونو چه دوی |
| يَكْسِبُوْنَ ﴿٥٠﴾ فَأَصَابَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا كَسَبُوْا |
| کول۔ نو وبه رسیږي دوی ته بد هغه عملونه چه دوی کړي وو (بدې سزاگانې د هغه |
| وَالَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْ هٰٓؤُلَاءِ |
| عملونو چه دوی کړي وو) او هغه کسان چه ظلم ئې کړیدې د دوی نه |

| سَيُصِيبُهُمْ سَيِّئَاتُ مَا كَسَبُوا وَمَا هُم بِمُعْجِزِينَ ﴿٥١﴾ |
|---|
| زردے چه وبه رسیږی دوی ته بد عملونه هغه چه دوی کړی وو، او نهٔ دی دوی عاجز |
| أَوَلَمْ يَعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ |
| کونکی الله لره. آیا نهٔ پو هیږی دوی چه بیشکه الله فراخه کوی رزق چا لره |
| يَشَاءُ وَيَقْدِرُ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٥٢﴾ |
| چه وغواړی او کموی ئے، یقیناً پدے کښې خامخا نخے دی دپاره د هغه قوم چه ایمان لری. |

**تفسیر** : دا اول د کافر او مشرك انسان حال بیانیږی، او هغه ته زجر ورکړے کیږی، بیا پکښې نور هم داخلیږی. د مشرك انسان خراب صفت دادے چه کله دهٔ ته څهٔ بیماری یا تکلیف اُورسیږی، نو د خپلو دروغژنو معبودانو نه مخ واړوی، او صرف یو الله طرفته مائله شی، او بنهٔ په زاریٔ سره ددے مصیبت نه د خلاصیدو دعاء کوی، اوکله چه الله تعالیٰ د آزمائش په توګه ددهٔ دعاء واوری، دهٔ له ددے مصیبت نه خلاصے ورکړی، او خپل کوم نعمت ورته ورکړی، نو فوراً سرکشی شروع کړی، او خلقو ته د خپلے دروغژنے لویئ اظهار کوی، وائی چه الله تعالیٰ ته معلومه وه چه زهٔ ددے نعمت حقداریم ځکه خو ماته راکړے شو.

دا هم ډیر خود غرضه انسان دے چه په وخت د مصیبت کښې بنده دے او په وخت د راحت کښې متکبر دے.نو دداسے انسان د حال نه الله تعالیٰ مونږ نور بندګان یروی او دهٔ دپاره سزا بیانوی.

فَإِذَا : فاء ئے راوړه ځکه چه دا علت د مخکښی تخویف دے، او دا تفصیل د ظلم د (ظَلَمُوا). چه د الله تعالیٰ د نعمت نسبت هغه ته نهٔ کوی، بلکه دا خپل حق او خپل کمال ئے ګنړی.

عَلَىٰ عِلْمٍ: ١- یعنی زما په پوهه او هنر او چالاکئ باندے ما ته راکړے شوے.

٢- عَلَىٰ خَيْرٍ عَلِمَهُ اللَّهُ عِندِي. /عَلَىٰ عِلْمِ اللَّهِ بِأَنِّي أَهْلُهُ. یعنی ما کښې یو خیر دے چه الله ته معلوم دے چه د هغے په وجه زهٔ ددے نعمت حقداریم. / یا الله ته معلومه وه چه زهٔ ددے لائق یم. لکه دا خبره قارون هم کړے وه (٧٨) آیت کښې (عَلَىٰ عِلْمٍ عِندِي) هلته اوله

معنىٰ غوره ده.

بَلۡ هِيَ فِتۡنَةٌ: اُوس پرېے الله تعالىٰ رد كوى چه نه ! دا خو د الله د طرفه هغۀ دپاره آزمائش وو، چه ددے نه پس هم دے د طاعت او بندگئ لاره اختياروى، يا احسان هير كړى او بيا د خپلو دروغژنو معبودانو مخے ته سر ښكته كوى، ليكن زياتره مشركان ددے حقيقت نه ناخبره اوسيږى چه دا امتحان دے.

قَدۡ قَالَهَا: (هَا) ضمير (الۡكَلِمَةَ السَّيِّئَةَ) بدے كلمے او خبرے ته راجع دے. او دا دليل د امتحان بيانوى، يعنى ددے خبرے دليل چه د كفر او شرك سره سره د الله تعالىٰ نعمت ددۀ لپاره آزمائش وو، دا دے چه قارون او فرعونيانو او نورو نافرمانو د دوئ نه مخكښې داسے خبره كړے وه، نو الله فورًا را اونيول او د دوئ ټول دولت درے ورے پاتے شو، يعنى دوئ سره چه څۀ اوشو هغه د دوئ د بدو اعمالو نتيجه وه، دغه شان د قريشو كافرانو ته به هم د دوئ د بدو اعمالو بدله ملاويږى، او دوئ به الله تعالىٰ عاجز نشى جوړولے.

فرعونيانو به وئيل ﴿لَنَا هٰذِهٖ﴾ مونږ ددے ښه حالتونو حقدار يو. (اعراف: ۱۳۱)

مِنۡ هٰۤؤُلَآءِ: يعنى ددے امت ظالمانو ته به هم د پخوانو ظالمانو په شان بد عملونه ورسيږى، او پخوانى د الله تعالىٰ نه خلاص نشو، نو دوى به ترے څه خلاص شى. الله په دواړو قادر دے.

سَيُصِيۡبُهُمۡ سَيِّاٰتُ مَا كَسَبُوۡا: دا د مكے والو قحط ته اشاره ده چه د رسول الله ﷺ د مخالفت په وجه پرے راغلے وو. لكه ورپسے روستو د رزق فراخى او تنگسيا ذكر كوى. او دارنگه د قيامت د ورځے حساب هم ترے مراد دے.

اَوَلَمۡ يَعۡلَمُوۡا: پدے آيت كښې رد دے په هغه مالداره باندے چه خپل مال په تكبر كښې راوستے دے، او د الله تعالىٰ نه ئے غافله كړے، او د حق نه انكار كوى. يعنى د رزق فراخى او تنگسيا د الله تعالىٰ واك دے، دا د چا د نيكئ او د بدئ دليل نۀ دے. بلكه كله په بد عملو خلكو الله د دنيا فراخى راولى، او نيك عمله باندے سختى راولى، پدے كښې ئے امتحان غرض وى.

او دا آيت د (بَلۡ هِيَ فِتۡنَةٌ) تشريح ده. يعنى نعمت او د رزق فراخى او تنگى امتحان دے.

لِقَوۡمٍ يُّؤۡمِنُوۡنَ: د الله ذات حق دے، په ټول عالَم كښې واك او تصرف د الله چليږى ځكه چه ډير هوښيار خلك د رزق نه محروم وى، او ډيرے وقوفه د رزق نه مالا مال وى. پكار خو دا وه چه بيوقوف د لوږے مړ وے، او هر څه عقلمند راجمع كړى وے، ددے نه

معلومیږي چه یو ذات موجود دے چه په عالَم کښې تصرفات کوي د خپل حکمت او کامل علم مطابق، نو کوم کسان چه د ایمان راوړو اراده لري، هغوی دپاره پدے کښې ډیرے نخے دي۔

نو په مشرکانو رد شو چه د رزق فراخي د حق پرستیٔ نښنه نهٔ ده، او د رزق تنګسیا د باطل پرستیٔ نښنه نهٔ ده۔

| قُلْ يَا عِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰى اَنْفُسِهِمْ لَا |
|---|
| اُووایه ! اے بندګانو زما هغه کسان چه زیاتے ئے کړیدے په ځانونو خپلو باندے مهٔ |
| تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ جَمِيْعًا اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ |
| نا امیده کیږئ د رحمت د الله نه، یقیناً الله بخي ګناهونه ټول، یقیناً هغه بخونکے |
| الرَّحِيْمُ ﴿٥٣﴾ وَاَنِيْبُوْا اِلٰى رَبِّكُمْ وَاَسْلِمُوْا لَهٗ مِنْ قَبْلِ اَنْ |
| رحم کونکے دے۔ او رجوع اُوکړئ رب خپل ته او تابع شئ هغه ته مخکښې ددے نه |
| يَّاْتِيَكُمُ الْعَذَابُ ثُمَّ لَا تُنْصَرُوْنَ ﴿٥٤﴾ |
| چه رابه شي تاسو ته عذاب بیا به تاسو سره مدد نشي کیدے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې الله تعالیٰ (وَالَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْ هٰٓؤُلَاءِ) کښې ذکر شوی ظالمانو ته دعوت ورکوي۔ سوال پیدا شو چه مونږ ظلم او نور بد بد عملونه کړیدي، او د الله عذاب په مونږ راروان دے، نو ددے نه د خلاصیدو څه لاره شته؟

نو الله تعالیٰ پدے آیت کښې د خلاصیدو لاره ښائي چه اے بندګانو! راشئ الله ته توبه وباسئ، الله به ټول ګناهونه معاف کړي، او د عذابونو نه به خلاص شئ۔ او که توبه مو ونهٔ ویستله نو بیا به درے ارمانونه کوئ لیکن وخت به تیر وي، نو راشئ اُوس لاره کولاوه ده، په جلتیٔ توبه وباسئ۔

## شان نزول

دا آیت نازل شوے وو د هغه مشرکانو په باره کښې (لکه وحشي رضی الله عنه او د هغه د ملګرو په باره کښې) چه هغوی وئیلي وو چه ستا دا خبرے ښے دي خو که مونږ ته پته ولګي چه زمونږ د ګناهونو د مغفرت څه ذریعه به وي او که نهٔ؟ نو الله تعالیٰ د سورة الفرقان (٦٨)

آیت ﴿ وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللّٰهِ إِلٰهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللّٰهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ ﴾ (هغه کسان چه نهٔ راغواړی د الله سره بل معبود او نهٔ وژنی هغه نفس چه الله تعالیٰ حرام کړیدے مګر په حق سره او زنا نهٔ کوی).

نو دوی وویل چه دا خو ډیر سخت شرطونه دی که دا زمونږ نه ونهٔ شی؟ نو الله ورپسے دا آیت ﴿ قُلْ يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا ﴾ نازل کړو چه یو ځل تاسو توبه وباسئ، که بیا درنه کومه ګناه کیده هغه به درته معاف کوی. (ځکه چه انسان یو ځل توبه وباسی نو بیا بیرته بنه کیږی او کومه ګناه چه کوی په هغے پښیمانه کیږی)

واحدیؒ لیکلی دی: تمام مفسرین په دے خبره متفق دی چه دا آیت د هغه خلقو په باره کښ نازل شوے وو چه هغوئ شرك، قتل او نبی کریم ﷺ له د تکلیف ورکولو غونته ګناهونه کړی وو، او اسلام ئے راوړل وغوښتل، لیکن یریدل چه شاید د دوئ ګناهونه به معاف نهٔ کړے شی. الله تعالیٰ خپل رسول ﷺ ته حکم وکړو چه دوئ له او د الله تمامو بندګانو له د هغهٔ د فراخه رحمت او عظیم مغفرت زیرے ورکړی، چه دوئ له د الله د رحمت نه نهٔ دی نا امیده کیدل پکار، هغه خو د خپلو بندګانو تمام ګناهونه معاف کوی، ځکه چه هغه ډیر زیات بخښونکے او بیحده مهربانه دے.

شوکانیؒ لیکی چه (هٰذِهِ أَرْجٰی آيَةٍ فِي الْقُرْآنِ) دا آیت د قرآن کریم د ټولو نه زیات د امید نه ډك آیت دے. په دے کښ الله د بندګانو نسبت خپل ځان طرفته کړے، او بیا ئے دوئ په ګناهونو کښ د حد نه د تجاوز کولو په صورت کښ د خپل رحمت نه د نا امیده کیدو نه منع کړی، او ددے په وئیلو سره ئے نور زیاتی کرم فرمائیلے چه هغه خو تمام ګناهونه معاف کوی.

حافظ ابن کثیرؒ لیکلی چه دا آیتِ کریمه کافر او مومن تمام ګنهګارانو ته د توبے دعوت ورکوی، او خبر ورکوی چه الله تعالیٰ د توبه کونکو تمام ګناهونه معاف کوی اګرکه هغه د سمندر د زګ برابر ولے نهٔ وی.

عبد الله بن عباس رضی الله عنهما فرمائی: الله تعالیٰ ټولو کافرانو ته د توبے دعوت ورکړیدے، نو کوم بندګان چه ددے نه روستو هم د توبے نه نا امیده کیږی نو دے د الله د کتاب نه منکر دے، لیکن بنده په توبه نهٔ قادریږی تردے چه الله تعالیٰ پرے د توبے مهربانی وکړی. (ابن جریرؒ، ابن المنذرؒ فتح البیان).

يَا عِبَادِيَ: الله تعالیٰ لوی مجرمانو ته چه همیشه ئے د هغهٔ خلاف کړیدے هغوی ته

ځومره د شفقت او استعطاف (مهربانئ) خطاب کوی چه اے زما بندګانو!.
اَسْرَفُوْا عَلٰی اَنْفُسِهِمْ : بِالشِّرْكِ وَالْكُفْرِ وَالْمَعَاصِیْ ۔ په ځان ئے زیاتے کړے په شرك او کفر او ګناهونو سره۔ دا په ځان زیاتے کول دی۔
لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ: د الله نه نا امیدی په ډیرو طریقو سره راځی (۱) کله بنده وائی چه زهٔ مجرم یم ما ته د توبے توفیق نهٔ ملاویږی۔ دا هم د شیطان وسوسه وی۔ ددے نه به نهٔ نا امیده کیږے بلکه هر چاته د توبے توفیق ملاویږی، الله تولو ګناهګارو ته د توبے دعوت ورکوی۔
(۲) کله وائی چه تا خو دومره لوی او ډیر ګناهونه کړیدی لکه قتل، زنا، غلا وغیره چه الله به دِے چرته معاف کړی۔ یعنی د توبے د قبلیدو نه نا امیده وی۔
(۳) کله ئے داسے نا امیده کوی چه صحیح ده اُوس خو به توبه وباسے لیکن صبا به درنه بیا ماته شی، بیا به درته الله وائی چه مخکښ هم دِے ګناهونه کړی وو او اُوس ئے بیا هم کوے، نو ددے نه بهٔ دا ده چه په همدغه حالت کښ پاتے شو۔ لکه بعض خلك وائی چه مونږ ګیره نهٔ پریدو، ځکه که مونږه ئے پریدو بیا به رانه ګناه کیږی، نو په ډیر نقصان کښ به واقع کیږو۔ دا شیطانی خبرے دی۔
سوال دا دے چه د سورت النساء په آیت (۴۸) کښ خو راغلی دی ﴿ اِنَّ اللّٰهَ لَا یَغْفِرُ اَنْ یُّشْرَكَ بِهٖ ﴾ الله شرك نهٔ معاف کوی، او دلته وائی چه ﴿ یَغْفِرُ الذُّنُوْبَ جَمِیْعًا ﴾ تول ګناهونه معاف کوی؟۔ دا سوال دومره زور نهٔ دے، خو مفسرینو لیکلی دے، بیا ئے جواب ورکړیدے چه دا آیت د مؤمنانو په باره کښ دے، او هغه د غیر مؤمنانو په باره کښ۔
لیکن دا جواب صحیح نهٔ دے، بلکه دا خطاب اول کافرانو دپاره وو۔ نو صحیح خبره دا ده چه دلته الله تعالیٰ تولو بندګانو ته د توبے دعوت ورکوی نو دلته توبه مراد ده یعنی الله تول ګناهونه معاف کوی پدے شرط چه هغه ته توبه وباسی لکه روستو (وَاَنِیْبُوْا اِلٰی رَبِّکُمْ) نه معلومیږی۔ ځکه چه انابت توبے ته وائی۔
وَاَنِیْبُوْا: یعنی الله ته رجوع وکړئ په توبے سره۔ بیا الله تعالیٰ ته رجوع په کومه طریقه ده؟ نو (۱) بِالْاِعْرَاضِ عَنْ مَعَاصِیْهِ۔ د الله تعالیٰ د تولو نافرمانیانو نه مخ واړوئ۔
(۲) وَالنَّدَمِ عَلَیْهَا۔ او په تیرو ګناهونو پښیمانتیا وکړئ۔ (۳) وَالْاِنْقِطَاعِ اِلَی اللّٰهِ بِالْعِبَادَةِ۔ او الله تعالیٰ ته په عبادتونو سره متوجه شئ۔ دے ته انابت وائی یعنی ګناه پریښودل او نیکی شروع کول۔ اهل علم فرمائی : انابت وائی : (اَلْاِنْقِطَاعُ اِلَی اللّٰهِ بِالْکُلِّیَّةِ) الله تعالیٰ

ته ځان مکمل ورجدا کول۔

## د تائب او مُنیب فرق

تائب الله تعالیٰ ته رجوع کوی د عذاب نه۔ او منیب هغه شخص دے چه د الله تعالیٰ نه حیاء او شرم ورځی پدے وجه هغه ته واپس کیږی۔

وَأَسْلِمُوا لَهُ:ددے نه هم معلومیږی چه دا آیت اول د کافرانو په باره کښې وو، بیا پکښې مؤمنان هم ورداخلیږی۔ اسلام معنیٰ ده د الله تعالیٰ تولو حکمونو ته غاړه کیخودل او په هغے باندے عمل کول۔ او ددے نه د توبے شرط هم معلوم شو چه اول به استغفار وغواړی، د گناهونو نه به منع شی، بیا به په نیکو اعمالو کښې مصروف شی۔

| وَاتَّبِعُوا أَحْسَنَ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكُمْ مِنْ |
|---|
| او تابعداری اُوکړئ د بنائسته هغے چه نازل کړے شویدے تاسو ته د طرف |
| رَبِّكُمْ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَكُمُ الْعَذَابُ بَغْتَةً وَأَنْتُمْ لَا |
| د رب ستاسو نه مخکښې ددے نه چه رابه شی تاسو ته عذاب ناڅاپی او تاسو به نهٔ |
| تَشْعُرُونَ ﴿٥٥﴾ أَنْ تَقُولَ نَفْسٌ يَا حَسْرَتَىٰ |
| پو هیږئ۔ (دا خبر مے درکړو) دے دپاره چه اُونهٔ وائی یو نفس هائے افسوس دے |
| عَلَىٰ مَا فَرَّطْتُ فِي جَنْبِ اللَّهِ وَإِنْ كُنْتُ لَمِنَ |
| په هغه کوتاهی باندے چه ما کړیده په اړخ د الله کښې، او یقیناً اُوم زهٔ خامخا د |
| السَّاخِرِينَ ﴿٥٦﴾ أَوْ تَقُولَ لَوْ أَنَّ اللَّهَ هَدَانِي لَكُنْتُ |
| توقو کونکو نه۔ یا اُونهٔ وائی که چرته الله تعالیٰ هدایت کړے وے ما ته خامخا وے به |
| مِنَ الْمُتَّقِينَ ﴿٥٧﴾ أَوْ تَقُولَ حِينَ تَرَى الْعَذَابَ لَوْ أَنَّ لِي |
| زهٔ د متقیانو نه۔ یا ونهٔ وائی په هغه وخت چه وُبه وینی عذاب که چرته وے ما لره |
| كَرَّةً فَأَكُونَ مِنَ الْمُحْسِنِينَ ﴿٥٨﴾ بَلَىٰ قَدْ |
| دوباره تلل (دنیا ته) نو زهٔ به وے د خائسته عمل کونکو نه۔ آؤ، بلکه یقیناً |

| جَاءَ تْكَ آيَاتِيْ فَكَذَّبْتَ بِهَا وَاسْتَكْبَرْتَ |
|---|
| راغلې وو تا ته آیتونه زما نو دروغژن ګڼرلې وو تا هغې لره او لوئی دِے کړے وه |
| وَكُنْتَ مِنَ الْكَافِرِيْنَ ﴿۵۹﴾ |
| او وے ته د کافرانو نه۔ |

**تفسیر** : واتبعوا احسن ما انزل الیکم : دا ترغیب دے قرآن ته او پدے کښې اشاره کوی چه توبه او انابت او اسلام په تابعدارئ د قرآن کښې دے۔ یعنی پدے کښې چه کوم څیزونه الله تعالیٰ حلال کړی، هغه حلال وګڼری، او کوم څیزونه ئے چه حرام کړی هغه حرام وګڼرئ۔

احسن ما انزل کښې اضافت بیانی دے، نو ټول قرآن احسن دے لکه دا خبره په (۲۳) آیت کښې تیره شوه۔ یا د اَحْسَنَ نه مراد مُحْکَمات دی، یعنی د مُحکماتو د قرآن تابعداری وکړئ، او د متشابهاتو علم ئے الله تعالیٰ ته وسپارئ۔ یا اَحْسَن د اِتَّبِعُوْا مفعول مطلق دے په اعتبار د مصدر محذوف سره۔ اَیْ اِتَّبِعُوْا اِتِّبَاعًا اَحْسَنَ او مَا اُنْزِلَ ئے مفعول به دے۔ یعنی ښائسته تابعداری وکړئ د هغه کتاب چه تاسو ته نازل کړے شویدے۔ او ښائسته تابعداری دا ده چه په هغې باندے همیشوالے وکړے شی۔

مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّأْتِيَكُمُ الْعَذَابُ: دا ئے مخکښې هم وویل او دلته ئے هم ووېل، پدے کښې اشاره ده چه په توبه کولو او په اتباع د قرآن کښې جلتی کول پکار دی او تاخیر نهٔ دے پکار هسے نه چه راشی بیا به هیڅ نشی کولے۔

**حکمة** : څوك چه د شرك نه توبه نهٔ وباسی نو عقیده لری چه زما سره به معبودان مدد کوی، نو په اول آیت کښې ئے (لَا تُنْصَرُوْنَ) ووېل، او اتباع د قرآن چه نکوی هغوی وائی چه روستو به نیك عمل وکړم نو د هغه دپاره ئے وفرمایل چه د عذاب وخت معلوم نهٔ دے، ناګهانه به راشی نو ولے عمل روستو کوے۔ (احسن الکلام)

اَنْ تَقُوْلَ نَفْسٌ : اَیْ اَمَرْنَاکُمْ بِهٰذِهِ الْاَوَامِرِ لِئَلَّا تَقُوْلَ : یعنی مونږ تاسو ته دا مخکنی حکمونه ددے دپاره وکړئ چه یو نفس دا ونهٔ وائی الخ۔ اُوس د هغه مجرمانو چه هغوی په دنیا کښې توبه نهٔ وی وېستلی درے عذرونه او بهانې او ارمانونه ذکر کوی چه دوی به بیا درے ارمانونه کوی، لیکن وخت به تیروی۔

اول عذر : يَاحَسْرَتٰى عَلٰى مَا فَرَّطْتُ فِيْ جَنْبِ اللهِ : يعنى هائے افسوس ! ما خو د الله تعالىٰ په باره کښې او د هغهٔ د حقوقو او طاعت په باره کښې انتهائى کوتا هى کړے وه داسے عظيم رب ته مے رجوع نهٔ وه کړے۔
حَسْرَتٰى : په اصل کښې حَسْرَتِىْ دے، ليکن په استغاثه باندے د دلالت کولو دپاره د ياء په ځاى الف راوړے شو۔ او افسوس ته آواز کوى د ډير خفګان د وجه نه۔
فِيْ جَنْبِ اللهِ: جَنْب د متشابهاتو نه نهٔ دے چه ګنے الله تعالىٰ دپاره اړخ وګنړى، د الله په صفاتو کښې جنب نشته۔ بلکه دا په محاوره کښې استعماليږى چه (ما ستا په اړخ کښې کوتاهى کړيده) نو دلته د جنب نه مراد [فِيْ طَاعَةِ اللهِ وَحَقِّهٖ وَقُرْبِهٖ وَذِكْرِهٖ] يعنى د الله په طاعت، د هغهٔ په حقوقو کښې او د هغهٔ قرب (نزديکت) او د هغه په ذکر کښې۔
وَاِنْ كُنْتُ لَمِنَ السَّاخِرِيْنَ: اِنْ مُخَفَّف مِنَ الْمُثَقَّل دے۔ يعنى يقيناً زهٔ خامخا د تو قو کونکو نه وم۔ ما خو به په دنيا کښې د الله تعالىٰ د دين او قيامت ورځے پورے خندا کوله۔
او پدے کښې اشاره ده چه ما يواځے د الله نافرمانى نهٔ وه کړے بلکه د ايمان والو او د دين پورے مے مسخرے هم کړى۔
انسان دا افسوس ولے کوى ؟ وجه دا ده چه اُوسه پورے ئے الله تعالىٰ ليدلے نهٔ وو او هغه ئے نهٔ وو پيژندلے، اُوس ورته حقيقت ښکاره شو، د الله تعالىٰ شان او د هغهٔ عظمت او د هغهٔ عذابونه ئے وليدل، نو خپله به ارمان کوى۔ لکه يو تن يو عالِم وينى، سترى مشى هم ورته ونکړى، هغه ئے نهٔ وى پيژندلے، خو کله چه پوهه شى چه دا دومره لوى عالِم دے بيا ترے معافى غواړى چه ما ستا پوره ادب ونکړو۔
اَوْ تَقُوْلَ: دا دويم ارمان : آرمان دے چه الله تعالىٰ ماته د اسلام هدايت کړے وے، او يو کتاب ئے راليږلے وے، نو زهٔ به د متقينو نه وے او کفر به مے نهٔ کولے۔ نو الله فرمائى چه ما تاسو ته هدايت راليږلے ددے نه هدايت واخلئ او متقيان جوړ شئ۔
اَوْ تَقُوْلَ: دا دريم ارمان دے۔ يعنى يا کله چه عذاب په خپلو سترګو اُووينى نو وبه وائى : اے کاش ! زهٔ دنيا ته واپس کولے شوے نو زهٔ به هم د هغه مومنانو پشان جوړ شوے وے چه هغوئ د ايمان او نيک عمل ژوند اختيار کړے وو، او نن د خپل رب په حضور کښې کامياب شول۔
الْمُحْسِنِيْنَ: دلته د مُحْسِنِين نه يواځے موحدين او مؤمنان نهٔ دى مراد بلکه دا د ارمان جن انسان خبره ده، يعنى که زهٔ دنيا ته واپس شوم نو زما ژوند به داسے وى چه زما نظر

به د الله تعالیٰ نه سوئ په هیڅ شی نهٔ لګی او هر وخت به راته الله تعالیٰ یاد وی۔ الله فرمائی چه بیا به د احسان پسے ارمان کوے نو اُوس احسان وکړه۔

**فائده** : د دوی دا درے قولونه به په قیامت کښ واقع کیږی لیکن پدے باندے هیڅ اثر نهٔ مرتب کیږی، او د عذر په طور به هم نهٔ قبلیږی ځکه چه د قرآن په رالیږلو سره الله تعالیٰ دا عذرونه دفع کړیدی۔

بیا عامو مفسرینو وئیلی دی چه دا قولونه به د هر یو منکر د طرف نه وی۔ او قتادهٔ وئیلی دی چه د دوی درے قسمونه دی او د هر قسم د طرف نه به جدا جدا قول وی۔

بَلٰی قَدْ جَاءَ تْكَ اٰیَاتِیْ: اُوس الله ددے مجرمانو پدے قول (لَوْ اَنَّ اللّٰهَ هَدٰانِیْ) باندے رد کوی چه خبره داسے نهٔ ده چه تهٔ وائے چه ما ته الله تعالیٰ هدایت نهٔ دے کړے۔ (ځکه چه ددے ارمان مطلب دا دے چه الله تعالیٰ ما ته هدایت نهٔ وو کړے) بلکه تا ته زما آیتونه د قرآن راغلل، او تا ته به لوستل کیدل لیکن تا به ددے تکذیب کولو، کبر او عناد نه به دِے کار اخستهٔ، او د کفر لاره دِے اختیار کړه۔

بَلٰی : دا نفی د کلام سابق ده، اَیْ لَیْسَ الْاَمْرُ کَمَا زَعَمْتَ لَوْ اَنَّ اللّٰهَ هَدٰانِیْ ۔ یعنی خبره داسے نهٔ ده ځنګه چه تا ګمان کړے چه که الله تعالیٰ ما ته هدایت کړے وے۔

وَاسْتَکْبَرْتَ : یعنی په قرآن باندے د ایمان راوړو نه مو ځان لوی ګنړلو، او دا درته سپك بنکاره کیدو۔

دلته الله تعالیٰ د کافرانو په درے طریقو سره انکار ذکر کړیدے په ښائسته ترتیب سره۔اول په تکذیب سره دویم په استکبار سره چه دا د تکذیب په وجه پیدا کیږی۔ دریم په کفر سره چه دا د استکبار په سبب سره پیدا شویدے۔ (احسن الکلام)

| وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ تَرَى الَّذِيْنَ كَذَبُوْا عَلَى اللّٰهِ |
|---|
| او په ورځ د قیامت به وینے تهٔ هغه کسان چه دروغ ئے وئیلی دی په الله باندے، |
| وُجُوْهُهُمْ مُّسْوَدَّةٌ اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْمُتَكَبِّرِيْنَ ﴿٦٠﴾ |
| مخونه د هغوی به تك تور وی، آیا نشته په جهنم کښ ځائے د اُسیدو د متکبرانو۔ |
| وَيُنَجِّي اللّٰهُ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا |
| او بچ به کړی الله تعالیٰ هغه کسانو لره چه پریدلی دی د الله نه |

بِمَفَازَتِهِمْ لَا يَمَسُّهُمُ السُّوٓءُ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿٦١﴾

په سبب د کامیابئ د دوی، نهٔ به رسی دوی ته تکلیف او نهٔ به دوی غمژن شی۔

**تفسیر** : سوال پیدا شو چه څوك د قرآن تکذیب کوی، او پدے ایمان نهٔ راوړی، او په الله تعالیٰ دروغ تړی، وائی چه دا قرآن د الله تعالیٰ کلام نهٔ دے، یا وائی چه د الله تعالیٰ شریکان شته، د هغه ښځه او اولاد شته نو د دوی به څه حال وی؟

نو جواب کوی چه د قیامت په ورځ به د دوئ مخونه تك تور وی، او بیا به جهنم ته داخلیږی، او د متکبرانو په ډله کښ به شماریږی۔

وُجُوْهُهُمْ مُّسْوَدَّةٌ: د قیامت په ورځ د مخ توروالے ډیر ذلت او سپکوالے دے نو دا د متکبرانو د حال سره ډیر مناسب دے۔

وَيُنَجِّى اللهُ: او کوم خلق چه شرك او گناهونو نه بچ کیږی، او د طاعت او بندگئ لاره اختیاروی، دوئ لـه بـه الله تعالیٰ د جهنم نه نجات ورکړی، او جنت ته داخلولو سره به ئے مراد پوره کړی۔ دوئ ته به د محشر په میدان کښ هیڅ تکلیف نهٔ رسی، او په دنیا کښ ئے چه څهٔ پریښی وی دهغے به دوئ ته هیڅ غم نهٔ وی، جنت او د هغے نعمتونو موندلو سره به تیرے شوے تولے خبرے هیرے کړی۔

بِمَفَازَتِهِمْ: دا مصدرمیمی دے په معنیٰ د فَوْز سره۔ او باء سببیه ده۔ یعنی الله تعالیٰ به متقیانو ته نجات ورکړی په سبب د کامیابئ د دوی (لِاَنَّهُمْ اَتَوْا بِاَسْبَابِ الْفَوْزِ) څکه چه دوئ د کامیابئ اسباب اختیار کړی وو چه هغه ایمان او عمل صالح دے۔

یا مفازه صیغـه د ظرف مکان ده، یعنی الله تعالیٰ به متقیانو ته د جهنم نه نجات ورکړی په ځای د کامیابئ د دوئ چه هغه جنت دے۔ یا الله تعالیٰ به متقیانو ته د عذاب نه نجات ورکړی په سبب د داخلیدو د دوئ جنت ته۔

وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ : یعنی د اجر د کموالی خفگان بـه هم ورسره نـهٔ وی، او د دنیا د ځیزونو پسے به هم خفگان نهٔ وی۔

اَللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ وَّهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ وَّكِيْلٌ ﴿٦٢﴾ لَهٗ

الله تعالیٰ پیدا کونکے د هر شی دے، او هغه په هر شی ذمه وار دے۔ هغهٔ لره

مَقَالِيْدُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِآيَاتِ اللهِ

کنجیانے د آسمانونو او د زمکے دی، او هغه کسان چه کفرئے کړیدے په آیتونو د الله

أُولٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُوْنَ ﴿٦٣﴾

دغه کسان هم دوی تاوانیان دی۔

**تفسیر** : دا اُوم عقلی دلیل دے، او پدے کښې د الله تعالیٰ دوه صفتونه ذکر دی، یو دا چه الله تعالیٰ د هر شي پیدا کونکے دے،

دویم دا چه حفاظت او ذمه واري د هر شي د هغهٔ سره ده۔ نو کله چه بنده پدے دوه صفتونو باندے یقین وکړي نو هغه کښې تقویٰ پیدا شي۔

لَهُ مَقَالِيْدُ : دا اتم عقلی دلیل دے، او پدے کښې د الله تعالیٰ بل صفت ذکر دے چه د هر شي اختیار او تصرف د الله تعالیٰ سره دے، او هرکله چه د هر شي چابیانے د الله تعالیٰ سره دی، نو معلومه شوه چه د خزانو ورکولو اختیار به هم د هغهٔ سره وي۔

مَقَالِيْدُ : جمع د مِقْلِيْد یا مِقْلَاد ده۔ کنجي او چابي ته وائي۔ یعنی الله تعالیٰ چه کله وغواړي دغه آسمانونه او زمکه به مات رامات کړي او قیامت به راولي۔

بِآيَاتِ اللهِ: ددے آیات نه مراد د قرآن کریم آیتونه،

دارنګه د کائناتو دلیلونه مراد دی یعنی کوم خلك چه د قرآن کریم او د هغه نښو نه انکار کوي چه هغه د الله تعالیٰ په ذات او صفاتو او د هغهٔ په وحدانیت باندے دلالت کوي، نو دا خلك ډیر لوي تاوان پورته کونکي دي۔

یا هرکله چه دومره لوی رب موجود دے، بیا هم کافران دداسے رب په آیتونو باندے کفر کوي۔ او هغه کفر دا دے چه د الله تعالیٰ نه انکار کوي، د هغهٔ سره برخه داران جوړوي۔

قُلْ أَفَغَيْرَ اللهِ تَأْمُرُوْنِّيْ أَعْبُدُ

اُووایه ! آیا پس سویٰ د الله تعالیٰ نه حکم کویٔ تاسو ما ته چه بندګي ئے اُوکړم

أَيُّهَا الْجَاهِلُوْنَ ﴿٦٤﴾ وَلَقَدْ أُوْحِيَ إِلَيْكَ وَإِلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكَ

اے ناپوهو۔ او یقیناً وحی شویده تا ته او هغه کسانو ته چه مخکښې ستا نه دی،

لَئِنْ أَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ وَلَتَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ ﴿٦٥﴾

كه چرے شرك اُوكړو تا خامخا برباد به شي عملونه ستا او خامخا شے به د تاوان والو نه.

بَلِ اللّٰهَ فَاعْبُدْ وَكُنْ مِنَ الشَّاكِرِينَ ﴿٦٦﴾

بلكه خاص د الله تعالىٰ پس عبادت اُوكړه (د هغهٔ) او شه د شكر كونكو نه.

**تفسير**: د مكے كافرانو نبي كريم ﷺ ته وويل چه د بتانو عبادت ستا د پلار نيكهٔ دين دے، دے وجے نه تهٔ د خپل رب عبادت كوه، او د بتانو عبادت هم كوه، او مونږ به هم ستا له خاطره ستا د رب عبادت كوو، نو الله تعالىٰ هغوىٔ ﷺ ته حكم وكړو چه هغه د مشركانو ددے رائے بنسهٔ بنسكاره رد وكړى، او ووائى چه اے كم عقلو ! آيا تاسو د غير الله عبادت طرفته دعوت وركوئ، داسے هيڅ كله نشي كيدے. او ددے جواب په سورة الانعام كښ، او دارنګه په (قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُوْنَ) كښ هم وركړے شويدے.

أَيُّهَا الْجَاهِلُوْنَ : دا انسان ډير ناپوهه دے چه د غير الله عبادت ته دعوت وركوى. هر هغه څوك چه تا د الله تعالىٰ نه اړوى او بابا ته دے متوجه كوى، نو پوهه شه چه دا لوى جاهل دے. ځكه چه دا خلاف دے د وحى د ټولو پيغمبرانو لكه په سورة الانعام (٨٨) آيت كښ الله فرمايلى وو ﴿وَلَوْ أَشْرَكُوْا لَحَبِطَ عَنْهُمْ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾ او دلته هم فرمائى :

وَلَقَدْ أُوْحِيَ: دا علت دے د مخكښ دپاره، يعنى ددے مشركانو جاهلانو د امر او دعوت نه ځان بچ وساته، ځكه چه اتفاقى وحى د ټولو انبياؤ سره واضحه شويده چه په شرك كولو سره هر عمل بربادېږى.

لَئِنْ أَشْرَكْتَ : يعنى هر نبي ته په خپله خپله زمانه كښ دا وحى شويده. او دا دليل دے چه شرك داسے قبيح عمل دے چه د پيغمبر عمل ورته نشى تېنګيدے نو د نورو خلكو عمل به شرك ته څه تېنګ شى. د پيغمبر نه خو شرك صادريدل محال او ناممكن دى نو پدے وجه دلته (لَئِنْ أَشْرَكْتَ) په تعليق او په فرضِ محال وئيلے شويدے يعنى بالفرض والتقدير كه پيغمبر شرك وكړو نو عملونه به ئے برباد شى نو پدے كښ تعريض دے نورو امتيانو ته.

شوكانىؒ ليكى چه دا آيت (په شرك باندے مړ كيدو سره) مُقَيَّد دے، لكه د سورتِ بقرے په (٢١٧) آيت كښ راغلى : ﴿وَمَنْ يَرْتَدِدْ مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ فَأُولٰئِكَ

حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ﴾ (او په تاسو کښې چه څوك د خپل دين نه وګرځي او د کفر په همدے حالت کښې مړ شي، د هغهٔ دنيوی او اُخروی ټول عملونه به ضائع شي)۔

عَمَلُكَ: عمل ورله ځکه ذکر کوی چه د انسان دپاره لويه سرمايه عمل دے، چه کله د انسان عمل برباد شي نو بيا پوره برباد دے۔

بَلِ اللّٰهَ فَاعْبُدْ: مخکښې رد د شرك وشو او د هغے بدی بيان شوه، نو اُوس په توحيد او د الله تعالىٰ په يواځے بندګئ باندے حکم کوی۔

وَكُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ: يعنی د توحيد او نبوت او دعوت او رسالت غوندته نعمتونو باندے د الله تعالىٰ شکر اداء کوه۔ يا شه د شکر ګذارونه چه هغه عبادت کول دی۔ يعنی عبادت بعينهٖ د الله تعالىٰ شکر دے۔ نو په بندګئ به هم شکر کوے چه ښه دے چه زهٔ موحد يم، او يواځے د الله تعالىٰ بندګی کوم، او عبادت هم بعينهٖ شکر دے۔

| وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ وَالْأَرْضُ جَمِيْعًا |
|---|
| او قدر نهٔ دے کړے دوی د الله تعالىٰ په لائق قدر د هغهٔ، او زمکه ټوله به |
| قَبْضَتُهٗ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَالسَّمٰوٰتُ مَطْوِيّٰتٌ |
| په قبضه د هغهٔ کښې وی په ورځ د قيامت، او آسمانونه به راتاؤ کړے شوی وی |
| بِيَمِيْنِهٖ سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا |
| په ښی لاس د هغهٔ کښې، پاك دے الله تعالىٰ او اُوچت دے د هغے نه |
| يُشْرِكُوْنَ ﴿٦٧﴾ |
| چه دوی ورسره برخه داران جوړوی۔ |

**تفسير**: د مشرکانو جهالت او ناپوهی بيانيږی چه دوئ د الله تعالىٰ د حقيقی قدر او مرتبے تصور هم نهٔ دے کړے ځکه خو د هغهٔ نه سوئ بل څوك معبود ګڼړی، او نبی کريم ﷺ له ئے مشوره ورکړه چه تهٔ هم د بتانو عبادت کوه۔ داسے لوی او قادر مطلق ذات دوی پريدی چه زمکه د خپل غټوالی او درنيدو باوجود د قيامت په ورځ به د هغهٔ په موټی کښې وی، او اووهٔ آسمانونه به د هغهٔ په ښی لاس کښې رانغښتے وی، په دے ورځ به هغه په پوره جلال کښې وی، او وائی به چه زهٔ بادشاه يم، څهٔ شو هغه څوك چه په دنيا

کښې ورته بادشاهان وئیلے کیدل۔ نو کوم ذات چه داسے وی، او د داسے لوی قدرت مالك وی هم هغه د تمامو عباداتونو مستحق دے، هغهٔ نه سوئ د دروغژنو معبودانو عبادت کول لوی جُرم دے، دے وجے نه الله تعالیٰ وفرمایل: (سُبْحَانَهٗ) چه هغه د تمامو عیبونو او نقصانونو نه پاك دے، او هغه د مشرکانو د شرك نه ډیر زیات اُوچت دے۔

وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ: ۱- اَیْ مَا عَظَّمُوا اللّٰهَ حَقَّ تَعْظِیْمِهٖ۔ دے خلکو د الله تعالیٰ تعظیم ونکړو په لائق تعظیم د هغه سره۔ (مبرّد)

۲- مَا وَصَفُوا اللّٰهَ حَقَّ تَوْصِیْفِهٖ۔ دوی د الله تعالیٰ صفت بیان نکړو په لائق صفت بیانولو سره۔ (بلکه شریکان ورله بیانوی)۔

۳- مَا عَرَّفُوا اللّٰهَ حَقَّ تَعْرِیْفِهٖ ۔ دوی الله تعالیٰ په لائق پیژندلو سره ونهٔ پیژندلو۔ بیا ئے خپل تعظیم ذکر کړیدے چه کوم ذات پدے دنیا کښې آسمانونه او زمکه مضبوط ودرولی دی نو دغه ذات ئے ختمولے هم شی نو قیامت به راولی او دا انسانان به خپلے مخے ته ودروی۔

جَمِیْعًا: یعنی اُوه واړه زمکے۔ په حدیث کښې ددے داسے تشریح راغلے ده چه الله تعالیٰ به د قیامت په ورځ اوه واړه زمکے په یو لاس کښې ونیسی، او آسمانونه به په بل لاس کښې (او د الله دواړه لاسونه ښی دی) او بیا به ئے وخوزوی او وبه وائی (اَنَا الْمَلِكُ، اَیْنَ مُلُوْكُ الْاَرْضِ؟) زهٔ بادشاه یم څه شو د زمکے بادشاهان۔

او بخاری او مسلم د ابن مسعود ﷺ نه روایت نقل کړے چه د یهودیانو د علماؤ نه یو حبر (عالِم) رسول الله ﷺ ته راغلو ورته ئے وویل: اے محمد! (ﷺ) مونږه (په خپل کتاب کښې دا خبره) مونده کوو چه الله تعالیٰ به د قیامت په ورځ آسمانونه په یوه گوته او ونے په بله گوته او اُوبه او ختے په بله گوته او ټول مخلوقات په بله گوته پورته کړی بیا به ئے وخوزوی او وبه وائی: (انا الملك) زهٔ بادشاه یم۔ نو رسول الله ﷺ ددے یهودی د خبرے په تصدیق کښې وخاندل تردے چه د هغه غاښونه ښکاره شو۔ بیا رسول الله ﷺ دا آیت ولوستلو ﴿وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ وَالْاَرْضُ جَمِیْعًا قَبْضَتُهٗ یَوْمَ الْقِیَامَةِ﴾

(بخاری فی التوحید باب۱۹ ۱، ۲۶، ۳۶ وتفسیر سورة الزمر باب ۱ والرقاق باب ٤٤)۔

یعنی دوی بنه دے پو هیږی چه الله تعالیٰ دومره لوی ذات دے چه په یوه یوه گوتے دومره غټ کائنات پورته کوی لیکن بیا هم د هغهٔ رسول نهٔ منی۔

او په حدیث د ترمذی کښې دی، عائشے رضی الله عنها تپوس وکړو چه په داسے حالت

کښې بـه انسانان په کوم ځای کښې وي؟ نو رسول الله ﷺ وفرمایل : د جهنم دپاسه په پُل صراط باندے به وي۔ (ترمذي: ۳۱۲۱)

بیا ئے د قیامت ورځ خاص ذکر کړه اګرکه په دنیا کښې هم بادشاهي او قدرت د الله تعالیٰ دے، وجه دا ده چه په دغه ورځ به ټولے دعوے ختمے شي۔

بِيَمِينِهٖ : ښے لاس د الله تـعالیٰ د متشابهاتو نه دے چه په حقیقي کیفیت ئے صرف الله تعالیٰ پو هه دے۔او په اعتبار د معنیٰ سره مُحکم دے یعنی ښے لاس۔

سبحانه وتعالیٰ : یعني الله تعالیٰ په عبادت کښې د شریك نه پاك دے۔ بیا د قبضے او یمین نه مُشَبِّهه او مُجَسِّمَه دلیل نیسي چه د الله تعالیٰ مشابه او جسم شته نو الله پدے کښې په هغوی باندے هم رد کوي چه (سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ) الله تعالیٰ د مشرکانو د شرك نه پاك دے، د هغه سره په قدرت او علم کښې هم شریك نشته، او نهٔ د هغهٔ شبیه او مشابه شته۔

وَتَعَالَىٰ : کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ پورته ذات دے۔ او پدے کښې اشاره ده چه شرك د انسانانو په خولے سره کیږي په حقیقت کښې د الله تعالیٰ شریکان چرته راتللے شي۔ اَيْنَ التُّرَابُ مِنْ رَبِّ الْاَرْبَابِ۔ خاوره چرته رب ته رسیدے شي۔

| وَنُفِخَ فِي الصُّورِ فَصَعِقَ مَن فِي السَّمَاوَاتِ |
|---|
| او پوکے به وکړے شي په شپیلۍ کښې نو بیهوشه به شي هغه څوك چه په آسمانونو |
| وَمَن فِي الْأَرْضِ إِلَّا مَن شَاءَ اللَّهُ ثُمَّ |
| او هغه څوك چه په زمکه کښې دي مګر هغه څوك چه غواړي الله بیا به |
| نُفِخَ فِيهِ أُخْرَىٰ فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَنظُرُونَ ﴿٦٨﴾ |
| پوکے اُوکړے شي په هغے کښې بل کرته نو دغه وخت به دوی ولاړ وي، ګوري به۔ |
| وَأَشْرَقَتِ الْأَرْضُ بِنُورِ رَبِّهَا وَوُضِعَ الْكِتَابُ وَجِيءَ |
| او روښانه به شي زمکه په رڼړا د رب ددے، او کیښه خودے شي کتاب او رابه وستے |
| بِالنَّبِيِّينَ وَالشُّهَدَاءِ وَقُضِيَ بَيْنَهُم بِالْحَقِّ |
| شي پیغمبران او شهیدان او فیصله به اُوشي په مینځ د دوی کښې په حق سره |

| وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٦٩﴾ وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا |
|---|
| او دوی باندے به ظلم نشی کیدے۔ او پوره به ورکړے شی هر نفس ته بدله د هغه |
| عَمِلَتْ وَهُوَ أَعْلَمُ بِمَا يَفْعَلُونَ ﴿٧٠﴾ |
| عملونو چه کړے ئے دی او هغه ښهٔ پو هه دے په هغه کارونو چه دوی ئے کوی۔ |

**تفسیر** : مخکښې د قیامت تذکره وشوه، نو اُوس د قیامت تفصیلی حالات بیانوی، او پدے کښې د هغه ورځے هیبت بیانول مقصد دے، او ددے په بیان سره شرک ختمیږی، انسان په بندګئ کښې تیزیږی، شر او تکبر د انسان نه پدے ختمیږی، د رسولانو تابعداری ددے په وجه کیږی۔

وَنُفِخَ فِي الصُّورِ : دا اوله شپیلئ ده او سورة یس کښې چه کومه نفخه ذکر وه، نو هغه دویمه وه، پدے کښې قاعده دا ده چه کومے شپیلئ سره چه د مخلوق راپورته کیدل کیږی هغه دویمه شپیلئ وی، او چه کوم سره په آسمانونو او زمکه او عالَم کښې پریشانی راځی نو هغه اوله شپیلئ وی۔ اولنئ ته نَفْخَةُ الصَّعْقِ وَالْفَزَعِ وائی، او دویمے ته نَفْخَةُ الْبَعْث وائی۔ جمهور چه درے شپیلئ ذکر کوی، یو نفخة الفزع او دویمه نفخه د مرګ، او دریمه (نَفْخَةُ الْبَعْث) یعنی د دوباره راپورته کولو (فتح البیان)

نو په هغے دلیل نشته بلکه مونږ مخکښې وئیلی وو چه اوله شپیلئ به دومره سخته وی چه اول به انسانانو باندے ګبراهټ او یره راولی او په آرام آرام به سختیږی، تردے چه د ساه والا مخلوق به د هغے په تیزوالی سره مړه شی۔ بیا به څلویښت کاله پس دوباره شپیلئ شروع شی، او د ساه والا مخلوق به راپورته کړے شی۔

د صحیح مسلم حدیث دے چه رسول الله ﷺ وفرمایل (د ټولو نه اول به زهٔ په هوش کښې راشم، نو موسیٰ (علیه السلام) به د عرش خپو سره ووینم، ماته معلومه نهٔ ده چه هغه به مانه مخکښې په هوش کښې راغلے وی، یابه هغه د هغه خلقو نه وی چه الله تعالیٰ هغوئ د بیهوشه کیدونه مستثنیٰ کړے دی)

صاحب د ایسر التفاسیر لیکی چه د آخرت د ورځے په حقله د قرآن کریم د آیتونو د تالاش کولو نه معلومیږی، چه شپیلئ به څلور ځله پوك وهلے شی۔ اولنئ شپیلئ سره به ټول خلق فنا شی، په دویمے شپیلئ سره به ټول خلق ژوندی شی، او د حشر په

میدان کښې به جمع کیږي، د دریمې شپیلۍ ذکر په دې آیتونو کښې دے، چه ددے په وجه به خلق بیهوشه شي مري به نهٔ. او د څلورم پوکۍ د اثر په وجه به تمام خلق د رب العالمین حضور ته د حساب دپاره خشوع او خضوع سره ودرولے شي، او د خپل خپل انجام انتظار به کوي. لیکن غوره قول هغه دے چه مخکښې مونږ ذکر کړو. دے قول باندے دلیل نشته صرف د نفخې د مختلف تعبیراتو نه ئے اقسام جوړ کړیدي.

فَصَعِقَ: د صعق (بے هوشه کیدو) نه مراد مرګ دے.

إِلَّا مَنْ شَآءَ اللَّهُ: ددے نه مراد د جنت حورے او غلمان دي چه هغه الله تعالیٰ نهٔ ختموي. دارنګه اسرافیل عليه السلام هم. یا د جنت او د جهنم خزانچیان ملائك، یا د عرش پورته کونکي ملائك. یا مَلَكُ الْمَوْت.

يَنظُرُوْنَ: ۱- حَالَ أَنفُسِهِمْ. خپلو ځانونو حال ته به ګوري. ۲- یو بل ته به ګوري.

۳- يَنظُرُوْنَ حُكْمَ اللّٰهِ فِيهِمْ. د الله تعالیٰ حکم ته به په انتظار کښې وي، او ګوري به چه الله په دوی کښې څه فیصله کوي.

وَأَشْرَقَتِ الْأَرْضُ: اُوس د قیامت بعض تصویر بیانوي. د قیامت په ورځ چه کله الله تعالیٰ د مخلوق ترمینځه فیصله کولو دپاره ښکاره شي، نو د هغهٔ په تجلیٔ سره به پوره میدانِ محشر روښانه شي، ځکه چه هلته به نمر او سپوږمیٔ کار نهٔ ورکوي، صرف د الله تعالیٰ د مخ نه به رڼړا په توله زمکه باندے لګیږي او هغه به ئے روښانه کړي وي. او دا رڼړائي د مخ د الله تعالیٰ د متشابهاتو نه ده چه کیفیت ئے الله تعالیٰ ته معلوم دے. بغیر د تشبیه او تمثیل نه به منلے شي. الله تعالیٰ نُور ذات دے نو په دنیا کښې ئے نُور شته نو په آخرت کښې به ئے هم نُور وي.

وَوُضِعَ الْكِتَابُ: ظاهر معنیٰ دا ده چه د کتاب نه مراد علمنامه ده. یعنی د خلقو عملنامے به مخے ته راوړلے شي، او انبیاء کرام به راوړاندے شي چه ګواهي به ورکوي چه دویٔ خپلو خپلو امتونو ته د الله تعالیٰ پیغام رسولے وو، او د نبی کریم ﷺ د اُمت خلق به راوړاندے کړے شي چه دویٔ به ګواهي ورکوي چه تیر شوو انبیاؤ خپلو خپلو امتونو ته د الله پیغام رسولے وو.

وَالشُّهَدَاءِ: ددے نه مراد مؤمنان او ملائك او انبیاء علیهم السلام دي او ورسره اندامونه او زمکه به ګواهي کوي. نو مجرم ته به وئیلے شي چه تا جرم کړیدے کتاب (عملنامه) دربانده ګواه ده، دلته دربانده زمکه ګواه ده، دلته دربانده اندامونه ګواه دي، دلته

درباندے زۀ گواه یم۔
وَقُضِيَ بَيْنَهُم بِالْحَقِّ: نو هر کله چه گواهان گواهي ورکړي نو الله تعالیٰ به د مخلوقاتو ترمینځ په پوره عدل او انصاف سره فیصله وکړي په هیچا به ظلم نۀ کیږي۔ نۀ به د چا په نیکو کښې کموالے او نۀ به د چا په بدو کښې زیاتوالے کیږي۔
وَهُوَ أَعْلَمُ بِمَا يَفْعَلُونَ: دا تاکید دے د (وَوُفِّيَتْ) دپاره یعني الله تعالیٰ د بندګانو اعمال د دوئ نه زیات ښۀ پیژني، دے وجے نه په حساب کښې به هیڅ ظلم او زیاتے نۀ کیږي، او نۀ به په دے کښې د خطائي، غلطئ یا هیرے څۀ امکان وي۔
او دا جواب د سوال هم دے چه الله تعالیٰ حساب کوي او ګواهان پیش کوي نو آیا هغه نا خبره دے؟ نو جواب وشو چه (وَهُوَ أَعْلَمُ) یعني حساب او د ګواهانو ګواهي د حجت قائمولو دپاره ده۔ ورنه الله پرے ښه پوهه وو چه دۀ څه عملونه کړیدي او علمنامه کښې به ئے هم د (ویډیو) په شان وینې۔

| |
|---|
| وَسِيقَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ جَهَنَّمَ زُمَرًا حَتَّىٰ إِذَا |
| او وبه شړلے شي هغه کسان چه کافران دي جهنم طرف ته ډلے ډلے تردے چه کله |
| جَاءُوهَا فُتِحَتْ أَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ |
| راشي دوی هغے ته کولاوے به شي دوی ته دروازے د هغے او وبه وائي دوی ته |
| خَزَنَتُهَا أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ |
| خزانچیان (څوکیداران) د هغے، آیا نۀ وو راغلي تاسو ته رسولان ستاسو نه |
| يَتْلُونَ عَلَيْكُمْ آيَاتِ رَبِّكُمْ وَيُنذِرُونَكُمْ لِقَاءَ |
| چه لوستل ئے په تاسو باندے آیتونه د رب ستاسو او یرولې ئے تاسو د ملاقات |
| يَوْمِكُمْ هَٰذَا قَالُوا بَلَىٰ وَلَٰكِنْ حَقَّتْ كَلِمَةُ الْعَذَابِ |
| د ورځے ستاسو نه چه دا ده، هغوی به اُووائي آؤ، لیکن ثابته شویده فیصله د عذاب |
| عَلَى الْكَافِرِينَ ﴿٧١﴾ قِيلَ ادْخُلُوا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ |
| په کافرانو باندے۔ وبه وئیلے شي (دوی ته) ننوځئ دروازو د جهنم ته همیشه به ئے |

| فِيهَا فَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ ﴿۷۲﴾ |
|---|
| په هغې کښې نو بد دے ځائے د اوسیدو د متکبرانو. |

**تفسیر** : دا د (وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ) تشریح ده۔ حقه فیصله څه شے ده نو هغه بیانوی چه بعض کسان جهنم ته داخل کړی او بعض جنت ته۔ او کافران په دنیا کښې زیات دی پدے وجه د دوی حال مخکښې بیانیږی۔ نو پدے آیت کښې تخویف اُخروی دے په ذکر د حال د منکرینو سره۔

وَسِيقَ: دا ئے مجهول صیغه راوړه (یعنی روان به کړے شی) ځکه چه دوی به په خپله طبع اُور ته نهٔ وی روان بلکه د ملائکو په زور او رټلو او شړلو سره به روان کړے شی۔لکه چه د سورتِ طور په (۱۳) آیت کښې راغلی : ﴿يَوْمَ يُدَعُّونَ إِلَىٰ نَارِ جَهَنَّمَ دَعًّا﴾ (په کومه ورځ چه دا خلق به د جهنم په اُور کښې دیکه کړے شی)۔

زُمَرًا: د زُمَرٌ نه دے آواز ته وئیلے شی، او جماعتونه او ډلے هم شور کوی۔ زُمَر هغه ډلو ته وئیلے شی چه په هغوی کښې تفرقه او اختلاف وی، نو دا ډلے به هم مختلفو سزاګانو والا وی، په کفر کښې هم ډیر اقسام دی، د چا کفر سخت او د چا نرم۔

څوك به د لاندے طبقے د جهنم مستحق وی، او څوك د وړسے، او څوك د آخری طبقے۔ دارنګه دے دپاره ئے ډلے ډلے روانوی چه د یو بل نه ضرر حاصل کړی، د هر یو نه به بد بوئی روانه وی، او په یو بل باندے به ښه لعنتونه ولیږی او کنځل او ردے بدے به کوی۔

فُتِحَتْ أَبْوَابُهَا: یعنی کله دوی جهنم ته ورسیږی نو د هغے دروازے به ورته سمدست پرانستے شی، دے دپاره چه دوی په ناڅاپی مصیبت باندے ورواوړی، او ښه ذلیله شی۔ او د جهنم اُوه دروازے په سورة حجر (٤٤) آیت کښې ذکر شویدی۔

خَزَنَتُهَا: جمع د خازن ده، خزانچی او داروغه د جهنم به ورته دهمکی ورکوی او دوی به ملامته کوی، او دا هم لوی عذاب دے چه ملائك ورته پیغور او رټنه ورکوی۔

لِقَاءَ يَوْمِكُمْ: د انبیاؤ همیشه دپاره دوه دعوتونه دی۔یو کتاب ته او بل آخرت ته۔ ځکه چه قرآن کښې بندګی او د آخرت اعمال ذکر کیږی او په آخرت کښې بیا د دغه اعمالو حساب کتاب او جزا او سزا وی۔

كَلِمَةُ الْعَذَابِ : ددے نه مراد د تقدیر فیصله ده یعنی الله تعالیٰ راباندے داسے فیصله کړے وه چه مونږ به اُور ته ځو۔ پدے کښې په الله باندے پړه او ملامتیا نهٔ اچوی بلکه ځان

مجرمان گنړی چه مونږه کافران وو، په دغه رسولانو مو کفر کړے وو، او د الله قانون دا دے چه څوك کفر کوی هغه اُور ته بوځی۔ نو دا اُورئے مونږ له پیدا کړے وو نو ځکه د کفر کار مونږ نه وشو۔

قِيْلَ ادْخُلُوْآ: حافظ ابن کثیرؒ لیکی: چونکه د دوئ د گناهونو لیدلو سره به د محشر په میدان کښې ټول حاضرین خلق آوازونه وکړی چه واقعی دا خلق د اُور د عذاب مستحق دی، دے وجے نه دلته د (قول) یعنی وئیلو نسبت کوم خاص چاته نهٔ دے شوے۔ او شوکانیؒ لیکی چه دا خبره به دوئ ته د عذاب ملائك کوی۔

خَالِدِيْنَ فِيْهَا: دا حال مُقدره دے۔ ستاسو خلود (همیشوالے) په جهنم کښې مقرر شویدے۔ ځکه چه د اولے ورځے نه همیشوالے نشی راتللے بلکه فیصله راتللے شی۔

الْمُتَكَبِّرِيْنَ: دوی کښې یو کفر او بل تکبر وو۔

| وَسِيْقَ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ إِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا حَتّٰى |
|---|
| او روان به کړے شی هغه کسان چه یریدلی د رب خپل نه جنت ته ډلے ډلے، تردے |
| إِذَا جَاءُوْهَا وَفُتِحَتْ أَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ |
| چه کله راشی هغے ته او کولاوے کړے شوی به وی دروازے د هغے او وبه وائی دوی ته |
| خَزَنَتُهَا سَلَامٌ عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ |
| خزانچیان د هغے سلامتیا دے وی په تاسو باندے، تاسو پاك وئ (په دنیا کښې) |
| فَادْخُلُوْهَا خَالِدِيْنَ ﴿۷۳﴾ |
| (خوشحاله اُوسیږئ تاسو) نو ورننوځئ دے ته همیشه به یئ۔ (پدے کښې) |
| وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ صَدَقَنَا |
| او وبه وائی دوی حمدونه دی الله لره هغه ذات دے چه رشتینی ئے کړه مونږ سره |
| وَعْدَهٗ وَأَوْرَثَنَا الْأَرْضَ نَتَبَوَّأُ مِنَ الْجَنَّةِ |
| وعده خپله او په میراث کښې ئے راکړه مونږ ته دا زمکه، ځائے نیسو مونږ د جنت نه |

| حَیۡثُ نَشَآءُ فَنِعۡمَ أَجۡرُ الۡعَامِلِیۡنَ ﴿۷۴﴾ وَتَرَی الۡمَلَائِکَةَ |
|---|
| کوم ځائے چه غواړو مونږ نو ښه ده بدله د عمل کونکو۔ او وینے به ته ملائك |
| حَافِّیۡنَ مِنۡ حَوۡلِ الۡعَرۡشِ یُسَبِّحُوۡنَ بِحَمۡدِ |
| گیره اچونکی (تاویدونکی) چاپیره د عرش نه تسبیح به وائی سره د حمدونو |
| رَبِّهِمۡ وَقُضِیَ بَیۡنَهُم بِالۡحَقِّ وَقِیۡلَ |
| د رب دوی نه، او فیصله به وکړے شی په مینځ د دوی کښې په حق سره او وئیلے به |
| الۡحَمۡدُ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعَالَمِیۡنَ ﴿۷۵﴾ |
| شی (د هر طرف نه) چه صفتونه د کمال صرف الله لره دی چه پالونکے د مخلوقاتو دے۔ |

**تفسیر:** اُوس د جنتیانو حال او فیصله بیانیږی۔

وَسِیۡقَ: ئے مجهول راوړه ځکه چه دوی ته به خاص سورلئ راوستے شی او په هغے به سوارهٔ کړے شی، رسول الله ﷺ فرمائی: چه دوی به په نجائبو (یعنی کرهٔ اُوښانو او کرهٔ مزیدارو اسونو) باندے وی۔ او د دوی خادمانو به نیولی وی او دوی به ئے د حشر د میدان نه جنت ته روان کړی وی۔

زُمَرًا: او ډلے ډلے به روان کړے شی د خپلو عملونو مطابق، څوك به انبیاء وی، څوك شهیدان، څوك علماء، او څوك د حق نور داعیان او څوك عام مؤمنان۔ یا د هر امت خپل خپل جنتیان دی، یا ددے دپاره چه یو بل سره خوشحالی وکړی، او یو بل له زیری ورکړی لکه شریك ملگری یو چکر ته ځی نو څومره خوشحاله وی۔ نو جنت ته داخلیدل یو نعمت دے او دوستانو سره شریك داخلیدل بل نعمت۔

د قرآن ناشنا کمال ته وگوره چه یو لفظ (سیق او زمرا) د یو چا دپاره د د عزت او کمال ثابتوی، او د کافرانو ضرر او ذلت ته اشاره کوی۔

وَفُتِحَتۡ أَبۡوَابُهَا: ددے نه مخکښې جزاء پټه ده (دَخَلُوۡهَا) یعنی کله چه د جنت دروازو ته راشی نو هغے ته به داخل شی۔ ځکه چه د جنت دروازے د دوی د عزت د خاطره الله تعالیٰ د مخکښې نه کولاوے کړیدی۔ بعض مفسرین واو زائد گنړی او (فُتِحَتۡ اَبۡوَابُهَا)

جزاء د (إذا) وائي- ليكن دے ته ضرورت نشته- بعض وائي چه دا واو ثمانيه دے يعني د عربو عادت دا دے چه اوه څيزونه ذكر كړي نو په اتم ځاى كښې واو راوړي- ظاهر دا ده چه دلته د مخكښې نه دروازے كولاويدل مراد دي دے دپاره چه په دوى باندے ئے د مخكښې نه خوشبيانے راشي لكه حديث كښې دي : د جنت خوشبوئي پنځه سوه كاله وړاندے څي- (موطأ مالك والطبراني) او د يو حديث نه معلوميږي چه مؤمنانو ته الله تعالىٰ د جنت خوشبوئي دنيا ته هم راوستے ده- (إِنِّيْ أَجِدُ رِيْحَ الْجَنَّةِ مِنْ دُوْنِ أُحُدٍ) دارنګه په قبر كښې ئے وركوي- بعضو احاديثو كښې سل كاله (الطبراني في الاوسط) او په بعضو كښې اويا كاله (ترمذي : ٢٦٨٧) بعضو كښې څلويښت كاله، (احمد)

بعضو كښې زر كاله ذكر دي- (مسند الفردوس والطبراني في الاوسط) كښې د يوے مياشتے اندازه راغلے ده- ځكه چه د مؤمنانو د مرتبو مطابق خوشبوئي به پرے لګي-نو دا واو حاليه دے- يعني دوى به راشي په داسے حال كښې چه د جنت دروازے به ورته كولاوے شوي وي-

او حديث د بخاري او مسلم كښې د ابو هريره رضي الله عنه نه نقل دي چه رسول الله ﷺ وفرمايل : اوله ډله چه جنت ته داخليږي نو د څوارلسمے سپوږمۍ په شكل به (سپين) وي او دويمه ډله به د سخت تك سپين پرقيدونكي ستوري د آسمان په شان داخليږي-

(بخاري في بدء الخلق باب٨، والانبياء باب ١ ومسلم في الجنة حديث ١٦،١٤)

سَلَامٌ عَلَيْكُمْ: ملائك به ورته مرحبا او سلام ووائي- او دوى ته به زيرے وركړي-

طِبْتُمْ: ١- تاسو په دنيا كښې پاك خلك وئ، ستاسو عقيده، ستاسو عملونه پاك وو- نو ستاسو جنت ته راتګ په دنيا كښې د طيبت په وجه وو، نو جنت د طيبينو ځاى دے-

﴿ اَلَّذِيْنَ تَتَوَفّٰهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ طَيِّبِيْنَ﴾ (نحل :٣٢) ﴿ وَهُدُوْٓا اِلَى الطَّيِّبِ مِنَ الْقَوْلِ﴾ (الحج : ٢٤) ﴿ اِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ﴾ (فاطر : ١٠) ﴿ قَدْ اَفْلَحَ مَنْ زَكّٰهَا﴾ (شمس :٩) ﴿ طِبْتُمْ﴾ نو جنت ته الله تعالىٰ ګنده خلك نۀ بوځي، مشرك، بدعتي، فاسق، ظالم ناولے دے- نو ځان پاك كړه جنت ته به ډير نزدے شے-

٢- د علي رضي الله عنه او مقاتل بن حيانؒ نه نقل دي : چه مؤمنان هركله جنت خوا ته ورسيږي نو هلته به د جنت نه يوه چينه بهيږي په هغے باندے به ولامبي (حَتّٰى اِذَا هُذِّبُوْا وَطُيِّبُوْا) تردے چه كله دوى ښه پاك شي، نو جنت ته به داخل كړے شي لكه يو تن چه په دنيا كښې يو پاك ځاى ته روان وي، نو اول غسل كوئ-

دواړه مطلبونه صحیح دي، لیکن اول مطلب کښې دعوت زیات دے۔
وَعْدَهٗ: دا وعده په سورت مریم (۶۳) آیت کښې ذکر ده۔
الْاَرْضَ: دے نه مراد د جنت زمکه ده او میراث ئے ورته ځکه ووئیلو چه بغیر د محنت او داسې مشقت نه حاصلیږي چه د هغے سره مناسب وي۔
نَتَبَوَّاُ مِنَ الْجَنَّةِ: جنت کښې پابندي نشته، دومره فراخي او آزادي به وي چه چرته تلل غواړي تللے به شي، وجه دا ده چه متقیان په دنیا کښې پابند وو، نو هلته ورته آزادي ملاؤ شوه، او څوك چه په دنیا کښې آزاد ژوند تیروي، نو په آخرت کښې به تنګ ځای ته ځي۔
نَتَبَوَّاُ: مونږه نیسو ځان دپاره ځایونه کوم ځای چه غواړو۔ دوی به پردي ځایونه نهٔ نیسي لیکن که غواړي چه د هر چا مقام او مکان ته ورشي نو ورتللے به شي، پابندي به نهٔ وي چه مثلًا یو ملګرے بل ملګري سره ملاقات کول غواړي او پابندي ورته وي۔
فَنِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِیْنَ: دا یا قول د جنتیانو دے چه په دنیا کښې د نیك عمل کونکو دپاره خو دا جنت ډیره ښه بدله ده۔ یا دا قول د الله تعالیٰ دے چه د جنت صفت کوي۔ او پدے سورت کښې موضوع عبادت ده، پدے وجه ئے (عٰمِلِیْن) صفت راوړو۔
وَتَرَى الْمَلٰٓئِكَةَ: دا د آخرت نور حالات بیانیږي۔ الله تعالیٰ چه کله دا وښودله چه هغه به د حساب کتاب نه پس جنتیان جنت ته او جهنمیان جهنم ته ولیږي، او هر یو ته به د هغهٔ د کړو بدله پوره په عدل او انصاف سره ورکړي، نو اُوس د ملائکو په باره کښې خبر ورکړے کیږي چه هغوئ به د عرش نه ګیر چاپیره څلور واړو اړخونو ته د زارئ سر ښکته کړے وي او د خپل رب پاکي او لوئي به بیانوي۔
د ملائکو تسبیحات وئیل اُوس هم دي او په آخرت کښې به هم وي۔ او ملائك الله تعالیٰ په مختلفو کارونو مقرر کړیدي۔
حَآفِّیْنَ: اَیْ مُحِیْطِیْنَ مُحْدِقِیْنَ بِهٖ۔ یعنی ګیره اچونکي او احاطه کونکي۔ / اداکونکي د تولو هغه حقوقو چه په دوی باندے دي۔
مِنْ حَوْلِ الْعَرْشِ: (مِنْ) ئے راوړو پدے کښې اشاره ده چه دا ملائك اګرکه دومره زیات دي چه ددے اندازه صرف الله تعالیٰ ته معلومه ده، خو بیا به هم د الله تعالیٰ د عرش نه احاطه نشي کولے د وجه د ډیر عظمت د عرش نه۔ یا (مِنْ) ابتدائیه دے یعنی دوی به ګیره اچول د عرش نه ګیر چاپیره شروع کړي وي هغه ځای پورے چه الله تعالیٰ ئے

غواړي۔
يُسَبِّحُوْنَ: دے نه دا معلومیږي چه د علیین د درجاتو آخري سر او د ملائکو خوند حاصلول به دا وي چه د الله په صفاتو کښې مصروف شي۔
وَقُضِيَ بَيْنَهُم: دائے دوباره راوړو د تاکید دپاره۔ یا ددے نه مراد فیصله د انبیاء علیهم السلام او د هغوي د امتونو ترمینځ ده۔
وَقِيْلَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ: یعنی هرکله چه الله تعالیٰ د تمامو مخلوقاتو ترمینځه پوره عدل او انصاف سره فیصله کوی نو د محشر کار ګذاریانے به ختمے شي، نو هر طرف نه به د الله حمدونه شروع وی، ملائك به ئے هم وائي، مؤمنان به ئے هم وائي او الله به ئے هم وائي۔ یعنی الله پدے کارونو کښې په هیڅ باندے ظلم ونکړو بلکه ټول د کمال کارئے وکړو۔ مؤمن ته د نیك عمل اجر ورکول، او د الله تعالیٰ دشمنانو ته سزا ورکول د الله د غیرت او کمال تقاضا ده۔ الله تعالیٰ عزیز ذو انتقام دے، ګناه بده ګنړي ځکه ئے ورله داسے سزا ورکړه، نو دا هم کمال د رب العالمین دے۔نو ځکه په ټولو حالتونو کښې حمد د رب العالمین وئیلے کیږي۔
قتادهؒ وئیلی دی چه حمد هغه کلمه ده چه د الله تعالیٰ دومره خوښه ده چه کله ئے کائنات پیدا کول هم په حمد ئے شروع کړی وو لکه ابتداء د سورة الانعام کښې ئے وئیلی دی، او بیا چه کله ئے کائنات ختم کړیدی نو دلته ئے په حمد باندے اختتام کړیدے۔ جهنمیان چه جهنم ته ځی هم د الله تعالیٰ حمد به وائي چه الله تعالیٰ ښه وکړل چه مونږه ئے اُور ته راوستو مونږ ددے لائق وو۔
وبالله التوفيق والحمد لله رب العالمين اولا وآخرا۔

## امتیازات د سورة الزمر

۱– پدے کښې دین خالص د الله دپاره کیدل ذکر شویدی چه پدے تعبیر سره په نور قرآن کریم کښې نشته۔
۲–لفظ د عبادت پکښې شپاړس کرته ذکر دے۔
۳– پدے کښې د مومن او د کافر، د متقي او عاصي ترمینځ زیات فرقونه بیان شو۔
٤– د رب العالمین په دربار کښې د خلکو جګړے دوباره راواپس کیدو ذکر۔

٥-قرآن ته احسن الحدیث وئیلے شویدے۔

٦- عام ترغیب وو تو بے ته۔ او د ټولو ګناهونو د معاف کیدو اعلان وو۔

٧- د قیامت د ورځ ناشنا تصویر کینچ شویدے۔

ختم شو تفسیر د سورة الزمر په رمضان ۲۸/ ۱۵ جولائی، ظهر بجے ۲:٤۰ یوم الاربعاء۔

اسریت کالام وکتبه بیده ابوزهیر سیف الله عفی عنه۔

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

| آیاتها (٨٥) | (٤٠) سورة المؤمن مكية (٦٠) | رکوعاتها (٩) |
| --- | --- | --- |

سورتِ مؤمن مکی دے، په دے کښې پنځه اتیا آیتونه او نهه رکوع دی

## تفسیر سورة المؤمن

**نوم** : سورة المؤمن۔ دا د (٢٨) آیت : ﴿وَقَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ مِّنْ آلِ فِرْعَوْنَ﴾ نه اخستے شوے، ددے بل نوم (٢) سورة غافر (٣) او سورة الطول هم دے۔

**د نازلیدو زمانه** : ابن عباس ﷺ، حسنؒ، عطاءؒ، عکرمۃؒ او جابرؓ وغیره په نیز دا سورت په مکه کښې نازل شوے وو۔

### فضیلت

دا سورت د حوامیمو سبعه ؤ نه اولنے سورت دے، حوامیم ورته ځکه وائی چه د هر یو سورت په ابتداء کښې (حٰم) کلمه ذکر ده۔ دے ته حوامیم، آل حم او ذوات حم هم وائی۔ دا سورت ددے ترتیب ذکری مطابق نازل شویدی۔ ددے حوامیمو ډیر فضائل دی۔

دارمی کښې د سعد بن ابراهیمؒ نه نقل شویدی (يُسَمَّيْنَ الْعَرَائِسَ) دے ته عرائس وائی۔ یعنی دا په قرآن کریم کښې داسے حیثیت لری لکه په زنانو کښې ناوے۔ (دارمی:٣٤٢٢) اسناده صحیح موقوف)

عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی : اَلْحَوَامِيْمُ دِيْبَاجُ الْقُرْآنِ ۔ حوامیم د قرآن کریم وریښم دی، یعنی نرم سورتونه دی۔ (المستدرك ٣٦٣٤) سکت عنه الذهبیؒ۔

د ابن مسعود ﷺ دا هم نقل شویدی : [رَوْضَاتٌ حِسَانٌ مُخْصَبَاتٌ مُتَجَاوِرَاتٌ مَنْ أَحَبَّ أَنْ يَّرْتَعَ فِيْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ فَلْيَقْرَأِ الْحَوَامِيْمَ) دا باغیچی دی، تروتازه، یو بل ته نزدے دی۔ څوك چه غواړی چه د جنت په باغیچو کښې وګرځی نو حوامیم دې ولولی۔ (القرطبی) وابن ابی شیبة بالفاظ متقاربة ۔ (٣٠٩١٥)

عبد الله بن عباس رضی الله عنهما فرمائی: (لِكُلِّ شَيْءٍ لُبَابٌ وَلُبَابُ الْقُرْآنِ حَوَامِيمُ) د هر شي يو مغز وي او د قرآن كريم مغز حواميم دي. (خطيب والخازن)
پدے روایاتو کښې ددے سورتونو ډیر لوی عظمت او فضیلت ذکر دے.
او ددے کمال دا دے چه په هر سورت کښې (سوئ د احقاف) نه نهه خبرے او څیزونه ذکر شویدی، په سورة المؤمن کښې نهه صفات د الله تعالیٰ ذکر دی، بیا سورة حم السجده کښې نهه صفات د قرآن ذکر دی، په الشوریٰ کښې نهه صفات د مؤمنانو ذکر دی. په الزخرف کښې نهه مدحے د قرآن ذکر دی. په الدخان کښې نهه بشارات د متقیانو دپاره ذکر دی، او په الجاثیه کښې د قرآن د منکرینو دپاره نهه عیبونه ذکر دی.

## مناسبت

۱- مخکښې سورت کښې ئے ووئیل چه اَلْعِبَادَةُ لِلّٰهِ وَحْدَهُ. بندګی به صرف د الله تعالیٰ کولے شي، نو دلته وائی (اَلدُّعَاءُ لِلّٰهِ وَحْدَهُ) دعاء به صرف د الله نه غوښتے شي. ﴿ فَادْعُوا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ﴾
۲- مخکښې قرآن ته ترغیب وو نو دلته هغه کسانو ته زجر ورکوی چه د الله تعالیٰ په کتاب کښې مُجادلین (جګړه کونکی) وی.
۳- د هغه سورت په ابتداء کښې ئے د قرآن کریم تعریف او مقصد ذکر کړے وو نو پدے سورت کښې د قرآن عظمت ذکر کوی.

## موضوع د سورت

۱- زمونږ مشائخ وائی چه پدے کښې رد د شرك فی الدعاء دے چه په (١٤) آیت کښې ذکر دے. ﴿ فَادْعُوا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ﴾ او پدے به دلائل راوړی او ددے متعلق خبرے به کوی.
۲- د تدبر نه بعد دا ښکاره کیږی چه پدے سورت کښې (اَلتَّحْذِيْرُ عَنِ الذُّنُوْبِ وَاَنْوَاعِهَا وَآثَارِهَا السَّيِّئَةِ) ذکر دے. یعنی ګناهونه او د هغے اقسام او د هغے بد آثار ذکر کیږی، او وائی چه ددے نه ځان وساتئ. د ګناه اثر دادے چه ټول پخوانی قومونه الله تعالیٰ ددے په وجه هلاك کړیدی.
دا وجه ده د ذنوب او سیئات لفظ پدے سورت کښې زیات ذکر کیږی. لکه (غَافِرِ

الذَّنبِ﴾ ﴿فَاغْفِرْ لِلَّذِيْنَ تَابُوْا﴾ ﴿وَقِهِمُ السَّيِّاٰتِ﴾ ﴿فَاعْتَرَفْنَا بِذُنُوْبِنَا﴾ ﴿فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ﴾ ﴿وَلَا الْمُسِيْءُ﴾ (٥٨) آيت۔

انواع الذنوب : ١- اَلْجِدَالُ فِيْ آيَاتِ اللهِ۔ د الله په آيتونو كښې جګړه كول۔

٢- التكذيب۔ ٣- الكفر۔ ٤- اَلشِّرْكُ بِاللهِ۔ ﴿وَاِنْ يُّشْرَكْ بِهٖ تُؤْمِنُوْا﴾

٥- دُعَاءُ غَيْرِ اللهِ۔ غير الله ته دعاء غوښتل۔

٦- اَلْكِبْرُ۔ (تكبر كول د حق نه) ﴿مِنْ كُلِّ مُتَكَبِّرٍ لَا يُؤْمِنُ بِيَوْمِ الْحِسَابِ﴾

٧- اَلْفَسَادُ۔ ٨- اَلْاِسْرَافُ وَالْاِرْتِيَابُ۔ په اسراف او په شك كولو به رد وى۔

٩- اَلْفَرَحُ وَالْمَرَحُ۔ (خوشحالى او تكبر كول)۔

١٠- اَلْاِسْتِهْزَاءُ بِالْحَقِّ۔ د حق پسے مسخرے كول۔ ١١- اَلْفَرَحُ بِالْعِلْمِ۔ د پيغمبر په مقابله كښې په خپل علم خوشحاليدل۔ ١٢- اِتِّبَاعُ الْبَاطِلِ۔ د باطل پسے روانيدل۔

د ګناهونو آثار : ١- شَدِيْدُ الْعِقَابِ۔ الله په ګناهونو سخت عذاب وركوى۔

٢- فَاَخَذْتُهُمْ۔ الله پدے باندے رانيول كوى۔ ٣- اَصْحَابُ النار۔ (جهنم ته لاړل)

٤- مقت او غضب د الله تعالىٰ پرے نازليږى۔ لنډه دا چه د دنيا او د آخرت څه مصيبتونه چه راځى دا په ګناهونو سره راځى، نو ګناه سپكه ګنړل هلاكت دے۔

او پدے سورت كښې به د علم خبره هم زياته كيږى، اشاره به وى چه ګناهونه څوك كوى دوى په الله تعالىٰ باندے جاهلان دى، علم ورسره نشته څكه ګناهونه كوى۔

خلاصه

د سورت په ابتداء كښې ترغيب الى القرآن دے، او د الله تعالىٰ نهه صفات ئے راوړيدى، د سورت د موضوع مطابق ئے غافر الذنب وقابل التوب راوړيدے۔ بيا ئے مجادلينو ته زجر وركړيدے، او د هغوى د دنيا او د آخرت عذاب ئے ذكر كړيدے۔ بيا د ملائكو حال ئے بيان كړيدے چه هغوى د مؤمنانو دپاره د مغفرت سوال كوى۔

| حٰمٓ ﴿١﴾ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللهِ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ﴿٢﴾ غَافِرِ |
|---|
| حا، ميم۔ نازلول ددے كتاب د طرف د الله نه دى چه زورور دے، پوهه دے۔ بخونكے |
| الذَّنْبِ وَقَابِلِ التَّوْبِ شَدِيْدِ الْعِقَابِ ذِى الطَّوْلِ |
| د ګناه دے، او قبلونكے د توبے دے، سخت عذاب وركونكے دے، خاوند د طاقت دے، |

لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ إِلَيْهِ الْمَصِيرُ ﴿۳﴾

نشته حقدار د بندګئ سوئ د هغهٔ نه خاص هغهٔ ته ورګرځیدل دی۔

**تفسیر** : حٰمٓ، حروفِ مقطعه دی، او الله ته معلومه ده چه ددے نه مراد څهٔ دے۔ البته دومره خبره مخکښې ذکر شویده چه پدے کښې د قرآن کریم حقانیت ته اشاره ده او دا غالبًا عربو دپاره یو قِسم چیلنج وو چه دا اِلٰهی کتاب د هغه حروفو نه مرکب (جوړ شوے) چه د هغے نه ستاسو کلام جوړیږی، او ستاسو دعویٰ هم ده چه تاسو په تمام عالَم کښې په ژبه باندے فوقیت لرئ، نو که دا کلام د یو انسان کلام دے، نو ددے پشان کلام راوړلو نه تاسو ولے عاجزه یئ؟ معلومه شوه چه دا د الله تعالیٰ کلام دے، چه هغهٔ دا د وحی په ذریعه په خپل رسول ﷺ نازل کړے۔

بعض علماؤ د تخمین په اندازه ددے تعیین داسے کړیدے چه دا د الله تعالیٰ نوم دے۔ یا د قرآن نوم دے۔ یا د الله تعالیٰ د نومونو اول حرف ته اشاره ده حاء کښې حلیم، حمید، حکیم، حنان۔ او میم کښې مالك، مجید، منان، متکبر، مُصَوِّر، مُؤمن، مُهَيْمِن۔ یا حِكْمَةُ الله او مِنَّةُ الله ته اشاره ده یعنی الله حکیم دے چه دا کتاب ئے د حکمة نه ډك رالیږلے دے، او دا د الله تعالیٰ په تاسو باندے احسان دے۔

تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ : یعنی دا کتاب د الله د طرفه نازل شوے، چه په خپلو تمامو مخلوقاتو باندے زورور دے، هیڅوك هم د هغهٔ په څهٔ اراده او حکم کښې د مداخلت هیڅ قدرت نهٔ لری، او هغه ډیر زیات د علم خاوند دے، خپل مخلوقات، د دوئ نیتونه، د دوئ عملونه او د دوئ ضروریات ښهٔ بهتر پیژنی۔

غَافِرِ الذَّنْبِ : بخونکے د ګناه دے۔ نو پدے کښې الله تعالیٰ بندګانو ته اعلان کوی چه زهٔ ګناه معاف کوم۔ مطلب دا چه راشئ ما ته توبه وباسئ ځکه چه ګناه ډیر بد شے دے۔

وَقَابِلِ التَّوْبِ : ګناه په توبه سره ختمیږی نو راشئ هغه ته توبه وباسئ۔

شَدِيْدِ الْعِقَابِ : او که توبه نهٔ وباسئ نو هغه سخت عذاب والا هم دے هغه چا دپاره چه د هغهٔ نافرمانی کوی او توبه نهٔ وباسی۔

ذِی الطَّوْلِ : که څوك ووائی چه زمونږ ګناهونه خو ډیر زیات دی نو دا به څنګه معاف کړی؟ نو الله فرمائی : ۱ – هغه ذات خاوند د فراخئ او د طاقت دے۔ لکه ﴿ وَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمْ طَوْلًا ﴾ (النساء: ۲۵) کښې د فراخئ او د مالدارئ معنیٰ ده۔

۲- طول په اصل کښې تفضل او انعام ته وئیلے شي. ذِي الْاِنْعَامِ عَلٰی عِبَادِهٖ - یعني ښه انعام او احسان کونکے دے په بندګانو. ۳- طول غنی (بے حاجتیٔ) ته هم وائی. یعنی خاوند دے حاجتیٔ دے د مخلوقاتو نه. (القرطبی وفتح البیان وابن کثیر)

٤- ذِیْ الْخَیْرِ الْکَثِیْرِ. ډیر خیر والا دے. (یزید بن الاصمّ- ابن کثیرؒ)

لَا اِلٰـهَ اِلَّا هُوَ: اشاره ده چه چا د الله تعالیٰ نه سویٰ بل اِلٰـه ونیولو نو دا د الله حقیقت رد کوی نو هغه غټ ګناهګار دے. [اَیُّ الذَّنْبِ عِنْدَ اللّٰهِ قَالَ : اَنْ تَدْعُوَ لِلّٰهِ نِدًّا وَهُوَ خَلَقَكَ].

اِلَیْهِ الْمَصِیْرُ : الله تعالیٰ ته ورګرځیدل دی نو الله تعالیٰ به درسره په ګناهونو حساب کوی نو ځکه د ګناهونو نه توبه وباسه.

| مَا یُجَادِلُ فِیْٓ آیَاتِ اللهِ اِلَّا الَّذِیْنَ کَفَرُوْا |
| --- |
| جګړه نهٔ کوی په آیتونو د الله تعالیٰ کښې مګر هغه کسان چه کفرئے کړیدے |
| فَلَا یَغْرُرْكَ تَقَلُّبُهُمْ فِی الْبِلَادِ ﴿٤﴾ کَذَّبَتْ |
| نو دهوکه دِے درنکړی تا ته اوړیدل راوړیدل د دوی په ښارونو کښې. تکذیب کړے وو |
| قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوْحٍ وَّالْاَحْزَابُ مِنْۢ بَعْدِهِمْ |
| مخکښې د دوی نه قوم د نوح عليه السلام او نورو مخالفو ډلو روستو د دوی نه |
| وَهَمَّتْ کُلُّ اُمَّةٍۢ بِرَسُوْلِهِمْ لِیَاْخُذُوْهُ |
| او قصد کړے وو هر امت په باره د رسول خپل کښې چه راوے نیسی هغه (د |
| وَجَادَلُوْا بِالْبَاطِلِ لِیُدْحِضُوْا بِهِ الْحَقَّ |
| وژلو دپاره) او جګړه ئے کړیده په باطل سره دپاره ددے چه دیکه کړی پدے سره حق |
| فَاَخَذْتُهُمْ فَکَیْفَ کَانَ عِقَابِ ﴿٥﴾ وَکَذٰلِكَ حَقَّتْ |
| نو راونیول ما دوی لره نو څنګه شو عذاب زما (دوی لره). او دغسے ثابته شویده |
| کَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَی الَّذِیْنَ کَفَرُوْٓا اَنَّهُمْ اَصْحَابُ النَّارِ ﴿٦﴾ |
| فیصله د رب ستا په هغه کسانو چه کفرئے کړیدے چه بیشکه دوی اُور والا دی. |

**تفسیر:** ربط :

الله تعالیٰ کتاب نازل کړو پدې باندې د بندګانو اصلاح کوی دې دپاره چه بندګان ددې نه هدایت او رڼا حاصله کړی، نو بعض خلك ددې مخې ته ودرېږی، او ددې د آیتونو د رد کولو او د دروغژن ګنړلو هر قسم ممکن کوشش کوی، او ددې شمعې د مړ کولو دپاره پوره قوت صرف کوی، نو هغوی ته زجر او رټنه ورکوی. او دا دویم قسم دې د ګناهونو نه چه هغه جدال فِیْ آیاتِ الله دې.

مَا یُجَادِلُ فِیْ آیَاتِ اللهِ : د الله په هغه آیتونو کښې چه هغه د الله په وحدانیت، د قیامت په راتللو او د نبی کریم ﷺ په رسالت باندې دلالت کوی، په هغې کښې جګړې نکوی او شکوك او شبهات نهٔ پیدا کوی، او پدې باندې اعتراضونه نهٔ کوی مګر هغه خلك چه هغوی په حقیقت کښې کافران وی، دوی اصل کښې الله نهٔ منی ځکه د هغه د آیتونو نه انکار کوی. دا دلیل دې چه د الله تعالیٰ په آیتونو کښې جګړې کول او ددې د خکته کولو دپاره باطل دلیلونه وئیل کفر دې.

دا سورت مکی دې، او په مکه کښې قتال نهٔ وو نو د جدال نه مراد د خولې چالاکی ده، او خپل مخالف پړ کول او ځان پرې غالبه کول دی، نو دلته د جدال نه مراد په قرآن باندې طعنونه وئیل چه دا شعر دې یا جادو دې یا کهانت دې، او پدې باندې شکوك او شبهات او اعتراضات کول او دې ته جدال بالباطل وائی چه پدې سورت کښې په مختلفو تعبیرو سره ذکر دې. په (٥) (٣٥) او (٥٦) آیت کښې ذکر دې.

فَلَا یَغْرُرْكَ تَقَلُّبُهُمْ فِی الْبِلَادِ : یعنی اې زما نبی! د دوئ د دنیوی نعمتونو او د صحت او عافیت په لیدلو سره دِې تهٔ په دهوکه کښې ونهٔ غورزېږې چه ګنې الله تعالیٰ دوئ نه خوشحاله دې، بلکه هغهٔ د دوئ رسئ راسسته کړې ده چه دوئ په کبر او عناد کښې څو مره حده پورې مخکښې ځی. د سورتِ آلِ عمران په (١٩٦، ١٩٧) آیتونو کښې الله تعالیٰ فرمایلی : ﴿لَا یَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا فِی الْبِلَادِ مَتَاعٌ قَلِیْلٌ ثُمَّ مَأْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمِهَادُ﴾ (تالره دِې د کافرانو په ښارونو کښې تلل راتلل په دهوکه کښې ونهٔ غورزوی. دا خو ډیره زیاته کمه فائده ده، دې نه پس د دوئ د اُوسیدو ځائې جهنم دې، او دا ډیر خراب ځای دې).

تقلب باب تفعل دې په معنیٰ کښې ئې تکلف دې یعنی دوی اګرکه جائیدادونه او مالونه او تجارتونه او لښکرې لری لیکن پدې کښې د دوی دپاره سکون او اطمینان نشته بلکه پدې سره به په پریشانئ او تکلیفونو کښې وی.

او دا جواب د وَهم دے چه كه دا مجادلين كافر وے او په غلطه وے نو په دنيا كښې به دوی مالداره نهٔ وے او مزے به ئے نهٔ كولے؟ جواب وشو چه دا مزے نهٔ دی بلكه امتحان دے، او سبب د پريشانئ دے او دوی به په خپل وخت كښې الله تعالىٰ راګيروی۔

د فَلَا يَغْرُرْكَ: يوه معنىٰ دا هم ده (غَيْرَ مَأْخُوذِيْنَ بِذُنُوْبِهِمْ) يعنى تا دې دوكه نكړی د دوی ګرځيدل په ښارونو كښې، او تصرف د دوی په تجارتونو كښې چه ګنې دوی به په ګناهونو باندے نهٔ رانيولے كيږی بلكه په خپل وخت به رانيولے كيږی۔ او پدے كښې رسول الله ﷺ ته تسلى او كفارو ته دهمكى ده چه د دوی انجام د هلاكت دے۔

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ: اُوس مثال د هلاكت د مجادلينو بيانوی په ذكر د تير شوو قومونو۔ او دا تخويف دنيوی دے۔ او د پخوانو درے مرضونه ئے ذكر كړيدی يو تكذيب او دويم تكليف وركول رسولانو ته۔ او دريم جدال بالباطل۔

يعنى د قريشو كافرانو نه مخكښې قومِ نوح، او د دوئ نه پس قومِ عاد او ثمود، قومِ ابراهيم او لوط، مدين والو او فرعونيانو هم خپل رسولان دروغژن ګنړلی وو، او هر يو دوئ وژل وغوښتل، او د باطلو دلائلو په ذريعه ئے د حق آواز ښكته كول وغوښتل، نو الله تعالىٰ په دوئ كښې هر يو له د عذاب په ذريعه تباه كړل، او دا عذاب ډير سخت او دردناك وو۔

وَهَمَّتْ كُلُّ أُمَّةٍ بِرَسُوْلِهِمْ: هر امت خپل رسول دپاره هَمّ او اراده او قصد كړيدے ليكن بيا دا هَمّ او قصد د دوی كله نا كله ځای ته رسيدلے او كله نهٔ دے، نو بعضو د دوی نه پيغمبران وژلی دی او بعضو تړلی دی او د بعضو نه خلاص شويدی۔

لِيَأْخُذُوْهُ: د رانيولو نه مراد دا چه په هغه باندے قدرت ومومی نو جيل ته ئے واچوی او عذاب وركړی او څه چه پرے دوی غواړی هغه پرے وكړی۔

قتادَه او سُدِّی وائی (لِيَقْتُلُوْهُ) دے دپاره چه هغه قتل كړی۔ او عرب اخذ (رانيول) د قيد كولو دپاره هم استعمالوی لكه قيدی ته اَخِيْذ (نيولے شوے) وائی۔

وَجَادَلُوْا بِالْبَاطِلِ: د باطل نه مراد باطل دين او باطل شبهات دی۔

يحيى بن سلامؒ وائی: دوی به جګړے د انبياؑ سره په شرك باندے كولے دے دپاره چه په هغے سره ايمان ختم كړی۔

لكه ډير خلك د حديثو مخے ته دا تاويلات وړاندے كوی چه دا منسوخ شويدی او دا پخوانو خلكو دپاره وو، او دا يو كرت شويدی او بيا پريخودے شويدی۔ او كله په مانځه

کښې د رفع الیدین د باطل کولو دپاره وائی چه پخوانو به بتان په ترخ کښې نیولی وو نو رسول الله ﷺ ددے دپاره وکړل چه د دوی نه بتان پریوزی۔ داسے ډکوسلے خوشے کوی۔
لِيُدۡحِضُوۡا: دحض دیکه کول او زائله کول دی۔
فَكَيۡفَ كَانَ عِقَابِ : نو هغوی دپاره زما سزا څنګه شوه نو دغه شان به دا موجوده کفار هم راګیروم، او سخته سزا به ورکوم۔ ځکه چه اُوسنی کافران د مخکنو سره په صفاتو کښې شریك دی نو په عذاب کښې به هم شریك وی ځکه چه د الله اصول د ټولو دپاره یو شان دی۔
وَكَذٰلِكَ حَقَّتۡ كَلِمَتُ رَبِّكَ: دا خو د دنیا عذاب وو اُوس د آخرت عذاب بیانوی۔
اَیۡ كَمَا اَنۡزَلَ الۡعَذَابَ الدُّنۡيَوِيَّ ۔ یعنی لکه څنګه چه الله دنیا کښې عذاب په کافرانو راوستو نو دغه شان فیصله د رب ستا ثابته شویده په هغه خلکو چه په تا باندے کفر کوی چه دوی به اُور ته ځی۔ او دا د ﴿ خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوۡبِهِمۡ ﴾ په شان دے یعنی د دوی په زړونو باندے ئے د دوی د ګناهونو په وجه مهر وهلے دے نو جهنم ته به ځی، ځکه چه دوی ضد کوی، نو پدے کښې اشاره ده چه څوك ضد کوی، نو ضدی ته الله تعالیٰ هدایت نکوی۔ او دا دلیل دے چه جدال عناد دے او عناد سبب دے د محرومه کیدو د هدایت نه۔
رَبِّكَ: ابوالسعودؒ وائی : دلته ئے اضافت د رب وکړو ضمیر د رسول الله ﷺ ته، پدے کښې اشاره ده چه فیصله د عذاب په کافرانو باندے ثابتیدل د الله تعالیٰ د مضبوط تربیت نه دی ځکه چه الله تعالیٰ خپل نبی سره وعده کړیده چه د هغهٔ مدد به کوی په مقابله د دشمنانو د هغهٔ کښې او هغوی ته به سزا ورکوی۔

| اَلَّذِيۡنَ يَحۡمِلُوۡنَ الۡعَرۡشَ وَمَنۡ حَوۡلَهٗ |
|---|
| هغه ملائك چه پورته کوی عرش او هغه څوك چه ګیرچاپیره دی د هغے نه |
| يُسَبِّحُوۡنَ بِحَمۡدِ رَبِّهِمۡ وَيُؤۡمِنُوۡنَ بِهٖ |
| تسبیح وائی سره د حمدونو د رب د دوی نه او ایمان لری په هغهٔ باندے |
| وَيَسۡتَغۡفِرُوۡنَ لِلَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا رَبَّنَا وَسِعۡتَ |
| او بخنه غواړی دپاره د هغه کسانو چه ایمان ئے راوړیدے اے ربه زمونږ فراخه ئے ته |

| |
|---|
| كُلَّ شَيْءٍ رَّحْمَةً |
| هر شی ته په اعتبار د رحمت او د علم سره (تا فراخه کړیدے هر شی ته رحمت |
| وَّعِلْمًا فَاغْفِرْ لِلَّذِيْنَ تَابُوْا وَاتَّبَعُوْا |
| او علم) نو بخنه اُوکړه هغه کسانو ته چه توبه ئے ویستلے ده او تابعداری ئے کړیده |
| سَبِيْلَكَ وَقِهِمْ عَذَابَ الْجَحِيْمِ ﴿٧﴾ رَبَّنَا وَاَدْخِلْهُمْ |
| د لارے ستا او بچ اُوساته دوی لره د عذاب د اُور نه۔ اے ربه زمونږ او داخل کړه دوی لره |
| جَنّٰتِ عَدْنِ نِ الَّتِيْ وَعَدْتَّهُمْ وَمَنْ صَلَحَ |
| جنتونو د همیشوالی ته هغه چه وعده کړیده تا د دوی سره او هغه څوك چه موافق |
| مِنْ اٰبَآئِهِمْ وَاَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّيّٰتِهِمْ اِنَّكَ اَنْتَ |
| دی (دوی سره) د پلارانو د دوی نه او د ښځو د دوی نه او د اولادو د دوی نه یقیناً ته |
| الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٨﴾ وَقِهِمُ السَّيِّاٰتِ |
| زورور حکمتونو والائے۔ او اُوساته دوی لره د بد انجامونو نه (د گناهونو نه) |
| وَمَنْ تَقِ السَّيِّاٰتِ يَوْمَئِذٍ فَقَدْ |
| او هغه څوك چه ته بچ اُوساتے د بدو انجامونو نه (د گناهونو نه) نو یقیناً |
| رَحِمْتَهٗ وَذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿٩﴾ |
| رحم اُوکړو تا په هغهٔ باندے او دا کامیابی لویه ده۔ |

**تفسیر** : دا د (وَغَافِرِ الذَّنْبِ) تشریح ده۔ ددے آیت یو عنوان دا دے چه پدے آیت کښې الله تعالیٰ د ملائکو احوال بیانوی چه دوی عرش پورته کوی، ایمان لری، استغفار غواړی، مؤمنانو ته دعا کوی، او په گناهونو باندے ډیر خفه کیږی۔ ددے مناسبت دا دے چه گناه عامو انسانانو ته دومره بدی نهٔ ښکاره کیږی بلکه ملائکو ته ډیره بده ښکاری ځکه چه دا هغه مخلوق دے چه الله پیژنی، او کوم مخلوق چه الله پیژنی نو هغوی ته د هغهٔ نافرمانی ډیره غټه ښکاره کیږی۔ هغوی خپله گناه نهٔ کوی لیکن د مومنانو دپاره

بخنه غواړي چه اے الله ! دوی نه گناهونه شویدي، که دوی ته معافي ونشي نو دوی خو به تباه شي نو اے الله ! دوی ته بخنه وکړه۔ پدے کښې مونږ ته اشارات دي چه ملائك د گناه په باره کښې دومره فکر مند دي، نو تۀ فکر مند شه، او کافرو ته دعوت دے چه تاسو په گناهونو کښې اخته يئ نو راشئ د گناهونو نه توبه کړئ او د کاميابئ په لاره راشئ۔ ﴿وَمَنْ تَقِ السَّيِّـَٔاتِ يَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمْتَهُ وَذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ﴾۔

**دويم عنوان** : پدے آيتونو کښې موحدينو مؤمنانو ته بشارت ورکوی پس د هغے نه چه منکرينو ته ئے تخويف ورکړو۔ نو مخکښې ئے د کافرانو د مؤمنانو سره دشمنی ذکر کړه نو اُوس د ملائکو شفقت او دوستانه د مؤمنانو سره ذکر کوی دپاره د تسلئ د دوی۔ (احسن الکلام) **دريم عنوان** : کوم خلق چه په الله او د هغۀ په رسول ايمان راوړي، او د ايمان او نيك عمل لاره اختيار کړي، د دوئ انجام به په خير سره وي ځکه چه د عرش پورته کونکي مقرّب ملائك د دوی دپاره بخنه غواړي۔

**يَحْمِلُوْنَ الْعَرْشَ**: د الله تعالىٰ عرش اُوس څلورو ملائکو پورته کړيدے، او د قيامت په ورځ به ورسره څلور نور ملګري کړي نو اته ملائکو به پورته کړے وي، لکه سورة الحاقه (۱۷) آيت کښې دي: ﴿وَيَحْمِلُ عَرْشَ رَبِّكَ فَوْقَهُمْ يَوْمَئِذٍ ثَمٰنِيَةٌ﴾ او دا په ټولو ملائکو کښې اشرف او افضل دي ځکه چه الله تعالىٰ ته نزدے دي۔

الله تعالىٰ په خپل امر سره هم عرش پورته کولے شي ليکن پدے کښې د الله تعالىٰ عظمت دے چه ملائك ئے په خدمتونو لګولي دي، دهريه خلك پدے راز نۀ پوهيږي پدے وجه اعتراض کوی چه الله تعالىٰ په هر څه قادر دے، نو بيا ملائك ئے ولے پيدا کول؟ نۀ، بلکه پدے کښې د الله تعالىٰ عظمت، د هغۀ هيبت ته اشاره ده چه د الله تعالىٰ امر په داسے غټ مخلوق باندے هم چليږي، او د ملائکو په پيدا کولو کښې نور ډير حکمتونه دي، د الله تعالىٰ بندګي کوی، د هغۀ امر مني، د هغۀ تعظيم کوی، د هغۀ احترام کوی، د هغۀ د دوستانو سره دوستي کوی۔

**وَمَنْ حَوْلَهٗ**: د عرش نه ګير چاپيره ملائکو نوم په رواياتو کښې کَرُوْبِيِّيْن ذکر شويدے او دا هغه ملائك دي چه د عرش نه ګير چاپيره طواف کوی، لا اله الا الله او تکبيرونه وائي او دا (وَمَنْ حَوْلَهٗ) عطف دے په (اَلَّذِيْنَ) باندے نۀ په (الْعَرْشَ) باندے، لکه همدا ظاهر ده او معنىٰ دا ده چه د عرش پورته کونکي ملائك او د عرش نه ګيره اچونکي ملائك ټول د الله پاکي بيانوی، او د الله تعالىٰ په نعمتونو باندے حمدونه وائي، او په الله باندے په

خپل بصیرت سره ایمان راوړی او د الله د بندګانو مؤمنانو دپاره بخنه غواړي.
وَيُؤْمِنُونَ بِهٖ : ملائك خو هسے هم ایمان په الله راوړی، نو بیا ئے جدا ولے ذکر کړو؟ جواب دا دے چه دا ئے ذکر کړو دپاره د اظهار د فضیلت د ایمان، او دپاره د تعظیم د ایمان والو.

ملائك هم الله تعالیٰ لره نهٔ وینی بلکه هغوی ته ایمان په تجلیّ اِلٰهی سره ملاؤ شویدے. او يُؤْمِنُونَ بِهٖ معنیٰ دا هم ده چه الله تعالیٰ یواځے ذات دے، او هغه موجود دے. پدے کښ به اشاره وی چه کفر ډیر بد شے دے ځکه چه دا د ملائکو د صفت ضد دے. لکه دا سورت به ایمان او طاعت ته هم دعوت ورکوی.
وَيَسْتَغْفِرُوْنَ لِلَّذِيْنَ : دا آیت دلیل دے چه څوك تا سره په ایمان کښ شریك وی نو پکار ده چه ته هغه دپاره خیر خواه شے او په هغهٔ باندے شفقت وکړے او هغهٔ دپاره غائبانه دعاء وکړے لکه چه ملائك د مؤمنانو دپاره خیر خواهی کوی حال دا چه هیڅ فائده ئے ترے نشته. او اشاره ده چه اشتراك په عقیده د توحید کښ سبب د محبت او د خیر خواهئ دے. او پدے کښ د ګناه بدئ ته هم اشاره ده چه ملائکو ته دا ډیره بده ښکاری پدے وجه ایمان والو دپاره بخنه غواړي. بلکه پدے کښ تشبه بالملائکه ده لکه چه ملائك تاسو له استغفار غواړی نو تاسو له هم پکار دی چه ځانله استغفار وغواړئ.
رَبَّنَا وَسِعْتَ كُلَّ شَيْءٍ رَّحْمَةً وَّعِلْمًا : یعنی اے الله ! ستا هر شی ته رحمت او علم فراخه دے. دا ئے وسیله راوړه. او رحمت ئے په علم مقدم کړو سره ددے نه چه علم مقدم دے په رحمت باندے، پدے کښ اشاره ده چه رحمت مقصود بالذات دے ځکه چه دا مقام د استغفار دے، او د استغفار سره رحمت مناسب دے. او بیا رحمة او علم په اصل کښ فاعل د وَسِعْتَ دی، لیکن فاعل ئے الله تعالیٰ وګرځولو او رحمت او علم ئے د تمیيز په صورت کښ راوړل پدے کښ اشاره ده چه الله تعالیٰ په رحمت او علم کښ بے اختیاره نهٔ دے.
وَاتَّبَعُوْا سَبِيْلَكَ: د لارے نه مراد د اسلام لاره ده، او بیا پکښ ضمناً د علم او د جهاد لاره هم داخلیږی چه څوك علم یا جهاد ته وځی نو ملائك ورته دعاء کوی.
په (تَابُوْا) کښ اشاره ده عقیدے د توحید او د شرك نه ځان ساتلو ته او په (وَاتَّبَعُوْا) کښ اشاره ده عمل صالح ته.

وَقِهِمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ: پدے کښې اشاره ده کامل مغفرت ته یعنی داسے مغفرت ورته وکړه چه د عذاب هیڅ استحقاق پکښې پاتے نشي۔

رَبَّنَا وَاَدْخِلْهُمْ: مخکښې د عذاب نه د خلاصیدو تذکره وشوه نو اوس د کامل ثواب تذکره کوي۔

وَمَنْ صَلَحَ: یعنی چا چه ددهٔ په عقیده د توحید کښې موافقت کړیدے یعنی پلار، ښځه او اولاد، اګر که مجاهده به ئې ددهٔ په شان نهٔ وي لیکن دوی به د هغهٔ د پوره خوشحالولو دپاره د هغه سره په جنت کښې یو ځای کړی شي۔ لکه دا خبره په سورة رعد (۲۳) آیت کښې ذکر شویده۔

وَقِهِمُ السَّيِّئَاتِ: د ګناهونو نه ساتل په دوه قسمه دي، یو په راتلونکی زمانه کښې د ګناهونو کولو نه ساتل دي۔ دویم د روستو جملے نه معلومیږي چه دوی کوم زاړهٔ ګناهونه کړیدي د هغے د اثر نه ئې بچ کړه۔ اَیْ وَقِهِمْ اَثَرَ السَّيِّئَاتِ الْمَاضِيَةَ۔ یعنی دوی د تیر شوي ګناهونو د اثر نه بچ وساته یعنی دا ورله محوه او معاف کړه۔

وَمَنْ تَقِ السَّيِّئَاتِ: یعنی هغه څوك چه ته ئې د قیامت په ورځ د ګناهونو نه بچ وساتے یعنی ګناه ورته ښکاره نهٔ کړے، ګناه ئې معاف کړے۔ چه ددے په وجه په قیامت کښې ونهٔ شرمیږي۔ نو پدے کښې تکرار نشته د (وَقِهِمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ) سره۔ نو ددے مفهوم دا دے چه کوم انسان چه د ګناه نه ونهٔ ساتې او ګناهونه ورته راښکاره کړي چه دا دِے ولے کول؟ نو دا د تباهئ سره مخامخ شو۔

وَذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ: یعنی د ګناه نه بچ کیدل ډیره لویه کامیابی ده۔

قرطبیؒ د خلف بن هشامؒ روایت راوړیدے چه ما په سُلیم بن عیسیٰؒ باندے قرآن لوستلو چه دے آیت ته راورسیدم نو هغه اُوژړل او وے وئیل چه اے خَلَفْه ! مؤمن د الله تعالیٰ په نیز څومره ګران دے چه دے په بستره باندے اُوده پروت وي او ملائك ورله بخښنه غواړي۔

او پدے آیت کښې ډیر لوی بشارتّ دے ایمان والو دپاره ځکه چه د یو ملائك دعاء مستجابه ده، نو کله چه د مؤمن دپاره ټول مُقرّب ملائك دعا غواړي نو هغه به ضرور قبلیږي۔

مطرف بن عبد اللهؒ وائي چه د الله تعالیٰ د بندګانو دپاره د ټولو نه زیات خیر خواه ملائك دي، او د ټولو نه زیات بد خواه شیطانان دي۔ هغهٔ دا خبره د همدے آیت له مخه کړے۔

| |
|---|
| إِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يُنَادَوْنَ |
| يقيناً هغه کسان چه کفرئے کړيدے آواز به کولے شي دوی ته (د قيامت په ورځ) |
| لَمَقْتُ اللّٰهِ اَكْبَرُ مِنْ مَّقْتِكُمْ اَنْفُسَكُمْ |
| خامخا غصه د الله تعالىٰ ډيره لويه وه د غصے ستاسو نه ځانونو خپلو ته (اوس) |
| إِذْ تُدْعَوْنَ إِلَى الْإِيْمَانِ فَتَكْفُرُوْنَ ﴿۱۰﴾ قَالُوْا |
| کله چه به تاسو رابللے شوئ ايمان ته نو تاسو به کفر کولو (په دنيا کښې)۔ وبه وائي |
| رَبَّنَا اَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ وَاَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ فَاعْتَرَفْنَا |
| دوی اے ربه زمونږ! وژلی وو تا مونږ دوه ځله او ژوندی کړی دے وو دوه ځله نو اقرار |
| بِذُنُوْبِنَا فَهَلْ إِلٰى خُرُوْجٍ مِّنْ سَبِيْلٍ ﴿۱۱﴾ ذٰلِكُمْ |
| اوکړو مونږ په ګناهونو خپلو نو آيا شته دے وتلو ته (د جهنم نه) څه لاره۔ دا |
| بِاَنَّهٗ إِذَا دُعِيَ اللّٰهُ |
| (هميشوالے ستاسو په جهنم کښې) پدے وجه دے چه کله به رابللے شو الله تعالىٰ |
| وَحْدَهٗ كَفَرْتُمْ وَإِنْ يُّشْرَكْ بِهٖ |
| په يو والي سره (نو) کفر به کوو تاسو، او که چرته شرك به کيدے شو د هغهٔ سره (نو) |
| تُؤْمِنُوْا فَالْحُكْمُ لِلّٰهِ الْعَلِيِّ الْكَبِيْرِ ﴿۱۲﴾ |
| تاسو به يقين کولو (ددغه شرك) نو اختيار خاص د الله دے چه اوچت دے، لوئي دے۔ |

**تفسير**: پدے آيت کښې د کافرانو غټه ګناه بيانوی۔ د آخرت ورځ چه کله راشی نو الله تعالىٰ به د کافرو سره حساب کوی په دوه غټو ګناهونو باندے، يو په کفر او بل په شرك باندے، د مخکښې آيت سره ئے تعلق دے (وَمَنْ تَقِ السَّيِّاٰتِ) دا هغه خلك دے چه الله د ګناهونو نه نهٔ دی ساتلی نو د دوئ حال به داسے وی۔

دارنګه مخکښې د مؤمنانو او د هغوی جنت ته د داخليدو حال بيان شو، اوس په جهنم کښې د کافرانو حال بيانولے شي۔ دے دپاره چه ترغيب او ترهيب کامل شي۔ دارنګه

مخکښې ئې ووېل چه کافران اُور والا دي، او دوی باندې فیصله د عذاب ثابته شویده، نو اُوس د دوی په جهنم کښې دننه حال بیانوی۔ جهنم والا چه کله د عذاب د سختیو نه تنګ راشي، د دوئ شکلونه بدل شي، او د دوئ مخونه اوسوزي او هیبتناك او بدرنګ شي، نو د دوئ به د خپلو ځانونو نه نفرت راشي، او په دنیا کښې په خپلو بدعملونو باندې به خپل ځانونه ملامته کوي، او ځانونو ته به سخت غصه وي، او کله به چه ملائك د دوئ خبرې واوري، نو وبه وائی چه په دنیا کښې ستاسو د کفر او تکبر کولو او د توحید او رسالت نه د انکار کولو په وجه الله تعالیٰ چه تاسو ته کوم غصه وو او ستاسو نه ئې بغض او نفرت وو، هغه ددې نه ډیر زیات وو کوم چه د اُور د عذاب په وجه ستاسو د خپلو ځانونو نه دې۔

يُنَادَوْنَ: یعنی دوی ته آواز کیږی د طرفه د الله تعالیٰ او د ملائکو نه۔

لَمَقْتُ اللهِ: یعنی د الله تعالیٰ غصه په تاسو باندې په دنیا کښې ډیره لویه وه د غصې ستاسو نه چه تاسو اُوس ځانونو ته کوم غصه یئ۔ کله چه به تاسو ته د ایمان دعوت درکړې کیدو او تاسو به کفر کولو۔

او دا آیت دلیل دې چه مقت د الله تعالیٰ صفت دې څرنګ چه د هغهٔ د شان سره مناسب وی او عربي معنیٰ ئې ده سخته غصه او بغض۔

إِذْ تُدْعَوْنَ إِلَى الْإِيمَانِ : دې نه معلومه شوه چه مؤمنانو به کافرانو ته د توحید او د ایمان دعوت ورکولو۔

دې نه معلومیږی چه کله تهٔ چا ته د ایمان او د توحید او د سنت دعوت ورکړې او هغه انکار او ضد وکړي، نو دغه وخت الله تعالیٰ دې انسان ته سخت غصه وی چه دې به په جهنم کښې ځان ته دومره نهٔ وی غصه۔

قَالُوا رَبَّنَا أَمَتَّنَا: اُوس به کافران د خپلو جرمونو اقرار وکړي۔

دوه مرګونو نه مراد یو پخوا نشتوالې دې، دنیا ته د راتللو نه مخکښې، او دوېم په دنیا کښې مرګ دې، او دوه ژوندونو نه مراد یو په دنیا کښې دې او بل په آخرت کښې دې۔ دلته ئې د قبر ژوند پکښې ذکر نهٔ کړو ځکه چه د قبر ژوند د خوب د ژوند په شان دې، یوه پرده ده د دنیا او د آخرت ترمینځ، مستقل او حقیقی ژوند نهٔ دې۔ او د برزخ ژوند د وَلَكِنْ لَا تَشْعُرُونَ ژوند دې۔

بیا جهنمیان دا مقدمه ولې ایږدي چه تا مونږ ته دوه مرګه او دوه ژوندونه راکړل اُوس

مونږ اقرار کوو۔ نو ددې نه مقصد ئې دا دې چه اې الله ! یو دریم ځل هم چانس او موقعه راکړه۔ ځکه چه تهٔ په دغه دوو باندې قادر وې نو په دریم ژوند راکولو هم قادر ئې۔ (فتح البیان) او دا مقدمه پدې وجه هم اړدی چه پدې کښې د الله تعالیٰ د عظمت اقرار وکړی چه کیدې شي چه د دوی خبره ومنلې شي۔ (ابن کثیرؒ)

فَاعْتَرَفْنَا بِذُنُوبِنَا : اُوس ورته د ګناه بد والې او سپیرهٔ والې ښکاره شو۔ نو دوی په داسې وخت کښې اقرار وکړو چه فائده ورله نهٔ ورکوی، او داسې وخت کښې پښیمانه شو چه پښیمانتیا ورله نفع نهٔ ورکوی۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه د محشر په میدان کښې چه کله کافران د الله تعالیٰ مخې ته اُودریږی نو دوباره به دنیا طرفته واپسی غواړی۔ د سورتِ سجدې په (۱۲) آیت کښې الله تعالیٰ فرمایلی : ﴿وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الْمُجْرِمُونَ نَاكِسُوا رُءُوسِهِمْ عِندَ رَبِّهِمْ رَبَّنَا أَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا فَارْجِعْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا إِنَّا مُوقِنُونَ﴾ (کاش! تا لیدلې وې کله چه ګنهګارو خلق د خپل رب مخې ته سر ښکته کړې وی، وائی به : اې زمونږ ربه ! مونږ اولیدل او وامو ریدل، اوس تهٔ مونږ واپس کړه، مونږ به نیک عملونه اوکړو، مونږ یقین کونکی یو)۔

لیکن دوئ ته به څهٔ جواب نهٔ ملاویږی۔ بیا چه کله اُور خپلو سترګو سره اُووینی نو د مخکښې نه به زیاته زاریٔ سره سوال کوی، لیکن دوئ ته به هیڅ جواب نهٔ ملاویږی۔ الله تعالیٰ د سورتِ انعام په (۲۷) آیت کښې فرمایلی : ﴿وَلَوْ تَرَىٰ إِذْ وُقِفُوا عَلَى النَّارِ فَقَالُوا يَا لَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِآيَاتِ رَبِّنَا وَنَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ (که چرې تهٔ هغه وخت اوګورې کله چه دوئ دوزخ خواته اودرولې شي، نو وائی به : آرمان دې چه څهٔ ښه به وې چه مونږ واپس اولیږلې شو، اوکه چرې داسې اوشی نو مونږ به د خپل رب آیتونه دروغژن نهٔ ګنړو، او مونږ به د ایمان والو نه شو)۔

بیا چه کله په اُور کښې داخل کړې شي او د هغې سختیٔ برداشت کړی، او د دوئ حالت د بیانولو نه بدتر شی، نو چغې او سورې به وهی او وائی به : ﴿رَبَّنَا أَخْرِجْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا غَيْرَ الَّذِي كُنَّا نَعْمَلُ﴾ (اې زمونږ ربه ! مونږ ددې نه اوباسه، مونږ به ښهٔ کارونه اوکړو، په خِلاف د هغه کارونو چه مونږ به کول)۔ (فاطر : ۳۷)۔

ذَٰلِكُم بِأَنَّهُ إِذَا دُعِيَ اللَّهُ : پدې کښې د دوئ سوال رد کول دی، الله به دوئ ته ووائی چه ستاسو خبیث فطرتونه د حق قبلولو صلاحیت نهٔ لری، تاسو خو په دنیا کښې چه کله الله طرفته رابللې شوئ نو انکار به مو کولو، او کله به چه د هغهٔ سره نور څوک شریک

جوړولے شو، نو هغے ته به مو سمدست سرونه ښکته کول۔ دے وجے نه که دوباره هم تاسو دنیا ته ولیږلے شئ، نو د الله تعالیٰ د توحید نه به انکار وکړئ او هغهٔ سره به نور څوك شریکان جوړ کړئ۔ ستاسو په باره کښې د عذاب حتمی فیصله شوے، د خلاصی هیڅ لاره نشته، اُوس خپل ځان ملامته کړئ، او په خپلے بدبختئ باندے وژاړئ، لیکن دے ټولو خبرو سره اُوس هیڅ فائده نهٔ کیږی، او په عذاب کښې هیڅ کمے نهٔ کیږی۔

ذٰلِكُمْ: دا دوه څیزونو ته اشاره ده۔

۱- دا ستاسو خلود (همیشوالے په جهنم) کښې پدے وجه دے۔

۲- یا اشاره ده دغه مقت ته۔ یعنی د الله تعالیٰ غصه په تاسو باندے پدے وجه هم ده چه تاسو به په شرك خوشحالیدئ او په توحید به خفه کیدئ۔ اوله معنی ظاهره ده۔

فَالْحُكْمُ لِلّٰهِ: یعنی نن د فیصلے اختیار صرف د الله تعالیٰ سره دے، او هغهٔ دا فیصله کړیده چه د کافرانو دوباره دنیا ته واپسی نشی کیدے۔

الْعَلِيِّ: الله تعالیٰ پورته او اُوچت ذات دے نو د هغهٔ سره څوك برابر نشته چه د هغهٔ فیصله ماته کړی۔

الْكَبِيرِ: الله تعالیٰ لوی دے ددے نه چه د هغهٔ څوك مُمَاثِل او مُشابه او شریك او ښځه او څوی راشی، د هغهٔ شریك ته هیڅ ضرورت نشته۔

| هُوَ الَّذِىْ يُرِيْكُمْ آيَاتِهٖ وَيُنَزِّلُ لَكُمْ مِنَ السَّمَآءِ |
|---|
| خاص الله هغه ذات دے چه دربنائی تاسو ته نخے خپلے او رالیږی تاسو ته د آسمان نه |
| رِزْقًا وَمَا يَتَذَكَّرُ إِلَّا مَنْ يُّنِيْبُ ﴿١٣﴾ |
| رزق (باران)، او نصیحت نهٔ اخلی مگر هغه څوك چه ورگرځی (الله ته)۔ |
| فَادْعُوا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ |
| نو رابلئ (دعا غواړئ د) الله تعالیٰ نه چه خالص کونکی یئ هغهٔ له بلنه (عبادت) |
| وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُوْنَ ﴿١٤﴾ |
| اگرکه بد ئے گنړی کافران۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کښې الله تعالیٰ د خپل عظمت او قدرت دلیل بیانوی، او غرض

پدے کښې کافرانو او مشرکانو ته د قيامت د راتللو نه مخکښې د ايمان او د توحيد قبلولو دعـوت ورکړے کيږي، دے دپاره چه دوی توبه وباسی او د مؤمنانو په ډله کښې داخل شی او د جهنم خشاك جوړ نشی۔

الله تـعـالیٰ وفرمايل چه اے د قريشو خلقو! تاسو ګورئ نه چه الله تعالیٰ د خپل توحيد او د خپـل عـظـمـت او قـدرت عـظـيـم دلائل ستاسو مخے ته پيش کوی، د (آيَاتِهِ) نه مراد آسمانونه، زمکه، غرونه، نمر، سپوږمئ، ستوری، هواګانے، وريځے، بارانونه، ونے بوټی وغيره دی۔

رِزْقاً: او هـم هـغـه د آسـمـان نـه تاسو له روزی راليږی؟ يا د رزق نه مراد باران دے چه دا سبب د رزق دے چه پدے سره بوټی او فصلونه راوځی چه هغه د انسانانو دپاره رزق دے۔

۲- دويـم مطلب دادے چه د آيات نه مراد قرآنی آيتونه دی چه دا اصلاح او قوام د دين راولی او (رزقًا) کـښې ظاهری رزق ته اشاره ده چه دا اصلاح او قوام د بدن راولی۔ يعنی الله ستاسو دينی او دنيوی تربيت کوی۔

وَمَا يَتَذَكَّرُ: سوال پيدا شو چه دا دليلونه الله تعالیٰ بيان کړل نو چا ترے فائده واخسته؟ نـو الله فـرمائی چه ددے نه صرف انابت والا خلك فائده اخلی، کوم خلك چه الله تعالیٰ ته پـه زړه سره راګرځی۔ او د هغهٔ عظمت او عظيم احسان ته متوجه کيږی۔ ضديان خلك د دنيـا نښـو نښـانـو تـه هـيـڅ نـهٔ ګوری، او پدے سره خپل رب نهٔ پيژنی او نهٔ هغهٔ باندے ايمان راوړی۔

فَادْعُوا اللّٰهَ: د فاء معنیٰ دا ده (إِذَا كَانَ الْأَمْرُ كَذٰلِكَ) کله چه خبره دارنګ ده چه توحيد دومـره ضـروری شـے دے، او شـرك دومـره قبيـحـه ګناه ده، نو تاسو د الله تـعـالیٰ نـه يواځے دعاګانے غواړئ او بندګی هغه له خاص کړئ۔ او دا خطاب مؤمنانو ته دے۔

يا مطلب دا دے چه هر کله ددے دليلونو نه نصيحت صرف مُنيب اخلی نو تاسو صرف الله تعالیٰ تـه دعـوت ورکـوئ، کـه چا کـښې انـابـت وی هـغـه به ددے نه فائده اخلی۔ اول مطلب ظاهر دے۔

الدِّيْنَ: دعاء (بلنه) او عبادت دواړو ته شامل دے۔

وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُوْنَ: د کـافـرانـو ضد ډے تاسو د الله تـعـالیٰ د تـوحـيـد نـه منع نکړی، قيـمـتـی شـے ډے درنه وانهٔ ړوی۔ ❁ او پـدے کـښې اشاره ده چـه څـوك توحيد فی الدعاء (يـعـنـی الله يـواځـے رابـلـل) بـد ګنړی نو هغه کافر وی۔ ❁ او دارنـګـه اشاره ده چه پدے

مسئله کښې به د منکرينو د طرف نه هر قسم مصيبتونه راځي چه په هغې باندې صبر کول ضروري دي۔ ۞ او پدې کښې اشاره ده چه د دين مسائل او توحيد به د کافرانو د غصې او د تکليف او د هغوی د بد ګنړلو او ملامتيا په وجه نهٔ پريدئ۔ او کله چه انسان په خپله مسئله باندې کلک ودريږي هله به کاميابۍ ته رسيږي۔

| |
|---|
| رَفِيعُ الدَّرَجَاتِ ذُو الْعَرْشِ يُلْقِي الرُّوحَ |
| اُوچتو درجو والا (اُوچتونکو د درجو) دے، خاوند د عرش دے، راغورځوی وحی |
| مِنْ أَمْرِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَاءُ مِنْ عِبَادِهٖ لِيُنْذِرَ |
| په حکم خپل سره په هغه چا چه اُوغواړی د بندګانو خپلو نه، دے دپاره چه اُويروی |
| يَوْمَ التَّلَاقِ ﴿۱۵﴾ يَوْمَ هُمْ بَارِزُوْنَ |
| (دا وحی) (خلق) د ورځې د ملاقات نه۔ په هغه ورځ چه دوی به ښکاره وی (دوی به په |
| لَا يَخْفٰى عَلَى اللّٰهِ مِنْهُمْ شَيْءٌ لِمَنِ |
| ډاګه ولاړ وی) نهٔ به پټيږي په الله باندې د دوی نه هيڅ شے، (هغه به وائی) د چا دپاره ده |
| الْمُلْكُ الْيَوْمَ لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ﴿۱۶﴾ |
| بادشاهی نن ورځ (جواب به اُوشی) خاص الله لره ده چه يو دے، زورور دے۔ |
| اَلْيَوْمَ تُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ لَا ظُلْمَ |
| نن ورځ به بدله ورکړے شی هر نفس ته د هغې عمل چه کړے ئے دے، نشته هيڅ ظلم |
| الْيَوْمَ إِنَّ اللّٰهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿۱۷﴾ |
| نن ورځ، يقيناً الله تعالیٰ جلت حساب کونکے دے۔ |

**تفسير** :رَفِيعُ الدَّرَجَاتِ: اُوس بيا د الله تعالیٰ تعارف ذکر کيږي، او جواب د سوال دے چه د الله تعالیٰ نه ولے يواځې دعا طلب کړو؟ وجه دا ده چه الله تعالیٰ لوی دے او الله تعالیٰ پدے مسئله باندے حساب کوی، او هغه حساب روستو ذکر کوی۔

رَفِيعُ: ۱- په معنیٰ د رافع سره دے۔ يعنی الله درجے د مؤمنانو پورته کوی۔ دا دومره غوره تفسير نهٔ دے، د سياق سره سمون نهٔ خوری۔

۲- رفیع دلته په معنیٰ د [مَرْفُوْعَةٌ دَرَجَاتُهٗ] سره دے یعنی اُوچتو درجو والا دے۔
او دا دویم خبر دے د﴿هُوَ الَّذِیْ یُرِیْكُمْ﴾ دپاره۔ اَیْ هُوَ رَفِیْعُ الدَّرَجَاتِ۔ دغه الله پورته درجو والا دے۔ او دا بل تعارف د الله تعالیٰ دے۔
ذُو الْعَرْشِ : د عرش خاوند دے، یعنی د هغهٔ د شان د اُوچتیدو او د عظمت او کمال هیڅ انتهاء نشته۔
یُلْقِی الرُّوْحَ: د روح نه مراد وحی ده۔ او وحی ته ځکه روح وائی چه پدے سره ایمانی حیات (ژوند) حاصلیږی۔ یعنی هغه په خپلو بندگانو کښې چاته چه غواړی وحی لیږی او خپل رسول ئے جوړوی، دے دپاره چه هغه خلقو لره د هغے ورځے نه ویروی چه په هغے کښې به زمکے والا آسمان والو سره ملاؤ شی، او بندگان به د خپل خالق مخے ته حاضر شی، چه په دے ورځ به تمام خلق د خپلو قبرونو نه را اوځی، هیڅ یو شے به د دوئ نه د الله تعالیٰ نه نهٔ پټیږی، کله چه د تمامو مخلوقاتو روحونه قبض کړے شی، الله نه سِوئ به بل هیڅوك پاتے نشی۔
دغه وخت به الله تعالیٰ درے ځله ووائی : نن بادشاهی د چا ده؟ بیا به خپله جواب ورکړی : د هغه الله ده چه یواځے، او په هر شئ باندے زورَور او غالب دے۔ بخاریؒ او مسلمؒ د همدے مضمون حدیث د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت کړے۔
په کومه ورځ چه هر یو کس ته به د الله تعالیٰ د عدل مطابق د هغهٔ د کړو بدله ورکړے شی، په دغه ورځ به په هیچا هیڅ ظلم نهٔ کیږی۔ صحیح مسلم کښې د ابوذر غفاری ﷺ نه حدیثِ قدسی نقل شوے، الله تعالیٰ وفرمایل : اے زما بندگانو ! ما په خپل ځان ظلم حرام کړے، او دا مو ستاسو ترمینځه هم حرام کړے، دے وجے نه تاسو په یو بل ظلم مهٔ کوئ۔
یَوْمَ التَّلَاقِ: (یَلْتَقِی الْاِنْسَانُ بِعَمَلِهٖ، وَالْخَالِقُ وَالْمَخْلُوْقُ، وَالظَّالِمُ وَالْمَظْلُوْمُ)، قیامت ته د ملاقات ورځ ځکه وائی چه پدے کښې به انسان د خپل عمل سره، خالق د مخلوق سره او ظالم د مظلوم سره او شیطان د کافر سره، او عابد به د معبود سره ملاؤ شی۔ او د مؤمنانو ملاقات به د حورو سره وشی۔
بَارِزُوْنَ: په ډاګه باندے به ولاړ وی۔ یا د قبرونو نه به راوتلی وی چه هیڅ شے به ئے نهٔ پټوی، نهٔ غر او نهٔ ډیره کئ او نهٔ آبادے، ځکه چه زمکه به همواره وی۔ او بارز دا معنیٰ هم ده چه الله تعالیٰ ته به بربنډ ولاړ وی۔

لَا يَخْفٰى عَلَى اللّٰهِ: دا تفسير دے د (بَارِزُوْنَ) يعنى دوى به ښكاره وى پدے طريقه چه د الله تعالىٰ نه به د دوى ذوات او احوال او اعمال پټ نۀ وى۔

لِمَنِ الْمُلْكُ: دا جـمـلـه مستأنفه ده، جواب د سوال دے، ګويا كه ووېل شو چه په دغه ورځ به څه وئيلے كيږى كله چه انسانان الله تعالىٰ ته مخامخ ولاړ وى؟ نو جواب وشو چه الله تعالىٰ به مخلوق ته داسے وائى۔

لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ: ټول خلك به غلى وى، په هيبت كښې به وى نو الله تعالىٰ به خپله جـواب وركوى۔ يا ټول خلك به ددے اقرار وكړى چه بادشاهى خو صرف د يو الله ده۔ اول قول ظاهر دے۔

پدے كـښې اشارات دا دى چـه دومره لوى ذات چه د آخرت بادشاهى هم د هغۀ په لاس كښې ده، د داسے لـوى ذات نـافـرمـانـى نـۀ ده پـكـار او د هغۀ د توحيد نه انكار كول لوى حماقت او بيوقوفى ده۔

سَرِيْعُ الْحِسَابِ: د الله تـعـالىٰ حسـاب ډير پـه جلتئ سره وى چه د نيمے ورځے نه به مـخكښې مخكښې د ټول مخلوق سره حساب كتاب وشى۔ نو ددے حساب نه ويريږئ او دے دپاره تيارے وكړئ۔

| وَاَنْذِرْهُمْ يَوْمَ الْاٰزِفَةِ اِذِ الْقُلُوْبُ لَدَى الْحَنَاجِرِ |
|---|
| او اُويروه دوى لره د ورځے د نزدے آفت نه كله چه به زړونه وى د مريو سره، |
| كَاظِمِيْنَ مَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ حَمِيْمٍ وَّلَا شَفِيْعٍ |
| د غم نه به ډك وى، نۀ به وى ظالمانو لره څوك دوست او نۀ سفارشى |
| يُّطَاعُ ﴿۱۸﴾ يَعْلَمُ خَآئِنَةَ الْاَعْيُنِ وَمَا تُخْفِى |
| چه د هغه خبره اُومنلے شى۔ پو هيږى الله په خيانت د سترګو او په هغه څه چه پټوى |
| الصُّدُوْرُ ﴿۱۹﴾ وَاللّٰهُ يَقْضِىْ بِالْحَقِّ |
| ئے سينے۔ او الله تعالىٰ فيصله كوى په حق سره (او الله پوره وركوى حق لره) |
| وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ لَا يَقْضُوْنَ بِشَىْءٍ |
| او هغه كسان چه رابلى سوئ د هغۀ نه، هغوى فيصله نشى كولے په هيڅ شى سره |

إِنَّ اللّٰهَ هُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ﴿٢٠﴾

(نشي پوره کولے هيڅ شے)، يقيناً الله تعالىٰ آوريدونکے دے، ليدونکے دے۔

**تفسير**: سوال پيدا شو چه دا ورځ به ډيره لرې وي، زرګونه کلونه به ورته پاتے وي، نو الله تعالىٰ ددے نزدے والے او نور هيبت بيانوي۔ الله تعالىٰ نبي کريم ﷺ ته حکم وکړو چه ته خپل قوم د قيامت د ورځے نه اوېروه، چه ډيره زياته رانزدے شوے ده، دے دپاره چه د شرك او ګناهونو په کولو سره د دغه ورځے د عذاب مستحق جوړ نشي۔ په دغه ورځ به د خلقو په زړونو باندے داسے ويره را خوره شوے وي چه زړونه به خپل ځيونه پريدي او مرئ ته به را اورسي۔ نه به بهر را اوځي چه په مرګ سره راحت حاصل کړي، او نه به خپل اصلي ځاى ته واپس کيږي چه په ساه اخستو سره راحت ونيسي، او په دنيا کښ به د خپلو بدو عملونو د وجے نه غصه وي۔ په دوئ به مکمله خاموشي راخوره شوے وي، د شرك او ګناهونو کونکو دپاره به په دے ورځ نه څوك رشته دار وي او نه به کوم مونس او غمخوار، او نه کوم سفارشي، د انتهائي مايوسئ په حالت کښ به وي۔

**الْآزِفَةِ**: دا د قيامت نوم دے، نزدے ورځ۔ ځکه چه هر هغه شے چه راتلونکے وي هغه نزدے وي۔

**الْحَنَاجِرِ**: جمع د حُنْجُورٌ لکه د حُلْقُوم په شان، يا د حَنْجَرَةٌ ده۔ مرئ ته ونيلے شي۔

**كَاظِمِينَ**: کاظم: د غصے او غم نه ډك۔ او د اصفت ئے په اعتبار د اهل القلوب سره راوړيدے ځکه چه حاصل معنىٰ داسے ده: د خلقو زړونه به د مريو سره وي، او دا خلك به په داسے حال کښ وي چه د غم نه به ډك وي۔ يا د قلوب نه حال دے او جمع د عقلاؤ ئے ورله راوړه ځکه چه دے ته هغه نسبت شويدے کوم چه عقلاؤ ته کيږي۔ (فتح البيان)

**مَا لِلظَّالِمِينَ**: کله چه انسان باندے يو مصيبت او غم راشي او خفه وي، نو ځان دپاره دوه لارے ګوري، يو دا چه ځانله چرته دوست ګوري چه هغه راشي، او په غم کښ ورسره مدد وکړي او تسلي ورکړي۔ دويم څوك ګوري چه سفارش ورله وکړي چه پريشاني ئے ختمه شي۔ نو الله تعالىٰ دلته دواړه خبرے نفي کوي۔

**حَمِيمٍ**: مخلص دوست به هم نه وي چه هغه ددهٔ دپاره منډه ووهي۔

**وَلَا شَفِيعٍ يُطَاعُ**: او داسے سفارشي به هم نه وي چه د هغهٔ تابعداري وکړے شي، او دا مجرم وربسے وګرځي او راپيدا ئے کړي۔ يا د هغهٔ خبره ومنلے شي ددے مجرم په باره

کښې.

او د ظالمین لفظ نه معلومه شوه چه دا خلك ظالمان دی، پدے وجه ئے حمیم هم نشته او نهٔ سفارشي. که دوی کښې ظلم نهٔ وے نو مخلص دوست به ئې هم وے او سفارشي هم. د ظالمانو نه مراد دلته کافران او مشرکان دی. یا بغیر د اذن نه سفارشي مراد دے، نو دا بیا د مؤمنانو گناهگارو دپاره هم نشته.

یُطَاعُ: دلته نفي د قید او مقید دواړو ده. یعنی ظالمانو دپاره سفارشي هم نشته. او بیا د هغه سفارشي خبره منل هم نشته.

یَعْلَمُ خَائِنَةَ الْاَعْیُنِ: دا متعلق دے د سریع الحساب سره یعنی په قیامت کښې به د هر عمل حساب کولے شي اگرکه پټ عملونه وي. ځکه چه د الله تعالیٰ علم تمامو ځیزونو ته شامل دے، هیڅ یو شے د هغهٔ نه پټ نهٔ دے، هغهٔ د سترگو خیانتونه او د زړونو رازونه پیژني، دے دپاره چه خلق د هغهٔ د نافرمانئ نه اوویریږي، او د تقویٰ او نیك عمل لاره اختیار کړي.

خَائِنَةَ الْاَعْیُنِ: ۱- خائنه یا مصدر په معنیٰ د خیانت سره دے، او دا اضافت د صفت دے موصوف ته. اَیِ الْاَعْیُنِ الْخَائِنَة. خیانت د سترگو پیژني. یعنی هغه سترگے چه خیانت والا دي.

۲- یا خائنه نه مراد هغه کار او خصلت دے چه خیانت والا وي. او اضافت ئے (الاعین) ته په لام یا په (مِنْ) سره دے. یعنی الله پوهیږي په هغه خیانت والا خوئی او خصلت باندے چه د سترگو نه صادریږي.

## د سترگو خیانت څه شے دے؟

۱- د (نظر د خیانت) تشریح ابن عباس ﷺ دا کړے چه انسان د چا کور ته ورشي، هلته یوه ښائسته ښځه وي چه دے ورته په پټه سره گوري چه د خلکو د سترگو نه ځان بچ کوي، او کله چه خلك خپل ځان ته متوجه ومومي، نو نظر ښکته کړي، لیکن الله تعالیٰ ددهٔ د زړهٔ حال وپیژندهٔ، ددهٔ خواهش وي چه کاش دهٔ د دغه ښځے شرمگاه هم لیدلے وے!!

۲- قتادهٔ وائي: خیانت د سترگو دا دے چه په سترگو سره اشارے کوي، او عیب وائي په هغه ځای کښې چه الله تعالیٰ ئے نهٔ خوښوي. یعنی د مسلمانانو سپکاوے کوي.

۳- ضحاكؒ وائی : وَهُوَ قَوْلُ الْاِنْسَانِ مَا رَأَيْتُ وَقَدْ رَاٰى وَرَاَيْتُ وَمَا رَاٰى۔
د سترگو خیانت دا دے چه انسان ووائی ما نهٔ دی لیدلی حال دا چه هغه لیدل کړی وی، یا وائی چه ما لیدلی وی او هغه نهٔ وی لیدلی۔
٤- سفیانؒ وائی : هِيَ النَّظْرَةُ بَعْدَ النَّظْرَةِ۔ پردی عورت او ښځے ته دیو ځل (غیر اختیاری) کتلو نه پس دوباره نظر کوی۔
٥- سیرت کښ راځی، رسول الله ﷺ چه کله د فتح د مکے په موقعه عبد الله بن سعد بن ابی السرح ته لاس ورنکړو، (د کوم په باره کښ ئے چه د قتل حکم فرمائیلے وو او بیا هغه عثمان ﷛ راوستو دے دپاره چه هغهٔ ته معافی وکړی او هغه دوباره ایمان هم راوړو) بیا ئے د عثمان بن عفان ﷛ په سفارش سره لاس ورکړو، نو وے فرمایل چه تاسو دے ولے نهٔ وژلو کله چه ما ددهٔ نه لاس بند کړو؟، عمر فاروق ﷛ وفرمایل :
اے د الله رسوله! تا مونږ ته په سترګو اشاره ولے نهٔ کوله (یعنی چه دا قتل کړئ)؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: (مَا كَانَ لِنَبِيٍّ اَنْ يَّكُوْنَ لَهٗ خَائِنَةُ الْاَعْيُنِ) د نبی د شان سره دا نهٔ ښائی چه د هغهٔ سترګه دے خیانت ګره شی۔ (ابوداودؒ)
پدے روایت کښ دا اشکال کیږی چه دا خو مسلمان وو او توبه ئے ویستلے وه، نو رسول الله ﷺ ورله ولے توبه نهٔ قبلوله؟ جواب دا دے چه دا ګستاخِ رسول وو، د رسول الله ﷺ بے ادبی ئے کړے وه او د هغه پسے ئے رد بد وئیلی وو او دا خبره به ئے کوله چه رسول الله ﷺ لره ما وحی لیکلے ده او هغه له نور څه نهٔ ورځی۔ (مرتد شوے وو) او قانون دا دے چه رسول الله ﷺ ته کنځل کونکے که په مانځه ولاړ وی او که په هر حالت د بزرګئ کښ وی هغه به وژلے شی، لیکن دا د رسول الله ﷺ په ژوند کښ د هغه حق وو نو هغه چه چاته معاف کول غوښتل معافی ئے کولے شوه، لیکن پس د وفات د رسول الله ﷺ نه د شَاتِمُ الرَّسُوْل د وژلو حق څوك نشی معاف کولے۔
مګر د سیرت نه معلومیږی چه د عبد الله بن سعد بن ابی السرح توبه رښتینے وه او روستو عثمان ﷛ د مصر ګورنر مقرر کړے وو۔
په سترګو سره اشارے کول په ضرر د مسلمانانو کښ د منافقانو طریقه ده، او پدے باندے مسلمان ته ډیر ضرر رسیږی۔ نو ددے نه مسلمان له پرهیز پکار دے۔
وَاللّٰهُ يَقْضِيْ بِالْحَقِّ : ١- یعنی الله تعالیٰ به خلکو ته حق پوره پوره ورکوی۔
٢- یا الله فیصله کوی په انصاف سره۔ په هیچا به ظلم نهٔ کیږی۔

نو پدے آیت کښې الله تعالیٰ د خپل ځان په باره کښې دا خبر ورکړو چه د هغهٔ فیصله ډیره زیاتـه عـادلانه ده، ځکه چه هغه د نیکیٔ ښه بدله او د بدیٔ بده بدله ورکولو باندے پوره قـدرت لـری، ددے پـه خِـلاف هـغـه بـاطل معبودان چه مشرکان ئے رابلی د هیڅ فیصلے قـدرت نهٔ لری، ځکه چه دویٔ نه آوریدل کولے شی، او نهٔ لیدل کولے شی، او الله تعالیٰ خو هره خبره آوریـدونـکے او هر یو شے لیدونکے دے، دے وجے نه هغه د بندګانو ترمینځه د عادلانه فیصلے کولو مکمل قدرت لری۔

لَا يَقْضُوْنَ بِشَيْءٍ : ددے دویـمـه معنیٰ دا هم ده : لَا يَقْضُوْنَ بِحَاجَةٍ ۔ د هیـڅ حاجت نشی پوره کولے، نو داسے معبودانو باندے څوك څه کوی چه د چا حاجت نشی آوریدے، او نهٔ ئے پوره کولے شی۔

| أَوَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ |
|---|
| آیا نهٔ ګرځی دوی په زمکه کښې پس چه اُوګوری چه څنګه شو انجام د هغه کسانو |
| كَانُوا مِن قَبْلِهِمْ كَانُوا هُمْ أَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَآثَارًا |
| چه وو مخکښې د دوی نه، وو هغوی سخت د دوی نه په طاقت کښې او ډیرو نخو والا |
| فِي الْأَرْضِ فَأَخَذَهُمُ اللَّهُ بِذُنُوبِهِمْ وَمَا كَانَ لَهُم |
| په زمکه کښې (یعنی آبادیانے) نو راونیول الله تعالیٰ په ګناهونو د دوی او نهٔ وو دوی |
| مِّنَ اللَّهِ مِن وَاقٍ ﴿٢١﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانَت تَّأْتِيهِمْ |
| لره د الله (د عذاب) نه څوك بچ کونکے۔ دا پدے وجه چه دوی ته به راتلل |
| رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ فَكَفَرُوا فَأَخَذَهُمُ اللَّهُ |
| رسولان د دوی په ښکاره معجزاتو نو کفر کولو دوی پس رانیول دوی لره الله تعالیٰ |
| إِنَّهُ قَوِيٌّ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿٢٢﴾ |
| یقیناً هغه طاقت والا دے، سخت عذاب والا دے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې د دنیا تخویف دے مُذْنِبِیْنُو (ګناهګارو) ته۔ یعنی هغه کسانو تـه چـه د رسول الله ﷺ رسالت دروغژن ګڼړی۔ چه دا خلق د الله تـعالیٰ پـه زمـکه ولے نهٔ

کرځي چه د هغه قومونو انجام ووینی چه هغویٔ د الله رسولان دروغژن ګنړلی وو، نو الله هغویٔ په عذاب سره هلاك کړل، حالانکه هغه خلق د قریشو د کافرانو نه ډیر طاقتور وو، هغویٔ د زمکے آبادولو دپاره لوی لوی تعمیرونه جوړ کړی وو، او دنیوی اعتبار سره ښۀ کامیاب وو، لیکن کله چه الله تعالیٰ هغویٔ لره د خپلو ګناهونو په وجه ونیول، نو هیڅا هغویٔ بچ نۀ کړل۔

د دویٔ دا انجام ځکه شو چه دویٔ ته انبیاء کرامو علیهم السلام د توحید او رسالت په اثبات کښې ډیر واضحے نښے او ښکاره دلائل راوړی وو، لیکن دویٔ د هغے نه انکار وکړو نو الله تعالیٰ دویٔ را ونیول او هلاك ئے کړل۔ د هغه حق ذات مقابله څوك کولے شی، هغه خو ډیر زیات زورور طاقت والا او ډیر زیات سخت عذاب ورکونکے دے۔

وَّآثَارًا فِي الْأَرْضِ: یعنی نښے ئے په زمکه کښې ډیرے وے یعنی مضبوطے قلعه ګانے، او کلکے آبادیانے او د هغوی ډیر سامانونه او شمیره وه۔

نو وقف دے یعنی دغه شان به تاسو هم په ګناهونو راونیسی۔

وَّاقٍ: یعنی حفاظت کونکے او عذاب دفع کونکے۔

فَكَفَرُوْا: دا د مخکښې (ذُنُوْبِهِمْ) تشریح ده۔ یعنی دا ئے لویه ګناه وه چه کفرئے وکړو، او نور ګناهونه ئے هم ورسره ملګری کړی وو۔

| |
|---|
| وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِآيَاتِنَا وَسُلْطَانٍ مُّبِيْنٍ ﴿۲۳﴾ |
| او یقیناً رالیږلے دے مونږ موسیٰ ﷺ په آیتونو زمونږ او په دلیل ښکاره۔ |
| إِلٰى فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَقَارُوْنَ فَقَالُوْا سَاحِرٌ كَذَّابٌ ﴿۲۴﴾ فَلَمَّا |
| فرعون او هامان او قارون ته نو اُووئیل هغوی دا جادوګر دروغژن دے۔ نو هرکله چه |
| جَاءَ هُمْ بِالْحَقِّ مِنْ عِنْدِنَا قَالُوا اقْتُلُوْا أَبْنَاءَ الَّذِيْنَ |
| راوړو هغه دوی ته حق لره د طرف زمونږ نه، ووئیل دوی اُووژنئ ځامن د هغه کسانو |
| آمَنُوْا مَعَهٗ وَاسْتَحْيُوْا نِسَاءَ هُمْ وَمَا كَيْدُ |
| چه ایمان ئے راوړیدے ددهٔ (موسیٰ) سره، او ژوندیٔ پریدیٔ ښځے د دوی او نۀ دے چل د |

| الْكَافِرِينَ إِلَّا فِي ضَلَالٍ ﴿٢٥﴾ |
|---|
| کافرانو مکر په بربادئ کښې دے۔ |

**تفسیر** : دا د مخکښې ﴿تَأْتِيهِمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ﴾ تشریح ده چه پیغمبران په واضحه دلیلونو راغلي وو او خلکو کفر کړیدے د هغے مثال په واقعه د موسیٰ علیه السلام او فرعون سره راوړی لکه دا د قرآن طریقه ده چه یوه خبره اجمالي وکړی نو روستهٔ ئے تفصیل کوی۔

او پدے واقعه کښې بل غرض رسول الله ﷺ له تسلي ورکول دی، او دا ښائی چه په هر صورت کښې به په دنیا او آخرت کښې ښهٔ انجام او کامیابی صرف تاته حاصلیږی۔

آیات نه مراد معجزات دی، او ددے نهه عدد وو چه تفصیل ئے په سورة الاعراف کښې تیر شویدے۔

وَسُلْطَانٍ مُّبِينٍ: ددے نه مراد امسا ده۔ یا سپین لاس دے، نو دا تخصیص بعد التعمیم دے۔ یا ددے نه مراد هغه رعب او هیبت دے چه الله تعالیٰ موسیٰ علیه السلام ته ورکړے وو چه فرعون به هغهٔ لره سَره د ډیر قوت او بادشاهئ نه نشو وژلے۔

إِلَىٰ فِرْعَوْنَ : دا درے کسان ئے خاص ذکر کړل ځکه چه د موسیٰ علیه السلام سره د دشمنئ سبب د فرعون بادشاهی او د هامان وزارت او د قارون سرمایه داری (مال) وو، او دا درے قوتونه اکثر د حق په مقابله کښې ودریږی۔

فَقَالُوا سَاحِرٌ: دا د هغوی گناهونه او جرمونه وو چه ددے په وجه هلاك شو چه نبی ته ئے دروغژن او جادوگر وئیلو۔ او دا وینا فرعون او د هغهٔ قوم کړے وه، نهٔ قارون نو پدے کلام کښې تغلیب شویدے، یا دا چه قارون اگرکه په ظاهره کښې ایمان راوړے وو لیکن باطنی طور سره هغه منافق وو په زړه کښې ئے د موسیٰ علیه السلام نه انکار وو۔ مگر په روستو زمانه کښې ئے دا قول عملاً راښکاره شو۔ (قاله الخطیبؒ – فتح البیان)

اقْتُلُوا أَبْنَاءَ: ددے تشریح په سورة الاعراف کښې ذکر شوے وه چه د موسیٰ علیه السلام د راتگ نه مخکښې هم د بنی اسرائیلو بچی وژل کیدل، بیا ئے بند کړی وو۔ بیا کله چه هغه راغے هم فرعون د بنی اسرائیلو بچی وژل، هغوی ته ئے عذابونه ورکول، چه دوی ولے په موسیٰ علیه السلام ایمان راوړیدے۔ او دوی دا وژل پدے وجه هم کول چه د موسیٰ علیه السلام ملګری زیات نشی۔ او دے نه مقصد د بنی اسرائیلو سپکاوے، د هغوئ شماره کمول،

او د هغوئ په زړونو كښې دا خبره كينول وو چه د دوئ د بربادئ او هلاكت سبب صرف موسىٰ (عليه السلام) دے۔

وَمَا كَيْدُ الْكَافِرِيْنَ: دا جواب د سوال دے چه فرعونيانو چه د قتل كومے منصوبے جوړے كړے آيا پدے سره خلك د ايمان قبلولو نه منع شول، او دوى پدے كښې كامياب شول؟ جواب وشو چه د كافرانو منصوبے او چلونه د حق نه په اړولو كښې هميشه برباد وى۔ دا مكر ددوى په غلطه لاره روان شو، او ځاى ته ونۀ رسيدو۔ دا معنىٰ د (ضلال) گمراهئ ده۔

يعنى ددے كافرانو سازش دړے وړے پاتے شو، موسوى دين خور شو، د بنى اسرائيلو نسل زياتيدۀ، او آخر فرعون او فرعونيان خپل آخرى انجام ته اورسيدل۔

| وَقَالَ فِرْعَوْنُ ذَرُوْنِيْٓ اَقْتُلْ مُوْسٰى وَلْيَدْعُ رَبَّهٗ |
|---|
| او ووئيل فرعون پريږدئ ما چه قتل كړم موسىٰ، او را اُودے غواړى دے رب خپل |
| اِنِّيْٓ اَخَافُ اَنْ يُّبَدِّلَ دِيْنَكُمْ اَوْ اَنْ يُّظْهِرَ فِي الْاَرْضِ الْفَسَادَ ﴿۲۶﴾ |
| يقيناً زۀ يريږم چه دے به بدل كړى دين ستاسو يا به ښكاره كړى په زمكه كښې فساد |
| وَقَالَ مُوْسٰٓى اِنِّيْ عُذْتُ بِرَبِّيْ وَرَبِّكُمْ |
| لره۔ او اُووئيل موسىٰ (عليه السلام) يقيناً زۀ پناهى غواړم په رب خپل او رب ستاسو |
| مِّنْ كُلِّ مُتَكَبِّرٍ لَّا يُؤْمِنُ بِيَوْمِ الْحِسَابِ ﴿۲۷﴾ |
| د هر لوئى كونكى نه چه ايمان نۀ راوړى په ورځ د حساب باندے۔ |

**تفسير**: فرعون كمبخت چه كله د الله تعالىٰ د معجزو په مقابله كښې پرله پسے ماتے وخوړله، نو د خپل قوم په مخ كښې د خپل ضائع كړى وقار بحال كولو دپاره ئے ووئيل چه اُوس ددے نه سوئ بله چاره نشته چه زۀ موسىٰ اووژنم، او د كبر او لويئ آخر سرته رسيدو سره ئے ووئيل چه ماته د هغۀ د رب پرواه نشته، دا دے هغه د خپل مدد دپاره را اوبلى، او د خپلے فيصلے په تائيد كښې ئے دا دليل پيش كړو چه اے زما د قوم خلقو! ما سره ويره ده چه هغه به د خپل ساحرانه چلونو په ذريعه ستاسو په ذِل او دماغو را خور شى او تاسو به د هغۀ نه متاثره شئ، او د هغۀ دين او مذهب به قبول كړئ، او ستاسو

عادت او طريقے به بدلے شي، او زمكه به د فساد نه ډكه شي۔
ذَرُوْنِيْ: دا د فرعون دروغژنه دهمكي ده، د موسىٰ عليه السلام نه دومره په يره كښ وو چه طرف ئے نۀ وو معلوم، ځكه دے چا نيولے وو چه خلكو ته وائي ما پريدئ۔ سره د دومره طاقت نه انتهائي سخت مرعوب وو۔ حق پرست له الله تعالىٰ په باطل پرست باندے سخت رعب وركړے وي۔
اُقْتُلْ مُوْسٰى: دا هميشه د باطل پرستو طريقه راروانه ده چه كله په دلائلو پړ شي نو بيا د زور نه كار اخلي او د حق پرست په خلاف د قتل سازشونه كوي۔
صاحب د فتح البيان ليكي: د فرعون لعين ښه يقين وو چه موسىٰ عليه السلام د الله تعالىٰ حق نبي دے، ليكن يريدو چه كه دے هغه لره قتل كړي نو دے به هلاك شي، خو دا خبره ئے د خلكو د دهوكه كولو دپاره وكړه چه ما پريدئ زۀ دا وژنم۔ يعني تاسو به ما نه دا منع كوئ خو كه ستاسو خاطر نۀ وے ما دے نۀ پريخودو۔ حال دا چه دے هيچا نۀ وو منع كړے بلكه خپلے هيبتناكے يرے منع كړے وو۔
وَلْيَدْعُ رَبَّهٗ : دا د فرعون انتهائي د رب العالمين بے ادبي او بے باكي ده۔ ورنه دے د موسىٰ عليه السلام نه په ټولو خلكو كښ ډير يرونكے وو۔ يعني دے دے خپل هغه رب راوغواړي چه دے گمان كوي چه دے ئے مونږ ته راليږلے دے، نو دے دے د قتل نه منع كړي كه پدے باندے قادر وي۔ او مطلب ئے دا وو چه دا خبره دے تاسو پريشانه نكړي ځكه چه ددۀ هيڅ رب په حقيقت كښ نشته، بلكه زۀ ستاسو لوي رب يم۔
يا وَلْيَدْعُ رَبَّهٗ: يعني زۀ ددۀ د ښيرو نه نۀ يريږم او تاسو هم مۀ يريږئ۔ دا ئے د دسيسے كلمات دي۔
اِنِّيْ اَخَافُ: يعني زۀ ئے ځكه وژنم چه ستاسو دين د پلارانو بدلوي او د يو رب عبادت ته مو متوجه كوي، يا په ملك كښ فساد ښكاره كوي ځكه چه د خلكو مينځ كښ فتنے او اختلافات ددۀ د وجه نه پيدا كيږي۔
هميشه باطل پرست د الله تعالىٰ توحيد او سنت طريقے ته فساد او اختلاف وئيلے دے۔ او حال دا چه اصلي فسادي خپله وو۔ فرعون هم گونگټ وو، گلان ورته گندگي او گندگي ورته گلان ښكاره كيدل۔
يعني يو د دوه خطرونه شته يا دے ستاسو عقيدے او دين خراب كړي، او يا به كم از كم دله خپله جوړه كړي، نو په وطن كښ به جنگونه او فسادونه جوړ كړي۔ نو اول فساد د

دین دے، او دویم فساد ددنیا دے۔

او د دین فساد ئے مخکښې ذکر کړو ځکه چه عوام خلك په خپل دین باندے (که حق وی او که باطل) ډیر غیرت کوی په نسبت د مالونو او اولاد باندے۔

او پدے الفاظو نقل کولو کښې مونږ ته دا سبق دے چه باطل پرستو پیرانو، ملیانو او اقتدار والو خپل عوامو لره د دین (باطل) په نوم باندے دهوکه ورکوی۔

وَقَالَ مُوسٰى : موسیٰ علیه السلام ته چه کله د هغهٔ د ګواښ پته اولګیده نو د الله تعالیٰ په ذریعه ئے د هغهٔ د شر نه پناه اوغوښته، او وے ویل چه زهٔ د هر هغه متکبر نه چه د آخرت په ورځ ایمان نهٔ لری، او د خپل خواهش پیروی کوی، الله تعالیٰ پورے پناه غواړم۔ هم هغه د خپل دین حفاظت کونکے، او د خپل مومن بندګانو حفاظت کونکے او مدد ګار دے۔ او ښکاره خبره ده چه فرعون په دے عموم کښې په طریقه اولیٰ سره داخل وو۔ او دے کښې اشاره وه چه د فرعون د دومره سختئ د رد کولو دپاره صرف تعوذ (الله پورے پناه غوښتل) کافی دی، دا د موسیٰ علیه السلام لوی جرأت وو۔ او دے ته کامل توکل وائی چه د خلکو د شرونو نه د الله تعالیٰ پورے امان غواړی، او په متکبر لفظ کښې د فرعون په الله تعالیٰ باندے جرأت او د هغه د زړهٔ سختئ ته اشاره ده۔ کله چه بنده په داسے مقام کښې الله تعالیٰ ته ځان وسپاری نو الله تعالیٰ به ئے ضرور مدد کوی۔ نو همدغسے وشوه چه الله تعالیٰ هغه ددهٔ د شر نه محفوظ اوساتلو۔

لَا يُؤْمِنُ بِيَوْمِ الْحِسَابِ: یعنی څوك چه ناحقه ظلم او قتل کوی نو هغه کښې به دوه صفتونه وی، یو دا چه متکبر به وی، یعنی ځان به لوی ګڼړی، د چا حق خبره به نهٔ منی، او طبیعت به ئے غواړی چه ظلم وکړی لیکن بعض طبیعتونه د انسان ظلم کول غواړی خو د آخرت د حساب یره د هغے نه مانع وی لیکن کله چه د قیامت د حساب نه هم نهٔ یریږی نو بیا ډیر لوی ظالم وی۔ (احسن الکلام)

| وَقَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ مِّنْ آلِ فِرْعَوْنَ يَكْتُمُ إِيمَانَهُ |
| --- |
| او ووئیل یو سړی مؤمن د کورنئ د فرعون نه پټ ئے ساتلو ایمان خپل، |
| أَتَقْتُلُونَ رَجُلًا أَنْ يَقُولَ رَبِّيَ اللَّهُ وَقَدْ جَاءَكُمْ |
| آیا وژنئ تاسو یو سړے چه وائی رب زما الله تعالیٰ دے، او یقیناً راوړی ئے دی تاسو ته |

| بِالْبَيِّنَاتِ مِنْ رَّبِّكُمْ وَإِنْ يَّكُ كَاذِبًا فَعَلَيْهِ |
|---|
| دلیلونه ښکاره د طرف د رب ستاسو نه، او که وي دے دروغژن نو په دهٔ باندے |
| كَذِبُهٗ وَإِنْ يَّكُ صَادِقًا يُّصِبْكُمْ بَعْضُ الَّذِيْ |
| وبال ددروغو ددهٔ دے، او که وي دے رشتینی (نو) وبه رسي تاسو ته بعض هغه عذاب |
| يَعِدُكُمْ إِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِيْ |
| چه وعده ئے کوي تاسو سره (يروي تاسو په هغے سره) يقيناً الله هدايت نهٔ کوي |
| مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ كَذَّابٌ ﴿٢٨﴾ |
| هغه چا ته چه زياتے کونکے وي (د حد نه)، ډير دروغژن وي۔ |

**تفسیر** : د قرآن کریم د ظاهري بیان مطابق د فرعون د خاندان یو سړي په پټه باندے په موسیٰ ﷺ باندے ایمان لرلو۔ مفسرین لیکي چه دا د فرعون د ترهٔ ځوی وو، او ددهٔ نوم شمعون یا سمعان یا حزقیل یا حبیب وو۔ (تاریخ دے ځکه پکښې دومره اختلاف راغلے دے او نوم ئے مقصود نهٔ وو نو ځکه ئے په صفت د رجل او مؤمن سره ذکر کړو) کله چه دهٔ د فرعون خبره واوریده چه دے د موسیٰ ﷺ د وژلو خبره کوي، نو دے راغے او فرعونیانو ته ئے ښکلے تقریر وکړو چه د الله تعالیٰ خوښ شویدے او په قرآن کښې ئے رانقل کړیدے۔ دهٔ جرأت وکړو او وے ویل چه تاسو یو سړے صرف په دے وجه وژل غواړئ چه هغه صرف د الله تعالیٰ په رب کیدو باندے قائل دے، حال دا چه هغهٔ د خپل ځان او د خپلے عقیدے په رشتین والي باندے ستاسو مخے ته داسے دلائل پیش کړي چه هغه تاسو نشئ رد کولے۔ یعني صحیح خبره ئے کړیده نو آیا بیا دے د وژلو لائق دے۔

يَكْتُمُ إِيْمَانَهٗ : یعني اول کښې ئے ایمان پټ کړے وو، د دوه وجو نه یو دا چه که ایمان راښکاره کړي، نو د قتل نه یریدو۔ او دویم دا چه خلك به مے بیا خبره نهٔ مني چه تهٔ هم صابي شوے ئے، نو اول ئے ورته ځان ملګرے ښکاره کړو چه راځئ دا خبرے معقولي دي د منلو لائق دي، راځئ چه په شریکه ئے ومنو۔ او دا هم د دعوت یوه طریقه ده چه یو تن یو ځای ته لاړ شي، یا په یو مجلس کښې ناست وي تا څوك نهٔ پیژني، نو خلك د قرآن او حدیث والا بدي بیانه کړي، نو تهٔ به د هغے دفاع وکړے او خلکو ته به دعوت ورکړے چه

داهسې خلك ورپسې خبرې کوي په دوی کښې هيڅ نقصان نشته. نو دهٔ هم دغسې دفاع وکړه. بیائې روستو ایمان رابنکاره کړیدې کله چه ورته ضرورت راغې.
یا ستا نه څوك تپوس وکړي چه ستا مسلك او جماعت څه دې؟ نو بیا به جواب ورکړې ﴿اِنَّنِیْ مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ﴾ لکه حم السجده (۳۳) آیت کښې ذکردې، او دا کتمان ګناه نهٔ ده بلکه رخصت دې ځکه چه هغه کتمان د حق ناروا دې چه د حق بیان نکوي او بل کتمان د حال دې او پدې کښې هيڅ نقصان نشته، دا وجه ده چه پدې کتمان سره د هغهٔ ایمان ته هيڅ نقصان نهٔ دې رسیدلې، او الله تعالیٰ ئې صفت کړیدې چه مؤمن وو.
بعض وائي چه کتم په معنیٰ د حفاظت سره هم استعمالیږي، یعنې دخپل ایمان حفاظت ئې کولو.
امیر المؤمنین علي ﷺ یوه ورځ په خطبه کښې وویل چه تاسو نه تپوس کوم چه د ټولو خلکو نه لوی بهادر څوك دې؟ خلکو وویل مونږ ته نهٔ دې معلوم، تهٔ ئېووایه. هغه وفرمایل: ابوبکر صدیق ﷺ، ما رسول الله ﷺ ولیدو چه قریشو رانیولې وو، یو ئې د یو خای پورې انبنتې وو، او بل ئې د بل خای پورې او وهلو ئې (او په روایت د بخاري او مسلم کښې دي چه عقبه بن ابی معیط ورله د څټ نه څادر تاؤ کړو او مرئ ئې ورله خفه کړې وه) او دا ئې ورته وئیل چه تهٔ هغه شخص ئې چه ډیر معبودان دې یو معبود جوړ کړیدې. هغهٔ وویل: نو قسم په الله چه هيڅ تن به مونږ ته نهٔ رانزدې کیدو مګر ابوبکر صدیق ﷺ به هغه لره وهلو، یو به ئې وارولو او بل به ئې دیکه کړو او دا به ئې ویل:
[وَيْلَكُمْ اَتَقْتُلُوْنَ رَجُلًا اَنْ يَّقُوْلَ رَبِّیَ اللّٰهُ ؟] هلاك شئ آیا تاسو هغه سړې وژنئ چه هغه وائي زما معبود یو الله دې؟. بیا ئې وفرمایل: چه مؤمن د آل فرعون غوره وو او که ابوبکر (ﷺ)؟ خلك غلي شول، بیا دهٔ وفرمایل: [فَوَاللّٰهِ لَسَاعَةٌ مِنْ اَبِیْ بَكْرٍ خَيْرٌ مِنْ مِثْلِ مُؤْمِنِ مِنْ آلِ فِرْعَوْنَ، ذٰلِكَ رَجُلٌ يَكْتُمُ اِيْمَانَهٗ وَهٰذَا رَجُلٌ اَعْلَنَ اِيْمَانَهٗ وَبَذَلَ مَالَهٗ وَدَمَهٗ لِلّٰهِ تَعَالٰی) قسم په الله تعالیٰ یو ساعت د ابوبکر صدیق ﷺ د آل فرعون د مؤمن نه ډیر غوره دې، هغه ایمان پټ کړې وو، او دې سړي ایمان رابنکاره کړو او خپل مال او وینه ئې د الله دپاره خرچ کړه. کله چه داسې موقعه راشي نو بیا ایمان رابنکاره کول عزیمت او زیات فضیلت دې. نو رجل مؤمن په رخصت عمل کړې او ابوبکر صدیق ﷺ په عزیمت باندې.
وَاِنْ يَّكُ كَاذِبًا: رجل مؤمن ددې نه پس په خپله لهجه کښې لږه نرمي پیدا کړه، او د

محاکمے (فیصلے په طریقه) ئے ووېل: که مونږ اُومنو چه دا دروغژن دے، نو ددهٔ د دروغو نقصان به صرف دهٔ ته رسیږی۔ ځکه چه د دروغژنو سره د الله تعالیٰ ملګرتوب نهٔ وی۔ نو الله تعالیٰ به په دنیا او آخرت کښې د دروغو سزا صرف دهٔ له ورکوی۔ او که چرے دا رشتینے وی، او تاسو دهٔ له تکلیف ورکړئ نو د کوم دنیوی او اُخروی عذاب ګواښ چه دے کوی، هغه به تاسو ته ورسیږی۔ مطلب ئے دا دے چه لږ فکر وکړئ که دروغژن وی خپله به هلاك شی، او که رشتینی وی نو بیا به ستاسو څه حال وی؟ عذاب به دریاندے راشی، نو راشئ ددهٔ په باره کښې فکر وکړئ۔

یَعِدُكُمْ: دا د وعدے او وعید (یرولو) دواړو نه دے۔

إِنَّ اللّٰهَ لَا یَهْدِیْ: دلته وقف دے، سوال پیدا شو چه ددهٔ په بیان سره فرعونیانو ته څه فائده ورسیده؟ نو جواب وشو چه مسرف او کذاب ته فائده نهٔ رسیږی۔ د مسرف نه مراد مشرك دے، او د کاذب نه مراد هغه دے چه د ربوبیت په دعوه کښې دروغژن وی، او په الله تعالیٰ باندے دروغ وائی، او دا د فرعون صفت وو۔

یا دا قول د رجل مؤمن دے، یعنی که بالفرض موسیٰ علیه السلام مسرف وی، په ځان زیاتے کوی او کذاب وی په دعویٰ د رسالت کښې نو نشی کامیابیدے۔

| یَا قَوْمِ لَكُمُ الْمُلْكُ الْیَوْمَ ظَاهِرِیْنَ فِی الْأَرْضِ فَمَنْ |
|---|
| اے قومه زما! ستاسو دپاره بادشاهی ده نن ورځ زورَ آوریئ په زمکه کښې نو څوك |
| یَّنْصُرُنَا مِنْ بَأْسِ اللّٰهِ إِنْ جَاءَ نَا قَالَ فِرْعَوْنُ |
| به مدد اُوکړی مونږ سره د عذاب د الله نه که چرته راشی مونږ ته، اُووئیل فرعون |
| مَا أُرِیْكُمْ إِلَّا مَا أَرٰی وَمَا أَهْدِیْكُمْ |
| نهٔ ښایم تاسو ته مګر هغه چه وینم ئے زهٔ، (چه زما رائے ده) او نهٔ ښایم تاسو ته |
| إِلَّا سَبِیْلَ الرَّشَادِ ﴿۲۹﴾ |
| مګر لاره د کامیابئ۔ |

**تفسیر**: مومن سړی چه کله اوکتل چه ددهٔ خبرے په فرعون او فرعونیانو باندے څهٔ مثبت اثر اوغورزولو، نو موقع نه ئے فائده پورته کړه، او هغوئ ته ئے نصیحت اوکړو او

وے ویل چه اے زما د قوم خلقو! نن تاسو د مصر د ملك بادشاهان يئ، او تاسو ته غلبه حاصله ده، نو د الله تعالیٰ شكر اداء كړئ او د الله عذاب ته دعوت مه وركوئ، ځكه چه كه عذاب راشي، نو مونږ او تاسو له به هيڅوك بچ نهٔ كړي.

او دے آيت كښې د تزهيد في الدنيا سره تخويف هم دے. يعنې بادشاهي د الله تعالیٰ عذاب مونږ نه نشي بچ كولے، بلكه حق پرستئ سره به بچ كيږئ.

يَا قَوْمِ: دا لفظ دليل دے چه دا رجل مؤمن د فرعونيانو د نسل نه وو، او دلته مقصود بالنداء حذف دے يعنې (د الله تعالیٰ شكر وكړئ په ايمان راوړو سره ځكه چه تاسو ته الله تعالیٰ په زمكه كښې بادشاهي دركړيده).

فَمَنْ يَّنْصُرُنَا: جمع متكلم ئے ذكر كړه دپاره د بچ كيدو د تهمت نه، او دے دپاره چه ددهٔ خير خواهي معلومه شي او خلك ئے نصيحت قبول كړي، ځكه چه دے د خلكو دپاره هغه څه غواړي كوم چه د ځان دپاره غواړي.

قَالَ فِرْعَوْنُ: هر كله چه فرعون دا خبره واوريده نو ويريدو چه هسے نهٔ ددے سړي په بيان سره په خلكو باندے اثر وشي او ايمان راوړي، نو خلكو ته د دهوكے وركولو دپاره او دوئ له ددے باور وركولو دپاره چه دا د دوئ دپاره ډير مخلص دے، ووئيل چه كومه رائے ماته ستاسو په حق كښې بهتره معلومه شوے، يعنې د موسیٰ وژل، هم هغه ما ستاسو مخے ته پيش كړے، او ما ستاسو صحيح لار ښوونه كړے ده دے لپاره چه موسیٰ ژوندے پاتے كيدو سره ستاسو دين بدل نهٔ كړي او د مصر په سرزمين كښې د فساد سبب جوړ نشي.

مَا اُرِيْ: ١ – دا د رأی نه دے، يعنې ما چه كومه رائے دركړيده چه هغه قتل دے.

٢ – ضحاك وائي: [ما اَعْلَمُكُمْ اِلَّا مَا اَعْلَمُ مِنَ الصَّوَابِ وَهُوَ قَتْلُ مُوْسٰى] زهٔ نهٔ ښايم تاسو ته مگر هغه خبره چه ماته حقه معلومه ده چه هغه قتل د موسیٰ دے)

صاحب د فتح البيان وائي دا د لغوي معنے سره ډير موافق تفسير دے) او رؤية دلته علمي او قلبي دے، نهٔ رؤيت بصري.

سَبِيْلَ الرَّشَادِ: يعنې د موسیٰ عليه السلام نه انكار كول او زما په دين باندے مضبوط پاتے كيدل همدا رشد (هوښيارتيا) او هدايت دے. هميشه باطل پرست خلك د حق پرستو په مقابله كښې خپلے خبرے او طريقے او مذهب ته د رُشد او هدايت په نظر سره گوري پدے وجه هميشه په گمراهئ كښې پاتے شي. ﴿وَبَدَا لَهُمْ مِنَ اللّٰهِ مَا لَمْ يَكُوْنُوْا يَحْتَسِبُوْنَ﴾

﴿وَیَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ یُحْسِنُوْنَ صُنْعًا﴾ ـ او معلومه شوه چه د رسول په مقابله کښې آراؤ او مذاهبو ته دعوت فرعونی دعوت دے۔

| |
|---|
| وَقَالَ الَّذِیْ آمَنَ یَا قَوْمِ اِنِّیْ اَخَافُ عَلَیْكُمْ |
| اُووئیل هغه سړی چه ایمان ئے راوړے وو اے قومه زما ! یقیناً زهٔ یریږم په تاسو باندے |
| مِثْلَ یَوْمِ الْاَحْزَابِ ﴿۳۰﴾ مِثْلَ دَاْبِ قَوْمِ نُوْحٍ |
| پشان د ورځے د ډلو (مخالفینو) نه۔ پشان د حال د قوم د نوح (علیه السلام) |
| وَّعَادٍ وَّثَمُوْدَ وَالَّذِیْنَ مِنْ بَعْدِهِمْ ؕ وَمَا اللّٰهُ |
| او د عادیانو او د ثمودیانو او د هغه کسانو نه چه روستو وو د دوی نه، او نهٔ دے الله |
| یُرِیْدُ ظُلْمًا لِّلْعِبَادِ ﴿۳۱﴾ وَیَا قَوْمِ اِنِّیْ اَخَافُ عَلَیْكُمْ |
| چه اراده اُوکړی د ظلم کولو په بندګانو باندے۔ او اے قومه زما یقیناً زهٔ یریږم په تاسو |
| یَوْمَ التَّنَادِ ﴿۳۲﴾ یَوْمَ تُوَلُّوْنَ مُدْبِرِیْنَ |
| باندے د ورځے د آوازونو نه۔ هغه ورځ چه ویه ګرځولے شئ تاسو (د حساب د ځائے |
| مَا لَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ عَاصِمٍ |
| نه) شاکونکی، نهٔ به وی تاسو لره د الله د عذاب نه څوك بچ کونکے، |
| وَمَنْ یُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ ﴿۳۳﴾ |
| او چا له چه الله ئے ګمراه کړی نو نشته هغهٔ لره هدایت کونکے۔ |

**تفسیر** : اُوس ورته د دنیا او د آخرت تخویف ذکر کوی، او بیا د یوسف علیه السلام نه دلیل نقلی راوړی۔ مومن سړی خپل تقریر جاری وساتهٔ او وے ویل چه اے زما د قوم خلکو ! که چرے تاسو موسیٰ ووژلو نو ماسره ویره ده چه په تاسو به هم د الله تعالیٰ عذاب نازل شی چه هغه به تاسو هلاك کړی، لکه څنګه چه په مخکنو زمانو کښې د هغه قومونو انجام شو چه هغوئ خپل رسولان دروغژن ګڼړلی وو۔ د نوح قوم، عادیان قوم، ثمودیان قوم، او د دوئ نه پس راتلونکو نورو قومونو ستاسو پشان رویّه اختیار کړه، نو الله تعالیٰ

د هغوئ د گناهونو په وجه هغوئ هلاك كړل.

مِثْلَ يَوْمِ الْأَحْزَابِ: يعنى په شان د ورځے د ډلو. مراد ترے هغه قومونه دى چه هغوى تحزّب او ډله بازى د رسولانو په مقابله كښ كړے وه، د هغوى په شان د عذابونو نه.

اَىْ مِثْلَ يَوْمِ عَذَابِ الْاُمَمِ الْمَاضِيَةِ الَّذِيْنَ تَحَزَّبُوْا عَلٰى اَنْبِيَائِهِمْ - يعنى په شان د ورځے د عذابونو د هغه تير شوو امتونو چه هغوى د انبياؤ په مقابله كښ ډله بازى كړے وه.

او اگركه د دغه قومونو د عذابونو ورځے خو ډيرے او مختلفے وے ليكن دا ټول د الله تعالىٰ په قدرت او د هغه د قهر په وړاندے ديوے ورځے او د يو ساعت په شان وو نو پدے وجه ئے يوم لفظ مفرد راوړو.

مِثْلَ دَأْبِ قَوْمِ نُوْحٍ : دأب حالت او عادتِ مستمره ته وائى يعنى د هغوى كفر او تكذيب او بيا په هغوى باندے عذابونه راتلل د هغوى هميشه عادت راروان دے.

وَمَا اللّٰهُ يُرِيْدُ ظُلْمًا : جمله مستأنفه ده، جواب د سوال دے چه آيا دغه قومونه هلاكول به ظلم نۀ وو ؟ نو جواب وشو چه الله تعالىٰ بغير د حجت او بغير د گناه نه عذاب نۀ وركوى، الله تعالىٰ اراده د ظلم نۀ كوى نو كول ئے خو په ځاى پريده.

وَيَا قَوْمِ اِنِّىْ اَخَافُ عَلَيْكُمْ : اُوس تخويف اُخروى ذكر كوى. يعنى اے زما قومه ! زۀ ستاسو په باره كښ د قيامت د ورځے د عذاب نه يريږم.

د قيامت ورځے ته ﴿ يَوْمَ التَّنَادِ ﴾ (د آوازونو ورځ) ځكه ووئيلے شوه چه په دے ورځ به تمام قومونه خپلو خپلو عملونو سره رابللے كيږى، او جنتيان به جنت والو ته آوازونه كوى، او جهنميان به جهنم والو ته. دارنگه جنتيان به جهنم والو ته او جهنم والا به جنت والو ته او اعراف والا دواړو ته لكه تفصيل ئے په سورة الاعراف كښ راغلے وو.

دارنگه آوازونه د ملائكو جنتيانو ته او آوازونه د ملائكو جهنميانو ته، او هر چا ته آوازونه د هغوى د امام په نوم، او د ظالمانو او كافرانو فريادونه او افسوسونو ته آوازونه كول، او د الله تعالىٰ آواز پيرانو او انسانانو ته. مؤمن به آواز كوى ﴿ هَاؤُمُ اقْرَءُوْا كِتَابِيَهْ ﴾ (الحاقه : ١٩) او كافر به آواز كوى ﴿ يَا لَيْتَنِىْ لَمْ اُوْتَ كِتَابِيَهْ ﴾ (الحاقه : ٢٥).

بعض مفسرينو ليكلى چه كله زمكه اوشليږى، او د قيامت هنگامه راپورته شى، نو ټول خلق به يو بل ته آوازونه كولو سره اخوا ديخوا اُوتښتى، دے وجے نه دے ورځے ته ﴿يَوْمَ التَّنَادِ﴾ وئيلے شوے، يعنى په كومه ورځ چه به يو بل ته آوازونه كوى.

بغوی وغیره وائی چه پورتنی تمام حالات به مخې ته راځي، او ددې تولو په وجه دې ورځې ته ﴿يَوْمَ التَّنَادِ﴾ وئیلې شوې. (معالم التنزیل)

يَوْمَ تُوَلُّوْنَ مُدْبِرِيْنَ : ١- رجل مؤمن ووېل چه زۀ په تاسو د هغه ورځې نه یریږم چه تاسو به د حساب نه پس د میدان حشر نه جهنم طرفته روان کړې شئ.

٢- په محاوره کښې ددې داسې معنیٰ کیږي. (فَارِّيْنَ غَيْرَ مُعْجِزِيْنَ) (مجاهدؒ)

یعنی الله چه کله عذاب ذکر کړي نو تاسو به وتښتئ لیکن په تیښته به خلاصیدې نۀ شئ. د تیښتې لاره به مو نۀ وي. په دې ورځ به تاسو د الله تعالیٰ د عذاب نه هیڅوك بچ نۀ کړي، نو اُوس په دنیا کښې د الله تعالیٰ سره په ایمان باندې تعلق جوړ کړئ چه هغه مو مدد وکړي.

وَمَنْ يُضْلِلِ اللّٰهُ: **سوال** پیدا شو چه دا خو ډیرې مزیدارې خبرې وې آیا پدې سره چا ته هدایت وشو؟ نو جواب وشو چه هغه څوك چه الله تعالیٰ ئې ګمراه کړي نو هیڅوك هدایت کونکې ورله نشته. دا د دوی د ضد د وجه نه الله تعالیٰ ګمراه کړي وو.

| وَلَقَدْ جَاءَكُمْ يُوْسُفُ مِنْ قَبْلُ بِالْبَيِّنَاتِ |
|---|
| او یقیناً راغلې وو تاسو ته یوسف مخکښې ددې نه په ښکاره دلیلونو |
| فَمَا زِلْتُمْ فِيْ شَكٍّ مِّمَّا جَاءَكُمْ بِهٖ حَتّٰى |
| نو تاسو همیشه وئ په شك کښې د هغې نه چه راغلې وو تاسو ته په هغې باندې تردې |
| إِذَا هَلَكَ قُلْتُمْ لَنْ يَّبْعَثَ اللّٰهُ مِنْ بَعْدِهٖ |
| چه کله وفات شو هغه اُووئیل تاسو هیچرې به راونۀ لیږي الله تعالیٰ روستو د هغه نه |
| رَسُوْلًا كَذٰلِكَ يُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ |
| یو رسول، دغسې ګمراه کوي الله تعالیٰ هغه چا لره چه اسراف کونکې وي، |
| مُّرْتَابٌ ﴿٣٤﴾ الَّذِيْنَ يُجَادِلُوْنَ فِيْ آيَاتِ اللّٰهِ |
| سخت شك کونکې وي. هغه کسان چه جګړه کوي په آیتونو د الله تعالیٰ کښې |
| بِغَيْرِ سُلْطَانٍ أَتَاهُمْ كَبُرَ مَقْتًا |
| په غیر د دلیل نه چه راغلې وي دوی ته، ډیره لویه ده دا جګړه په اعتبار د غصې |

| عِنۡدَ اللّٰهِ وَعِنۡدَ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا كَذٰلِكَ يَطۡبَعُ |
|---|
| په نیز د الله تعالیٰ او په نیز د هغه کسانو چه ایمان ئے راوړیدے، دغسے مهر وهی |
| اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ قَلۡبِ مُتَكَبِّرٍ جَبَّارٍ ﴿۳۵﴾ |
| الله تعالیٰ په پوره زړهٔ د تکبر کونکی زورور باندے۔ |

**تفسیر**: اُوس ورته دلیل نقلی د یوسف علیه السلام نه ذکر کوی۔او پدے کښ د دوی پخوانئ سرکشی د انبیاء علیهم السلام نه ورته یادوی، او دعوت ورکوی چه دا سرکشی پریدئ۔
یعنی اے مصر والو! موسیٰ نه مخکښ ستاسو خواته یوسف بن یعقوب بن اسحاق بن ابراهیم (علیهم السلام) معجزے او د خپلے رشتین ولئ ښکاره نښے راوړے وے، او ډیرو کلونو پورے ئے تاسو ته د یو الله تعالیٰ د عبادت دعوت درکولو، او خپله د هغهٔ اعلیٰ ترین کردار د هغهٔ د باطن د پاکوالی او د هغهٔ د نبی کیدو گواهی ورکوله، لیکن تاسو خلقو د هغهٔ په راوړی دینِ توحید کښ شك کونکی وئ۔ او کله چه هغه وفات شو نو تاسو ډیر خوشحاله شوئ او د کفر په وجه مو وویل چه اوس به د یوسف نه پس هیڅ یو رسول نهٔ راځی، یعنی تاسو د یوسف او د هغهٔ نه د روستو راتلونکو تمامو انبیاء کرامو نه انکار وکړو، دا ستاسو د گمراهئ انتهاء وه۔
وَلَقَدۡ جَآءَكُمۡ: خطاب دوی ته کوی ځکه چه یوسف علیه السلام د دوی په مصر کښ راغلے وو۔ ❁ یا خطاب په اصل کښ مشرانو ته وو لیکن موجوده د پلارانو په لاره روان وو، نو دواړه په خطاب کښ یو شان وګرځولے شو۔ او دا قول قرطبیؒ غوره کړیدے۔
❁ – صاحب د فتح البیان وائی چه دا خطاب په خپل حقیقت بناء دے او فرعون په وړوکوالی کښ یوسف علیه السلام هم لیدلے وو ځکه چه ددهٔ څلور سوه څلویښت (۴۴۰) کاله عمر وو۔ (قاله القاریؒ)
او سیوطیؒ په التحبیر کښ لیکلی دی چه د یوسف علیه السلام ژوند (۱۲۰) کاله وو او د یوسف او د موسیٰ علیهما السلام ترمینځ (۴۰۰) کاله عمر وو۔ (فتح البیان)
اول قول د قرآن کریم د نورو آیتونو سره زیات موافق دے، چه موجودو ته د خپلو اسلافو کارنامے ذکر کوی۔
بِالۡبَيِّنٰتِ: ددے نه مراد هغه تفصیلی بیان د توحید دے کوم چه په سورة یوسف

(۳۹/ ٤٠) كښې ذكر دے۔ ابن جريج وائي چه ددے نه مراد د يوسف عليه السلام خوب دے۔(چه د هغه په حق رسول كيدو باندے دليل وو)۔

فَمَا زِلْتُمْ فِي شَكٍّ: يعني په زړونو كښې مو شك وو چه دا به رسول وي او كه نهٔ ليكن په ظاهره كښې به ئے ورله خبره منله (طَمَعًا فِي الْوِزَارَةِ) ځكه چه د هغه د وزارت نه د مفادو حاصلولو طمع به ئے لرله۔ او لږ لږ مؤمنان هم وو۔

هَلَكَ: يعني وفات شو۔

لَنْ يَّبْعَثَ اللهُ مِنْ بَعْدِهٖ رَسُوْلًا: ۱- چا دے كښې دا مطلب اخستے دے چه دا لَنْ تمنائيه دے يعني دوى ارمان وكړو چه دا خو ډير ښه رسول وو ارمان چه الله تعالىٰ يو بل رسول راوليږى نو ډير به ښه وي۔ نو اشاره ده چه اُوس د موسىٰ عليه السلام نه انكار كوئ او بيا به وروسته ارمانونه كوئ۔ دا مقصد غوره نهٔ دے، دا لن تمنائيه نهٔ دے۔

۲- بلكه مقصد پدے كښې انكار د رسول دے۔ يعني ستاسو په زړونو كښې داسے كفر وو چه دا يو رسول وو بس ختم، او بل به رانهٔ شي يعني د هغه نه مو په ژوند كښې انكار وكړو او د هغه د مرګ نه روستو مو په نورو رسولانو كفر وكړو، يعني د دوى په زړونو كښې دومره لوى ضد او عناد د رسولانو وو چه دوى دا غوښتله چه بل رسول رانهٔ ليږلے شي ښه به وي چه د هغه د لانجو نه خلاص شو۔ د دوى دا خيال وو چه په دوى به الله تعالىٰ حجت قائم نكړى مګر الله تعالىٰ د هغه نه روستو نور رسولان راوليږل تردے چه موسى عليه السلام ئے راوليږلو او په خلكو ئے حجت قائم كړو۔ (افاده الخازن والخطيب مع تغير في العبارة)

مُسْرِفٌ مُّرْتَابٌ: مُسْرِفٌ فِي الْكَذِبِ وَالْعِصْيَانِ۔ الله تعالىٰ په دروغ ترلو او په نافرمانئ كښې د حد نه تجاوز كونكے او په هره خبره كښې شك كونكے دغسے ګمراه كوى۔

مُرْتَابٌ: فِيْ دِيْنِهٖ، شَاكٌّ فِيْ وَحْدَانِيَّتِهٖ وَوَعْدِهٖ وَوَعِيْدِهٖ۔ چه د الله په دين كښې شك كوى، او د هغه په وحدانيت او د هغهٔ په وعد او وعيد كښې، يا (فِيْمَا تَشْهَدُ بِهِ الْبَيِّنَاتُ) يعني شك كوى په ښكاره دليلونو كښې تردے چه د انكار درجے ته ورسيږى نو مرتاب شي۔

اَلَّذِيْنَ يُجَادِلُوْنَ: دا بدل دے د (مُسْرِفٌ مُّرْتَابٌ) نه۔ او پدے كښې ترقى ده د دوى په ګمراهئ كښې۔ يعني اول شك وي بيا ارتياب (مضبوط شك) شي بيا داسے ګمراه شي چه په حق كښې جګړے شروع كړى۔

اَلَّذِيْنَ: يعني كوم خلق چه د حق آواز ښكته كولو دپاره شيطاني حربے (چلونه)

استعمالوی، او د الله تعالیٰ لـه اړخـه په غیر د څهٔ حجت او دلیل نه د هغهٔ په آیتونو کښې شـکـوك او شبهات پیدا کوی دے دپاره چه خلق ایمان رانهٔ وړی، د دویٔ دا کردار د الله او د هغـهٔ د مـو منانـو بـندگانو په نظر کښې ډیر زیات ناخوښه دے، او د داسے خلقو په زړونو بـاندے الله تعالیٰ مهر لګوی، د هغویٔ نه د بصیرت او عقلمندیٔ رڼړا اخلی، بیا هغویٔ د حق او باطل د تمییز نه محرومیږی۔

بِغَیْرِ سُلْطَانٍ اَتَاهُمْ: دا قیـد ځـکه وائی چه که د یو تن د دلیل په بنیاد د بل سره جګړه وشی چه مثلاً یو تن د یو آیت یو مطلب اخلی او بل ئے بل مطلب اخلی او دواړه دلیلونه وائی نو دا جګړه منع نهٔ ده، بلکه د اِحْقَاقُ الْحَقِّ (د حق د ثابتولو) دپاره ده۔ خو چه کله یو طرفتـه قـرآن او حـدیث دلیل وی، او بل طرفته هیڅ دلیل نهٔ وی بلکه د خپلے خیټے نه لګیا وی، دلیل منزل ورسره نهٔ وی نو دے خلکو ته الله تعالیٰ هدایت نهٔ کوی۔

كَبُرَ مَـقْتًا عِنْدَ اللّٰهِ وَعِنْدَ الَّذِیْنَ آمَنُوْا: کَبُرَ کښې ضـمیر جدال ته راجع دے، او مَقْتًا تـمییـز دے۔ یعنی دا جدال د الله په نیز او د مؤمنانو په نیز ډیر لوی دے په اعتبار د غصے سره۔ یعنی الله تعالیٰ او مؤمنان په جدال بالباطل باندے ډیر سخت غصه کیږی۔

ددے آیت فائده دا ده چه یو ځای کښې چا د قرآن یا د حدیث رد کولو، ددے نه ئے جوابونه کـول، پـدے بـاندے ئے اعـتـراضات کول، او دا ئے ورانول او تا له پدے باندے غصه درتلهٔ نو تهٔ مؤمن ئے، او که قهر نهٔ درتللو او هسے مُداهِن وے نو بیا تهٔ مؤمن نهٔ ئے۔

او پـدے آیـت کـښې فکر وکړه۔ لکه بعض خلك دا وائی چه په درس یا تقریر کښې علماء ولے غـصـه کیږی او دومره خبرے له زور ورکوی، یا په فلانیٔ مسئله کښې دے عالِم دومره لانجه څه له جوړه کړیده، نو ددے وجه دا ده چه ایمان ورته دا خبره کړی وی چه پدے حقو لانـجـو بـانـدے مـضبوط شه۔ که چا کښې ایمان نهٔ وی نو دلته به شرك او کفر کیږی او د پیغمبر د سنتو بے عزتی به کیږی، هغه به رد کیږی نو د هغه به هیڅ پرواه نهٔ وی۔ قرآن انسـان تـه غیـرت ورکوی۔ او غیرتی مؤمن د الله تعالیٰ خوښ وی، هسے فضائلو والا درته نهٔ جوړوی چه په ګناه باندے نهٔ خفه کیږی۔

كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ: کاف تشبیهی دے، یا تعلیلی دے۔ اَیْ كَذٰلِكَ الطَّبْعُ الْمُحْكَمُ۔ یعنی د دغـه مـضبوط مهر پـه شان مهر وهی۔ یا ددے وجه نه چه جدال کوی نو الله تعالیٰ د متکبر او جبار په ټول زړه باندے مهر وهی۔

عَلٰى كُلِّ قَلْبٍ: دلتـه ئے داسے ونهٔ وئیل چه (عَلٰى قَلْبِ كُلِّ مُتَكَبِّرٍ) چه د هر متکبر په

زړهٔ بانـدې مهر وهي، ځکه چه ډیرو متکبرانو ته الله تعالیٰ هدایت هم کوی بلکه د کوم متـکبـر په زړهٔ چه مهر وهي نو بیا ورله پوره مهر وهي، کله نا کله په زړهٔ مهر راشي خو هغـه یو تور داغ وی، نو دا د مسلمان په زړهٔ هم راځي د ګناه د وجه نه، او د کافر متکبر او جبار پـه زړه سم مـضبـوط مهر وهـي چه بیـا ورتـه هیـڅ کـلـه هدایت نهٔ کیږی لکه د فرعونیانو په شان۔

متکبر دا په حقوق الله کښې دے او جبار په حقوق العباد کښې دے۔

| وَقَالَ فِرْعَوْنُ يَا هَامَانُ ابْنِ لِي صَرْحًا لَّعَلِّيْ أَبْلُغُ |
|---|
| او ووئیل فرعون اے هامانه! جوړه کړه ما له اُوچته بنګله دے دپاره چه زهٔ اُورسیږم |
| الْأَسْبَابَ ﴿٣٦﴾ أَسْبَابَ السَّمَاوَاتِ فَأَطَّلِعَ إِلَىٰ إِلَٰهِ مُوسَىٰ |
| لاروته۔ لارو د آسمانونو ته پس چه ور ښکاره به شم معبود د موسیٰ ته |
| وَإِنِّي لَأَظُنُّهُ كَاذِبًا ۚ وَكَذَٰلِكَ زُيِّنَ |
| او یقیناً خامخا زهٔ ګمان کوم په دهٔ باندے د دروغژن، او دغه شان ښائسته کړے شوے |
| لِفِرْعَوْنَ سُوءُ عَمَلِهِ وَصُدَّ عَنِ السَّبِيلِ ۚ وَمَا |
| وو فرعون ته بد عمل د هغهٔ، او منع کړے شوے وو د نیغے لارے نه، او نهٔ وو |
| كَيْدُ فِرْعَوْنَ إِلَّا فِي تَبَابٍ ﴿٣٧﴾ |
| چل وَل د فرعون مکر په تباهئ کښې وو۔ |

**تفسیر** : په فـرعـون بـانـدے د مومن سړی د زړهٔ راښکونکی تقریر هیڅ اثر ونښو، او بیرتـه خپـل تـکبـر تـه واپس شو او هـامـان تـه ئې وویـل چه ماله یوه انتهائی اُوچته او مـضبـوطـه آبادی جوړه کړه چه د هغې په ذریعه زهٔ د آسمان لارے قطع کړم او د موسیٰ معبود اووینم، حالانکه زهٔ خو موسیٰ دروغژن ګنړم چه مانه سوئ د هغهٔ بل کوم معبود شتـه دے۔ پـدے طـریـقـه ئې په خلکو تلبیس کولو دے دپاره چه د خلکو په زړونو کښې د رجل مؤمن تقریر څه اثر ونکړی۔ ډیرو مشکلاتو سره اخته وو۔

وَقَالَ فِرْعَوْنُ: شوکـانـیؒ لیـکـی چه د فـرعـون خبره دلالت کوی چه هغه ډیر لوئې جـاهـل او کم فهم انسان وو، او د حقائقو د اِدراك نه بیخي کوتاه وو، ځکه خو ئې هامان ته

داسې د کم عقلئ خبره کړې وه۔
صَرۡحًا: مضبوط قلعه، یعنی د موسیٰ اِلٰه به یا په زمکه کښې وی نو دلته خو مونږ ونهٔ ولیدو یا به په آسمانونو کښې وی نو د هغې د مقابلې دپاره د اسبابو جوړولو حکم ئې هامان ته وکړو۔
اَلۡاَسۡبَابَ: هر هغه څیز ته وئیلې شی چه بل ته پرې رسیدل کیدې شی لاره وی او که دروازه۔
فَاَطَّلِعَ: یعنی کله چه زهٔ د آسمان دروازو او لارو ته ورسیدم نو هلته به د موسیٰ اِلٰه ته ورښکاره شم او هغه به وینم۔ دا دلیل دې چه الله تعالیٰ پورته د عرش دپاسه دې او په هر ځای کښې نهٔ دې۔ لیکن مجرمانو ددې نه اُلټه دلیل نیولې دې وائی چه څوك دا عقیده لری چه الله تعالیٰ پورته دې نو دا د فرعون عقیده ده چه هغه وئیلی وو چه الله تعالیٰ بره دې زهٔ ورخیژم۔
جواب دا دې چه دلته فرعون د موسیٰ علیه السلام د خبرې رد کوی چه موسیٰ علیه السلام وائی چه زما رب شته او هغه د آسمانونو دپاسه دې۔ نو دې وائی چه زهٔ بره ورخیژم۔ که داسې نهٔ وی او الله هر ځای کښې وې نو بیا به ورته موسیٰ علیه السلام وئیلی وې، چه بره څه له خیژې زما رب خو په زمکه کښې هم دې، دلته ئې مقابله وکړه۔
وَاِنِّیۡ لَاَظُنُّهٗ کَاذِبًا: یعنی زهٔ په موسیٰ باندې د دروغجن ګمان کوم، بره هیڅ اِلٰه نشته، هسې به رابانده خواری وکړی، او هلته به نهٔ وی، خو زهٔ دده ګمان مطابق به وخیژم۔
وَکَذٰلِكَ زُیِّنَ لِفِرۡعَوۡنَ سُوۡٓءُ عَمَلِهٖ: الله تعالیٰ وفرمایل چه په کفر او تکبر کښې د حد نه تیریدو په وجه د فرعون په زړهٔ باندې مهر ولګولې شو او د هغهٔ بدعملئ او کفر د هغهٔ په نظرونو کښې ښائسته جوړ کړې شوی وو، او د حقې لارې د تابعدارئ نه بند شوې وو، او د هغهٔ سازش او د هغهٔ چل د هغهٔ په کار رانغې۔
وَصُدَّ عَنِ السَّبِیۡلِ: دا قانون دې چه څوك بد عملونه کوی، او باطل دعوت کوی ددې په وجه به د نیغې لارې نه ګمراه کیږی۔
وَمَا کَیۡدُ فِرۡعَوۡنَ: آیا د فرعون دې چلونو کار ورکړو؟ نو الله فرمائی دا هیڅ چل ئې په کار رانغې بلکه تباه شو۔ او الله تعالیٰ موسیٰ علیه السلام او د هغه ملګری بچ کړل۔

وَقَالَ الَّذِىٓ آمَنَ يَا قَوْمِ اتَّبِعُوْنِ

او اُووئيل هغه سړي چه ايمان ئے راوړے وو اے قومه زما ! تابعداري اُوکړئ زما،

أَهْدِكُمْ سَبِيْلَ الرَّشَادِ ﴿٣٨﴾ يَا قَوْمِ إِنَّمَا هٰذِهِ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا مَتَاعٌ

ويه ښايم تاسو ته لاره د هدايت۔ اے قومه زما ! يقيناً دا ژوند دنيوی لږه فائده ده

وَإِنَّ الْآخِرَةَ هِيَ دَارُ الْقَرَارِ ﴿٣٩﴾

او يقيناً آخرت هغه كور د اُوسيدو دے۔

**تفسير** :اتَّبِعُوْنِ: دے رجل مؤمن خپلے تابعدارئ ته دعوت وركړيدے، او د سورة يس رجل مؤمن رسولانو ته دعوت وركړے وو۔ (۱) وجه دا ده چه هغه نوے مسلمان وو او دا رجل مؤمن زوړ مسلمان دے، نو علم ئے حاصل كړيدے او د عالِم طريقه دا وی چه هغه خلكو ته د خپلے تابعدارئ حكم وركوی چه دے ئے د كتاب او سنت په رڼا كښې هدايت ته رسوی۔ (۲) ظاهره وجه دا ده چه هلته رسولان مخامخ وو، نو هغوی طرفته ئے دعوت وركړو او دلته دۀ د موسیٰ عليه السلام نه غائبانه تقرير كړيدے نو ځكه ئے (اتبعون) وئيلے دے۔ بيا ئے خپل عمل ته دعوت نۀ دے وركړے چه زۀ څه كوم هغه وكړئ، بلكه مطلب ئے دا دے چه زۀ تاسو ته كوم دعوت دركوم هغه دعوت قبول كړئ، هغه دا چه زۀ تاسو ته موسیٰ عليه السلام لاره ښايم۔ نو اتباع د سنت ته ئے دعوت وركړے۔

په بل تعبير سره : ما چه كوم دين قبول كړے هغه تاسو هم قبول كړئ، زۀ به تاسو په هغه لاره باندے روان كړم چه هغه د جنت لاره ده۔ نو د اتباع نه مراد موافقت او ملګرتيا ده په قبلولو د دين كښې يعنی زما موافقت وكړئ په تابعدارئ موسیٰ عليه السلام كښې۔

يَا قَوْمِ إِنَّمَا هٰذِهِ: د دنيا بے رغبتی او د آخرت ترغيب وركوی، ځكه چه په دنيا كښې د كفر او شرك غټ سبب دنيا ده۔ او مطلب ئے دا دے چه د دنيا د اقتدار او فائدو دپاره د پيغمبر مخالفت مۀ كوئ، دا دنيوی ژوند خو د يو څو ورځو دے، چه دا به بهر حال ختميږی، او د آخرت ژوند چه ددے ژوند نه پس راتلونكے دے، همدا په حقيقت كښې د ابدی امن او پاتے كيدو او د سكون او د راحت ژوند دے، دے وجے نه تاسو له ددے ابدی راحت او سكون والا ژوند د كاميابولو كوشش كول پكار دی۔

بعض اهل علم فرمائی : دنيا كه سره زر شی خو چه فانی وی او آخرت يو تكرے شی

خو چه باقي وي نو خامخا به آخرت د دنيا نه غوره وي نو پاتے لادا چه آخرت د سرو زرو په شان دے او باقي دے او دنيا د ټيکرې په شان دے چه فاني کيدونکے ده۔

مَتَاع: علامه بقاعيؒ او شربينيؒ ليکي چه د عربو په محاوره کښې متاع مردارے ته وئيلے شي چه صرف د سخت ضرورت په وخت کښې د ضرورت مطابق جائز ده، نو دارنګه دنيا هم ده۔ او متاع لفظ دلالت کوي په زر فاني کيدو باندے نو ددے په مقابله کښې ئے دار القرار ووئيلو چه د جنت فناء نشته بلکه هميشه ژوندون دے۔

| |
|---|
| مَنْ عَمِلَ سَيِّئَةً فَلَا يُجْزٰى إِلَّا مِثْلَهَا وَمَنْ |
| چا چه عمل وکړو بد نو بدله نشي ورکولے هغهٔ ته مګر پشان د هغے او چا چه |
| عَمِلَ صَالِحًا مِّنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَأُولٰئِكَ يَدْخُلُوْنَ |
| عمل اُوکړو نيك، نارينه وي او که زنانه، اِو دے مؤمن وي نو دغه کسان به داخليږي |
| الْجَنَّةَ يُرْزَقُوْنَ فِيْهَا بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٤٠﴾ وَيَا قَوْمِ مَا لِيْ |
| جنت ته، رزق به ورکولے شي په غير د حساب نه۔ او اے قومه زما څه وجه ده ما لره |
| أَدْعُوْكُمْ إِلَى النَّجَاةِ وَتَدْعُوْنَنِيْ إِلَى النَّارِ ﴿٤١﴾ تَدْعُوْنَنِيْ |
| چه زهٔ رابلم تاسو نجات (خلاصي) ته، او رابلئ تاسو ما لره اُور ته۔ تاسو رابلئ ما |
| لِأَكْفُرَ بِاللّٰهِ وَأُشْرِكَ بِهٖ مَا لَيْسَ لِيْ |
| دے ته چه زهٔ کفر اُوکړم په الله باندے او شرك اُوکړم د هغهٔ سره هغه چه نشته ما لره |
| بِهٖ عِلْمٌ وَّأَنَا أَدْعُوْكُمْ إِلَى الْعَزِيْزِ الْغَفَّارِ ﴿٤٢﴾ |
| په هغے باندے علم، او زهٔ راغوارم تاسو زورور ډيره بخنه کونکي ذات ته۔ |
| لَا جَرَمَ أَنَّمَا تَدْعُوْنَنِيْ إِلَيْهِ لَيْسَ لَهٗ دَعْوَةٌ |
| خامخا يقيناً هغه شے چه تاسو رابلئ ما لره هغے ته نشته هغهٔ لره دعا قبلول |
| فِي الدُّنْيَا وَلَا فِي الْاٰخِرَةِ وَأَنَّ مَرَدَّنَا إِلَى اللّٰهِ |
| په دنيا او نهٔ په آخرت کښې، او يقيناً واپسي زمونږ الله تعالىٰ ته ده |

وَأَنَّ الْمُسْرِفِيْنَ هُمْ أَصْحَابُ النَّارِ ﴿٤٣﴾

او یقیناً زیاتے کونکي (مشرکان) هم دوی اُور والا دي.

**تفسیر** : یعنی یاد ساتئ چه د حساب ورځ ډیره زیاته نزدے ده، کوم کس چه په دے دنیا کښې بدی وکړی نو ددے برابر به دهٔ ته سزا ملاویږی، او کوم خلق چه (نارینه وی اوکه زنانه) په الله او د هغهٔ په رسول ایمان لری او نیك عملونه کوی، دوئ به په جنت کښې وی چرته چه به دوئ ته په غیر د څهٔ پریشانئ نه بے شماره بے حسابه روزی ملاویږی.

یُرْزَقُوْنَ : د الله د رحمت فراخئ ته وګوره چه داسے ئے ونهٔ وئیل چه په نیکئ باندے صرف لس اجرونه دی، بلکه داسے جنت ورکول دی چه هغے کښې نهٔ ختمیدونکی رزقونه او مزے دی. دائمی اجرئے دے، الله تعالیٰ د نیکیو سره ډیره مینه لری نو ځکه پرے همیشه جنت ورکوی.

بِغَيْرِ حِسَابٍ: كَثِيْرًا بِلَا مِقْدَارٍ. یعنی ډیره بے اندازے. یا په دغه رزق به حساب نهٔ وی چه ولے دے ډیر وخوړو او دا فلانے شے دے ولے استعمال کړو.

وَيَا قَوْمِ مَا لِيْٓ اَدْعُوْكُمْ : اُوس ئے په ناشنا انداز سره متوجه کوی، او محاکمه ورسره کوی چه زما دعوت جنت او نجات ته دے، او ستاسو دعوت د اُور دے، نو کوم یو دعوت منل پکار دی.

مَا لِيْ: دا په اصل کښې مَالَكُمْ دے یعنی تاسو له څه شویدی، لیکن د داعیانو طریقه دا وی چه د خیرخواهئ د وجه نه ځان یادوی چه ما له څه شویدی.

النَّجَاةِ: یعنی خلاصیدو ته د اُور نه.

وَتَدْعُوْنَنِيْ: دا بیان د (تَدْعُوْنَنِيْٓ اِلَى النَّارِ) دے. سوال پیدا شو چه مونږ کله تا ته وئیلی دی چه اُور ته راشه؟، نو هغه جواب ورکړو چه دا د اُور دعوت دے چه تاسو ما ته دعوت راکوئ چه زهٔ په الله کفر وکړم او د هغه سره بغیر د علم او دلیل نه شریکان جوړ کړم چه د هغوی په معبود کیدو باندے ما ته هیڅ علم نشته.

وَاُشْرِكَ: دا دلیل دے چه شرك بعینه کفر دے.

وَاَنَا اَدْعُوْكُمْ اِلَى الْعَزِيْزِ الْغَفَّارِ: یعنی او زهٔ تاسو هغه الله طرفته رابلم چه زورور دے، په هغهٔ باندے هیڅوك غالبه کیدے نشی، او هغه ډیر زیات معافی کونکے دے. یعنی د هغهٔ بندګئ ته مو راغواړم ځکه چه د هغهٔ په بندګئ کښې سړی ته الله

ملاوېږي۔ او عزیز کښې دهمکي ده چه د دشمنانو ملا ماته وي، او غفار کښې بشارت دے چه دوستانو ته بخنه کوي، نو راشئ د گناهونو نه توبه کړئ۔

لَا جَرَمَ أَنَّمَا تَدْعُونَنِيْ إِلَيْهِ : اُوس ورته د بتانو او د شرك د لارے کمزوري بیانوي۔ یعني د کومو بتانو د عبادت چه تاسو ماته بلنه راکوئ، د هغوئ د رابللو نۀ په دنیا کښې څۀ فائده شته چه هغوئ زمونږ تکلیفونه او مصیبتونه لرے کړي او زمونږ ضرورتونه پوره کړي، او نۀ په آخرت کښې زمونږ سفارشیان جوړیدو سره عذاب اړولے شي، ځکه دا خو کانړي دي۔ یوه بله معنیٰ دا هم بیان شوے ده چه دوئ په دنیا او آخرت کښې هیڅ کله هم د رابللو حقدار نۀ دي، ځکه چه دا خو د خاورے او کانړو نه جوړ شوي دي۔

أَنَّمَا : دلته ما موصوله ده او مراد ترے هر معبود من دون الله دے، بتان وي که بزرگان وغیره۔

لَيْسَ لَهُ دَعْوَةٌ: ۱- زجاجؒ وئیلي دي : [لَيْسَ لَهُ اسْتِجَابَةُ دَعْوَةٍ] د هغۀ دپاره قبلیدل د دعاء نشته۔ ۲- کلبيؒ وئیلي دي : (لَيْسَ لَهُ شَفَاعَةٌ) یعني د هغۀ سفارش نشته۔

د زجاجؒ مطلب دا دے چه تۀ ترے دعاء غواړے نو هغه درله نشي قبلولے، او د کلبيؒ مطلب دا دے چه هغه ستا دپاره دعا نشي غوښتے۔ او تفسیر د کلبيؒ غوره دے ځکه چه پدے کښې تاکید زیات دے۔ یعني دا بتان او نور معبودان ستاسو دپاره په دنیا کښې هم دعا نشي کولے او نۀ د الله په دربار کښې سفارش کولے شي چه ستاسو په مالونو کښې برکت واچوي، او د مصیبتونو نه مو خلاص کړي۔

۳- یا معنیٰ ده : لَيْسَ لَهُ دَعْوَةٌ تُوْجِبُ الْأُلُوْهِيَّةَ ۔ یعني ددۀ د عبادت او د دعاء حق نشته یعني په دنیا او آخرت کښې د دعاء او عبادت حقدار نۀ دي۔

٤- یا معنیٰ دا ده چه نۀ ئے د فائدے آواز شته او نۀ د ضرر۔ لغوي معنیٰ د دعوة آواز دے۔ (قتادهؒ) دا هم ښه تفسیر دے۔

وَأَنَّ الْمُسْرِفِيْنَ : په دے دنیا کښې چه کوم خلق د حد نه تجاوز کوي، د الله تعالیٰ نه انکار کوي، او د هغه سره شرك کوي، (قتادهؒ، وابن سیرینؒ) په خلقو ظلم کوي، بے گناه وینه بهیوي، (ابن مسعودؓ، مجاهدؒ والشعبيؒ)

په آخرت کښې به د دوئ د وسیدو ځاي جهنم وي۔

مفسرین لیکي چه د مومن سړي په دے خبره کښې اشاره وه چه فرعون او د هغۀ تابعدار په کفر او ظلم کښې د حد نه تیر شوي وو، او د بني اسرائیلو ځامن به ئے ناحقه

وژل۔ دارنګه د موسیٰ علیه السلام د وژلو اراده په ظلم کښې د حد نه تیر وتل دی، چه ددے انجام به ښهٔ نهٔ وی۔

| |
|---|
| فَسَتَذْكُرُونَ مَا أَقُولُ لَكُمْ وَأُفَوِّضُ أَمْرِي |
| پس زر دے چه تاسو به یاده کړئ هغه خبره چه زهٔ ئے درته وایم، او سپارم زهٔ کار خپل |
| إِلَى اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ ﴿٤٤﴾ فَوَقَاهُ اللَّهُ |
| الله تعالیٰ ته، یقیناً الله تعالیٰ لیدونکے دے د بندګانو خپلو۔ نو بچ اوساتو دهٔ لره الله |
| سَيِّئَاتِ مَا مَكَرُوا وَحَاقَ بِآلِ فِرْعَوْنَ |
| تعالیٰ د بد انجام د هغه مکرونو نه چه دوی جوړ کړی وو او راګیر کړو فرعونیانو لره |
| سُوءُ الْعَذَابِ ﴿٤٥﴾ النَّارُ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَعَشِيًّا |
| بد عذاب۔ چه هغه اور دے پیش کولے شی دوی په هغے باندے صبا او بیګاه |
| وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ أَدْخِلُوا |
| او په کومه ورځ چه قائم شی قیامت (الله به ووائی ملائکو ته) داخل کړئ |
| آلَ فِرْعَوْنَ أَشَدَّ الْعَذَابِ ﴿٤٦﴾ |
| فرعونیان سخت عذاب ته۔ |

**تفسیر:** مومن سړی ووېل : اے خلقو ! کله چه د الله عذاب تاسو د خلورو واړو طرفونو نه راګیر کړی په دے وخت کښې به ما او زما خبرے تاسو رایادے کړئ، او زهٔ خپله معامله الله ته حواله کوم، هغه د خپلو منونکو او نهٔ منونکو تمامو بندګانو نه ښهٔ خبر دے۔ هغه بهتر پیژنی چه څوك د ښیے بدلے حقدار دے او څوك د عذاب۔

مفسرین لیکی چه د مومن سړی په دے خبره کښې فرعونیانو له د عذاب دهمکی ورکول وو۔ او دا خبره دهٔ هغه وخت وکړه کله چه فرعونیانو دهٔ لره وژل وغوښتل۔

مقاتلؒ وائی چه دا مومن سړے اوتښتیدهٔ او غرهٔ طرفته لاړ او کافرانو هغه را ونهٔ نیولے شو۔ قتادهؒ وائی چه بیا (کله چه موسیٰ علیه السلام هجرت کولو نو دے ورسره یو ځای شو او الله تعالیٰ د بنی اسرائیلو سره د غرقیدو نه بچ کړو۔

وَاُفَوِّضُ اَمْرِیْ: دے تـه تـوکـل وائی چه ټول کارونه الله ته وسپاری، د هغه په بنائسته تدبیر او پروګرام باندے ئے یقین وی چه هغه به ئے سرته رسوی۔
فَوَقَاهُ: یعنی هرکله چه هغه الله تعالیٰ ته ځان وسپارلو نو الله تعالیٰ هم بچ کړو۔
سُوْءُ الْعَذَابِ: بد عـذاب نـه مـراد دا دے چـه پـه دریاب کښ (په ذلت او رسوائی سره) غرق شو او اُور ته داخل شو۔ (کلبیؒ) او ظاهر دا ده چه د سوء العذاب نه مراد د قبر عذاب دے ځکه چه قبر وئیلے شی آخِرُ مَقَرِّ الْاِنْسَان ته، یعنی آخری ځای د وسیدو د انسان ته نو کـه څوك اُور تـه ګـوزار شـی، اُور ئے آخری ځای دے، او که څوك اُوبو کښ غرق شی، نو اُوبـه ئے قبر دے، پـه هـغـے کـښ بـه عذاب ورکولے شی او الله تـعـالیٰ پـدے قـادر دے نو فرعونیانو ته په اُوبو کښ بد عذابونه ملاؤ شو۔
او فـرعـون اول غرق شو بیا د دریاب نه راوبستلے شو او په یوه کنده کښ واچول شو بیا روستـو مـصـر تـه راوړے شو او اُوسـه پـورے د قاهرے په عجائب ګهر کښ پروت دے۔ او عذابونه پرے پیش کیږی۔
اَلنَّارُ یُعْرَضُوْنَ: دا (اَلنَّارُ) بدل دے د (سُوْءُ الْعَذَاب) نه۔
یعنی په قبر او برزخ کښ به بیګاه صبا یعنی هر وخت د دوئ روحونو له عذاب ورکړے کیږی، اوکـلـه چـه قیـامـت راشـی نـو الله تعالیٰ به ملائکو ته حکم وکړی چه فرعون او فرعونیان په سخت ترین عذاب کښ واچوئ۔
قـرطبیؒ وائی: د دوی روحونه د تورو مارغانو په خیټو کښ واچولے شی او هره ورځ دوه ځل په جهنم باندے صبا او بیګاه پیش کیږی۔ انتهیٰ۔ والله اعلم۔
سیـوطـیؒ د کـرمـانـیؒ د کـتـاب (الـعـجـائب) په حواله لیکلی چه دا آیت د قبر د عذاب د ثبوت نه لوئے دلیل دے۔ (او دا قول د مجاهدؒ، عکرمةؒ، او محمد بن کعبؒ دے) ځکه چه په آیت کښ روحونو لـه عـذاب ورکـړے کـیـدل، د قیامت د ورځے د عذاب نه مخکښ ښودلی شوی۔
او پـه قـرآن کـریـم کـښ څـوارلـس آیـتـونـه د عذاب قبر دلیل دے چه دا آیت پکښ ښه صریح دے۔ دارنګه ﴿مِمَّا خَطِيْٓـٰٔتِهِمْ اُغْرِقُوْا فَاُدْخِلُوْا نَارًا﴾ دا د قبر عذاب دے۔ ﴿وَاِنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا عَذَابًا دُوْنَ ذٰلِكَ﴾ دا د قبر عذاب دے۔ ﴿سَنُعَذِّبُهُمْ مَّرَّتَيْنِ﴾ دا د قبر عذاب دے۔
د قبر عذاب د نبی کریم ﷺ د صـحـیـح احـادیثو نه هم ثابت دے۔ عائشه رضی الله عنها وائـی: نبی کریم ﷺ وفـرمـایـل: خبر شئ! تـاسو به په قبرونو کښ په آزمائشونو کښ

اچولے شيئ۔ (بخاري: ۲۵) مسلم: (۱۳۴۷)
او بخاريؒ د عائشے رضي الله عنها نه روايت کړے چه نبي کريم ﷺ وفرمايل: (د قبر عذاب حق دے)۔ عائشه رضي الله عنها وائي چه رسول الله ﷺ به د هر مانځه نه پس د قبر د عذاب نه پناهي غوښتله۔ (القاسميؒ وفتح البيان)
غُدُوًّا وَّعَشِيًّا: دا يا کنايه ده د هميشوالي نه، يا هر وخت پرے عذاب وي ليکن سهار او ماښام دوي د جهنم اُور ته بوتللے شي۔
او ددے آيت نه رسول الله ﷺ هغه حديث اخستے دے چه فرمائي:
[اِنَّ اَحَدَكُمْ اِذَا مَاتَ عُرِضَ عَلَيْهِ مَقْعَدُهُ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ، اِنْ كَانَ مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ فَمِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ وَاِنْ كَانَ مِنْ اَهْلِ النَّارِ فَمِنْ اَهْلِ النَّارِ، فَيُقَالُ هٰذَا مَقْعَدُكَ حَتّٰى يَبْعَثَكَ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ]۔
يو تن ستاسو نه چه کله مړ شي (او قبر کښې خخ شي) نو په هغه باندے د هغه ځاى صبا او بيګاه پيش کولے شي، که د جنتيانو نه وي نو د جنتيانو ځاى او که د اُور والو نه وي نو د اُور والو ځاى (پرے پيش کيږي) نو هغهٔ ته وئيلے شي چه دا ستا ځاى دے تردے چه الله تعالىٰ به تا د قيامت په ورځ راپورته کړي۔ (بخاري: ۱۳۷۹) مسلم (۷۳۹۰)
نو هر سهار او ماښګر ورته خپل ځاى وربښکاره کوي چه دا ستا ځاى دے دے ته به ځے۔ نو دغه شان فرعونيان هم الله تعالىٰ په اُور باندے صبا او بيګاه پيش کوي۔ دا په کومه طريقه پيش کوي، نو دا د ايمان بالغيب سره تعلق لري، ددے تعيين هيڅوك نشي کولے، دا علم غيب دے۔ ډير خلك پدے وجه د قبر د عذاب نه انکار کوي چه هغوي ئے د خپل ذهن سره برابروي او هغه نهٔ برابريږي نو انکار شروع کړي۔
او معتزلو او خوارجو به عذاب قبر نهٔ منلو۔ عقل پرست وو، او انتهائي بے وقوف وو۔
پدے آيتونو کښې د مکے مشرکانو ته اشاره وه چه تاسو د فرعونيانو سره مشابه يئ نو هغه شان کار به درسره کيږي۔

| وَاِذْ يَتَحَاجُّوْنَ فِي النَّارِ فَيَقُوْلُ الضُّعَفٰٓؤُا لِلَّذِيْنَ |
|---|
| او کله چه به دوي بحثونه کوي په اُور کښې نو وائي به کمزوري هغه کسانو ته |
| اسْتَكْبَرُوْٓا اِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا فَهَلْ اَنْتُمْ مُّغْنُوْنَ |
| چه لوئي ئے کړيده يقيناً مونږ ستاسو دپاره تابعدار وو نو آيا تاسو لرے کولے شئ |

| عَنَّا نَصِيبًا مِّنَ النَّارِ ﴿٤٧﴾ قَالَ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوٓا إِنَّا |
|---|
| زموږ نه یوه برخه د اُور۔ وبه وائي هغه کسان چه لوئي ئې کړے وه یقیناً موږ به |
| كُلٌّ فِيهَآ ۙ إِنَّ اللَّهَ قَدْ حَكَمَ بَيْنَ الْعِبَادِ ﴿٤٨﴾ |
| ټول پدے کښې یو، یقیناً الله فیصله کړیده په مینځ د بندګانو کښې۔ |

**تفسیر** : اُوس د مشرانو او کشرانو جګړه، چونکه د فرعون دلاسه ډیر خلك ګمراه شوی نو په جهنم کښې به دوی خپل مینځ کښې جګړے کوی۔ دارنګه هر هغه څوك چه د باطل پرستو ملیانو، پیرانو، او اقتدار والو تابعداری کوی، نو په جهنم کښې به د دوی جګړه وی۔ نو په دنیا کښې چه په دوئ کښې کوم خلق کمزوری وو او د طاقت او دولت والا کافرانو د ویرے د وجے نه د هغوئ پسے روستو روستو روان وو، هغوئ ته به ووائي چه په دنیا کښې تاسو موږ لره په خپلے پیروئ کولو باندے مجبوره کړی وو، او تاسو په خپل قیادت او سرداریٔ باندے ډیر ناز کولو نو آیا نن تاسو زموږ نه اُور آسانولے شئ، آیا تاسو نن زموږ په کار راتلے شئ؟ نو د دنیا متکبرین چه د جهنم په کندو کښې به سوزی ووائي چه تاسو سره موږ هم په جهنم کښې یو، که چرے نن موږ څهٔ هم کولے شوے نو اول به مو خپل ځانونه بچ کړی وے۔ الله تعالیٰ د خپلو بندګانو ترمینځه فیصله کړے، جنتیان ئې جنت ته داخل کړی، او جهنمیان ئې جهنم ته اچولی، اوس هیڅا دپاره هیڅ چاره نشته۔

وَإِذْ: یعنی دا وخت هم رایاد کړه او ددے تصور وکړه چه دا به څومره د هیبت او افسوسونو وخت وی۔

قرآن کریم کښې الله تعالیٰ د کشرانو او د لیډرانو د جګړے ذکر ولے بار بار کړیدے پدے کښې موږ بندګانو ته سبق دے چه ځان دپاره داسے مشر ونیسه چه صبا له دے ورسره جنګ نهٔ راځي، او د هغهٔ په مشر نیولو باندے افسوس نهٔ کوے۔ نو د رسول الله ﷺ په تابعداریٔ کښې بیخي ارمان او افسوس نشته او د هغهٔ نه سویٔ د بل چا پسے روانیدلو کښې افسوسونه دی۔

الضُّعَفَاءُ: ددے نه مراد رعیت، شاګردان، مریدان، خادمان دی۔ ضعفاء ورته ځکه وائي چه دا تابعدار وی، د بل تابع وی، خپله رایه نهٔ لری، او غریبان هم وی۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ فِي النَّارِ لِخَزَنَةِ جَهَنَّمَ ادْعُوْا

او وبه وائی هغه کسان چه په اُور کښې دی خزانچیانو د جهنم ته دعا اُوغواړئ

رَبَّكُمْ يُخَفِّفْ عَنَّا يَوْماً مِّنَ الْعَذَابِ ﴿٤٩﴾ قَالُوْا أَوَلَمْ تَكُ

د رب خپل نه چه آسان کړی زمونږ نه یوه ورځ د عذاب نه۔ دوی به وائی آیا نهٔ وه

تَأْتِيْكُمْ رُسُلُكُم بِالْبَيِّنَاتِ قَالُوْا بَلٰى

چه راغلی وو تاسو ته رسولان ستاسو په ښکاره دلیلونو، وبه وائی دوی آؤ،

قَالُوْا فَادْعُوْا وَمَا دُعَاءُ الْكَافِرِيْنَ إِلَّا فِيْ ضَلَالٍ ﴿٥٠﴾

هغوی به ووائی نو دعا گانے غواړئ (ځانله) او نهٔ ده دعاء د کافرانو مگر په بربادئ کښې۔

**تفسیر** : نو کله چه مشران او کشران د یو بل نه نا امیده شی نو دویم به دوی د جهنم خزانچیانو ملائکو ته کوم چه په جهنم باندے مقرر نولس ملائك دی هغوی ته به زاری وکړی چه لږ تاسو د خپل رب نه په مونږ باندے د رحم کولو دعاء وغواړئ چه هغه په مونږ د یوے ورځے لپاره هم عذاب سپك کړی۔ نو هغه ملائك به جواب ورکړی چه آیا تاسو ته ستاسو انبیاء نهٔ وو راغلی چه تاسو ته ئے د ایمان دعوت درکړے وو، او په ښکاره دلائلو سره ئے د الله تعالیٰ د دین رشتین والے ثابت کړے نهٔ وو؟۔ او تاسو ئے د شرك او گناهونو نه منع کړی نهٔ وئ؟ نو جهنمیان به ووائی چه هاؤ زمونږ خواته انبیاء راغلی وو، لیکن مونږ د هغوئ خبره ونهٔ منله۔ نو ملائك به ووائی چه بیا نو تاسو خپله د خپل رب نه دعاء وغواړئ، مونږ نهٔ ستاسو خبرے آورو، او نهٔ دا غواړو چه تاسو دے د جهنم نه خلاص شئ۔ او مونږ تاسو ته دا خبره هم درښودل غواړو چه تاسو که رابلل کوئ اوکه نهٔ ئے کوئ، نتیجه یوه ده چه تاسو نه عذاب نشی سپکیدلے، او تاسو به دغسے په جهنم کښې سوزیدونکی اوسئ۔

بیا به دوی د اُور بل خزانچی مالك ته ووائی چه تهٔ زمونږ رب ته ووایه چه هغه په مونږ باندے د مرگ فیصله وکړی چه ددے مصیبت نه خلاص شو، هغه به زر کاله پس جواب ورکړی چه تاسو به په اُور کښې همیشه یئ، بیا به الله تعالیٰ ته سوال وکړی نو الله به ورته وفرمائی : ﴿اِخْسَئُوْا فِيْهَا وَلَا تُكَلِّمُوْنَ﴾ کورے شئ په اُور کښې، او ما سره خبرے

مـهٔ کـوئ) نـو خـالق او مخلوق دواړه به ترے بیزاره شی نو دوی به واویلا شروع کړی چه هیڅوك مو پاتے نشو۔ نو د کافر انسان دپاره نهٔ الله تعالیٰ پاتے کیږی او نهٔ مخلوق۔ اَعَاذَنَا اللّٰہُ مِنْ هٰذِهِ الْحَالَةِ۔

وَمَـا دُعَاءُ الْكَافِرِيْنَ إِلَّا فِيْ ضَلَالٍ : غـوره دا ده چـه دا قول د الله تعالیٰ دے، او دا ددے دپاره وائی چـه مـلائك چـه دوی تـه وائـی چه دعاء وغواړئ نو دا به زجری کلمه وی، او هـغـوی ته چل نهٔ ښائی چه الله تعالیٰ رحـم کـونـکے دے او د هغه نه دعا وغواړئ هغه به دریاندے رحم وکړی۔

نـو مـعـنیٰ دا ده : نهٔ ده دعاء د کافرانو په آخرت کښ د الله تعالیٰ نـه مگر په تباهئ کښ ده۔ یـعـنـی پـه بے ځایه ځای کښ واقع ده، د دعاء ځای خو دنیا وه۔ او سورة رعد کښ تیر شوی وو چـه نـهٔ ده دعاء د کافرانو په دنیا کښ د خپلو باطلو معبودانو نه مگر په تباهئ کښ ده۔ او هرچه په دنیا کښ د کافر دعاء ده د الله تعالیٰ نه نو هغه الله کله نا کله قبلوی۔

صباح یوم عید الفطر ۱/ جولائی ۱۷، ۲۰۱۵)

| إِنَّا لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا |
|---|
| یقیناً مونږ خامخا مدد کوو د رسولانو خپلو او د هغه کسانو چه ایمان ئے راوړیدے |
| فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ يَقُوْمُ الْأَشْهَادُ ﴿۵۱﴾ يَوْمَ لَا يَنْفَعُ |
| په ژوند دنیوی کښ، او په کومه ورځ چه اُودریږی به گواهان۔ په هغه ورځ چه فائده |
| الظَّالِمِيْنَ مَعْذِرَتُهُمْ وَلَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوْءُ الدَّارِ ﴿۵۲﴾ |
| به نهٔ ورکوی ظالمانو ته عذر (بهانه) د دوی او دوی دپاره لعنت دے او دوی لره بد کور دے۔ |

**تفسیر** : مـخـکـښ حـال د کـافـرانـو بیـان شو اُوس نبی کریم ﷺ او ټولو مومنانو ته بشـارت ورکـوی۔ چـه کـافـران خـو د خپـلـو گـمـراهانو مشرانو پسے لاړل نو هلاکت ته ورسیـدل او ایـمـان والا د رسـول الله ﷺ پسے روان شـو نـو هغوی ته به الله تعالیٰ دنیا او آخرت ورکړی۔

او ربـط ئے دا دے چـه لـکـه څـنـگـه چه الله تعالیٰ فرعونیان په دنیا او په آخرت کښ په عـذابـونـو اختـه کـړل او مؤمنان بنی اسرائیل ئے د عذاب نه بچ کړل، نو دغه شان په هره

زمانـه کښې الله تعالیٰ بـه ایـمـان والو سره مدد کوی او کافران به هلاکوی په دنیا او په آخرت دواړو کښې۔ نو پـه آیت کښې وعده د نصرت د الله تعالیٰ ده د پیغمبرانو او د ټولو مؤمنانو سره۔

لَنَنْصُرُ: ددے تفسیر په (نَنْتَصِرُ) (مونږ بدله اخلو دپاره د رسولانو) سره صحیح نهٔ دے، دا تاویل په تفاسیرو کښې ولے کیږی ؟ ځکه چه هغوی ته اشکال پیدا شویدے چه پیغمبرانو سره څنګه مدد کیږی، هغوی خو ډیر کرته وژلے شویدی، او دلته الله وائی چه زهٔ بـه خامخا د انبیاؤ سره مدد کوم نو دوی بیا جواب کړیدے چه د نَنْصُرُ معنیٰ د بدلے اخستلو ده، یعنی پیغمبرئے شهید کړو خو کافر هم رانه نشی خلاصیدے۔ لیکن دا ظاهر د قرآن نهٔ دے بلکه ظاهری معنیٰ ئے د مدد کولو ده۔ د مؤمنانو سره هم الله تعالیٰ مدد کوی۔ نو د ایمان د فوائدو نه دا ده چه د الله تعالیٰ مددونه په دنیا او په آخرت کښې د مؤمن سره کیږی، او د کفر نقصان دا دے چه د بنده نه په دنیا او په آخرت کښې د الله تعالیٰ مدد کټ کیږی۔ نو اشکال په بله طریقه ختمیږی هغه دا چه د نصرت ډیر شکلونه دی، یـواځے نصرت خو دا نهٔ دے چه تهٔ به بادشاه شے او کافر به راځملوے او هغه به قتل کړے دا د نصرت یو شکل دے۔ نو د پیغمبرانو او مؤمنانو سره مدد دا دے چه الله تعالیٰ د هغوی دین عام کړی، بل مدد دا دے چه شهادت مونده کړی، او الله تعالیٰ ورلـه جنت ورکړی، بـل مـدد دا دے چه کله ئے دشمن باندے عذاب راولی۔ نو مؤمن که په یو ځای کښې قتل شی، یا شکست وخوری، یا پر شی نو دا هم د الله تعالیٰ مدد دے۔ ځکه چه الله تعالیٰ په خپل دین کښې استعمال کړو او هغه به ترے راضی شی، نو د الله تعالیٰ د رضا نه سوئ بل کوم لوی مدد دے۔ لنډ مطلب دا دے چه د الله تعالیٰ مدد د رسولانو او مؤمنانو سره حق دے، پـه کـوم ځای کـښې چـه مـؤمـنان شکست خوری، دا د هغوی د ایمان د کمزورئ د وجه نه۔ او په آخرت کښې مدد دا دے چه د عذابونو نه ئے بچ کړی، او جنت ته ئے داخل کړی او همیشه اکرام او عزت ورکړی۔ او د هغوئ مخالفین به د خپل رحمت نه لرے کړی او هغوئ به جهنم کښې واچوی۔

وَيَوْمَ يَقُوْمُ الْأَشْهَادُ: یعنی الله تعالیٰ داسے قوی ذات دے چه د قیامت په ورځ به هم د دوی سره مدد کوی لکه د کافرانو سره خپلو باطلو معبودانو په قیامت کښې هیڅ مدد ونکړو۔

الاشهاد ئے جمع راوړه ځکه چه هلته ګواهان ډیر زیات دی لکه تشریح ئے مخکښې ذکر

شویده.

**يَوْمَ لَا يَنفَعُ الظَّالِمِينَ مَعْذِرَتُهُمْ:** دا به هغه ورځ وی کله چه د ظالمانو مشرکانو هیڅ عذر به د دویٔ په کار رانشی۔ ابن جریرؒ لیکی چه په دے ورځ به مشرکانو له د دویٔ عذر په کار رانشی، ځکه چه دویٔ سره به د نیمګړی عذر نه علاوه بل هیڅ شے نهٔ وی۔ ځکه چه په دنیا کښې خو الله تعالیٰ دویٔ له ښه موقع ورکړے وه، د دویٔ مخے ته ئے د دلیل او حجت انبارونه لګولی وو، دے وجے نه په آخرت کښې به دویٔ سره د دروغو نه سویٰ بل هیڅ هم نهٔ وی لکه چه وائی به: ﴿وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ﴾ (مونږ په خپل رب باندے قسم خوړلو سره وایو چه مونږ به شرك نهٔ كولو)۔

نو دوی به عذرونه کوی لیکن عذرونه به فائده نهٔ ورکوی۔ کله به انکار کوی او کله به اقرار کوی، ځکه چه د قیامت ډیره اُوږده ورځ ده۔ په الله تعالیٰ باندے د دروغو عذرونه نهٔ چلیږی۔

**وَلَهُمُ اللَّعْنَةُ:** یعنی دوی به الله تعالیٰ د خپل رحمت نه لرے کړی وی۔ او د دوی دپاره به بد کور وی چه هغه جهنم دے۔

| وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوْسَى الْهُدٰى وَأَوْرَثْنَا |
|---|
| او یقیناً مونږ ورکړے وو موسیٰ (علیه السلام) ته هدایت او په میراث کښې ورکړے وو |
| بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ الْكِتَابَ ﴿٥٣﴾ هُدًى وَّذِكْرٰى لِأُولِي الْأَلْبَابِ ﴿٥٤﴾ |
| مونږ بنی اسرائیلو ته کتاب۔ چه هدایت وو او نصیحت وو دپاره د خالص عقلونو |
| فَاصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّاسْتَغْفِرْ لِذَنْبِكَ |
| والو۔ نو صبر کوه یقیناً وعده د الله تعالیٰ حقه ده، او بخنه غواړه دپاره د ګناه خپلے |
| وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِبْكَارِ ﴿٥٥﴾ |
| او پاکی بیانوه سره د حمدونو د رب ستا نه په بیګاه او صبا کښې کښې۔ |

**تفسیر:** په دوه آیتونو کښې لنډه واقعه د موسیٰ علیه السلام راوړی او دا په تېرو اُوه واړو حوامیمو کښې راغلے ده۔ دے کښې یو ذهن سازی غرض وی۔ هغه دا چه ددے امت نه مخکښې هم یو غټ امت تیر شویدے چه هغے ته بنی اسرائیل وائی، او د بنی اسرائیلو

په مقابله کښې قبطيان وو چه هغوی به د بنی اسرائيلو مقابلے کولے، نو الله تعالىٰ هلاك کړل، بيا بنی اسرائيل د موسىٰ ﷺ امت وو، دوی ته الله تعالىٰ کتاب ورکړو، دوی راولکيدل ددے کتاب نه ئے بغاوت وکړو، او اختلافات ئے شروع کړل، نو الله دوی په روستو زمانه کښې ذليله کړل، او د قيامت په ورځ به ددوی د اختلاف ترمينځ فيصله کوی، نو دغه شان تاسو ته الله تعالىٰ کتاب درکړو، ددے په مقابله کښې به کافر هلاك کړی او تاسو ته به گوری چه که تاسو د حق نه اختلاف کولو نو تاسو سره به هم دغه شان کار وکړی لکه چه بنی اسرائيلو سره ئے کړے وو۔

او پدے قصه کښې نبی کريم ﷺ له يو قِسم تسلی ورکړے کيږی چه موسىٰ ﷺ هم د خپل قوم له خوا ډير زيات تکليفونه تير کړی وو، آخر الله تعالىٰ د هغهٔ دين غالبه کړو او هغهٔ له ئے د هغهٔ د دشمنانو نه نجات ورکړو، نو تهٔ صبر کوه او د خپل مِشن د پوره کولو دپاره لګيا اُوسه، د الله تعالىٰ وعده حقه ده، هغه به خامخا ستا مدد کوی او ستا دين او تهٔ به غالبه پاتے کيږے۔

١- مناسبت ئے د مخکښې سره دا دے (كَمَا نَصَرَ مُوسٰى) الله تعالىٰ به خپلو رسولانو سره امداد کوی لکه څنګه ئے چه د موسىٰ ﷺ او د هغه مؤمنانو سره کړے وو۔

٢- دويم دا چه پدے کښې سبب د نصرتِ الٰهی بيانيږی چه هغه د الله تعالىٰ په کتاب باندے عمل کول دی۔

وَأَوْرَثْنَا بَنِيٓ إِسْرَآئِيلَ: پدے کښې اشاره ده چه دا کتاب په بنی اسرائيلو کښې چليدو تر نزول د انجيل پورے۔ او لفظ د ميراث دلالت کوی چه دا خلك اهل او حقدار ددے کتاب وو۔

الْهُدٰى: نه مراد نبوت او تورات وو لکه په سورتِ مائده (٤٤) آيت کښې راغلی : ﴿إِنَّآ أَنزَلْنَا التَّوْرَاةَ فِيهَا هُدًى وَنُورٌ﴾ (بيشکه مونږ تورات نازل کړو چه په دے کښې هدايت او رڼا وه)۔ دارنګه فرمائی چه مونږ بنی اسرائيل د تورات وارثان جوړ کړل چه د موسىٰ نه روستو هم ډيرے مودے پورے هغوئ سره وو، او د عقلِ سليم لرونکو خلقو دپاره رڼا او نصيحت ورکونکے وو۔

هُدًى وَّذِكْرٰى: دا مفعول لهٔ دے يعنی ددے دپاره مے ورته دا د هدايت کتاب ورکړو چه عقلمند خلك ددے نه هدايت حاصل کړی، او ددے نه نصرت او عبرت واخلی۔ دا دليل دے چه کوم خلك حق قبول کړی همدا حقيقی عقلمند دی۔

یا هدی او ذکری په معنیٰ د (هَادِيًا وَمُذَكِّرًا وَمُرْشِدًا) سره دے۔ یعنی په داسے حال کښې چه دا کتاب هدایت کونکے او نصیحت کونکے او لاره ښودونکے وو۔

نو پدے قصه کښې ډیر فوائد راوځی، یو دا چه الله تعالیٰ موسیٰ علیه السلام سره د کتاب په وجه مدد وکړو۔ دویم دا چه الله تعالیٰ همدغسے کتابونه رالیږی، دا څه د تعجب خبره نۀ ده۔ نو دغه شان ئے قرآن هم راولیږلو نو بیا تاسو ولے پدے کښې جګړے کوئ۔ (الَّذِينَ يُجَادِلُونَ فِي آيَاتِ اللهِ) سره ولګیدو۔ دریم دا چه هدایت صرف او صرف د الله په کتاب سره حاصلیږی۔ څلورم دا چه کتاب خو د هدایت دپاره راغلے لیکن فائده هغه چاته ورکوی چه څوك عقلمند وی او پدے کښې سوچ وکړی۔

فَاصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ اللهِ حَقٌّ: د وعدے نه مراد وعده د نصرت، وعده د قیامت ده۔ بیا د حصول د نصرتِ الٰهی دپاره درے امور ذکر کوی، یو صبر، دویم استغفار، او دریم تسبیح وئیل۔

یعنی اے زما نبی! تۀ هم د موسیٰ پشان صبر کوه، بیشکه د الله تعالیٰ وعده حقه ده، هغه به تا یو اځے نۀ پریدی، هر وخت د خپل رب په یاد کښې مشغول اُوسه، او استغفار، دعاء، مونځ او تسبیح او تهلیل خپل عادت جوړ کړه۔

وَّاسْتَغْفِرْ لِذَنْبِكَ: **سوال** دا دے چه د نبی کریم ﷺ کوم ګناهونه وو چه الله تعالیٰ ورته د بخنے غوښتو حکم کوی؟ **جواب**: (۱) دلته د مفسرینو بعید تاویلات دا دی چه د ذنب نه مراد خلافِ اولیٰ کار دے۔ او په خلافِ اولیٰ باندے هم د ذنب اطلاق کیږی۔ لیکن دا ظاهره نۀ ده۔ ځکه چه ذنب ګناه ته وائی۔

(۲) دویم تاویل: د ذنب نه مراد ثقل او دروندوالے او ساډهوبی ده چه د بشریت په وجه په انسان باندے راځی، لکه رسول الله ﷺ فرمائی: (اِنَّهُ لَيُغَانُ عَلَى قَلْبِيْ فَأَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ فِي الْيَوْمِ مِائَةَ مَرَّةٍ] زما په زړه باندے ثقل او خړوالے راشی نو زۀ په ورځ کښې د الله نه سل کرته بخنه غواړم۔ د دغه خړوالی نه مراد دا دے چه اُوده کیدل، د بے بیانو سره ملاویدل، د دنیا خبرے کول، چه پدے سره هم په زړه کښې خفګان او بوج پیدا کیږی، او دا ګناه نۀ ده او په استغفار سره دا خړوالے ختمیږی۔

(۳) تاویل: د ذنب نه مراد د امت ګناهونه دی۔ دا ډیر بعید تاویل دے۔ دا خبره صحیح ده چه رسول الله ﷺ به امت دپاره بخنه غوښتله (وَاسْتَغْفِرْ لِذَنْبِكَ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ) هغه بیل آیت او جدا حکم دے۔

(٤) حقه خبره دا ده چه استغفار مستلزم گناه لره نهٔ دے چه گنے رسول الله ﷺ دِے گناه کړی او بیا دِے بخنه غواړی۔ بلکه خبره په تعلیق حمل ده۔ یعنی که ستا نه چرته گناه صادره شی نو بخنه غواړه۔ او رسول الله ﷺ خو معصوم دے، گناه ئے نهٔ ده کړے لیکن امکان خو شته پدے وجه تعلیق صحیح دے۔ دارنگه د الله تعالیٰ حقوق ډیر زیات دی، نو د الله تعالیٰ په حق کښ د بنده بخنه غوښتل د هغهٔ عبادت دے، هر بنده به د الله په حقوقو کښ ځان تقصیر والا گنړی۔ لکه رسول الله ﷺ به د ورځے سل کرته بخنه غوښتله نو د هغه خو یوه گناه هم نهٔ وه، پاتے لا سل نو پدے وجه دا په طریقه د تعبّد دے او الله په استغفار ډیر خوشحالیږی نو ځکه ئے خپل نبی ته هم د بخنے غوښتو حکم کړیدے۔ او چونکه پدے سورت کښ د گناهونو متعلق موضوع ده، نو پدے کښ دعوت دے چه یو نبی هم بخنه غواړی او هغه ته هم د بخنے غوښتو حکم شویدے نو مونږ باندے خو د گناهونو بوجونه بار دی مونږ له خامخا بخنه غوښتل لازم دی۔ (وَتُوْبُوْا اِلَی اللهِ جَمِيْعًا)

وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ: یعنی تسبیحات د حمد سره ملگری کوه، یا جدا جدا ئے وایه۔

بعضِ مفسرینو د بیگاه صبا تسبیح نه د سهار او مازیگر مونځونه اخستی دی۔

او حسنؒ او قتادهؒ وائی چه دے نه مراد د سهار او بیگاه په وخت دوه دوه رکعتونه دی چه هغه د پنځه وخته فرض مونځونو نه مخکښ اداء کولے شی۔

او بعضو ددے نه پنځه مونځونه اخستی دی په عشی کښ څلور مونځونه مراد دی ځکه چه دا د زوال نه شروع کیږی او په ابکار کښ یو مونځ دے ځکه چه دا د صبا نه تر زوال پورے وخت دے۔

| إِنَّ الَّذِيْنَ يُجَادِلُوْنَ فِيْ آيَاتِ اللهِ بِغَيْرِ سُلْطَانٍ |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه جګړه کوی په آیتونو د الله تعالیٰ کښ په غیر د دلیل نه |
| أَتَاهُمْ إِنْ فِيْ صُدُوْرِهِمْ إِلَّا كِبْرٌ مَّا هُمْ |
| چه راغلے وی دوی ته، نشته په سینو د دوی کښ مګر لوی تکبر دے چه نهٔ دی دوی |
| بِبَالِغِيْهِ فَاسْتَعِذْ بِاللهِ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيْعُ |
| رسیدونکی هغے ته، نو پناهی غواړه په الله تعالیٰ سره، یقیناً هغه آوریدونکے |

| الۡبَصِيۡرُ ﴿٥٦﴾ لَخَلۡقُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ اَكۡبَرُ مِنۡ خَلۡقِ |
|---|
| او لیدونکے دے۔ خامخا پیدائش د آسمانونو او د زمکے ډیر لوئی دے د پیدائش |
| النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكۡثَرَ النَّاسِ لَا يَعۡلَمُوۡنَ ﴿٥٧﴾ |
| د خلقو نه لیکن ډیر د خلقو نه نهٔ پو هیږی۔ |

**تفسیر** : بیا مجادلینو ته رټنه ورکوی او د دوی د جدال په وخت کښې خپل نبی او هر داعی ته حکم کوی چه استعاذه (یعنی په الله پورے پناه) طلب کړی۔ او تسلی ده چه دوی خپل مقصد ته نهٔ شی رسیدلے۔

یعنی کوم کافران او مشرکان چه حق دین د باطلو دلیلونو په ذریعه ختمول غواړی، او د توحید او رسالت صحیح دلائل د خپلو فاسدو شبهاتو په ذریعه رد کول غواړی، په حقیقت کښې د دوئ په زړونو کښې کبر او غرور دے چه دوئ لره د حق قبلولو او ستا د رسالت د اقرار کولو نه بند کړی دی۔ د دوئ یقین دے چه تهٔ د الله رسول ئے، لیکن د الله په دے فضل او کرم باندے دوئ تا سره حسد کوی، حالانکه دا نعمت دوئ له په هیڅ حالت کښې نشی ملاویدے، ځکه چه دا خو د الله تعالیٰ فضل دے، هغه ئے چه چاله غواړی ورکوی ئے۔ نبوت او رسالت څهٔ داسے شے نهٔ دے چه په آرزو کولو سره حاصل شی۔

اِنۡ فِیۡ صُدُوۡرِهِمۡ اِلَّا كِبۡرٌ: پدے کښې حصر دے چه څوك د قرآن او حدیث مقابله کوی، او منلو ته ئے تیار نهٔ دے دا به خامخا متکبر وی، برابره ده د مُلا په شکل دے، یا د پیر یا د بادشاه په شکل دے، په چا کښې چه عاجزی او خشوع خضوع وی، هغه د الله تعالیٰ او د رسول هرے خبرے ته تسلیمیږی، او په قرآن او احادیثو د رسول الله ﷺ باندے اعتراضونه نکوی لکه تولو صحابه کرامو کښې خشوع وه، او تکبر پکښې بیخی نهٔ وو، هغوی چرته هم د رسول الله ﷺ په یو حدیث هم دا شك او اعتراض نهٔ دے کړے چه دا خبره داسے نشی کیدے، نهٔ ئے داسے وئیلی دی چه تهٔ وائے چه الله آسمان د دنیا ته راکوزیږی نو دا څنګه راکوزیږی؟ بیخی صفا زړونو والا وو بغیر د چون وچرا نه به ئے خبره منله۔ څوك چه په قرآن او حدیث اعتراض کوی دا ځان لوی ګڼړی او خپل عقل او د ملا رایه ورته اُوچته ښکاری۔

اَیۡ لَیۡسَ عِنۡدَهُمۡ عِلۡمٌ اِنَّمَا حَمَلَهُمۡ عَلَی الۡجِدَالِ الۡكِبۡرُ وَطَلَبُ الۡعُلُوِّ ۔ یعنی دوی سره علم

نشته بلکه دوی په جدال کولو باندے تکبر او اُوچتوالی طلب کولو راپورته کړیدی۔
(۲) تفسیر : د کبر نه مراد امر کبیر (لوی مقصد) دے۔ چه هغه په (۵) آیت کښې ذکر شو چه هغه حق لره مغلوبه کول او حق پرستو لره ختمول دی۔
(۳) کبر نه مراد لوئی او برتری او فوقیت حاصلول دی۔ یعنی د دوئ په سینو کښې (په خپل گمان) لوئی والے دے، چه دا به هیڅ کله دوئ ته حاصل نشی، ځکه چه د الله فیصله ده چه هغه به دوئ ذلیله کوی۔
مَّا هُمْ بِبَالِغِيْهِ: د متکبر دوه حالتونه دی، یو دا چه انسان ځان لوئی گنړی بیا لوئی مرتبے ته هم ځان رسولے شی۔ دویم حالت د متکبر دا دے چه خپل مقصد ته ونهٔ رسیږی نو الله فرمائی چه دا متکبران خپل کبر او لوئی والی ته نشی رسیدلے۔ او لوئی والی ته رسیدل یو دا دی چه حق لره دیکه ورکړی او حق ختم کړی، او دویم دا چه د تکبر مقتضیٰ او مقصد ته نشی رسیدے چه هغه نجات دے د عذاب نه، یعنی د تکبر تقاضا خو دا ده چه انسان د هر شی نه ځان بچ کولے شی، نو دوی ځان د عذاب نه نشی بچ کولے۔ مثال ئے دا دے چه یو تن د قرآن او حدیث خلاف کوی، د هغه مقصد کتاب او سنت بښکته کول دی او خپله مشری او عزت په خلکو باندے ښکاره کول او ځان عزتمند کول، نو دا دواړه به ونکړی، نهٔ به حق ختم شی او نهٔ به دے عزتمند شی بلکه الله به ئے نور هم ذلیله کړی۔
فَاسْتَعِذْ بِاللهِ: کله چه خلك جگړه شروع کړی او مناظره شروع کړی، نو دے وخت کښې به د الله تعالیٰ پورے د هغوی د شر نه پناه غواړے ځکه چه دے وخت کښې غټ شیطان حاضر شویدے۔ دارنگه د هغهٔ کبر نه به هم د الله تعالیٰ پورے پناه غواړے چه دا خلك پکښې اخته دی چه الله تعالیٰ ستا زړه ددے نه پاك کړی۔
لَخَلْقُ السَّمٰوٰتِ : بعض خلکو دا جدال کولو چه تاسو وایئ، قیامت به راځی دا به څنگه راشی، نو الله تعالیٰ د اثبات د قیامت دپاره دلیل راوړی۔ او په دغه منکرینو باندے رد کوی فرمائی چه د آسمانونو او زمکے پیدا کول، د انسانانو د اول ځل او د دوباره پیدا کولو نه زیات لوئے کار دے۔ نو کله چه الله آسمانونه او زمکه په غیر د څهٔ مخکنئ نمونے او په غیر د موجودے مادے نه پیدا کړل، نو هغه یقیناً انسانانو لره په دوباره پیدا کولو قادر دے، لیکن ډیر خلق دے دلیل ته توجه نهٔ کوی، لکه د عربو ډیرو کافرانو به دا منله چه آسمانونه او زمکه الله تعالیٰ پیدا کړی، او د انسانانو د دوباره پیدا کیدو نه به ئے

انکار کولو۔ یعنی الله ئے په لوی کار باندے قادر گنړلو او په وړوکی کار ئے قادر نهٔ گنړلو۔ (والعیاذ بالله)

| وَمَا يَسْتَوِي الْأَعْمٰى وَالْبَصِيرُ وَالَّذِينَ آمَنُوا |
|---|
| او نهٔ دی برابر ړوند او لیدونکے او هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے |
| وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَلَا الْمُسِيءُ |
| او عملو نه ئے کړیدی نیك او نهٔ گناهګار (نو داسے ورځ پکار ده چه د دواړو فرق |
| قَلِيلًا مَا تَتَذَكَّرُونَ ﴿٥٨﴾ إِنَّ السَّاعَةَ لَآتِيَةٌ |
| اُوشی) ډیر کم تاسو نصیحت قبلوئ۔ یقیناً قیامت خامخا راتلونکے دے |
| لَا رَيْبَ فِيهَا وَلٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٥٩﴾ |
| هیڅ شك نشته په هغے کښ لیکن ډیر د خلقو نه ایمان نهٔ راوړی۔ |

**تفسیر** : الله تعالیٰ د ایمان او کفر او د مومن او کافر فرق بیانوی فرمائی : لکه څنګه چه بینا او نابینا برابریدے نشی، د دواړو ترمینځه فرق دے، دغه شان مومنان او کافران برابریدے نشی۔ مومن د خپل بصیرت په رڼړا سره د الله تعالیٰ په نښو او دلائلو کښ غور کوی، او د الله تعالیٰ د توحید او ربوبیت اقرار کوی، او په دے باندے ایمان راوړی، او کافر د بصیرت نه محرومه وی، دے وجے نه ددهٔ مخے ته که زرونه نښے تیرے شی، او زرونه دلائل پیش کړے شی، دے سره هغهٔ ته هیڅ فائده نهٔ رسیږی، او د کفر د کړئ نه هغهٔ ته د بهر راوتلو توفیق نهٔ ملاویږی۔

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا : یعنی د مؤمن او عمل صالح والا او د گناهګار ترمینځ فرق دے، دواړه د الله تعالیٰ په نیز یو شان برابر نهٔ دی بلکه د دواړو ترمینځ ضرور فرق شته لکه سورتِ ص (۲۸) آیت کښ تیر شو ﴿أَمْ نَجْعَلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَالْمُفْسِدِينَ فِي الْأَرْضِ﴾ نو هر کله چه د دواړو ترمینځ په عملونو کښ فرق شته، نو ددے دواړو په نتیجو او بدلو کښ به هم فرق وی، نو ددے فرق راښکاره کیدو دپاره یوه ورځ پکار ده چه هغه د آخرت ورځ ده، نو معلومه شوه چه د عقل او عدل تقاضا دا ده چه د قیامت ورځ به خامخا راځی لکه ددے تفصیل په سورة ص کښ تیر شویدے۔

اَلۡاَعۡمٰی وَالۡبَصِیۡرُ : کوم کس چه په حق کښې جګړے کوی دا د روند په شان په کندو باندے سرګردانه روان وی، او مؤمن حق پرست په رڼړا پسے روان وی۔
دلته ئے د هرے ډلے دوه دوه صفتونه راوړل، کافر اعمیٰ هم دے او مُسِیۡءُ هم دے او مؤمن بصیر هم دے او عمل صالح والا هم دے۔ یا فرق دا دے چه اعمیٰ نه مراد مشرك دے، او بصیر موحد دے او (اَلَّذِیۡنَ آمَنُوۡا) مؤمن دے، او اَلۡمُسِیۡءُ ګناهګار دے۔ یا اولنی صفات د عقیدے دی او دویم صفات د عملونو دی۔
وَلَا الۡمُسِیۡءُ : دلته وقف دے (اَیۡ فَلَا بُدَّ مِنۡ یَوۡمٍ یُفَارِقُ بَیۡنَهُمَا) نو داسے یوه ورځ راتلل ضروری شو چه د دواړو ترمینځ جدائی وکړے شی۔ یو جنت ته او بل جهنم ته داخل کړے شی، نو د آخرت د اثبات دپاره دوه قسمه دلیلونه شو، یو آسمان او زمکه، او بل د مؤمن او د کافر د عملونو ترمینځ فرق۔
اِنَّ السَّاعَةَ لَاٰتِیَةٌ : دا تفریع ده په مخکښې دلیلونو یعنی ددے دلیلونو تقاضا دا ده چه د قیامت په راتللو کښې هیڅ شك نشته، دے وجے نه اے خلقو ! دنیا کښې په دے یقین سره ژوند تیروئ چه تاسو به دوباره ژوندی کولے شئ، او ستاسو د خیر او شر عملونو بدله به تاسو له درکولے شی، لیکن کافران د خپلے کم عقلئ، ناپوهئ او د بدنصیبئ په وجه ددے حقیقت ادراك نشی کولے۔ (فتح البیان)

| وَقَالَ رَبُّكُمُ ادۡعُوۡنِیۡ أَسۡتَجِبۡ لَكُمۡ إِنَّ |
|---|
| او وئیلی دی رب ستاسو دعا غواړئ ما نه، زۀ به قبوله کړم دعا ستاسو یقیناً |
| الَّذِیۡنَ یَسۡتَكۡبِرُوۡنَ عَنۡ عِبَادَتِیۡ سَیَدۡخُلُوۡنَ جَهَنَّمَ دَاخِرِیۡنَ ﴿٦٠﴾ |
| هغه کسان چه لوئی کوی د عبادت زما نه زردے چه داخلیږی به جنت ته ذلیله۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې الله تعالیٰ په خپل عبادت او دعاء طلب کولو باندے حکم کړیدے، او څوك چه د الله تعالیٰ د عبادت او د هغۀ نه د دعاء طلب کولو نه اوړی، هغوی ته ئے تخویف ورکړیدے۔

## مناسبت

۱ – موضوع د سورت سره ئے مناسبت دا دے چه استکبار مۀ کوه، دا لویه ګناه ده او د الله بندګی وکړه۔ او دے سورت کښې انواع الذنوب ذکر کیږی۔

۲- دا د (اَلْمُسِیْءُ) مثال دے، یعنی گناهګار څوك دے، دا هغه شخص دے چه د الله تعالیٰ نه دعاء نهٔ غواړی، او د هغه د عبادت نه ځان لوی ګنړی۔

۳- تفسير فتح البيان کښې ئے دا مناسبت خودلے دے چه پدے کښې (سَبَبُ السَّعَادَةِ فِي الْقِيَامَةِ) ذکر دے، یعنی قیامت راځی نو څه وکړو؟ نو الله سبب او وسیله بیانوی چه که تهٔ غواړے چه په قیامت کښې کامیاب شے، نو د هغهٔ عبادات وکړه پدے به د عذابونو نه خلاص شے۔

٤- وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُوْنَ سره ئے مناسبت دے چه اکثر خلك په قیامت ایمان نهٔ راوړی ځکه د الله تعالیٰ بندګی نهٔ کوی، که تهٔ په آخرت ایمان لرے نو د هغهٔ بندګی وکړه۔

٥- احسن الكلام کښې ئے داسے تعبیر کړیدے چه په قیامت کښې د نجات دپاره عقیده او عمل د توحید ضروری دے نو اُوس پدے آیت کښې توحید فی الدعاء ته ترغیب ورکوی۔

وَقَالَ رَبُّكُمْ: هر کله چه دا خبره ثابته شوه چه صرف الله تعالیٰ د تمام جهان رب دے، نو هغهٔ خپلو بندګانو ته د خیر خواهئ په توګه د خپل رسول په ژبه دا ښودنه کړے چه اے زما بندګانو! تاسو ټول صرف ما رابلئ، صرف زهٔ به ستاسو د رابللو جواب درکوم، او ستاسو دعاګانے به قبلوم، ځکه چه تاسو ټول زما بندګان یئ، او صرف زهٔ ستاسو رب یم۔

په ترمذی کښې د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: (څوك چه الله نهٔ رابلی، الله هغهٔ ته غصه کیږی)۔ (ترمذی: ۳۳۷۳) واسناده حسن)

په یو بل روایت کښې دی چه (څوك الله نه نهٔ غواړی، الله هغهٔ نه خفه کیږی)۔

ادْعُوْنِيْ: ۱- دعاء په معنیٰ د عبادت سره هم دے، یعنی زما بندګی کوئ زه به ئے قبلوم۔

۲- دعاء په معنیٰ د سوال کولو د نفع او د دفع د ضرر، یعنی صرف ما نه د نفع حاصلولو او د ضرر دفع کولو سوال کوئ۔ د بتانو او باباګانو نه ئے مهٔ غواړئ۔

۳- او دعاء په خپله معنیٰ سره رامدد شه وئیل، دعاء او حاجتونه غوښتل ټول د الله پورے خاص دی۔

او معاذ بن جبل رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کړیدے [ لَا يَنْفَعُ حَذَرٌ مِنْ قَدَرٍ وَلٰكِنَّ

الدُّعَاءَ يَنْفَعُ مِمَّا نَزَلَ وَمِمَّا لَمْ يَنْزِلْ فَعَلَيْكُمْ بِالدُّعَاءِ]

(احمد: ۲۲۰۲۹۷، والبزار: ۸۱٤۹، وابویعلی والطبرانی الکبیر: ۱٦٦۲۷) وصحیح الجامع (۳٤۰۹) و (۷۷۳۹) حسن) والجملة الاولی قد صحت عن ابن عباس ﷺ موقوفا۔

یره او احتیاط د تقدیر نه فائده نهٔ ورکوی، لیکن دعاء په راغلی او نا راغلی مصیبت کښې فائده ورکوی، نو په تاسو لازم دی چه دعاء وغواړئ۔

أَسْتَجِبْ لَكُمْ: دعاء په هر حال کښې قبوله ده، یا په دنیا کښې هغه غوښتلے شوے شے ورکړی، یا د هغې په عوض کښې ترے مصیبت لرے کړی، یا ورته اجر ولیکی چه قیامت کښې به ئے ورکړی۔ دلته دا تاویل کول چه دا مُقید دے په مشیئت (یعنی زهٔ به ستاسو دعاء قبلوم کله چه زما خوښه شی) دا تاویل صحیح نهٔ دے ځکه چه دا مقام د ترغیب دے، او د ترغیب په مقام کښې داسے نهٔ وئیلے کیږی۔ یا دا تاویل کول چه زهٔ قادره یم په دعاء قبلولو دا هم صحیح تاویل نهٔ دے۔ بلکه هره دعاء قبلیږی پدے شرط چه په شرطونو سره وشی او د قبلولو ئے مختلف شکلونه دی۔ او تفصیل دپاره سورة البقره (۱۸٦) آیت ته رجوع وکړئ۔

عِبَادَتِيْ: دے کښې اشاره ده چه دعاء عبادت دے، لکه صحیح حدیث د نعمان بن بشیر ﷺ کښې دی: (اَلدُّعَاءُ هُوَ الْعِبَادَةُ) دعاء بعینهٖ عبادت دے۔

(ترمذی فی تفسیر سورة ۲، باب ۱٦ وسورة (٤۰) وابن ماجه فی الدعاء باب ۱، وغیره)۔

او اَلدُّعَاءُ مُخُّ الْعِبَادَةِ روایت ضعیف دے۔

إِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَكْبِرُوْنَ: یعنی کوم خلق چه د کبر او غرور د وجے نه زما عبادت نهٔ کوی او ما نهٔ رابلی، هغوئ به په انتهائی ذلت او رسوایئ سره جهنم ته گذار کړے شی۔ یعنی دا کار صرف کافران خلق کولے شی، مومنان خو د الله تعالیٰ مخے ته ژړا او زاری کوی، او د سوال لاسونه اوگدولو سره د خپلو گناهونو معافی، او په دنیا او آخرت کښې ښیگړه غواړی۔

| اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ لِتَسْكُنُوْا |
|---|
| الله هغه ذات دے چه گرځولے ئے ده تاسو لره شپه دے دپاره چه آرام اُوکړئ تاسو |
| فِيْهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ؕ إِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ |
| په هغے کښې او ورځ رڼرا والا، یقیناً الله خامخا خاوند د فضل دے په خلقو باندے |

| |
|---|
| وَلٰـكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُوْنَ ﴿٦١﴾ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ |
| لیکن ډیر د خلقو نه شکر نهٔ کوی۔ دغه صفتونو والا الله دے رب دے ستاسو، |
| خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ لَّا إِلٰـهَ إِلَّا هُوَ فَأَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ ﴿٦٢﴾ |
| پیدا کونکے د هر شی دے، نشته حقدار د بندګئ سویٔ د هغهٔ نه نو څنګه اړولے شئ؛ |
| كَذٰلِكَ يُؤْفَكُ الَّذِيْنَ كَانُوْا بِآيَاتِ اللّٰهِ يَجْحَدُوْنَ ﴿٦٣﴾ |
| تاسو۔ دغسے به اړولے شول هغه کسان چه وو چه د آیتونو د الله نه به ئے انکار کولو۔ |

**تفسیر** : اُوس عـقـلـی دلیـلونه راوړی پدے خبره چه صرف الله تعالیٰ د بندګئ حقدار دے، نهٔ بل څوك۔ او دا د الله تـعالیٰ د مـعـرفـت او د اثبات د آخرت دلیلونه هم دی لکه په آخـره کښ به ورته اشاره وکړی۔ او پدے کښ رد د ذنوب هم دے، یعنی ګناهونه مهٔ کوئ څکه چه ستاسو رب دومره لوی دے۔

نـو دلتـه الله خپـل څینے مخلوقات اوپه دے کښ د خپلو تصرفاتو ذکر کولو سره انسان لـه د فـکر دعوت ورکړے چه په دے مخلوقاتو کښ فکر وکړی او پدے سره هغه وپیژنی، پـه هغـهٔ ایـمان راوړی او صـرف د هـغــهٔ عبادت وکړی، او د هغـهٔ نـه ما سِویٰ د دروغو مـعـبـودانـو نه انکار وکړی۔ فرمائی چه الله تعالیٰ هغه ذات دے چه هغهٔ شپه پیدا کړے دے دپارهٔ چه تاسو د معاش دپاره حرکت او عمل پریدئ او خوب وکړئ، او راحت او آرام حـاصـل کـړئ، او هـغــهٔ ورځ روښـانـه پیدا کړے، دے دپاره چه تلل راتلل وکړے شئ، او د مـعـاش تـالاش کـولـو او د ژونـد د نـورو ضـروریاتو پوره کولو دپاره نقل او حرکت وکړے شئ۔ او د الله تعالیٰ نـعـمـتونه بے شماره دی چه د هغے هیڅوك احاطه نشی کولے، لیکن جـا هـل اونـاپـو هـه او کـافـرانو خلقو ته ددے نعمتونو د اقرار او په دے باندے د الله تـعالیٰ د شکر کولو توفیق نهٔ ملاویږی۔

دلته الله تعالیٰ د (اللَّيْل) صفت حذف کړیدے چه (مُظْلِمًا) دے او فائده ئے ورله ذکر کړیده څـکـه چـه تیارهٔ مقصد نهٔ دے، او د (النَّهَار) سره ئے صـفـت ذکر کـړیدے، لیکن فائده ئے حـذف کـړیده چه (لِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ) دے، څـکـه چه دا صفت (د رڼرائی) مستلزم دے ډیرو فائدو لره۔

أَكْثَرَ النَّاسِ: دوه څـله ئے (النَّاس) لـفـظ راوړو، اول کـښ ټـول انـسـانان مراد دی چه په

هغوی باندے د الله نعمتونه شته، او په دویم النّاس کښې خاص انسانان مراد دی چه هغه کافران او مجرمان دی چه دوی د الله شکر نهٔ ادا کوی او کم انسانان شکر گذار دی۔

ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ: دا دليل دے او د مخکښې دليل دپاره نتيجه هم ده۔ او پدے آيت کښې توحيد ربوبيت او توحيد الوهيت دواړه ذکر شويدی۔

فرمائی: کوم الله چه شپه او ورځ پيدا کړے، هم هغه ستاسو رب دے، هم هغه د هر شئ پيدا کونکے دے، هغهٔ نه سوئ بل هيڅ معبود نشته۔ بيا تاسو ولے هغه پريدئ او د هغهٔ نه مخ اړوئ، د بتانو مخے ته سجده کوئ او د هغوئ عبادت کوئ۔

تُؤْفَكُوْنَ: نو تاسو کوم طرفته اړولے شئ چه رشتينی خبره پريدئ، او په دروغو روانيږئ ځکه چه اِفك دروغو ته وئيلے شی او شرك هم دروغ دی۔ او افك په هغه اوړيدو کښې ذکر کيږي چه يو جانب حق وی او بل جانب باطل وی۔

كَذٰلِكَ يُؤْفَكُ الَّذِيْنَ: پدے آيت کښې قريشو کافرانو ته خطاب کوی چه لکه ځنګه چه تاسو د دلائلو او براهينو د کثرت باوجود په الله تعالیٰ باندے د ايمان راوړو، او د هغهٔ د وحدانيت د اقرار او د هغهٔ د عبادت نه مخ اړوئ، په هره زمانه کښې د الله تعالیٰ د آيتونو نه د انکار کونکو همدا طريقه را روانه ده۔

او پدے آيت کښې د اوړيدو علت ذکر دے چه هغه انکار د آيات الله دے۔او دا د ټولو منکرينو ترمينځ مشترك علت دے۔ او دا ځکه چه د الله بندگی خو د الله کتاب ښائی کله چه انسان د الله د آيتونو او د هغهٔ د کتاب نه انکار وکړی نو هغه به څه بندگی وکړی۔ او دے آيت کښې تشبيه ده، يعنی تاسو د الله تعالیٰ د عبادت نه په اَوړيدو کښې د پخوانو تابع شوئ۔

| اَللّٰهُ الَّذِیْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ قَرَارًا وَّالسَّمَآءَ بِنَآءً ط |
|---|
| الله هغه ذات دے چه گرځولے ئے ده تاسو لره زمکه آرام والا، او آسمان چهت |
| وَصَوَّرَكُمْ فَاَحْسَنَ صُوَرَكُمْ |
| او شکلونه ئے درکړيدی تاسو ته، نو ښائسته کړی ئے دی شکلونه ستاسو |
| وَرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ |
| او رزق ئے درکړيدے تاسو ته د پاکو خوراکونو نه دغه ذات الله دے رب دے ستاسو |

فَتَبَارَكَ اللّٰهُ رَبُّ الْعَالَمِيْنَ ﴿٦٤﴾ هُوَ الْحَيُّ

نو برکتونو والا دے اللہ تعالیٰ چه رب د مخلوقاتو دے۔ هغه همیشه ژوندے دے

لَا إِلٰـهَ إِلَّا هُوَ فَادْعُوْهُ مُخْلِصِيْنَ

نشته حقدار د بندګئ سوئ د هغهٔ نه نو دعاګانے اوغواړئ د هغهٔ نه خالص کونکی

لَهُ الدِّيْنَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ ﴿٦٥﴾

یئ هغه لره د بلنے۔ ټول صفتونه د الوهیت خاص الله لره دی چه رب د مخلوقاتو دے۔

**تفسیر** : دا بل عقلی دلیل دے، او پدے کښې ځلور لوی انعامات ذکر دی، مخکښې انعامات زمانی وو، او دا انعامات مکانی دی، او د مکان سره ئے مَکین (انسان) هم ذکر کړیدے، او دے کښې لنډ لنډ آفاقی، علوی او سفلی او انفسی نعمتونه ئے په طریقه د دلیل جمع کړیدی۔

فرمائی : الله هغه ذات دے چه هغهٔ زمکه ټینګه ولاړه پیدا کړے، دے دپاره چه تاسو په دے باندے ژوند تیر کړئ، ګرځیدل راګرځیدل وکړئ، او د خپل ژوند ضروریات پوره کړئ، او هغهٔ آسمانونه مضبوط او محکم جوړ کړی، چه هیڅ کله نهٔ شلیږی، او نهٔ ددے څهٔ برخه ماتیدو سره د انسانانو په سرونو راپریوځی، او هغهٔ ستاسو د میندو په خیټو کښې تاسو په ښهٔ شکل او صورت کښې جوړ کړئ، یعنی هر یو اندام ئے په خپل مناسب ځای کښې کیښودلو دے دپاره چه تاسو ددے نه فائده واخستے شئ، او د خپل خالق د کامل قدرت او کامل حکمت اقرار وکړئ، او هغهٔ تاسو له د خوندور خوراك ښباك نعمتونه درکړی دے دپاره چه تاسو د هغهٔ شکر ادا کړئ۔

وَصَوَّرَكُمْ: په ټول مخلوق کښې د انسان شکل ښائسته دے۔ ﴿لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ فِيْ أَحْسَنِ تَقْوِيْمٍ﴾۔

فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ: د انسان په مخ باندے ئے پوزه، سترګے او خوله په ښائسته ترتیب سره جوړ کړیدی، خوراك په لاسونو باندے کوی، او په دوه خپو باندے ګرځیدونکے سیده قدوقامت ئے ورکړو۔

مِّنَ الطَّيِّبَاتِ: انسانان د څیزونو خلاصه او نچوړ خوری، او حیوانات ئے بوس او پوك

وغيره خوري۔
ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ: يعني دا مخكني زماني نعمتونه، او دلته مكاني او انفسي وغيره نعمتونه ټول د بندګانو تربيت دے نو ځکه ئے هلته او دلته وفرمايل: دا تربيت تاسو له صرف الله تعالىٰ کوی بل هيڅوك نشته۔
فَتَبَارَكَ اللّٰهُ: دا تفريع ده په مخکنو نعمتونو۔ يعني معلومه شوه چه برکت ورکونکے صرف الله دے، برکت په معنیٰ د ډيرو فائدو پيدا کولو او فائدے وخت په وخت زياتولو ته وئيلے شی، نو په ځيزونو کښې الله تعالىٰ برکات او خيرونه اچولی دی، انسان ئے د نطفے نه جوړ کړے ځومره ښائسته شکل ئے دے او ځومره پوهه دے۔ يوه غنم دانه وی ځومره ډيرے دانے ترے پيدا شی، دا د الله تعالىٰ برکات دی چه ټول مخلوق ددے برکاتو پيدا کولو نه عاجز دے۔
هُوَ الْحَيُّ: پدے کښې اشاره ده د الله تعالىٰ کامل علم او کامل قدرت ته۔
اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ: دا خبر دے او پدے کښې امر پټ دے۔ اَیْ اِحْمَدُوْهُ ۔ د الله حمدونه ووايئ۔ يعني هرکله چه الله تعالىٰ دا مخکنی نعمتونه درکړل، نو د هغهٔ يوائے بندګی وکړئ، او د هغهٔ د کمال حمدونه ووايئ، الله تعالىٰ پدے باندے خوشحاليږی۔ ددے وجه نه ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی چه څوك (لا اله الا الله) ووائی نو هغه ډے ورسره اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ هم ووائی، ځکه چه پدے آيت کښې الله دواړه جمع کړيدی۔
يا دا حمد د الله تعالىٰ دے د خپل ځان دپاره۔ او بندګانو ته وائی چه زهٔ د کمالی صفاتو مستحق يم، ځکه چه ما دغه کارونه کړيدی چه هيڅ بت او بل معبود باطل پدے قادر نهٔ دے۔ د مشرکانو د بتانو او باباګانو صفتونه کول غلط دی۔

| قُلْ اِنِّيْ نُهِيْتُ اَنْ اَعْبُدَ الَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ |
|---|
| ووايه! يقينًا زهٔ منع کړے شوے يم ددے نه چه بندګی وکړم د هغه کسانو چه تاسو ئے |
| مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ لَمَّا جَآءَنِیَ الْبَيِّنٰتُ مِنْ رَّبِّیْ |
| رابلئ سویٰ د الله تعالیٰ نه هرکله چه راغلل ما ته ښکاره دليلونه د طرف د رب زما |
| وَاُمِرْتُ اَنْ اُسْلِمَ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٦٦﴾ هُوَ الَّذِیْ |
| نه او حکم شويدے ما ته ددے چه زهٔ تابعدار شم دپاره د رب العالمين۔ الله هغه ذات |

| |
|---|
| خَلَقَكُم مِّن تُرَابٍ ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ |
| دے چه پیدا کړی ئے یئ تاسو د خاورے نه بیا د نطفے نه بیا د توټے د وینے نه بیا |
| يُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ |
| را اُوباسی تاسو لره واړه واړه بیا (پالی تاسو) دے دپاره چه اُورسیږئ خوانئ خپلے ته |
| ثُمَّ لِتَكُونُوا شُيُوخًا وَمِنكُم مَّن يُتَوَفَّىٰ |
| بیا (عمر درکوی) دپاره ددے چه شئ بوډاګان، او بعض ستاسو نه هغه دی چه مړه |
| مِن قَبْلُ وَلِتَبْلُغُوا أَجَلًا مُّسَمًّى |
| کړے شی مخکښې او (ساتی تاسو) دے دپاره چه اُورسیږئ تاسو نیتے مقررے ته، |
| وَلَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿٦٧﴾ هُوَ الَّذِي يُحْيِي |
| او دے دپاره چه تاسو د عقل نه کار واخلئ۔ الله هغه ذات دے چه ژوندی کول کوی |
| وَيُمِيتُ فَإِذَا قَضَىٰ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُن فَيَكُونُ ﴿٦٨﴾ |
| او مړهٔ کوی نو کله چه فیصله کوی د یو کار نو یقیناً وائی هغهٔ ته شه نو هغه اُوشی۔ |

**تفسیر**: نبی کریم ﷺ ته به قریشو مشرکانو بار بار د خپلو بتانو د عبادت دعوت ورکولو نو پدے وجه الله تعالیٰ په قرآن کریم کښې بار بار د هغے رد راليږلے دے، دلته هم الله خپل نبی ته حکم کوی چه هغه خپل قوم ته ښکاره ووائی چه زهٔ د هغه بتانو د عبادت او د هغوئ د رابللو نه په قطعی توګه منع شوے یم، د کومو چه تاسو عبادت کوئ او رابلئ ئے۔ ما ته خو زما د رب له اړخه ښکاره دلائل او واضحه براهین راغلی دی، د عبادت لائق صرف هغه ذات دے، او د نورو عبادت کول باطل او غټ شرك دے۔ او ما ته حکم شوے چه خپل څټ د رب العالمین مخے ته ښکته وساتم، د هغهٔ د اوامرو او نواهیو تابعداری وکړم، او خپله هره معامله هغهٔ ته وسپارم۔ پدے کښې تعریض دے په هغوی باندے چه هغوی الله تعالیٰ ته غاړه نهٔ کیخوده حال دا چه الله د دوی رب وو۔

هُوَ الَّذِي خَلَقَكُم: دا بل عقلی دلیل دے چه مشتمل دے په مختلفو حالتونو د انسان باندے۔

مِّنْ تُرَابٍ: د انسان لرے ماده خاوره ده ځکه چه د هر انسان نطفه د زمکے د څیزونو نه پیدا کیږی. او هرکله چه ددے حالاتو په انقلاب کښې وخت لګی نو ددے وجه نه ئے په مینځ کښې (ثُمَّ، ثُمَّ) کلمه راوړے ده. یا خَلَقَكُمْ نه مراد دا دے چه ستاسو اصل او اول پلار ئے د خاورے نه پیدا کړو.

**سوال**: په سورة حج (٥) آیت کښې ﴿ثُمَّ مِنْ مُضْغَةٍ﴾ ذکر دے نو دلته ئے ولے ذکر نکړو؟

**جواب**: هرکله چه ددے آیت نه مخکښې ئے صورت د انسان ذکر کړیدے، او صورت د مضغے سره تعلق لری نو داسے شو لکه (صَوَّرَ مُضْغَكُمْ) نو بیا ذکر ته ضرورت نهٔ وو او سورت حج کښې داسے ذکر نهٔ وو کړے شوے. (احسن الکلام)

طِفْلًا: جنس دے په معنیٰ د جمع سره دے. طفل یعنی د مور تابع، ځکه طفولت تابعداریٔ ته وئیلے کیږی. نو څو پورے چه بچے مور او پلار ته محتاج وی په خوراك څکاك او په جامه اغوستلو کښې نو دے د مور او پلار تابع وی.

أَشُدَّكُمْ: اَشُدُّ هغه حالت ته وائی چه په هغے کښې قوت بدنی او قوتِ عقلی دواړه جمع شی چه دا د دیرشو نه تر څلویښتو پورے وی.

نو د انسان درے حالته دی، یو د طفولیة چه دا حالت د ترقیٔ او د غټیدو دے تردے چه ځوانیٔ ته ورسیږی بغیر د ضعف نه، او بیا د هغے نه لږ لږ کمیدل شروع شی دے ته د شیخوخة زمانه وائی. او دریم د مرګ حالت دے.

يُتَوَفَّى مِنْ قَبْلُ: یعنی مړ شی مخکښې د ځوانیٔ نه / مخکښې د بوډاوالی نه.

وَلِتَبْلُغُوا أَجَلًا مُّسَمًّى: اَیْ فَعَلَ ذٰلِكَ لِتَبْلُغُوْا ـ الله تعالیٰ دا کارونه ددے دپاره وکړل چه تاسو پورے نیټے مقررے ته ورسیږیٔ چه هغه مرګ دے یا د قیامت ورځ ده.

وَلَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ: دے دپاره چه د خپل رب په توحید او د هغهٔ په قدرت کښې سوچ وکړیٔ چه کوم ولی او بزرګ او طبیب او بابا زهٔ د نطفے نه داسے ښکلے انسان جوړ کړے یم؟! نو الله سره به دے مینه پیدا شی. او پدے کښې هم سوچ وکړے چه زهٔ ئے د رحم نه راویستم نو یوه ورځ به مے د قبر نه راویاسی، او خپلے مخے ته به مے ودروی. نو ددے تعقل او سوچ د وجه نه الله تعالیٰ انسان پداسے اطوارو او مراحلو کښې پیدا کړو ګنے الله کولے شو چه هر انسان ئے د خاورے نه پیدا کولے.

هُوَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ: بل دلیل دے د اثبات د بعث بعد الموت دپاره چه د مَنِی د څاڅکی نه انسانانو ته ژوند ورکوی، او بیا انسانانو له د دویٔ د عمرونو پوره کیدو نه

پس مرګ ورکوی، او خپله پرے مرګ نهٔ راځی، نو دغه شان به الله تعالیٰ دوی دوباره هم راژوندی کوی، او قیامت به خامخا راځی ځکه چه هغه د څهٔ خبرے فیصله کول غواړی نو چه یو شی ته اراده متوجه کړی او یو شی ته ووائی چه ((شه)) نو هغه موجود شی، دا کیدے نشی چه هغه یوه خبره وغواړی او هیڅ شے موجود نشی۔

| |
|---|
| أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِيْنَ يُجَادِلُوْنَ فِيْ آيَاتِ اللهِ أَنّٰى |
| آیا نهٔ ګورے تهٔ هغه کسانو ته چه جګړے کوی په آیتونو د الله تعالیٰ کښې څرنګه |
| يُصْرَفُوْنَ ﴿٦٩﴾ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِالْكِتَابِ وَبِمَا |
| ګرځولے شی (د حق نه)۔ هغه کسان دی چه دروغژن ئے ګنړلی دی کتابونه او هغه څه |
| أَرْسَلْنَا بِهٖ رُسُلَنَا فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ﴿٧٠﴾ |
| چه رالیږلی دی مونږ په هغے سره رسولان خپل نو زردے چه پوهه به شی دوی۔ |
| إِذِ الْأَغْلَالُ فِيْ أَعْنَاقِهِمْ وَالسَّلَاسِلُ |
| په هغه وخت چه طوقونه به په څټونو د دوی کښې وی او زنځیرونه (په خپو کښې |
| يُسْحَبُوْنَ ﴿٧١﴾ فِي الْحَمِيْمِ ثُمَّ فِي النَّارِ يُسْجَرُوْنَ ﴿٧٢﴾ ثُمَّ |
| وی)، رابښکلے به شی۔ په خوټ کیدلو اُوبو کښې بیا به په اُور کښې سوزولے شی۔ بیا |
| قِيْلَ لَهُمْ أَيْنَ مَا كُنْتُمْ تُشْرِكُوْنَ ﴿٧٣﴾ |
| به اُووئیلے شی دوی ته چرته دی هغه څوک چه تاسو به برخه داران جوړول (د الله |
| مِنْ دُوْنِ اللهِ قَالُوْا ضَلُّوْا عَنَّا بَلْ لَّمْ نَكُنْ نَّدْعُوْ |
| سره)۔ سوئ د الله تعالیٰ نه، دوی به وائی ورک شو زمونږ نه بلکه نهٔ دے رابللے مونږ |
| مِنْ قَبْلُ شَيْئًا كَذٰلِكَ يُضِلُّ اللهُ الْكَافِرِيْنَ ﴿٧٤﴾ ذٰلِكُمْ بِمَا |
| مخکښې ددے نه هیڅ شے، دغسے ګمراه کوی الله تعالیٰ کافرانو لره۔ دا په سبب ددے |
| كُنْتُمْ تَفْرَحُوْنَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَبِمَا |
| چه تاسو به خوشحالی کوله په زمکه کښې په ناحقه سره، او په سبب د هغے |

| كُنتُمْ تَمْرَحُونَ ﴿٧٥﴾ ادْخُلُوا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ |
|---|
| چه وئ تاسو چه تکبر به مو کولو۔ ننوځئ دروازو د جهنم ته همیشه به یئ |
| فِيهَا فَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ ﴿٧٦﴾ |
| پدے کښې نو بد دے ځائے د اوسیدو د متکبرانو۔ |

**تفسیر** : اوس بیا د الله تعالیٰ په آیتونو کښې مجادلینو (جګړه کونکو) ته سخته رټنه او د دوی دپاره د آخرت عذابونه بیانوی۔ مخکښې ئے د دوی بدی بیانه کړه چه الله تعالیٰ ئے گمراه کوی، او د دوی په زړونو کښې تکبر دے چه مقصد ته نشی رسیدے۔

**يُجَادِلُونَ**: یعنی انکار، تکذیب، کفر او د قرآن مقابلے کوی او حق خکته کول او ددے په لاره کښې شکونه او شبهات پیدا کول او د خپل ځان نه ددے په خلاف د دروغو دلیلونه وئیل۔

**أَنَّى يُصْرَفُونَ** : یعنی ددے خلکو په حال فکر وکړه چه دوی کوم طرفته اړولے شی، ځکه چه ځوک د الله تعالیٰ آیتونه پریدی، نو هغه به د شیطان په لاره روانیږی، ځکه چه د الله په مقابله کښې خو شیطان دے، کله یو انسان د یو کتاب نه واوړی لیکن بل ډیر غوره کتاب ومنی مګر دلته وائی چه دا خلک ډیر غلط طرفته واوړیدل۔

**الَّذِينَ كَذَّبُوا بِالْكِتَابِ**: دا د دوی فوری سزا ده، یعنی دوی ته د دوی پدے کار باندے فوری او سمدستی سزا دا ورکړے شوه چه د ښکاره او صفا دلائلو باوجود د حق د قبلولو توفیق د دوئ نه واخستے شو، د الله تعالیٰ په کتاب او د رسولانو نوره وحی ئے دروغژنه وګڼړله کومه چه د هدایت چینه وه۔ نو چینے ته ورغلی وو او بیرته ترے تږی راواپس شول۔ دا ډیره لویه بد بختی ده چه انسان ته د هدایت رڼا کورته راشی او په دروازه کښې ورته آوازونه کوی او دے ئے په دزو وولی۔

**بِالْكِتَابِ**: ددے نه مراد جنس آسمانی کتابونه دی۔ یا ترے قرآن مراد دے۔

**وَبِمَا أَرْسَلْنَا بِهِ رُسُلَنَا** : ۱- د کتاب نه که ټول الٰهی کتابونه واخستے شی نو ددے نه مراد به د کتاب نه علاوه نوره وحی یعنی سنت طریقے د رسولانو یا معجزات وی۔

۲- یا که د کتاب نه قرآن مراد شی، نو ددے نه به د باقی رسولانو کتابونه مراد کړے شی۔ ۳- یا ددے نه مراد د توحید مسئله ده، یعنی کتابونه چه د هدایت دپاره راغلی

دی هغه هم نهٔ منی او د توحید مسئله چه د ټولو انبیاؤ ترمینځ شریکه ده هغه هم نهٔ منی۔ چه هغه په سورة الانبیاء (۲۵) آیت او سورة نحل (۳۶) آیت کښې ذکر ده۔

فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ : اَیْ عَاقِبَةَ اَمْرِهِمْ وَوَبَالُ كُفْرِهِمْ ۔ یعنی زر دے چه دوی به د قیامت په ورځ د خپل کار انجام او د خپل کفر سزا وینی کله چه به د دوئ په ځټونو کښې د اُور طوقونه او د دوئ په خپو کښې بیړئ اچولے کیږی، او دوئ به په سختو ګرمو اُوبو کښې راښکلے کیږی، او د دوئ په جسمونو کښې به اُور لګولے کیږی لکه په لرګی باندے چه اُور لګیږی۔ او بیا به دوئ ته د زجر او رټنے په توګه وئیلے کیږی چه چرته دی هغه شریکان چه د الله نه سوئ به تاسو د هغوئ عبادت کولو؟ نو دوئ به جواب ورکړی چه هغه خو نن زمونږ نه غائب شوی، هیچرته په نظر نهٔ راځی۔

وَالسَّلَاسِلُ : ۱- دا یا عطف دے په (اَلْاَغْلَالُ) باندے۔ او فِیْ اَعْنَاقِهِمْ ئے خبر دے۔ یعنی طوقونه او بیړئ دواړه به ورته په ځټونو کښې واچولے شی۔

۲- یا اَلسَّلَاسِلُ مبتداء ده او خبر ئے پټ دے۔ (اَلسَّلَاسِلُ فِیْ اَیْدِیْهِمْ وَاَرْجُلِهِمْ) او بیړئ به ورته په لاسونو او خپو کښې واچولے شی۔

۳- یا والسلاسل مبتداء ده او خبر ئے يُسْحَبُوْنَ دے په تقدیر د (بِهَا) سره۔ یعنی په زنځیرونو کښې به راښکلے شی په ګرمو اُوبو کښې۔

يُسْحَبُوْنَ : سَحْب په سختئ او تیزئ سره راښکلو ته وئیلے شی۔

فِی الْحَمِیْمِ : ۱- دا سختو ګرمو اُوبو ته وائی چه په ګرمائش کښې انتهاء ته رسیدلی وی۔ ۲- یا ددے نه مراد وینے زوے دی۔ یا ددے نه مراد جهنم دے۔ اول قول غوره دے۔

عبد الله بن عباس رضی الله عنهما فرمائی: په ګرمو اُوبو کښې به داسے راښکلے شی چه د دوی نه هر شے راوتوکی، د دوی څرمن، غوښه، رګونه او پلے به داسے ویلی کړی چه په پوندو کښې به پریوتی وی، بیا به بله څرمنه ورواغوستولے شی او بیا به په ګرمو اُوبو کښې راښکلے شی۔ (فتح البیان)

يُسْجَرُوْنَ: سجر په اصل کښې اُور بلولو ته وئیلے شی یعنی په دوی باندے به اُور بلولے او توده ولے شی لکه د خشاکو په شان۔ ۲- یا په اُور کښې به وریتولے شی۔

ضَلُّوْا عَنَّا : ددے یو بل مطلب دا دے چه هغه خو زمونږ په هیڅ کار رانغلل، هغوئ سره زمونږ د څهٔ مصیبتونو دوائی اُونشوه۔ بیا به په سختے حیرانتیا او ګډوډئ کښې خپل عقلی توازن د لاسه ورکړی او خپله ناپوهی او جهالت او ګمراهی به ورته راښکاره

شی چه وبه وائی : ﴿ بَلْ لَّمْ نَكُنْ نَّدْعُوْا مِنْ قَبْلُ شَيْئًا ﴾ چه مونږ خو په دنیا کښې د هیڅ عبادت نهٔ وو کړے. یعنی ګویا که هغه د سره موجود نهٔ وو، او مونږ د هیڅ شی عبادت نهٔ وو کړے. (یعنی دا خو هیڅ څیزونه نهٔ وو چه مونږه ددے عبادت کولو) دوی ته به ښکاره شی چه دوی خو د هغه څیز عبادت کړے وو چه نهٔ ئے څه لیدل او نهٔ ئے څه آوریدل او نهٔ ئے چا ته ضرر او نهٔ چا ته نفع رسولے شوه. (هسے بیکاره څیزو نه وو)

او د دوی دا انکار د بتانو او باطلو معبودانو د وجود نه نهٔ دے چه ګنے دوی د هیڅ موجود شی عبادت نهٔ کولو. بلکه دا د دوی اقرار دے چه ز مونږ عبادت دوی لره بیکاره او ضائع او برباد وو. او علامه محلیؒ وائی چه دا د دوی د عبادت نه انکار دے. لیکن دا خبره د مقام د حساب او پیشیٔ د رب العالمین نه بعیده ده. (فتح البیان)

مګر دواړه خبرے صحیح دی په (ضَلُّوْا عَنَّا) کښې به اقرار وکړی، او په (بَلْ لَّمْ نَكُنْ نَّدْعُوْا) سره به انکار وکړی پدے طمع چه کیدے شی چه په انکار سره خلاص شی. او د قیامت مختلف مواقف دی چه کافران به کله پکښې اقرار کوی او کله انکار.

او اوله خبره هم د محاورے مطابق ده، خلك وائی چه د فلانی سره مونږ ملګرتوب کاوه خو هغه هیڅ شے ونهٔ ختله. یعنی هیڅ فائده ئے ورنکړه. [اَیْ لَمْ نَكُنْ نَّدْعُوْ شَيْئًا يَّنْفَعُ اَوْ يَضُرُّ] نهٔ ئے ضرر وو او نهٔ فائده هیڅ څیزونه نهٔ وو.

كَذٰلِكَ يُضِلُّ اللّٰهُ : د إضلال نه مراد دلته په جواب کښې ګډوډ کول دی. لکه څنګه چه اوس دوی ګډوډ شول چه کله اقرار کوی او کله انکار، او دا د دوی شرمول دی.

یا دغسے الله تعالیٰ کافران ګمراه کوی چه د بتانو عبادت اُورته راورسول.

ذٰلِكُمْ بِمَا كُنْتُمْ: دا مخکنی عذاب ته اشاره ده. یعنی ملائك به د اور د عذاب او د الله د رحمت نه د لرے والی سبب بیان کړی وبه وائی چه ستاسو دا انجام څکه جوړ شوے چه تاسو به د الله تعالیٰ په نافرمانیٔ او د هغهٔ د رسول او د هغهٔ د کتاب په مخالفت کولو سره ښهٔ خوشحالیدئ، او د ډیرے خوشحالیٔ په وجه به د حد نه تیریدئ، نو نن تاسو د جهنم د دروازو نه ورتیر شئ او د دے آخری کندے ته ورسیږئ، چه دا په الله تعالیٰ باندے د ایمان راوړو او د الله تعالیٰ د توحید نه د انکار کونکو لپاره بدترینه ټیکانه ده.

## د فرح او مرح ترمینځ فرق

۱- د فرح او مرح فرق دا دے چه اول د ظاهر سره تعلق لری، او دویم د زړهٔ سره تعلق لری۔ او معنیٰ دا ده چه تاسو به خوشحالی ښکاره کوله په ګناهونو او د رسولانو په مخالفت او په ډیرو مالونو او ډیرو نوکرانو او صحت او عافیت سره۔ (القرطبیؒ)
نو پدے کښې د پیرانو عرسونه هم داخل دی چه په شرك کولو سره خوشحالی ښکاره کوی، او مرح دا دے چه په زړه کښې به مو تکبر کولو او ځانونه به هم لوئی ګنړل او په مینځ کښې لوئی نهٔ وی۔
۲- یا تاسو به خوشحالی کوله په انکار د بعث او په عذاب، او تَمۡرَحُونَ: تکبر به مو کولو۔
۳- ضحاكؒ وائی: فرح خوشحالیٔ ته وائی او تَمۡرَحُونَ، یعنی تاسو به ظلم او زیاتے کولو۔
٤- تاسو به خوشحالی کوله او حق له به مو دیکه ورکوله۔ (مقاتلؒ)
٥- مرح اَشَدُّ الفَرَحِ (سختے خوشحالیٔ) ته وائی چه متضمن شی کبر لره۔ او دارنګه فرح بغیر الحق هم کبر دے۔ (فتح البیان والقرطبی وابن کثیرؒ وغیره)
بِغَيۡرِ الۡحَقِّ: دا ورسره ځکه وائی چه کله انسان په قرآن او اسلام او دین باندے خوشحالی کوی نو دا خو ضروری ده۔ (فَبِذٰلِكَ فَلۡيَفۡرَحُوا) لیکن د حق نه په غیر په باطل او شرك او د پلار نیکه د ګمراهیٔ په لاره باندے به خوشحاله وی۔ تولو باطلو لاروته غیر الحق وائی۔
ادۡخُلُوٓا أَبۡوَابَ جَهَنَّمَ: مراد تربنه په تقسیم سره داخلیدل دی ځکه چه د جهنم اوه دروازے دی ﴿لِكُلِّ بَابٍ مِّنۡهُمۡ جُزۡءٌ مَّقۡسُومٌ﴾ د هرے دروازے دپاره خپل خپل کافران مقرر دی۔
مَثۡوَى: دا هغه ځای ته وائی چه انسان پکښې د همیشوالے دپاره وسیږی۔ ځکه ئے دلته دا تعبیر وکړو چه د یوے ورځے او لږ ساعت دپاره داخلیدل نهٔ دی۔ (ابو السعودؒ)

| فَاصۡبِرۡ إِنَّ وَعۡدَ اللّٰهِ حَقٌّ فَإِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعۡضَ الَّذِي |
|---|
| نو صبر کوه یقیناً وعده د الله تعالیٰ حقه ده پس که دراُوښایو تا ته بعض هغه عذاب |
| نَعِدُهُمۡ أَوۡ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِلَيۡنَا يُرۡجَعُونَ ﴿٧٧﴾ |
| چه وعده ئے کوو د دوی سره یا وفات کړو تا لره نو خاص مونږ ته به راګرځولے شی دوی |

| وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّنْ قَبْلِكَ مِنْهُم مَّنْ |
| --- |
| او یقیناً رالیږلي دي مونږ رسولان مخکښې ستا نه بعض د دوی نه هغه دي |
| قَصَصْنَا عَلَيْكَ وَمِنْهُم مَّنْ لَّمْ نَقْصُصْ |
| چه بیان کړیدي مونږ په تا باندے او بعض د دوی نه هغه دي چه نهٔ دي بیان کړي |
| عَلَيْكَ وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ أَنْ يَأْتِيَ بِآيَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ |
| مونږ په تا باندے او نشي کیدے د یو رسول دپاره چه راوړي یوه معجزه مګر په حکم |
| اللّٰهِ فَإِذَا جَاءَ أَمْرُ اللّٰهِ قُضِيَ بِالْحَقِّ |
| د الله تعالیٰ نو کله چه به راغے حکم د الله تعالیٰ فیصله به اُوکړے شوه په حق سره |
| وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْمُبْطِلُونَ ﴿٧٨﴾ |
| او ښکاره به شو دغه وخت کښې تاوان د باطل پرستو خلقو۔ |

**تفسیر:** پـه مـکی ژوند کښې به صحابۂ کرام د قریشو کافرانو د ضرر رسولو نه تنګ راغـلل او په زړونو کښې به ئے دا سوچ کولو او کله به ئے په ژبه دا خبره راوړله چه معلومه نهٔ ده چه د الله تعالیٰ مدد به کله راځي۔

دارنګه مشرکانو به اعتراض کولو چه هرکله مونږ د الله تعالیٰ په آیتونو کښې جدال کوو نو په مونږ عذاب ولے نهٔ راځي نو دلته ئے جواب ذکر کوی۔

الله تعالیٰ نبی ﷺ تـه وفـرمـایل چه د الله تعالیٰ وعده حقه ده چه د کفارو په مقابله کښې بـه خامخا ستا مدد کوی، او د کافرانو د ناخوښئ باوجود به اسلامی دین غالبه کوی۔ یا خو به ستا په ژوند کښې د وعدے مطابق په دوئ باندے څهٔ دنیوی عذاب نازلیږی، او که چرے ددے نـه مـخکښې تهٔ وفات شے، نو د دوئ راګرځیدل مونږ طرفته دی، په دے وخت کښې به مونږ دوئ لره د جهنم په دردناك عذاب کښې مبتلا کړو، او تاله به د عزت او اکرام په کور یعنی په جنت کښې اعلیٰ مقام درکړو، او مومنانو له به هم د دوئ د اعمالو مطابق درجے ورکـړو۔ یـعـنی دوی باندے عذاب راتلل او ستا غالبه کیدل خامخا یقینی دی۔ که اُوس پـرے عـذاب رانغلو، روستو به پرے راشی، که په دنیا کښې پرے رانغلو نو د آخرت د عذاب خو چرته تلے نهٔ دے۔

وَعْدَ اللهِ : ۱- د نصرت وعده. ۲- د عذاب راتللو وعده. ۳- د قیامت د راتللو وعده. درې واړه مراد دي.
فَإِمَّا نُرِيَنَّكَ : ددې جزاء پټه ده. (فَسَتَرَاهُ فِي الدُّنْيَا) يا خو به عذاب په دوی باندې راشي نو ته به ئې په دنيا کښې وينې. او نتوفينك : (فَسَتَرَاهُ فِي الآخِرَةِ) يا به تا وفات کړو نو د دوی عذاب به په آخرت کښې وينې. (فالينا مرجعهم) دا ئې دليل دې. ځکه چه ددوی مونږ ته راګرځيدل دي زما د عذاب نه نشي خلاصيدې.
وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا : دا نبي کريم ﷺ له نوره تسلي ورکړې کيږي چه مخکنو پيغمبرانو سره هم د الله تعالیٰ وعده پوره شويده او هغوی ته الله تعالیٰ نجات ورکړې او کافران منکرين ئې هلاك کړيدي، مثال ئې دا دې. فرمائي : مونږ تا نه مخکښې ډير انبياء راليږلي، د هغوئ نه د بعضو حالات مونږ په قرآن کريم کښې ستا دپاره بيان کړي، او د بعضو په باره کښې مونږ هيڅ تاته نۀ دي بيان کړي.
**سوال** دې چه کله د بعضو انبياؤ حالات نۀ دي بيان شوی نو د هغوی نه به څنګه عبرت واخستې شي؟ جواب دا دې چه په طريقه د تصور سره يعني دا سوچ به وکړې چه اګر که مونږ ته ئې واقعات نۀ دي بيان شوی ليکن د الله تعالیٰ د خبر مطابق هغوی ته نجات ملاؤ شوې او د هغوی منکرين قوم هلاك شويدې.
حافظ ابن کثيرؒ ليکي چه د چا نومونه چه نۀ دي بيان شوی، د هغوئ شماره د هغه انبياء کرامو نه څو چنده زياته ده چه د هغوئ نومونه په قرآن کښې ذکر کړې شوی. په قرآن کريم کښې صرف د پنځيشتو انبياؤ نومونه راغلي.
وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ : يعني دې رسولانو له دا اختيار حاصل نۀ وو چه دوئ د خپلو قومونو د مطالبې مطابق په خپلې مرضئ سره معجزې پيش کړې وې، دوئ ته به چه کله د الله حکم کيدۀ نو بيا به ئې د الله په قدرت سره څۀ معجزه راښکاره کوله. نو ددې نه معلومه شوه چه زما په پيغمبر باندې اعتراضونه مۀ کوئ، او ددۀ نه مطالبې مۀ کوئ، ددۀ پکښې خپل اختيار نشته. دا هم د هغوی د جدال صورت وو چه د معجزو مطالبې به ئې کولې. نو الله ورته دلته جواب ورکوی.
فَإِذَا جَاءَ أَمْرُ اللهِ : نو کله چه به د الله امر راغلو چه هغه د انبياؤ بچاؤ او د قوم هلاکت وو نو دغه وخت به په حق سره فيصله وشوه چه الله به انبياء او د هغوی تابعدار مؤمنان بچ کړل او د خپل کتاب او د خپل رسول تکذيب کونکی مشرکان به ئې هلاك کړل.

وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْمُبْطِلُونَ: يعنى په دغه وخت كښ به ئے تاوان راښكاره شو۔ كافر هر وخت تاوانى دے، ليكن كله چه عذاب راشى نو خلكو ته او خپله هغوى ته تاوان او غلطى راښكاره شى۔ چه د نبى په تابعدارئ كښ څومره خير وو هغے له مے لته ورکړه او په كفر كښ څومره عذاب او مصيبت وو هغه مے راواخستو۔

الْمُبْطِلُونَ: دا هغه خلك دى چه د باطل دين پسے روان وى۔ د الله تعالىٰ د وحى نه چه څوك په غير روان شى، دا ټول باطل دين او باطله لاره ده۔

| |
|---|
| اَللّٰهُ الَّذِىْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَنْعَامَ لِتَرْكَبُوْا |
| الله هغه ذات دے چه ګرځولى ئے دى تاسو لره چارپيان دے دپاره چه سورلى اوكړئ |
| مِنْهَا وَمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ﴿۷۹﴾ وَلَكُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ |
| تاسو د هغے نه او بعض د هغے نه تاسو خورئ۔ او تاسو لره په هغے كښ فائدے دى |
| وَلِتَبْلُغُوْا عَلَيْهَا حَاجَةً فِىْ صُدُوْرِكُمْ |
| او دے دپاره چه اورسيږئ تاسو په هغے باندے حاجت ته چه په سينو ستاسو كښ وى |
| وَعَلَيْهَا وَعَلَى الْفُلْكِ تُحْمَلُوْنَ ﴿۸۰﴾ وَيُرِيْكُمْ |
| او پدے باندے او په كشتيو باندے تاسو سورولے شئ۔ او درښائى تاسو ته |
| آيَاتِهٖ فَاَىَّ آيَاتِ اللّٰهِ تُنْكِرُوْنَ ﴿۸۱﴾ |
| آيتونه خپل نو د كوم آيتونو د الله تعالىٰ نه تاسو انكار كوئ۔ |

**تفسير** : اوس بيا عقلى دلائل بيانوى ددے دپاره چه الله تعالىٰ په عقوبت ددے كافرو قادر دے۔ او دا طريقه ده چه كله عقوبت او تخويف ذكر شى، نو روستو د الله تعالىٰ د تعارف دپاره دليلونه ذكر كيږى۔

او دا نعمتونه هم دى دپاره د طلب كولو د شكر د بندګانو نه۔ او دے دپاره چه دوئ خپل خالق او روزى رسان وپيژنى، په هغهٔ ايمان راوړى، او صرف د هغهٔ عبادت وكړى۔ فرمائى چه الله تعالىٰ ستاسو دپاره چارپايان پيدا كړى، چه په دے كښ په بعضو تاسو سورلى كوئ، يعنى خرهٔ، اوښان او د بعضو غوښے خورئ لكه غوا، ګډه او بيزه، او په دے كښ نور فوائد او منافع هم شته، يعنى ددے نه وړئ او څرمن حاصلوئ۔ د اوښ يوه

لویـه فـائـده دا هـم ده چـه پـه دےـ بـانـدےـ دیو ښار نه بل ښاره پورےـ خپل تجارتی سامان راوړئ۔ او ددےـ پـه ذریـعـه خپله برّی (د اُوچےـ) لاره قطع کوئ او د کشتئ په ذریعه بحری لاره۔ دا هـر څـهٔ د الله قِسـمـا قِسـم نښےـ دی چه د هغهٔ په کامل قدرت او د بندگانو دپاره د هغهٔ په عظیم رحمت باندےـ دلالت کوی۔

وَيُـرِيْكُمْ آيَاتِهٖ: یعنی الله تـعالیٰ تـاسـو تـه د کـائـنـاتو نورےـ نښےـ هم ښائی لکه د نمر او سپوږمئ، د شپےـ او د ورځےـ۔

فَـاَیَّ آيَـاتِ اللّٰهِ تُنْكِرُوْنَ: نـو تـاسـو د کـومـو نښـو د الله تـعالیٰ نه انکار کوئ، دا خو ونسایئ چه دا فلانےـ شے الله تعالیٰ نـهٔ بـلـکه زمونږ بتانو او باطلو معبودانو پیدا کړیدےـ۔ نو بیا پکار ده چه تاسو خو د الله نافرمانی ونکړئ او د هغه د رسولانو انکار ونکړئ۔

| أَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْأَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ |
|---|
| آیا نو نهٔ گرځی دوی په زمکه کښې پس چه اُوگوری چه څنگه شو انجام د |
| الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ كَانُوْا أَكْثَرَ مِنْهُمْ وَأَشَدَّ قُوَّةً |
| هغه کسانو چه مخکښې وو د دوی نه، وو هغوی زیات د دوی نه او سخت وو په طاقت |
| وَّآثَارًا فِي الْأَرْضِ فَمَا أَغْنٰى عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۸۲﴾ |
| کښې او نخو والا په زمکه کښې نو دفعه نهٔ کړو د دوی نه هغه کارونو چه دوی کول۔ |
| فَلَمَّا جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ فَرِحُوْا |
| نو هرکله چه راغلل دوی ته رسولان د دوی په ښکاره دلیلونو، خوشحالی اُوکړه دوی |
| بِمَا عِنْدَهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ |
| په هغه څه چه وو د دوی سره د علم نه، او راگیر کړل دوی لره هغه څه چه دوی د هغے |
| يَسْتَهْزِئُوْنَ ﴿۸۳﴾ فَلَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا قَالُوْا آمَنَّا |
| پورےـ توقے کولےـ۔ نو هرکله چه اُولیدل دوی عذاب زمونږ، وےـ وئیل ایمان راوړیدےـ |
| بِاللّٰهِ وَحْدَهٗ وَكَفَرْنَا بِمَا كُنَّا بِهٖ |
| مونږ په الله باندےـ یواځے او انکار کړو د هغه څه نه چه وو مونږ چه هغه مو د الله سره |

| مُشْرِكِيْنَ ﴿٨٤﴾ فَلَمْ يَكُ يَنْفَعُهُمْ إِيْمَانُهُمْ لَمَّا رَأَوْا |
|---|
| برخه داران کړي وو۔ نو فائده ورنکړه دوی ته ایمان د دوی هر کله چه اُولیدو دوی |
| بَأْسَنَا سُنَّتَ اللهِ الَّتِيْ قَدْ خَلَتْ فِيْ عِبَادِهِ |
| عذاب زمونږ، پشان د طریقې د الله تعالیٰ هغه چه تیره شویده په بندګانو د هغهٔ کښې |
| وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْكَافِرُوْنَ ﴿٨٥﴾ |
| او ښکاره شو تاوان په دغه ځائے کښې د کافرانو۔ |

**تفسیر**: مخکښې آیت کښې د دنیا د نعمتونو تذکره وه، نو اُوس د عذاب آیات ذکر کوی، او دا تخویف دنیوی دے، او پدے کښې دعوت دے دوی ته چه د الله تعالیٰ په آیتونو کښې فکر وکړی او عبرت حاصل کړی۔ الله فرمائی چه دغه قومونه د قریشو کافرانو نه په شماره کښې زیات وو، بدنی لحاظ سره د دویٔ نه زیات قوی، او مالی لحاظ سره د دویٔ نه زیات ښهٔ حالت کښې وو، هغویٔ په خپلو ښارونو کښې محلونه جوړ کړی وو، کارخانے ئے سازے کړے وے، او په زرعی میدان کښې ئے ښهٔ ترقی کړے وه، لیکن کله چه د الله تعالیٰ عذاب راغے، نو هیچا وانهٔ ړولو، ځکه چه کله د الله تعالیٰ انبیاؤ د هغویٔ خواته ښکاره نښے راوړے، نو هغویٔ دیته هیڅ توجه ورنکړه او په خپل ګمان سره ئے خپل علم او خپله پوهه په انبیاؤ باندے د نازل شوے وحی نه غوره وګڼړله۔

مجاهدؒ وائی: هغویٔ ووئیل چه مونږ ددے نبوت دعویٰ کونکو نه زیات ښه پوهیږو چه نهٔ به مونږ دوباره پیدا کړے شو، او نهٔ به مونږ له عذاب راکړے کیږی۔

فَيَنْظُرُوْا: یعنی په نظر د عبرت ډے وګوری۔

فَمَا أَغْنٰى عَنْهُمْ: مَا نافیه ده یا استفهامیه ده، دواړه صحیح دی۔ د پخوانو طاقتورو قومونو هلاکت دلیل دے چه د دنیا مال او بادشاهی او بدنی قوت د الله تعالیٰ د عذاب نه نجات نشی ورکولے۔

فَلَمَّا جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ: پدے کښې د عذاب سبب ذکر کوی چه هغه تکذیب د رسولانو دے، او په خپل علم باندے خوشحالی او تکبر کول دی۔

فَرِحُوْا بِمَا عِنْدَهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ: یعنی کافران به په خپلو دنیاوی عِلمونو باندے خوشحاله شو، د پخوانو کوم علمونه وو چه هغوی پرے خوشحالی کوله؟ نو ددے ډیر

صورتونه او اقسام وو۔ (۱) یو دا وو چه دوی به وئیل [لَنْ نُبْعَثَ وَلَنْ نُعَذَّبَ] صرف د دنیا ژوند دے او ددے نه اخوا نۀ دوباره ژوند شته، او نۀ عذابونه شته۔ دے ته ئے علم وئیلو۔ او پدے باندے ئے یقین لرلو او د انبیاؤ علم ئے رد کولو۔ انبیاؤ دوی ته وویل چه ددے ژوند نه روستو یو بل ژوند هم راروان دے، نو دوی وویل چه نۀ بس زمونږ دغه علم پوره او صحیح دے، او بل عالَم راتلل هسے وهم دے۔ او دا قول د مجاهدؒ دے۔

(۲) هغوی په دنیاوی عِلمونو خوشحاله شو لکه فلاسفه د یونان په خپله فلسفه، ریاضی، سائنس او طبی علومو باندے تکبر وکړو۔ لکه حکیم سقراط او بقراط د موسیٰ علیه السلام په زمانه کښ وو، هغۀ ته چا وویل چه ته موسیٰ علیه السلام خوا ته ولے نۀ ورځے نو هغه وویل چه مونږ مهذب قوم یو، زمونږ د چا تهذیب او هدایت ته حاجت نشته۔

دارنګه حکیم جالینوس ته چا وویل چه دلته عیسیٰ علیه السلام راغلے دے، او د الله نبی دے، نو دے ورله راغے او هغۀ نه ئے څه تپوسونه وکړل او هغه جواب ورکړو، بیا ئے وویل تۀ ښه سړے ئے لیکن تۀ مونږ ته نۀ ئے راغلے، مونږ مهذب قوم یو او ستا نه ښۀ پو هیږو۔

((اخوان الصفاء)) په نوم یو کتاب هم لیکلے شویدے چه د حکماؤ اقوال پکښ ذکر دی، او د حکماء او فلاسفه ؤ دا عقیده هم پکښ ذکر ده چه انبیاء علیهم السلام خو د عوامو د اصلاح او د علم دپاره راغی څکه چه دوی ناپو هه دی۔

او هر چه مونږ یو نو مونږ عقلاء، علماء او پو هه خلك یو، مونږ سره حکمة عملی هم شته او حکمة نظری هم، او په خپله طبع باندے په الهیاتو او طبیعیاتو او په مسائلو د معاد کښ د ځان نه بحث کوی، او شریعت ئے شا ته کړے وی لکه هدایت الحکمة او میبذی والا دا کار کړیدے۔ په هدایت الحکمة کښ اتلس عقیدے د کفر دی، اوله عقیده ئے دا ده چه قیامت به نۀ راځی څکه چه آسمان خرق او التئام نۀ قبلوی۔ څکه چه ددے حرکت مستدیر دے او کوم شے چه مستدیر حرکت لری هغه نۀ ماتیږی۔

سو چه دروغ وائی، رب العالمین ئے بادشاهٔ دے هغه به ورله مستقیم حرکت ورکړی او یو درز سره به ئے دړے وړے کړی۔ دا د دوی عقلونه دی۔ كَنَسْجِ الْعَنْكَبُوْتِ (د جولا د ژالے) په شان خیالات جوړوی۔ اُوسنی بعض کور مغز ملیان په منطق او فلسفه باندے (چه پوره پرے پو هیږی هم نۀ)، خوشحالی کوی، او دے ته پوره علم وائی۔ حال دا چه ددے نه خو درزی توب (خیاطی) ښه ده، صرف کتاب ګنډی، هیڅ فائده ئے نۀ په دنیا کښ شته او نۀ په آخرت کښ، او د خیاطئ خو دنیاوی فائده شته، د انسانانو خدمت کوی۔ قرآن

او سنت چه ورسره نهٔ وی دا پوره جهالت دے۔ دے جاهلانو ته د حدیثو علم کپ ښکاری، او سلم العلوم ورته د کمال کتاب ښکاری۔

(۳) یهودیانو ته انبیاء راغلل نو هغوی وویل: ﴿قُلُوْبُنَا غُلْفٌ﴾ زمونږ زړونه د علم لوښی دی، ټول علمونه مونږ سره دی، د پخوانو تاریخ راته یاد دے، نو د انبیاؤ خبره ئے په هسے ګمان باندے ګوزار کړه۔

(٤) یا د علم نه مراد د دوی کفری او شرکی او بدعی شبهات دی چه دوی ګمان کړے وو چه دا علم دے لکه مشرکانو د خپلو آباؤ په اتباع باندے دلیل نیولو، او کله به ئے دا وئیل چه ﴿لَوْ شَاءَ اللّٰهُ مَا اَشْرَكْنَا﴾ الله تعالیٰ زمونږ نه په شرك راضی دے، که ناراضه وے نو مونږ ته به ئے عذاب راکړے وے۔

(٥) صاحب د فتح البیان وائی چه د علم نه مراد ﴿عِلْمُ اَحْوَالِ الدُّنْيَا﴾ دے، نهٔ د دین۔ یعنی دوی به دا وویل چه مونږ سره دنیاوی علمونه دی، هنر، تجارت، کاروکسب او مختلف صنعتونه دی۔ ﴿يَعْلَمُوْنَ ظَاهِرًا مِنَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَهُمْ عَنِ الْآخِرَةِ هُمْ غَافِلُوْنَ﴾

(٦) دلته مشرکانو په خپل فصاحت او بلاغت او خپله هوښیارتیا باندے فخر کولو، او د رسول الله ﷺ خبرے چه قبر او حشر او مرګ دے، دائے معمولی خبرے ګڼڵے۔

(٧) د دوی علم دا وو چه زمونږ د پلار نیکهٔ خبرے زړے دی، او هغه صحیح دی، او ستا خبرے نوے دی نو مونږه ئے نشو منلے۔

بعض مفسرینو د ﴿فَرِحُوْا﴾ کافرانو ته او ﴿عِنْدَهُمْ﴾ ضمیر انبیاء علیهم السلام ته راجع کړیدے، او مطلب ئے دا اخستے دے چه هرکله چه راغلل دوی ته رسولان نو دوی خندا او توقے وکړے د هغه علم پورے چه د رسولانو سره وو۔ یعنی د ښکاره معجزاتو او د وحی د علم پورے ئے توقے وکړے، خوشحاله او تکبر کونکی وو۔

او دا آیت دلیل دے پدے چه چا ته قرآن او صحیح حدیث پیش کړے شی، او د هغے په مقابله کښ نور کتابونه او دلیلونه پیش کوی، یا په خپل تقلید باندے کلك وی، نو دغه سړے د مخکنو باطل پرستو په طریقه باندے روان دے۔

فَلَمَّا رَاَوْا بَاْسَنَا: یعنی کله ئے چه عذاب ولیدو او پته ورته ولګیده چه اُوس ددوی معبودان دوی لره نجات نشی ورکولے، نو دوی په دغه وخت کښ ایمان راوړو، لیکن دا ایمان اضطراری وو، او معتبر ایمان اختیاری دے۔ او دارنګه معتبر ایمان بالغیب دے، نهٔ ایمان بالشهادة۔ او د عذاب په وخت کښ نوے ایمان راوړل معتبر نهٔ دی۔

سُنَّتَ اللّٰهِ: اَیْ كَسُنَّةِ اللّٰهِ ۔ دا د الله تعالیٰ طریقه ده چه د پخوانو سره ئے هم کړیده لکه فرعون سره اوشوه چه کله دهٔ مرګ په خپلو سترګو ولیدهٔ نو چغه ئے کړه چه ما ایمان راوړے پدے خبره چه د هغه الله نه سویٰ هیڅ معبود نشته په کوم باندے چه بنی اسرائیلو ایمان راوړے۔ نو الله تعالیٰ د هغهٔ توبه قبوله نهٔ کړه او وے ویل چه اُوس به هیڅ فائده نهٔ وی، ځکه چه تهٔ اوسه پورے نافرمانه پاتے شوے ئے، او په زمکه کښں دِے فساد خورولو۔ لکه دا خبره د سورة الانعام په آخر (۱۵۸) آیت کښں هم راغلے ده۔

وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْكَافِرُوْنَ: او تاوان راښکاره شو په وخت د لیدو د عذاب کښں د کافرانو۔

دا وجه ده چه د سلفوؔ سره به د خاتمے ډیره یره وه چه هسے نهٔ په آخره کښں تاوانیان نشو۔

مخکښں ئے (اَلْمُبْطِلُوْن) وویل او دلته (اَلْکَافِرُوْن)، وجه دا وه چه مخکښں حق ذکر وو نو د هغے په مقابله کښں باطل استعمالیږی، او دلته ایمان ذکر دے، او د ایمان په مقابله کښں کفر ذکر کیږی۔

## امتیازات د سورة الغافر

۱– پدے سورت کښں موضوع د ذنوب ذکر ده، او د ګناهونو ډیر انواع پکښں ذکر دی۔ او ددے په مقابل کښں ایمان او عمل صالح ذکر شو۔

۲– دا ناشنا آواز وو (اِنَّ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا یُنَادَوْنَ لَمَقْتُ اللّٰهِ) چه په وخت د دعوت د ایمان کښں الله تعالیٰ کافرانو ته ډیر زیات غصه وی۔

۳– واقعه د رجل مؤمن پکښں ډیر ناشنا وو۔

٤– د جهنمیانو مطالبه د ملائکو نه او د هغوی دعاء نهٔ قبلیدل۔

۵– زجر بالجدال پکښں زیات وو۔

ختم شو تفسیر د سورة الغافر په توفیق د رب العزت سره۔ په تاریخ ۲ الیوم الثانی من عید الفطر، الموافق: ۱۵ ۲۰/۷/۱۸ء)

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ○

| رکوعاتها (٦) | (٤١) سورة حم السجدة مكية (٦١) | آیاتها (٥٤) |
|---|---|---|

سورتِ حمٓ السجده مکی دے، په دے کښې شلور پنځوس آیتونه، او شپږ رکوع دی

## تفسیر سورة حمٓ السجدة

**نومونه :** دے ته (١) حم السجده، (٢) سورتِ فُصِّلَتْ (٣) سورتِ اَقوات (٤) سورة اَلْمَصَابِیْح (٥) او سورة سَجْدَةُ الْمُؤْمِن. اولنی دوه نومونه ئے ډیر مشهور دی.

**د نازلیدو زمانه :** قرطبیؒ لیکلی دی چه دا سورت د ټولو مفسرینو په نیز مکی دے. ابن ابی شیبهؒ، عبد بن حُمَیدؒ، ابو یعلیٰؒ، حاکمؒ، ابن مردویهؒ، ابونعیمؒ، بیهقیؒ او ابن عساکرؒ ټولو د جابر بن عبد اللهؓ نه روایت کړے، او حاکمؒ او ذهبیؒ ورته صحیح وئیلی چه یوه ورځ د قریشو خلق جمع شو، او خپلو کښې ئے مشوره اوکړه چه په دوئ کښې چه کوم شخص جادو، کهانت او شعر د ټولو نه زیات پیژنی، هغه دے محمد (ﷺ) خواته اولیږلے شی چه هغهٔ زمونږ ترمینځه جدائی پیدا کړے، او زمونږ په دین ئے عیب لګولے، دے دپاره چه هغهٔ سره خبره وکړی او اُوګوری چه هغه څهٔ جواب ورکوی. د ټولو مشوره راغله چه ددے کار دپاره د ټولو نه مناسب سړے عتبه بن ربیعه دے، نو هغه رسول الله ﷺ خواته لاړ او وے وئیل چه تهٔ بهتر ئے اوکه ستا پلار عبد الله؟ تهٔ بهتر ئے اوکه عبد المطلب (ستا نیکهٔ)؟ اوکه چرے تهٔ دا پیژنے چه دا خلق بهتر وو، نو دوئ به د هغه معبودانو عبادت کولو چه په هغے باندے تهٔ عیب لګوے، اوکه چرے تهٔ دا ګمان کوے چه تهٔ بهتر ئے نو خبره کوه دے دپاره چه مونږ واورو. (بیا ئے عیبونه لګول شروع کړل)

قَسَم په الله! ستا نه زیات مونږ د خپل قوم دپاره نقصان ورکونکے نهٔ دے موندلے، تا زمونږ ترمینځه جدائی پیدا کړه، زمونږ په دین کښې دے عیب را اُوخکلو، او په تمامو عربو کښې دے زمونږ بے عزتی وکړه. په تمامو عربو کښې مشهوره شوه چه په قریشو

کښې يو جادوګر دے، په قريشو کښې يو کاهن (ترويتی) دے۔ قسَم په الله! اُوس تهٔ ددے انتظار کوے چه مونږ د يو بل خِلاف تورورا اوخکلو ته تيار شو۔ که چرے تهٔ مال غوارے نو اوښايه، مونږ به تاله دومره مال راجمع کړو چه تهٔ به په مونږ کښې د ټولو نه زيات مالداره جوړ شے، اوکه وادهٔ کول غوارے، نو د قريشو کومے ښځے چه غوارے خوښے ئے کړه، مونږ به تاله لس ودونه اوکړو۔

رسول الله ﷺ تپوس وکړو، آيا ستا خبره پوره شوه؟ هغهٔ ووئيل: هاؤ! نو نبی ﷺ بسم الله الرحمن الرحيم اووئيلو او د حمٓ تلاوت ئے شروع کړو او کله چه ﴿فَإِنْ أَعْرَضُوا فَقُلْ أَنذَرْتُكُمْ صَاعِقَةً مِّثْلَ صَاعِقَةِ عَادٍ وَثَمُودَ﴾ پورے اورسيدهٔ، نو عتبه ووئيل: بس کړه، آيا تا سره ددے نه سوئ بل څهٔ نشته دے؟ نبی ﷺ جواب ورکړو: نهٔ! نو هغه پاسيدهٔ او قريشو خواته لاړ او ورے وئيل چه ما يو داسے کلام واوريدهٔ چه ددے پشان کلام زما غوږونو هيڅ کله نهٔ وو آوريدلے۔ (وَمَادَرَيْتُ مَا اَرُدُّ عَلَيْهِ) او زهٔ پو هه نشوم چه زهٔ څه جواب ورکړم۔

او په حسن روايت د ابن ابی شيبه کښې دی چه رسول الله ﷺ کله دا آيتونه ولوستل نو عتبه ويل: بس کړه، بس کړه، ستا سره ددے نه سوئ نور څه نشته، هغه وفرمايل: نهٔ، بيا ددے ځای نه پاڅيدو او لاړو، د قريشو مجمع ددے منتظر وه، هغوی چه وليدو تپوس ئے وکړو څه خبره ده؟ عتبه ويل: واورئ چه تاسو ټول چه په شريکه هغه ته څه وئيل ما هغه ټول په يواځے تن ويل۔ هغوی ويل: بيا هغه څه جواب درکړو؟ ورے وئيل، آؤ، ليکن قسَم په الله زهٔ په يوه خبره هم پو هه نشوم، صرف دومره پو هه شم چه هغه مونږ ټول د آسمانی عذاب نه ويرولو کوم چه عاديانو او ثموديانو باندے راغلے وو، هغوی ويل: په تا تعجب دے يو شخص په عربی ژبه کښې (ستا په خپله ژبه کښې) تا سره خبرے کوی او ته وائے چه زهٔ پو هه نشم چه هغه څه ويل۔ عتبه جواب ورکړو چه زهٔ رشتيا وايم چه د عذاب د ذکر کولو نه سوئ په هيڅ پو هه نشوم۔

(ابن ابی شيبه (۲۹۵/۱٤) وسنده حسن مسند ابی يعلی،۱۸۱۸)

بغوی هم دا روايت راوړيدے، په هغے کښې دا هم دی چه رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت کړو نو عتبه د هغه په خوله مبارکه باندے لاس کيخودو، او هغه ته ئے قسم وکړو او رشته داری ئے ورته ياده کړه، دلته نه چه واپس شو نو سيده کورته لاړو او د قريشو مجلس ته راتلل ئے پريخودل۔ نو ابوجهل ووئيل: قريشو! زما خيال دے چه عتبه هم محمد (ﷺ) ته مائل شويدے، او د هغه ځای په خوراك څکاك کښې ننوتے، هغه هم

ضرورت مند دے۔ داسے وکړئ چه ما سره ملګرې شئ، زهٔ د هغه خواته ورځم او هغه برابروم، ابوجهل ورغے ورته ئے وویل : اے عتبه! تا چه زمونږ مجلس پریخے دے نو ددے وجه صرف یوه معلومیږی چه تا ته دے دسترخوان مزه درکړیده او تهٔ هم هغه ته مائل شوے ئے، ضرورت بد شے دے۔ زما خیال دے چه مونږ خپل مینځ کښې چنده وکړو او ستا حالت برابر کړو دے دپاره چه تهٔ د مصیبت او ذلت نه خلاص شے۔ ددے نوی در او د نوی مذهب تا ته ضرورت پاتے نشی۔ نو عتبه غصه شو او وے وئیل چه زما د محمد (ﷺ) سره څه کار دے، زهٔ به هغه سره هیڅکله خبرے ونکړم، او تاسو ما ته ددے ذلیل خیالاتو اظهار کوئ حال دا چه تاسو ته معلوم ده چه په قریشو کښې زما نه لوی بل مالدار نشته۔ خبره صرف دا ده چه زهٔ ستاسو د ټولو په وینا هغه ته ورغلم، ټوله قصه مے ورته وکړه، ډیرے خبرے مے ورته وکړے، زما په جواب کښې چه هغه کوم کلام ولوستلو نو هغه نهٔ شعر وو، نهٔ د کهانت کلام وو، او نهٔ جادو وغیره وو، کله چه هغه (فَاِنۡ اَعۡرَضُوۡا) پورے ولوستلو نو ما د هغه په خوله باندے لاس کیخودو او هغه ته مے صله رحمی (رشته داری) یاده کړه چه د الله دپاره بند شه، زما یره وشوه چه چرته په همدغه وخت په مونږ عذاب رانشی، او دا خو تاسو ټولو ته معلومه ده چه محمد (ﷺ) دروغ نهٔ وائی۔ (معالم التنزیل وابن کثیرؒ)

محمد بن اسحاقؒ په خپل کتاب (السیرة) کښې چه ددے واقعے کوم تفصیل بیان کړے هغے نه معلومیږی چه دا سورت د حمزه بن عبد المطلب د اسلام راوړلو نه پس نازل شوے وو، هر کله چه خلق تیزئ سره په اسلام کښې داخلیدل۔ (اوګوره تفسیر ابن کثیر : حمٓ السجده)۔

## مناسبت

۱ – مخکښې ئے وویل : (فَادۡعُوا اللّٰهَ مُخۡلِصِیۡنَ) د الله نه یواځے دعاء وغواړئ نو دے سورت کښې دفع د شبهاتو د مشرکانو ده، مشرکان وائی چه مونږ دعاء څکه د غیر الله نه غواړو چه مونږ له فلانے بابا او ولی خوب کښې راغلے وو، او هغه مونږ ته وئیلی چه ما نه دعاء وغواړئ۔ نو ددے جواب به کیږی چه دا خو تاسو ته شیطان خوب کښې راغلے دے، ولی نهٔ دے۔

۲ – مخکښې سورت کښې د ګناهونو او د هغے د بد اثر بیان وو نو دلته الله تعالیٰ یوه خصوصی ګناه بیانوی چه هغه اعراض عَنۡ آیَاتِ الله دے۔ (یعنی د الله د آیتونو نه مخ

اړول او ددې هیڅ پرواه نهٔ لرل)

۳- په مخکښې سورت کښې نهه صفتونه د نازلونکی د قرآن وو، نو پدې سورت کښې نهه احوال د قرآن بیانیږي.

٤- په مخکښې سورت کښې د تخویف دنیوی یوه نمونه ذکر وه، نو پدې سورت کښې دوه نمونې ذکر کوی.

٥- مخکښې سورت کښې ئې د داعی (رجل مؤمن) د دعوت تفصیل ذکرکړو، نو پدې سورت کښې طریقې او آداب د دعوت ذکر کوی.

## د سورت موضوع او مقصد

۱- زمونږ مشائخ وائی چه پدې کښې اثبات د توحید دے په دفعه د شبهاتو د مشرکانو چه مشرکان وائی چه مونږ له زمونږ معبودان په خوب کښې راځی او مونږ ته وائی چه زمونږ عبادت وکړئ. اوله شبهه مونږ ستا په خبره نهٔ پو هیږو ﴿وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا فِيْٓ اَكِنَّةٍ﴾ دویمه شبهه ﴿وَقَيَّضْنَا لَهُمْ قُرَنَاۗءَ﴾ او دارنګه په قرآن باندې شبهه ﴿وَلَوْ جَعَلْنٰهُ قُرْاٰنًا اَعْجَمِيًّا﴾ چه دا قرآن عجمی ولې نهٔ راوړو.

۲- موضوع: قَبَاحَةُ الْاِعْرَاضِ عَنْ آيَاتِ اللّٰهِ۔ د الله د آیتونو نه د مخ اړولو بدی بیانیږی. بل تعبیر: اَلتَّوْبِيْخُ بِالْاِعْرَاضِ عَنْ آيَاتِ اللّٰهِ۔ د الله تعالیٰ د آیتونو په مخ اړولو باندې توبیخ او رټنه ورکړې کیږی. د الله تعالیٰ د آیتونو د اِعراض ډیر صورتونه دی:

(۱) اَلْغَفْلَةُ عَنْ كِتَابِ اللّٰهِ۔ د الله د کتاب نه غفلت کول. او پدې باندې ځان نهٔ پو هه کول لکه مشرکانو وویل چه مونږ پدې خبرو نهٔ پو هیږو.

(۲) پدې قرآن کښې مُهمه مسئله د توحید بیان شویده، نو دلته به اعراض بِتَرْكِ التَّوْحِيْدِ بیانیږی.

(۳) دریم اعراض بِتَرْكِ الْاِيْمَانِ.

(٤) اعراض عَلٰى سَبِيْلِ الْاِعْتِرَاضِ ۔ د قرآن نه اعراض په طریقه د اعتراض کولو په هغې باندې، چه دا څنګه قرآن دے چه عجمی شخص ئې ولې نهٔ راوړی.

(٥) دې کتاب نه تکبر کول.

(٦) اَلْاِعْرَاضُ بِطَرِيْقِ النَّهْيِ عَنِ الْقُرْآنِ ۔ د قرآن کریم د آوریدو نه خلک منع کولو سره اعراض کول.

(۷) اَلتَّحْرِيْفُ فِي الْقُرْآنِ ۔ په قرآن کښې تحریف کول لکه په آیت (٤٠) کښې دی: ﴿اِنَّ

اَلَّذِيْنَ يُلْحِدُوْنَ فِيْ آيَاتِنَا لَا يَخْفَوْنَ عَلَيْنَا ﴾

اول کښې الله تعالیٰ ترغیب قرآن ته ورکړیدے او ددے نهه صفات بیان کړی، بیا ئے په اعراض باندے رد کړیدے، او بیا ئے د اعراض اول قسم بیان کړیدے، او چونکه دوی به اعراض د توحید نه کولو نو هغه ئے لنډ راوړے دے، بیا ئے اعراض د قیامت نه کولو نو هغه ئے هم ذکر کړیدے۔ بیا ایمان والو ته بشارت بیا د الله تعالیٰ تعارف۔ بیا زجر بِالْاِعْرَاضِ مَعَ التَّخْوِيْفِ الدُّنْيَوِیِّ۔ یعنی څوك چه اعراض کوی نو هغوی ته دنیاوی تخویف بیانیږی۔ بیا د (۱۸) آیت نه سخته یره هغه چا ته چه د قیامت نه اعراض کوی بیا په بله رکوع کښې د قرآن نه د خلکو په اړولو باندے زجر بیانیږی، بیا د هغوی په مقابله کښې د مستقیمینو زیرے تر (۳۲) آیت پورے،

بیا مسئله د دعوت الی الله ذکر ده، بیا د الله تعارف تر (۳۹) بیا معرضین د آیتونو ته زجر۔ بیا وَلَوْ جَعَلْنَاهُ کښې په قرآن باندے د اعتراض جواب۔ بیا د موسیٰ ﷺ نه دلیل نقلی راوړی، بیا د قیامت تذکره، بیا د انسان تعریف بیانوی او هغه ته ئے په شپږو طریقو سره زجر ورکړیدے او په آخره کښې ئے بیا قرآن کریم ته ترغیب او زجر بالاعراض ئے ورکړیدے۔ بیا د قرآن رښتینوالے او حقانیت ثابتول په دوه قسمه دلائلو، په دلائل آفاقیه او دلائل انفسیه سره۔ بل د قرآن حقانیت په شهادت د الله تعالیٰ سره بیان شویدے۔

| حٰمٓ ﴿۱﴾ تَنْزِيْلٌ مِّنَ الرَّحْمٰنِ |
|---|
| ددے حروفو په مطلب الله پوهه دے۔ نازلول دی د طرف د بیحده مهربان، |
| الرَّحِيْمِ ﴿۲﴾ كِتَابٌ فُصِّلَتْ آيَاتُهٗ قُرْآنًا |
| همیشه رحم کونکی نه۔ کتاب دے چه جدا جدا بیان شویدی آیتونه ددے، قرآن دے |
| عَرَبِيًّا لِّقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿۳﴾ بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا |
| عربی ژبے والا دپاره د هغه قوم چه پوهیږی۔ زیرے ورکونکے او یره ورکونکے دے |
| فَاَعْرَضَ اَكْثَرُهُمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ ﴿۴﴾ |
| نو مخ اُوګرځوو ډیرو د دوی نه نو دوی ئے آوری نه۔ |

**تفسیر**: حٰمٓ حروفِ مقطعات دی، او الله تعالیٰ ته معلومه ده چه ددے نه څۀ مراد دے۔

مِّنَ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ: دلته ئې دا دوه صفتونه ولې راوړل؟ امام صدیق حسنؒ لیکي چه د مخلوق مثال د مریضانو او محتاجانو دے۔ او په قرآن کریم کښې د مریضانو دپاره هره شفاء ورکونکے دوائي ده، او د صحت مندو محتاجو دپاره هره نفع منده غِذاء ده۔ (طبیب د مریض سره شفقت لري اګرکه ستنه هم ورله وهي، او هغه په ظاهره کښې خوړوي نو الله چه د چا بدي وائي، دا هم په هغه شفقت دے چه راشه سم شه غرقیږه)۔ ګویا کښې قرآن کریم انسانانو دپاره د الله تعالیٰ ډیره لویه عطیه ده چه د الله تعالیٰ د رحمت او د هغهٔ د لطف او کرم د ډېرښکاره کیدو ځائے دے۔ الله تعالیٰ د سورتِ انبیاء په (۱۰۷) آیت کښې فرمایلي: ﴿ وَمَآ اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا رَحْمَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴾ (مونږ تهٔ د ټولے دنیا والو دپاره رحمت جوړولو سره رالیږلے ئې)۔

دویم په رحمن او رحیم کښې د دنیا او د آخرت رحمتونو ته اشاره ده، نو پدے کښې اشاره ده چه په قرآن کریم کښې د دنیا او د آخرت دواړو مصلحت او فائده شته۔ ځکه چه الله رحمن او رحیم دے، بندګانو ته د دنیا فائدے هم ورکوي او د آخرت هم۔ نو پدے قرآن کښې دواړه شته۔

كِتٰبٌ: دا بدل دے د تَنْزِيْل نه یا خبر د مبتداء (هُوَ) دے۔ او په کتاب لفظ کښې اشاره ده چه دا قرآن جامع کتاب دے۔

فُصِّلَتْ اٰيٰتُهٗ: روستو د کافرو خبره نقل کوي چه هغوي وائي: مونږ پدے قرآن باندے نهٔ پوهیږو نو الله تعالیٰ فرمائي چه ددے آیتونه خو واضح دي نو بیا تاسو پرے ولے نهٔ پوهیږئ؟۔

فُصِّلَتْ اٰيٰتُهٗ: ۱- ښکاره او جدا جدا او واضح بیان شویدي آیتونه د قرآن په اعتبار د لفظ او معنیٰ دواړو سره۔ ۲- جدا جدا مختلفو طریقو سره پکښې علوم، احکام، امثال، دلیلونه، تخویفات، بشارات، حالات د آسمان او د زمکے، او د حیواناتو او د انسانانو او د پیریانو او د نباتاتو، تاریخ د تیر شوو قومونو، د الله د صفاتو تنزیه، او د انسان د اخلاقو تهذیب وغیره بیان شویدي۔ ۳- فُصِّلَتْ بِبَيَانِ حَلَالِهٖ مِنْ حَرَامِهٖ وَطَاعَتِهٖ مِنْ مَّعْصِيَتِهٖ ۔ د حلال او حرام او طاعت او معصیت تفصیلات پکښې بیان شویدي۔ (قتادة)

د حسن بصريؒ په نیز د وعد او وعید، او د سفیان ثوريؒ په نیز د جزاء او سزا تفصیلات بیان شوي۔ شوکانيؒ وائي: هیڅ مانع نشته چه دا ټولے خبرے مراد کړے شي۔

قُرْاٰنًا: ۱- دا منصوب عَلَى المدح دے۔ اَىْ اَمْدَحُ قُرْاٰنًا ۔ زهٔ صفت کوم د قرآن۔

۲ - یا اَعْنِیٰ مُقدر دے۔ یعنی زما ددے کتاب نه مراد قرآن دے۔
۳ - یا حال دے یعنی واضح بیان شویدی آیتونه ددے په داسے حال کښې چه دا د لوستلو کتاب دے۔
عَرَبِيًّا: په واضحه ژبه کښې راغلے دے، او دارنګه په عربی ژبه کښې دے، نو اے عربو! تاسو ولے ددے خلاف کوئ، او پدے باندے اعتراض کوئ دا خو ستاسو په ژبه کښې راغلے دے۔
لِّقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ: ۱ -اَیْ مِقْدَارَهٗ۔ څوك چه ددے قرآن په مقدار او قدرباندے پو هیږی، نو هغه به ترے فائده اخلی، او اشاره ده چه څوك ددے نه اعراض کوی نو هغه به لوی جاهل وی۔ او دا واقعی خبره ده څومره چه په قرآن باندے علم زیاتیږی هغومره به پکښې ایمان مضبوطیږی او خوند به ورله ورکوی۔ ۲ - لِقَوْمٍ ذَوِیْ عِلْمٍ وَّعَقْلٍ۔ الله تعالیٰ دا قرآن د علم او عقل والو دپاره رالیږلے چه چا کښې څه نا څه پو هه وی نو هغه ددے نه فائده اخستے شی او جاهلان ئے رد کوی۔ هر انسان ځان ته عالِم او عاقل وائی نو پدے جمله کښې ترغیب ورکوی، که ځان ته د پو هے والا او عقلمند وائے نو ددے کتاب نه فائده واخله، او کله چه اعراض کوے نو معلومیږی چه تهٔ نا پو هه ئے۔
بَشِيْرًا: منونکو ته زیرے ورکوی۔
وَّنَذِيْرًا: او نهٔ منونکو ته یره ورکوی۔
فَاَعْرَضَ: دا زجر دے په اعراض باندے۔
فَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ: دا تفسیر د اِعراض دے یعنی مخ اړوی پدے طریقه چه قرآن نهٔ آوری او نهٔ ئے قبلوی۔ یا معنیٰ دا ده: اعراض کوی د توحید نه نو قرآن نهٔ آوری۔

| |
|---|
| وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا فِیْ أَكِنَّةٍ مِّمَّا تَدْعُوْنَا |
| او وائی دوی زړونه زمونږ په پردو کښې دی د هغے مسئلے نه چه رابلے تهٔ مونږ |
| إِلَيْهِ وَفِیْ آذَانِنَا وَقْرٌ وَّمِنْ بَيْنِنَا وَبَيْنِكَ حِجَابٌ |
| هغے ته او په غوږونو زمونږ کښې بوج دے او په مینځ زمونږ او ستا کښې پرده ده (دین |
| فَاعْمَلْ إِنَّنَا عَامِلُوْنَ ﴿۵﴾ |
| مو جدا دے) نو تهٔ خپل کار کوه یقیناً مونږ (خپل) کار کونکی یو۔ (او حق نهٔ منو)۔ |

| قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوحَىٰ إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ |
|---|
| اُووایه یقیناً زهٔ بنده یم پشان ستاسو، وحی کیدے شی ما ته چه بیشکه اله ستاسو |
| إِلَٰهٌ وَاحِدٌ فَاسْتَقِيمُوا إِلَيْهِ وَاسْتَغْفِرُوهُ وَوَيْلٌ لِّلْمُشْرِكِينَ ﴿٦﴾ |
| اله یو دے، نو برابر شئ هغهٔ ته او بخنه غواړئ د هغهٔ نه او هلاکت دے مشرکانو لره |
| الَّذِينَ لَا يُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَهُم بِالْآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ ﴿٧﴾ |
| ـ هغه کسان دی چه نهٔ ورکوی زکاة او دوی د آخرت نه انکار کونکی دی۔ |
| إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ |
| یقیناً هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے او عملو نه ئے کړیدی نیك |
| لَهُمْ أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ ﴿٨﴾ |
| دوی لره اجر دے چه نهٔ به قطع کیږی۔ |

**تفسیر**: وَقَالُوا: دا د اعراض تفصیل دے۔ او پدے کښ سبب د اعراض ذکر کوی، او دا په (فَأَعْرَضَ) یا په (لَا يَسْمَعُونَ) باندے عطف دے، او پدے کښ اولنئ شبهه د مشرکانو ده، حاصل ئے دا دے چه ستا دا مسئلے او دا قرآن زمونږ د پوهے نه پورته دی، او مونږ پدے نهٔ پوهیږی نو مونږ ته دا مهٔ بیانوه۔

نبی کریم ﷺ چه کله هم دوئ ته قرآن آورول وغوښتل، نو دوئ ورپورے توقے کړی دی او وئیلی ئے دی چه زمونږ په زړونو باندے ګنړے پردے پرتے دی، دے دپاره چه تهٔ د کوم توحید د عقیدے او مرګ نه پس د دوباره ژوندی کیدو او د جزاء او سزا خبره کوے هغه مونږ ونهٔ پیژنو، او زمونږ غوږونه کاڼهٔ دی، او زمونږ او ستا ترمینځه پرده واقع ده، نهٔ مونږ ستا خبره آورو، او نهٔ چه څهٔ ته کوے هغه مونږ وینو، دے وجے نه څنګه چه مونږه تهٔ پریښے ئے، تهٔ هم مونږ پریده، او مونږ ته د خپل قرآن آورولو کوشش مهٔ کوه، تهٔ په خپل دین باندے چلیږه او مونږ به په خپل دین باندے چلیږو، او د خپلے عقیدے حفاظت به کوو۔

أَكِنَّةٍ: جمع د كِنَانٌ ده پردے ته وئیلے شی، او دے جمله کښ ډیره مبالغه ده په نسبت د ﴿عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً﴾ یعنی دا زړونه دننه په پردو کښ انغښتلے شویدی هیڅ رَو او چاودے

پکښې نښتنه چه په هغې سره ستا خبره پکښې ننوزي.
وَقْرٌ: ددې نه مراد د مشرکانو او مبتدعینو هغه قصې دي چه د جاهلانو غوږونه ئې د حق د آوریدو نه بند کړي وي. دارنګه هغه نصیحتونه وصیتونه چه دوی ته ئې کړي وي چه د حق پرستو سره به بحث نهٔ کوئ او که دوی درته قرآن او حدیث هم وائي پدې کښې به ئې څه چل وي.
حِجَابٌ: دې پردې نه مراد اختلافِ دین دې، خکه دا قانون دې چه د چا سره ډې عقیده یوه وه نو د هغه په خبره به زړ پوهیږې او چه عقیده ډې بدله وه، نو د هغهٔ په خبره به زر نهٔ پوهیږې. او په (مِنْ او بَيْنَ) لفظ راوړو کښې ډیر تاکید دې یعنی زمونږ او ستا په مینځ کښې چه کومه فاصله ده نو هغه پردې هغه ټوله بنده کړیده. او دا درې واړه (اکنه، وقر، حجاب) په طریقه د تشبیه سره دي، اشاره ده چه د پوهیدلو اسباب زړونه، غوږونه او سترګې دي، او هغه درې واړه زمونږ نه ستا په مسئلو کښې هیڅ کار نهٔ ورکوي.
شوکانیؒ لیکي چه ددې مثالونو نه د قرآن کریم مقصد دا ښودل دي چه د دوئ زړونه د حق قبلولو نه ډیر زیات لرې وو. او غوښتل ئې چه رسول الله ﷺ د دوئ نه بیخي لرې شي او هیڅ قِسِم تعلق ونهٔ لري.
فَاعْمَلْ اِنَّنَا عَامِلُوْنَ: ۱- یعنی تهٔ د خپل دین په تقاضا باندې کار کوه، او مونږ پرېږده چه پخپله پخوانئ طریقه عمل کوو.
۲- یا تهٔ کوشش کوه زمونږ په مقابله کښې، او مونږ به ستا په مقابله کښې محنت کوو.
۳- ته د خپل اِله دپاره عمل کوه، او مونږ به خپل آلِهه ؤ دپاره عمل کوو. او پدې کښې ئې مقصد دا وو چه زمونږ د آلِهه ؤ او مونږ نه قلار شه، مونږ ته دعوتونه مهٔ راکوه.
قُلْ اِنَّمَا اَنَا بَشَرٌ: پدې آیت کښې د نبي کریم ﷺ په ژبه جواب ورکوي چه زهٔ خو ستاسو پشان یو انسان یم، فرق صرف دادې چه په ما باندې د الله وحي نازلیږي، بیا نو زما د خبرې په قبلولو کښې ستاسو په زړونو باندې ولې پردې پرتې دي، ستاسو غوږونه ولې کانړهٔ دي؟، او تاسو زما او ستاسو ترمینځه پرده ولې وهلې ده؟ بیا تاسو زما په خبره ولې نهٔ پوهیږئ؟ او زهٔ خو تاسو یوې داسې خبرې طرفته نهٔ را بلم چه عقل ئې نهٔ قبلوي، زهٔ خو تاسو له د الله تعالیٰ د وحدانیت دعوت درکوم چه د هغه الله تعالیٰ بندګي وکړئ چه ستا معبود هم دې او زما معبود هم. دې وجې نه ستاسو بنیګړه په دې کښې ده چه تاسو د بتانو نه د بیزارئ اعلان وکړئ، پوره اخلاص سره د الله په بندګئ باندې ثابت قدم

شي، او اوسه پورے چه شرك او نور خو مره گناهونه درنه شوی، هغے نه بخښنه وغواړئ.

فَاسْتَقِيْمُوْا اِلَيْهِ: اَیْ اُسْلُكُوْا الصِّرَاطَ الْمُوْصِلَ اِلَيْهِ۔ روان شئ په هغه لاره چه الله ته رسيدلو والا ده او الله ته رسيدلے لاره د الله تعالیٰ بندگی او د رسول الله ﷺ تابعداری ده۔

۲ - (تَوَجَّهُوْا اِلَيْهِ بِالطَّاعَةِ وَلَا تَمِيْلُوْا عَنْ سَبِيْلِهٖ) (معالم التنزيل)

الله ته متوجه شئ په طاعت يعنی د هغه طاعت وكړئ او د هغهٔ د طاعت لارے نه مهٔ اوړئ، او د الله تعالیٰ د طاعت لاره په قرآن او سنت كښ بيان شويده۔ مشرك او بدعتی او فاسق په استقامت باندے نهٔ دی روان ځكه چه د طاعت د لارے نه اوړيدلی دی۔

وَوَيْلٌ لِّلْمُشْرِكِيْنَ: اوس مشركانو له دهمكی وركوی، فرمائی چه هلاكت او بربادی ده هغه مشركانو له چه هغوئ خپل ځانونه د شرك او رذيل اخلاقو نه نهٔ پاكوی، مرگ نه پس د دوباره ژوند او د جزاء او سزا نه انكار كوی۔ او دا علت دے د استغفار يعنی د شرك نه توبه پدے وجه وباسئ چه د تباهئ نه بچ شئ۔ دارنگه تاسو ځنگه دا خبره ما ته كوئ چه ﴿فَاعْمَلْ اِنَّنَا عٰمِلُوْنَ﴾ تهٔ خپل عمل كوه او مونږ به خپل عمل كوو، شرك خو تباهی ده په تباهئ باندے ځنگه روانيږے۔

﴿لَا يُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ﴾ (د پاكئ كارونه نهٔ كوی) ۱ - ابن عباس رضی الله عنهما ددے تفسير په [لَايَشْهَدُوْنَ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ] سره كړے، يعنی دا خلق ددے خبرے گواهی نهٔ وركوی چه الله تعالیٰ نه سوئ بل هيڅوك د عبادت لائق نشته۔ ځكه چه په توحيد او يوائے د الله په بندگئ سره نفسونه پاكيږی۔ د عكرمةؒ نه هم همدا تفسير نقل دے۔

۲ - لَايُزَكُّوْنَ اَعْمَالَهُمْ۔ خپل عملونه نهٔ پاكوی۔(مجاهدؒ) يعنی داسے اعمال نكوی چه په هغے سره د دوی نفسونه پاك شی۔ ۳ - يا د زكاة نه مراد د شركی كارونو نه پاكی كول دی لكه په ﴿قَدْ اَفْلَحَ مَنْ زَكّٰهَا﴾ (هغه انسان كامياب شو چه هغهٔ خپل نفس د شرك او گناهونو نه پاك كړو)۔ كښ راغلی دی۔ ليكن دا تول تفسيرونه مرجوح دی، ځكه چه دا تول په (فَاسْتَقِيْمُوْا اِلَيْهِ) كښ داخل دی۔ دے بعض مفسرينو ته دا اشكال راغلے دے چه مشرك ته ځنگه د زكاة حكم وكړے شی د هغه خو عقيده خرابه ده۔

دارنگه زكاة خو په دويم كال د هجرت باندے فرض شوے وو، او دا سورت مكی دے۔

غوره دا ده چه دلته الله تعالیٰ د مشركانو بدی بيانوی په دوه طريقو سره، يو دا چه د دوی د الله تعالیٰ سره تعلق نشته بلكه د هغهٔ سره شرك كوی۔ دويم دا چه د دوی د الله

تعالیٰ په مخلوق باندے شفقت نشته، لکه دا خبره سورتِ یٰس کښې تفصیلاً ذکر شویده. نو نهٔ پکښې د الله تعالیٰ د امر تعظیم شته، او نهٔ پکښې د الله تعالیٰ په بندګانو باندے شفقت او رحم شته. ددے وجه نه ئے مونځ یا نور اعمال ذکر نکړل ځکه چه دلته دغه دوه خبرے ذکر کول مقصد دے.

او زکاة په مکه کښې هم فرض وو لیکن مقادیر ئے په مدینه کښې بیان شوی. او زکاة د آدم علیه السلام د زمانے نه په امتونو باندے فرض دے. نو ددے په نهٔ ورکولو باندے د مشرکانو بدی بیانیږی. او مشرك لکه څنګه چه د توحید په نهٔ منلو رانیولے کیږی نو دغه شان په زکاة نهٔ ورکولو وغیره به رانیولے کیږی.

او دلته ئے زکاة ذکر کړو د کفر بالآخرة سره ځکه چه مال انسان ته ډیر محبوب دے، کله چه دا د الله تعالیٰ په لاره کښې خرچ کړی نو دا ډیر مضبوط دلیل دے ددهٔ په استقامت او ددهٔ په مضبوطوالی او ددهٔ په رشتینی نیت باندے، مُؤَلَّفَةُ الْقُلُوْب د دنیا په یوه شوره باندے دوکه شو نو عصبیت (تعصب) ترے لاړو او مزاج ئے نرم شو، او بنو حنیفه د رسول الله ﷺ نه پس مرتد نشو مګر په سبب د منع کولو د زکاة.

او پدے آیت کښې بیا ډیره سخته یره ورکول دی د منع کولو د زکاة نه ځکه چه زکاة منع کول ئے د مشرکانو د صفاتو نه وګرځول او دارنګه په آخرت باندے د کفر سره ئے یوځای کړو. ګویا که چه څوك زکاة نهٔ ورکوی نو ددهٔ په آخرت ایمان نشته. (فتح البیان)

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا : اُوس ایمان والو ته زیرے ورکوی چه کوم خلق چه د ایمان او عمل صالح ژوند اختیاروی، دوئ له به الله تعالیٰ په جنت کښې داسے نعمتونه ورکوی چه هیڅ کله به نهٔ ختمیږی.

غَيْرُ مَمْنُوْنٍ: اَیْ غَیْرُ مَقْطُوْعٍ. نهٔ به قطع کیږی ځکه چه هغه اجر په دنیا کښې هم دے او په قبر کښې هم، او په آخرت کښې هم. او ددے نه مراد اول صحابه کرامؓ وو او صحابه کرامؓ ته الله تعالیٰ ځکه داسے اجر ورکولو چه هغوی داعیان وو، او داعی ته الله تعالیٰ د نورو خلکو اجر هم ورکوی، تر قیامته پورے چه ددهٔ په وجه کومو خلکو دین زدهٔ کړے وی صحیح عقیده ئے اختیاره کړی وی. او بیا دا د جنت اجر دے چه هیڅکله ختمیدو والا نهٔ دے. معلومه شوه چه جنت به نهٔ فنا کیږی.

یا ممنون معنیٰ دا چه زباتلے شوے به نهٔ وی، حساب به ورسره پرے نهٔ کیږی.

| قُلْ أَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُوْنَ بِالَّذِيْ خَلَقَ الْأَرْضَ فِيْ يَوْمَيْنِ |
|---|
| ووایه ! آیا تاسو کفر کوئ په هغه ذات چه پیدا کړے ئے ده زمکه په دوه ورځو کښې |
| وَتَجْعَلُوْنَ لَهٗ أَنْدَادًا ذٰلِكَ رَبُّ الْعَالَمِيْنَ ﴿٩﴾ وَجَعَلَ |
| او تاسو ګرځوئ دهٔ لره شریکان، دغه ذات پالونکے د مخلوقاتو دے۔ او ګرځولے ئے دی |
| فِيْهَا رَوَاسِيَ مِنْ فَوْقِهَا وَبَارَكَ فِيْهَا |
| پدے کښې کلك غرونه دپاسه ددے نه او برکتونه ئے اچولی دی پدے کښې |
| وَقَدَّرَ فِيْهَا أَقْوَاتَهَا فِيْ أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ سَوَاءً |
| او اندازه کړی ئے دی پدے کښې خوراکونه ددے په اندازه د څلورو ورځو کښې، برابر |
| لِلسَّائِلِيْنَ ﴿١٠﴾ ثُمَّ اسْتَوٰى إِلَى السَّمَاءِ وَهِيَ دُخَانٌ |
| دپاره د محتاجو خلقو۔ بیا برابر شو (اراده ئے وکړه) طرف د آسمان ته او هغه لوړے وو |
| فَقَالَ لَهَا وَلِلْأَرْضِ ائْتِيَا طَوْعًا أَوْ كَرْهًا قَالَتَا أَتَيْنَا |
| نو وے وئیل هغے ته او زمکے ته راشئ دواړه په خوښه یا په زوره، ووئیل دواړو راغلو |
| طَائِعِيْنَ ﴿١١﴾ فَقَضَاهُنَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ فِيْ يَوْمَيْنِ |
| مونږ تابعدار۔ (په خوښه سره) نو پوره ئے کړل اُووه آسمانونه په اندازه د دوه ورځو |
| وَأَوْحٰى فِيْ كُلِّ سَمَاءٍ أَمْرَهَا وَزَيَّنَّا |
| کښې او حکم ئے وکړو په هر آسمان کښې د کارونو هغے، او ښائسته کړیدے مونږ |
| السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيْحَ وَحِفْظًا ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ﴿١٢﴾ |
| آسمان نزدے په ستورو سره او دپاره د حفاظت، دا اندازه د هغه ذات ده چه زورور، پوهه دے۔ |

**تفسیر:** پدے کښې د الله تعالیٰ تعارف ذکر کیږی او مشرکانو باندے رد کیږی چه تاسو زما په خبره ښنګه نهٔ پو هیږئ، زهٔ خو تاسو ته د عقل نه بهر خبرے نهٔ کوم بلکه د داسے قادر ذات د عبادت دعوت درکوم چه دا راتلونکی کارونه ئے کړیدی۔

قُلْ: هر کله چه د قریشو مشرکانو کفر او شرك او د قرآن کریم په دروغژن گنړلو باندے ټینګ پاتے کیدل زیات شو، نو الله تعالیٰ د خپل رسول ﷺ په ژبه دویٔ ته د زجر او رټنے په توګه وفرمایل چه تاسو د هغه ذات د اُلوهیت نه انکار کویٔ چه هغهٔ زمکه په دوو ورځو کښ پیدا کړه، او هغهٔ دپاره شریکان جوړویٔ او د هغویٔ عبادت کویٔ، حالانکه هغه رب العالمین دے، دے وجے نه هغهٔ نه سِویٰ بل څوك د عبادت مستحق جوړیدے شی؟

وَتَجۡعَلُوۡنَ: دا د (لَتَكۡفُرُوۡنَ) عطف تفسیر دے، یعنی کفر دا دے چه تاسو د هغه سره شریکان جوړویٔ۔

فِيۡ يَوۡمَيۡنِ: دا یا حقیقی ورځے وے، یعنی یوم الاحد او یوم الاثنین۔ او بعض وائی چه په اندازه د دوو ورځو کښ۔ ځکه چه حقیقی ورځ د آسمان او د زمکے نه روستو موجودیږی۔ او الله تعالیٰ په یو سیکنډ کښ هم پیدا کولے شو لیکن انسانانو ته تعلیم ورکول مقصد وو چه دوی ډِے په آرام سره کار کوی۔ (فتح البیان)

وَجَعَلَ فِيۡهَا رَوَاسِيَ: او آیا تاسو د هغه یواځے ذات د اُلوهیت نه انکار کویٔ، چه هغهٔ د زمکے دپاسه د غرونو لوئے لوئے میخونه لګولی دی، او په زمکه کښ ئے انسانانو دپاره قِسما قِسم نعمتونه پیدا کړی۔ او ددے په سر باندے ئے نهرونه روان کړی، وُنے ئے را زرغون کړی، او څناورئے پیدا کړی، او په هر یو ملك کښ وسیدونکو ته ئے د هغویٔ د مزاج مطابق روزی ورکړے۔ دا رنګا رنګ نعمتونه او د روزیٔ ډیروالے صرف د الله تعالیٰ د برکت نتیجه ده۔ دا ټول کارونه الله تعالیٰ د څلورو ورځو په موده کښ کړی۔ په اتوار او پیر دواړو ورځو کښ ئے زمکه پیدا کړه، او د منګل او بُدھ (چارشنبے) په ورځ ئے پورتنی باقی کارونه وکړل۔ نو فِيۡ اَرۡبَعَةِ اَيَّامٍ کښ مخکنئ دوه ورځے مراد دی۔

وَقَدَّرَ فِيۡهَا اَقۡوَاتَهَا: یعنی اندازه ئے کړل په هغے کښ رزقونه د وسیدونکو او هغه څیزونه چه د تجارت او د ونو او د نورو منافعو قابل وی۔ په هر ملك کښ ئے داسے څیزونه پیدا کړل چه په بل کښ ئے نهٔ دی پیدا کړی دے دپاره چه یو بل سره په تجارت او سفرونو سره اسباب د ژوند حاصل کړی۔ بعض علاقو کښ ئے غنم، او په بعضو کښ کجورے مقرر کړے۔ بعض علاقو کښ ئے غرونه او په بعضو کښ نهرونه، او په بعضو کښ دریابونه، او په بعضو کښ ګنړے ونے وغیره۔ (ابن عباسؓ)

سَوَآءً لِّلسَّآئِلِيۡنَ: اَیْ اِسْتَوَتِ الْاَقْوَاتُ لِلْمُحْتَاجِيْنَ ۔ یعنی دا خوراکونه د محتاجو دپاره برابر موجود شو، او دا داسے دے لکه ﴿وَكُلُّ شَيۡءٍ عِنۡدَهٗ بِمِقۡدَارٍ﴾ (رعد: ٨) ﴿وَمَا نُنَزِّلُهٗۤ اِلَّا

بِقَدَرٍ مَعْلُوْمٍ﴾ (الحجر:۲۱) نو د الله نظام ګډوډ نهٔ دے، بلکه د چا چه څه خوراك ته ضرورت وو هغه پیدا شو، لکه مثلاً د ماهیانو څه خوراك دے، هغه پیدا شو، د نورو حیواناتو، ګډو بزو چه څه خوراك دے هغه ورله الله تعالیٰ پیدا کړل. د هر اندام خوراك دپاره ئے مادیات پیدا کړل.

۲- دے کښې بل تفسیر دا دے چه یهودیانو د مشرکانو په واسطه تپوس کړے وو چه زمکه او آسمانونه په څومره وخت کښې پیدا شویدی؟ نو هغوی ته جواب ورکړے شو چه سَوَاءً: اَیْ اِسْتَوَتْ تِلْكَ الْاَیَّامُ لِلسَّائِلِیْنَ. یعنی دا پوره څلور ورځے دی دپاره د تپوس کونکو، لیکن ددے تفسیر فائده کمه ده.

وَهِیَ دُخَانٌ: د الله تعالیٰ عرش د آسمانونو د پیدائش نه مخکښې په اُوبو باندے وو، نو په هغه اُوبو کښې الله تعالیٰ حرکت او اضطراب پیدا کړو نو د هغے نه یو براس پیدا شو هغے ته ئے دُخان (لوګے) وویل یعنی پشان د دخان (لوګی) تور تور اجزاء وو.

تفسیر قاسمیؔ دے ته غَازَاتُ الْمَاء وئیلی دی، یعنی د اُوبو نه ګیسونه او براسونه پیدا شو. او نورو مفسرینو ددے نه په غُبَارُ الْمَاء سره تعبیر کړیدے، یعنی د اُوبو نه خړ ګردونه پورته شو چه دے ته قرآن دُخان وئیلے دے. [ثُمَّ تَجَاذَبَتْ فَصَارَتْ کُتْلَةً وَاحِدَةً] بیا دغه ګیسونه او براسونه یو بل سره یو ځای شو نو هغے نه یوه کتله جوړه شوه. او سائنسدانان وائی چه دا د دهماکے په شکل جوړ شو، یعنی د اُوبو نه یوه دهماکه پیدا شوه، نو د هغے نه الله تعالیٰ آسمانونه جوړ کړل، او دغه دهماکه تر اُوسه پورے روانه ده لکه الله فرمائی: ﴿وَالسَّمَاءَ بَنَیْنَاهَا بِاَیْدٍ وَاِنَّا لَمُوْسِعُوْنَ﴾ (ذاریات:۴۷) آسمان مونږ په خپل طاقت پیدا کړو، او مونږ پدے کښې فراخی پیدا کونکی یو. نو په کائناتو او مخلوقاتو کښې وخت په وخت فراخی پیدا کیږی. نو الله تعالیٰ دهماکے له داسے زور ورکړو چه د کائناتو خورول شروع شو، او بیرته د الله تعالیٰ په قدرت باندے راټینګیدل هم وشو چه وران ویجاړ نشو. لکه ددے بعض تشریح دپاره تفسیر د سورة الانبیاء ته رجوع وکړه.

او دا معنیٰ د تورات په "سفر الخلق" کښې هم راغلے ده چه الله تعالیٰ آسمانونه د اُوبو نه پیدا کړی، او جنت ئے هم د اُوبو نه پیدا کړے.

فَقَالَ لَهَا وَلِلْاَرْضِ: دا قول دُخان ته خطاب دے، یعنی آسمان ته چه اول کښې دخان وو، او مقصد دا دے چه اے دخانه! زما د حکم تابع شه چه زهٔ درنه آسمانونه په خپل حکم سره جوړ کړم، او زمکے ته ئے وویل چه ستا نه د مخلوق دپاره فائدے پیدا کوم. یا دا قول

روستو د جوړولو د آسمانونو او د زمکے نه دے، یعنی هغے دواړو ته ئے ووئیل چه تاسو راتلل وکړئ په هغه کارونو چه زۀ ئے تاسو ته حکم کوم. دواړو ته ئے خپل خپل کارونه وسپارل، عبد الله بن عباس رضی الله عنهما فرمائی: آسمان ته ئے ووئیل: اے آسمانه، تۀ نمر، سپوږمۍ او ستورې راوخیژوه او اے زمکے! تۀ نهرونه خیرې کړه او میوے او ګیاهګانے راوباسه.

طَوْعًا اَوْ كَرْهًا: دا مصدرونه دي په ځای د حال کښې اَیْ طَائِعَتَیْنِ اَوْمُکْرَهَتَیْنِ. یعنی په داسے حال کښې چه خوشحاله یئ یا ناخوښه. او مطلب دا دے چه تاسو به حکم ضرور منئ که خوښه مو وي او که نۀ.

قَالَتَا اَتَیْنَا طَائِعِیْنَ: ظاهر دا ده چه دا سوال او جواب حقیقةً دے چه الله تعالیٰ دوی له د ګویائی طاقت ورکړے وو. او الله تعالیٰ د خپل هر قسم مخلوق سره خبرے اترے کوی.

دلته ئے طَائِعَتَیْنِ یا طَائِعَاتٍ ئے ونۀ وئیل ځکه چه دوی چه کله خبرے کولے، نو د ذوی العقولو په شان شول پدے وجه ورله د مذکر تثنیه صیغه استعمال کړه.

فَقَضَاهُنَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ: هُنَّ ضمیر (السماء) ته راجع دے، او هغه په معنیٰ کښې جمع ده. یعنی جوړ ئے کړو دغه آسمان اُوه آسمانونه.

اوه آسمانونه ئے د زیارت او د جُمعے په دوه ورځو کښې پیدا کړل. او د هغے نه په آخری ساعت د جُمعه کښې فارغ شو، او په دغه آخری ساعت کښې ئے آدم علیه السلام پیدا کړو.

د دوو ورځو د پیدائش مطلب دا دے چه دومره موده پرے تیره شوه چه که چرته آسمان او نمر او سپوږمۍ موجود وے، نو دا اندازه به د دوه ورځو سره برابره وے.

مشهوره دا ده چه دا شپږ ورځے په اندازه د ورځو د دنیا دی، او بعض وائی چه شپږ ورځے په اندازه د شپږو زرو کالو دی لکه دا خبره قرطبیؒ نقل کړیده، او مجاهدؒ وئیلی دی چه د شپږو ورځو نه یوه ورځ د زرو کالو برابره ده ﴿وَاِنَّ یَوْمًا عِنْدَ رَبِّكَ كَاَلْفِ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّوْنَ﴾ (الحج: ٤٧) (یعنی بیشکه یوه ورځ ستا د رب په نیز د زرو کالو په شان دے د هغے نه چه تاسو ئے شمارئ) نو د الله تعالیٰ په نیز یوه ورځ د زرو کالو سره برابره ده.

وَاَوْحٰی فِیْ كُلِّ سَمَاءٍ اَمْرَهَا: قتادةؒ او سدیؒ وئیلی دی چه په آسمان کښې ئے نمر او سپوږمۍ او ستورې او افلاك پیدا کړل، او دارنګه ملائك، دریابونه، ګلۍ او داوره.

یا وحی په معنیٰ د امر سره دے، او مطلب دا دے چه په هر آسمان کښې ئے خپل خپل حکم جاری کړو. په هر آسمان کښې ملائك دی، نو هغوی ته ئے د هغوی مناسب

احکامات ولیږل، او هغوی ئے په خپل خپل کارونو مقرر کړل۔

عبد الله بن عباس ﷺ فرمائی : د الله دپاره په هر آسمان کښې یو کور دے د کعبے په برابرئ باندے چه ملائك د هغے نه حج او طوافونه کوی او په نزدے آسمان کښې بیت المعمور دے۔

وَزَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا : یعنی نزدے آسمان په ستورو سره ښائسته شویدے، ستوری اګرکه د آسمان نه ډیر لاندے دی، لیکن د آسمان زینت پرے جوړ دے۔

وَحِفْظًا : ۱- دا مفعول مطلق دے د فعل محذوف : (اَىْ وَحَفِظْنَاهَا حِفْظًا) او مونږ حفاظت کړے د آسمان په حفاظت سره، د شیطانانو د غوږ کیخودو نه چه په ستورو سره دوی ویشتلے شی۔ ۲- یا مفعول لَهٗ دے۔ اَىْ خَلَقْنَا الْمَصَابِيْحَ زِيْنَةً وَحِفْظًا اَىْ لِلْحِفْظِ۔

او ستوری مونږ د حفاظت دپاره پیدا کړیدی چه پدے سره د آسمان د راغورزیدو نه حفاظت کیږی ، او دارنګه د شیطانانو نه۔ او دا قول غوره دے، د قرآن او د احادیثو نه همدا معلومیږی۔

تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ : دا ذکر شوے خبرے اندازه د زورور او پوهه ذات ده، ددے مخلوق قوت او قدرت معلوم کړه، نو د الله تعالیٰ قدرت به درته معلوم شی۔

**فائده** : پدے آیت کښې د زمکے پیدائش مخکښې خودلے شویدے د آسمان نه، او همدا صحیح ده۔ نو ترتیب دا دے چه اول زمکه پیدا شوه، بیا آسمان پیدا شو، بیا په زمکه کښې خوراکونه او څیزونه پیدا شو، او د زمکے خوریدل وشو لیکن دلته ئے د زمکے سره د هغے خوراکونه په یو ځای ذکر کړل دے دپاره چه د زمکے تولہ خبره ختمه شی۔ او ددے تفصیل په سورة البقره کښې ذکر شویدے۔

| فَإِنْ أَعْرَضُوْا فَقُلْ أَنْذَرْتُكُمْ صَاعِقَةً مِّثْلَ صَاعِقَةِ |
|---|
| نو که دوی مخ وګرځوی نو ووایه ! زهٔ یروم تاسو د تندر (عذاب) نه پشان د تندر |
| عَادٍ وَّثَمُوْدَ ﴿۱۳﴾ إِذْ جَاءَتْهُمُ الرُّسُلُ مِنْۢ بَيْنِ أَيْدِيْهِمْ |
| (عذاب) د عادیانو او ثمودیانو۔ کله چه راغلل دوی ته رسولان مخکښې د دوی نه |
| وَمِنْ خَلْفِهِمْ أَلَّا تَعْبُدُوْا إِلَّا اللّٰهَ |
| او روستو د دوی نه (پدے خبره) چه بندګی مهٔ کوئ سوئ د الله تعالیٰ نه (د بل چا) |

| قَالُوْا لَوْ شَاۤءَ رَبُّنَا لَاَنْزَلَ مَلٰۤئِكَةً فَاِنَّا |
| --- |
| ووېل دوی که غوښتلے رب زمونږ خامخا رالیږلی به ئے وے ملائك نو یقیناً مونږ |
| بِمَاۤ اُرْسِلْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ ﴿۱۴﴾ فَاَمَّا عَادٌ فَاسْتَكْبَرُوْا |
| په هغه څه چه تاسو پرے رالیږلے شوی یئ منکریو۔ پس هر چه عادیان دی نو لوئی |
| فِى الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَقَالُوْا مَنْ اَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً ؕ |
| ئے اُوکړه په زمکه کښې په ناحقه او وے وئیل څوك ډیر سخت دے زمونږ نه په طاقت |
| اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِىْ خَلَقَهُمْ هُوَ اَشَدُّ |
| کښې، آیا نۀ گوری دوی چه بیشکه الله هغه چه دوی ئے پیدا کړیدی هغه ډیر سخت |
| مِنْهُمْ قُوَّةً ؕ وَكَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ﴿۱۵﴾ |
| دے د دوی نه په طاقت کښې او وو دوی چه زمونږ د آیتونو نه ئے انکار کولو۔ |

**تفسیر**: اُوس زجر ورکوی په اعراض کولو سره او تخویف دنیوی دے اعراض کونکو ته په ذکر د دوه نمونو د مخکنو قومونو چه عادیان او ثمودیان دی.

یعنی د مذکوره تفصیلاتونه پس چه دا د الله تعالیٰ په قدرت، علم او حکمت باندے دلالت کوی، دارنگه د الله تعالیٰ په وحدانیت او د مرگ نه پس په دوباره ژوند باندے د ایمان راوړلو دعوت ورکوی، نبی کریم ﷺ ته وئیلے کیږی چه که اوس هم د قریشو کافران د اسلام په دائره کښې د داخلیدو نه اعراض کوی، نو تۀ دوئ له ښکاره د داسے عذاب دهمکی ورکړه څنگه عذاب چه په عادیانو او ثمودیانو باندے نازل شوے وو چه هغے دوئ او د دوئ تمام څیزونه بیخی هلاك کړی وو.

فَاِنْ اَعْرَضُوْا: اعراض خو ډیرو خلکو کړیدے نو دا په (اِنْ) سره ولے ذکر کوی چه دلالت کوی په شك باندے؟ جواب دا دے چه دلته د اِعراض نه مراد دوام (همیشوالے) د اعراض دے، یعنی که په اعراض کولو ئے همیش والے وکړو او توبه ئے ونکړه.

فَاِنْ اَعْرَضُوْا: که دوی مخ واړولو د قرآن او د الله تعالیٰ د توحید نه.

صٰعِقَةً: صاعقه كُلُّ شَيْءٍ غَيَّرَ الشَّيْءَ وَاَفْسَدَهٗ) ته وائی، یعنی هر هغه شے چه بل شے بدل او خراب کړی د خپل هیئت نه، دا صاعقه ده.

دلته د صاعقے نه مراد واقع کیدل د عذاب دی. او صاعقة د صَعْق نه دے بیهوشئ ته وئیلے شی، او په هر عذاب کښې بے هوشی وی. او دارنګه صاعقه هغه سخت عذاب دے چه د هغے نه چغه وهل پیدا کیږی، او انسانانو لره بے هوشه کړی یا ئے مړهٔ کړی.

او دلته ئے د عادیانو او ثمودیانو تذکره وکړه ځکه چه د مشرکانو د هغوی سره مشابهت وو. او قریش به د هغوی په کلو ورتیریدل. بل پدے کښې اشاره ده چه د چا د بدنونو قوت او د چا د هنرمندئ قوت هغهٔ لره د الله تعالیٰ د عذاب نه نشی بچ کولے.

إِذْ جَاءَتْهُمُ الرُّسُلُ مِنْ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ: ۱- د مخکښې او روستو نه د پیغمبرانو د راتللو مقصد دا دے چه د هر طرف نه ورته راتاؤ شو اَيِ الرُّسُلُ سَعَوْا بِكُلِّ طُرُقٍ مِنَ الْبَيَانِ. یعنی رسولانو په هره طریقه د توحید په بیان باندے کوشش وکړو، د مخکښې نه ورته راغلل او بیان ئے ورته وکړو، او د شا ته نه ئے هم ورته آوازونه وکړل او هره حیله ئے ورله استعمال کړه خو د هغوی نه ئے صرف اعراض ولیدو.

۲- حسن وائی: اَنْذَرُوْهُمْ مِنْ وَقَائِعِ اللّٰهِ فِيْمَنْ قَبْلَهُمْ مِنَ الْاُمَمِ وَعَذَابِ الْآخِرَةِ) یعنی رسولانو دا قومونه ویره ول د الله تعالیٰ د عذابونو نه کوم چه په پخوانو امتونو راغلی وو او د آخرت د عذاب نه ئے ویرول.

۳- اَوْ مِنْ عَذَابِ السَّابِقِيْنَ وَعَذَابِ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ فِيْمَا يَسْتَقْبِلُ) یا د مخکنو قومونو د عذابونو نه ئے ویرول، او په آینده کښې ئے د دنیا او د آخرت د عذابونو نه ویرول.

٤- یا مطلب دا دے چه د پخوانو او روستنو تولو پیغمبرانو دعوت یو وو، نو داسے شوه لکه چه تول پیغمبران دوی ته راغلی وی. (فتح البیان)

قَالُوْا لَوْ شَآءَ رَبُّنَا: دا د تهولو قومونو شریك اعتراض دے. یعنی که الله تعالیٰ مونږ ته خپل پیغام را رسول غوښتلے نو ملائك به ئے رالیږلی وے، نهٔ دا چه ز مونږ پشان انسان چه په مونږ باندے ئے هیڅ غوره والے نشته، که ملائك رسولان وے، نو مونږ به منلی وے. ددے وجے نه مونږ ستاسو د رسالت نه انکار کوو.

فَأَمَّا عَادٌ: عادیانو د الله تعالیٰ په زمکه باندے د ناحقه تکبر او سرکشئ لاره اختیار کړه، او د خپل بدنی قوت او مادی طاقت په نشه کښې ئے د هود علیه السلام د دعوت نه انکار وکړو، او وے وئیل چه مونږ نه زیات طاقتور څوك کیدے شی، مونږ به تولو سره وګورو، او په دے باطل ګمان کښې مبتلا شول چه دوئ به د خپل طاقت په ذریعه د الله تعالیٰ عذاب هم بندوی.

بِغَیْرِ الْحَقِّ: یعنی تکبر د دوی حق نهٔ وو، خو دوی په ناحقه کولو۔

اَوَلَمْ یَرَوْا: چونکه د دوئ په روّیه کښې د الله تعالیٰ په خِلاف یو قِسم چیلنج وو، ددے وجے نه الله تعالیٰ د خپل طاقت ذکر کوی فرمائی: کوم ذات چه دوئ پیدا کړی دی هغه یقینًا د دوئ نه زیات طاقتور دے۔ هم هغه د هر طاقت سر چشمه ده۔ هغهٔ چه کله انسان پیدا کړو نو هغه بیحده کمزورے وو، بیا الله تعالیٰ هغه په مزه مزه قوی او طاقتور جوړ ولو۔ بیا د الله تعالیٰ په مقابله کښې هغه په خپل طاقت باندے ولے ناز کوی، او د هغه معجزو نه څنګه انکار کوی کومے چه هود علیه السلام د دوئ مخے ته پیش کړے۔

| فَاَرْسَلْنَا عَلَیْهِمْ رِیْحًا صَرْصَرًا فِیْۤ اَیَّامٍ نَّحِسَاتٍ |
|---|
| نو راولیږله مونږ په دوی باندے هوا سخته په ورځو سپیرو کښې |
| لِّنُذِیْقَهُمْ عَذَابَ الْخِزْیِ فِی الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا |
| دے دپاره چه اُوڅکوو دوی ته عذاب د شرمندګئ په ژوند دنیوی کښې |
| وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَخْزٰی وَهُمْ لَا یُنْصَرُوْنَ ﴿۱۶﴾ |
| او خامخا عذاب د آخرت ډیر شرمونکے دے او دوی سره به مدد نشی کیدے۔ |
| وَاَمَّا ثَمُوْدُ فَهَدَیْنٰهُمْ فَاسْتَحَبُّوا الْعَمٰی |
| او هر چه ثمودیان وو نو لار اُوخودله مونږ دوی ته نو غوره کړو دوی ړوندوالے |
| عَلَی الْهُدٰی فَاَخَذَتْهُمْ صٰعِقَةُ الْعَذَابِ الْهُوْنِ بِمَا |
| (جهالت) په هدایت، نو را اُونیول دوی لره چغے د عذاب د ذلت په سبب د هغه کارونو |
| کَانُوْا یَكْسِبُوْنَ ﴿۱۷﴾ وَنَجَّیْنَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَكَانُوْا یَتَّقُوْنَ ﴿۱۸﴾ |
| چه دوی کول۔ او بچ کړل مونږ هغه کسان چه ایمان ئے راوړے وو او دوی تقوئ کوله۔ |

**تفسیر**: هر کله چه دوئ د خپل کفر او سرکشئ نه منع نشو، نو الله تعالیٰ د هغوئ د تباه کولو دپاره په هغوئ یوه تیزه او یخه هواء را والوزوله چه اوو شپو او آتو ورځو پورے چلیدله، چه هغے په دوئ کښې یو کس هم پرے نښودهٔ۔ دا ورځ د دوئ دپاره ډیره خرابه ثابته شوه۔ مجاهدؒ او قتادهؒ وائی چه دا ورځے د چارشنبے نه چارشنبے پورے د شوال

مياشتې آخري ورځې وې. ددې عذاب په ذريعه الله دوئ په دنيا كښې وشرمول، او په آخرت كښې چه كوم عذاب دوئ له وركړې كيږي هغه به ډير زيات شرمونكې وي، او هيڅوك به د دوئ د حال تپوس كونكې نۀ وي.

صَرْصَرًا: سخته تيزه او سخته يخه او سخته آواز كونكې وه.

نَّحِسَاتٍ: نَحس مقابل د سَعُد دې يعنې سپيرې وې په حق د هغوي كښې. او پرله پسې معنىٰ ئې حاصل ده، خپله معنىٰ ئې نۀ ده.

عَذَابَ الْخِزْيِ: هركله چه دوي تكبر كړې وو، نو د دوي سره مناسب وه شرمندګي او سپكول د دوي، ددې وجه نه ئې اَلْخِزْيِ او اَخْزىٰ د عذاب سره ذكر كړو.

وَأَمَّا ثَمُوْدُ: د ثموديانو د هدايت دپاره هم الله تعالىٰ د نجات لاره روښانه كړه. صالح ﷺ ئې نبي جوړ كړو او هغوئ ته ئې وليږهٔ، د ګڼړو نښو په ذريعه ئې حق واضح كړو، او خپل شريعت ئې نازل كړو او په هغې باندې ئې د عمل كولو حكم وركړو.

ددې ټولو خبرو تقاضا دا وه چه هغوئ په الله تعالىٰ باندې او د هغهٔ په رسول باندې ايمان راوړې وې، ليكن هغوئ په ايمان باندې كفر لره، او په طاعت او بندګئ باندې ګناه او سركشئ لره ترجيح وركړه، نو الله تعالىٰ د هغوئ د كړو په وجه په يو رسوا كُن عذاب سره هغوئ هلاك كړل، او صالح ﷺ او ددهٔ مومنان ملګري چه د دوئ شماره څلور زره وه، ددې عذاب نه بچ كړل.

فَهَدَيْنَاهُمْ: د هدايت دوه صورتونه دي، يو اِيْصَالِ اِلَى الْمَطْلُوْب. چه مقصد ته ورسولې شي. دا هدايت دوي ته نۀ وو شوې، دويم هدايت په معنىٰ د اِرَائَةُ الطَّرِيْق سره. (يعنې لاره خودل او رهنمائي كول په واسطه د رسولانو)، نو دوي ته دا هدايت ډير شوې وو، د دوي د مطالبې مطابق د يو اُوچ كاڼړي نه دوي ته يوه لويه اُوښه پيدا شوه، او دوي په خپلو سترګو وليدله، او دليلونه د حق ورته ښكاره شو. نو دلته هدايت په معنىٰ د بيان او توفيق سره دې. يعنې دوي كښې ئې استعداد د هدايت د قبلولو پيدا كړو، ليكن دوي دغه استعداد خپل ختم كړو.

فَاسْتَحَبُّوا الْعَمٰى عَلَى الْهُدٰى: يعنې دوي غوره كړو كفر لره په ايمان او توحيد باندې. يا غوره ئې كړه ګمراهي په بيان باندې. سُدّيّ وائي: غوره ئې كړه ګناه په طاعت باندې.

مطلب دا دې چه عاديان ضديان او عناديان وو، هغوي د اول نه حق ته غوږ كينخودو د

وجه د تکبر نه، او ثمودیانو خو اول نه غوږ کیخودو، او د هدایت لاره ئے ولیدله لیکن گمراهي (کفر او شرك) ورته ښائسته ښکاره شو، نو ددیے وجه نه ئے اعراض وکړو.

نو ددیے نه معلومه شوه چه کفر کونکی دوه قسمه دي، یو قسم ضدیان عنادیان چه حق ته غوږ نهٔ اوري او انکار کوی، او دویم قسم چه حق ته غوږ اوري لیکن خپل کفر او شرك ورته غوره ښکاره کیږی په حق او توحید باندیے، او دا دواړه قسمونه په هره زمانه کښې موجود دي.

صَاعِقَةُ الْعَذَابِ الْهُوْنِ: دا اضافتِ بیانیه دیے، یا اضافت د صفت دیے موصوف ته ځکه چه صاعقه هر مُهلك (هلاکونکی) شی ته وائی. او الْهُوْن مصدر دیے لکه د هَوَان په شان، او دلته مضاف پټ دیے، اَیْ ذِی الْهَوَانِ . (یعنی سپکوالی والا) یعنی راونیول دوی لره هغه عذاب چه هلاکونکے دیے، د سپکوالی والا دیے.

| وَيَوْمَ يُحْشَرُ أَعْدَاءُ اللهِ إِلَى النَّارِ فَهُمْ |
|---|
| او په کومه ورځ چه راجمع به کړیے شی دشمنان د الله تعالیٰ اُور ته نو دوی به |
| يُوْزَعُوْنَ ﴿۱۹﴾ حَتَّى إِذَا مَا جَاءُوْهَا شَهِدَ |
| بند کړیے شی (په هغے باندیے). تردیے چه کله راشی دوی هغے ته گواهی به ورکوی |
| عَلَيْهِمْ سَمْعُهُمْ وَأَبْصَارُهُمْ وَجُلُوْدُهُمْ بِمَا |
| په دوی باندیے غوږونه د دوی او سترگے د دوی او څرمنے د دوی په هغے عملونو |
| كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۲۰﴾ وَقَالُوْا لِجُلُوْدِهِمْ لِمَ شَهِدتُّمْ عَلَيْنَا |
| چه دوی کول. او وبه وائی دوی څرمنو خپلو ته ولے گواهی اُوکړه تاسو په مونږ |
| قَالُوْا أَنْطَقَنَا اللهُ الَّذِي أَنْطَقَ |
| باندیے، وبه وائی هغوی گویا کړو مونږ الله تعالیٰ هغه ذات چه گویا کړیے ئے دیے |
| كُلَّ شَيْءٍ وَهُوَ خَلَقَكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۲۱﴾ |
| هر شے، او هغهٔ پیدا کړی یئ تاسو اول ځل او خاص هغه ته به ورگرځولے شئ. |

**تفسیر:** مخکښې آیت کښې د دوی دنیاوی عذاب بیان شو، اُوس د دوی اُخروی عذاب

بیانیږي. یا پدې کښې عموم دې تولو کافرانو ته، او قریشو ته هم پکښې دهمکي ده کوم خلك چه د قرآن کریم نه اعراض کوي. یعني قریشو کافرانو ته هغه حال بیان کړه چه په هغې کښې به د قیامت په ورځ کافران خلق آخته کیږي، شاید چه عبرت حاصل کړي، کله چه د الله تعالیٰ تمام دشمنان جهنم یا میدان محشر طرفته په شړلو شړلو یوړلے شي، او ټول په یو ځای کښې جمع کړے شي. ابن عباس رضی الله عنهما وائي: چه ﴿ فَهُمْ يُوزَعُونَ ﴾ کښې دیته اشاره ده چه د جهنمیانو شماره به ډیره لویه وي.

أَعْدَاءُ اللهِ: د الله تعالیٰ دشمنان هر مشرك او کافر، او د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسول د حکم مخالفت کونکے دے، لیکن کوم خلك چه د قرآن کریم نه اعراض کوي، او نور خلك ترے منع کوي، نو دا په کښې په اول نمبر کښې داخل دي لکه روستو د دوي بیان راځي.

فَهُمْ يُوزَعُونَ: ١- أَيْ يُدْفَعُونَ. (ابن عباسؓ) یعني دیکه به کړے شي.

٢- يُسَاقُونَ. (روان به کړے شي، وبه شړلے شي). وزع په اصل کښې تقسیم ته وئیلے شي، یعني روستو د جمع کولو نه به په مختلفو ډلو تقسیم کړے شي. لکه سورة الزمر آیت (٧١) کښې ﴿ وَسِيقَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ جَهَنَّمَ زُمَرًا ﴾ تیر شو.

نورے معاني دا دي: (١) دوي به بند کړے شي په هغې باندے.

(٢) نو دوي به تقسیم شي په ډلو ډلو. (٣) نو دوي به صفونه صفونه کړے شي.

حَتَّىٰ إِذَا مَا جَاءُوهَا: یعني کله چه راشي د اُور خوا ته نو الله تعالیٰ به په دوي باندے د حجت پوره کولو دپاره په خپل حکم سره د دوئ غوږونه او سترګے او د دوئ څرمنے د دوئ په جرمونو ګواه کړي، کوم الله چه په دنیا کښې د دوئ ژبو له د وئیلو طاقت ورکړے وو، هم هغه به په دے ورځ باندے د دوئ بدنونو او نورو اندامونو له د ګویا کیدو طاقت ورکوي، او هغوئ به ددے مجرمانو یو یو جرم بیانوي، او د کوم کفر او شرك د اقرار کولو نه چه د دوئ ژبے خاموش وے، د هغے ګواهي به ورکوي. او دا ګواهي به په دوي باندے په هغه وخت کښې وي چه کله دوي په ژبو انکار وکړي چه مونږ شرك نۀ دے کړے لکه مخکښې سورة المؤمن کښې تیر شو.

سَمْعُهُمْ وَأَبْصَارُهُمْ وَجُلُودُهُمْ: ددے درے اندامونو تخصیص ئے وکړو ځکه چه قوت د آوریدو په غوږونو کښې دے، او قوت د لیدلو په سترګو کښې دے، او قوت د بویه ولو او د څکلو او سکلو ټول په څرمنو کښې داخل دي. (قاله الرازي -فتح البیان)

یا تخصیص نے پدے وجه وکړو چه اکثر ګناهونه پدے باندے او ددے په سبب باندے کیږي. (السعدی)

وَقَالُوْا لِجُلُوْدِهِمْ : دوی به خپلو څرمنو ته خطاب کوی، دا دلیل دے چه هر اندام به ګواهي ورکوی چه ما فلانے کار کړے، ما فلانے کار کړے.

لِمَ شَهِدتُّمْ عَلَيْنَا : یعنی مشرکان چه د خپلو اندامونو دا حال وګوری، نو حیران به شی، او خپلو څرمنو ته (چه د هغوئ نه به آواز راخیژی او هغوئ له به الله تعالیٰ په دے ورځ عقل او پوهه ورکوی) ووائی، تاسو زمونږ په خلاف داسے ګواهی ولے ورکړه حال دا چه مونږ خو ستاسو دفاع کوله ؟

او ددے تفصیل په حدیث کښ داسے راغلے دے : کافر انسان به الله تعالیٰ ته ووائی، اے الله ! اَلَمْ تُجِرْنِيْ مِنَ الظُّلْمِ . آیا زۀ تا د ظلم نه بچ کړے نۀ یم، ویه وائی : ولے نۀ، نو هغه به ووائی : (فَاِنِّيْ لَا اُجِيْزُ عَلٰى نَفْسِيْ اِلَّا شَاهِدًا مِنِّيْ) یعنی زۀ په خپل ځان باندے صرف د خپل ځان نه ګواه منم (نۀ بل څوك) نو الله به وفرمائی : (كَفٰى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ شَهِيْدًا وَبِالْكِرَامِ الْكَاتِبِيْنَ شُهُوْدًا) نن ورځ په تا باندے ستا نفس کافی ګواه دے، او کراما کاتبین (ملائك) هم پوره ګواهان دی. نو ددۀ په خوله باندے به مهر ووهلے شی، نو ددۀ اندامونو ته به ووئیلے شی. (اِنْطِقِيْ) خبرے شروع کړئ. نو هغه به په خپلو عملونو خبرے شروع کړی. بیا به دا شخص ګویا شی او اندامونو ته به ووائی : (بُعْدًا لَكُنَّ وَسُحْقًا، فَعَنْكُنَّ كُنْتُ اُنَاضِلُ) تاسو لره دے هلاکت او تباهی وی ما خو ستاسو د طرف نه جګړه کوله. (مسلم۲۱٦/۸/۷٥٤٩)

او په حدیث د احمدؒ کښ په صحیح سند سره ذکر دی چه اول خبرے به د بنده فخذ (ورون) او د هغه ورغوے کوی. (مسند احمد ٥/٣ وصححه الالبانی).

قَالُوْا اَنْطَقَنَا اللهُ: نو هغوئ به ووائی چه دا ګواهی زمونږ په ذریعه هغه الله ورکړے چه هغۀ هر یو حیوان ته د وئیلو طاقت ورکړے. یعنی زمونږ دا ګواهی د الله تعالیٰ د قدرت نه ناشنا نۀ ده ځکه چه هغه الله تعالیٰ پدے قادر دے.

وَهُوَ خَلَقَكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ: دا د الله تعالیٰ طرفنه جواب دے. یعنی تاسو د خپلو اندامونو په ګویا کیدو باندے حیرانتیا ولے کوئ، دا خو به د هغه الله تعالیٰ حکم وی چه هغۀ تاسو اول ځل پیدا کړی وَئ، نو کوم ذات چه تاسو اول ځل پیدا کړئ یئ، هغه یقینًا ستاسو اندامونو له د ګویا کیدو په طاقت ورکولو قادر دے. او یاد لرئ چه تاسو به هم هغۀ

طرفته واپس ورکرځئ، یعنی هغه به تاسو دوباره ژوندي کوي، او تاسو به په هغه میدانِ حشر کښې جمع کیږئ او خپل حساب کتاب به ځکئ او د مشرکانو ذلت به وینئ.

یا دا خطاب په قیامت کښې دے. یعني الله تعالیٰ به ورته په قیامت کښې ووائي چه تاسو الله تعالیٰ اول ځل پیدا کړي وئ نو دوباره پیدا کولو باندے هم قادر دے، او اُوس به تاسو دغه الله ته ورکرځئ یعنی همیشه دپاره به د هغه عذابونو ته حواله شئ.

| |
|---|
| وَمَا كُنتُمْ تَسْتَتِرُونَ أَنْ يَشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ |
| او تاسو به پرده نۀ کوله ددے نه چه ګواهي به اُوکړي په تاسو باندے غوږونه ستاسو |
| وَلَا أَبْصَارُكُمْ وَلَا جُلُودُكُمْ وَلَٰكِن ظَنَنتُمْ أَنَّ اللَّهَ |
| او نۀ سترګے ستاسو او نۀ څرمنے ستاسو لیکن تاسو ګمان کولو چه یقیناً الله تعالیٰ |
| لَا يَعْلَمُ كَثِيرًا مِّمَّا تَعْمَلُونَ ﴿٢٢﴾ وَذَٰلِكُمْ ظَنُّكُمُ الَّذِي |
| نۀ پوهیږي په ډیرو د هغه کارونو نه چه تاسو ئے کوئ. او دا ګمان وو ستاسو هغه |
| ظَنَنتُم بِرَبِّكُمْ أَرْدَاكُمْ فَأَصْبَحْتُم مِّنَ |
| چه ګمان کړے وو تاسو په رب خپل باندے، هلاك ئے کړئ نو اُوګرځیدئ تاسو د |
| الْخَاسِرِينَ ﴿٢٣﴾ فَإِن يَصْبِرُوا فَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ وَإِن يَسْتَعْتِبُوا |
| تاوانیانو نه. نو که دوي صبر کوي نو اُور ځائے د اُوسیدو د دوي دے او که دوي طلب د |
| فَمَا هُم مِّنَ الْمُعْتَبِينَ ﴿٢٤﴾ |
| رضا د الله کوي نو نۀ دي دوي د هغه چا نه چه الله به ترے رضا کړے شي. |

**تفسیر:** الله تعالیٰ به کافرانو او مشرکانو ته ووائي چه کله تاسو ګناه کوله نو د خپلو غوږونو، سترګو او څرمنو نه به مو د پردے کولو سوچ هم نۀ کولو، ځکه چه ستاسو په زړونو کښې د سَره دا خیال هډو راتللو نۀ چه د قیامت په ورځ به ستاسو اندامونه ستاسو خِلاف ګواهي ورکوي، او تاسو به دا ګمان هم کولو چه الله تعالیٰ ستاسو ډیر جرمونه او ګناهونه نۀ پیژني، ځکه خو به تاسو ددے د کولو زړورتیا کوله. په خپل رب باندے دے

بدگمانئ تاسو د هلاکت او بربادئ کندے ته اورسولئ. په همدے وجه تاسو په دنیا کښ د هغهٔ د احکامو د مخالفت جرأت کړے، او اوس په آخرت کښ خبره دے پورے راورسیده چه د خپلو گناهونو نه انکار کوئ، او هر څهٔ ضائع کولو سره جهنم طرفته روان کړے شوی یئ.

## شان نزول

بخاریؒ او مسلمؒ وغیره د عبد الله بن مسعود ﷺ نه روایت کړے چه ((زهٔ د کعبے د پردے سره پټ ناست وم پدے کښ درے کسان راغلل چه یو قریشی او دوه ثقفیان وو، یا یو ثقفی او دوه قریشیان وو، د هغوی د خیټو غوښه زیاته وه لیکن د زړونو پوهه ئے کمه وه. نو هغوی داسے خبرے وکړے چه ما نهٔ وے آوریدلے. نو یو تن وویل: آیا ستاسو خیال دے چه الله به زمونږ دا خبرے آوری؟ نو بل وویل: مونږ چه کله آواز پورته کړو نو آوری ئے، او چه کله آواز پورته نکړو نو نهٔ ئے آوری، نو بل وویل: که هغه ددے نه څهٔ شے آوری نو بیا به ټولے خبرے آوری)).

ابن مسعود ﷺ وائی: ما رسول الله ﷺ ته دا خبره ذکر کړه نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو تر (الخاسرین) پورے. (بخاری فی تفسیر سورة ٤١، باب ٢، ومسلم فی المنافقین حدیث٥)

وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُوْنَ:

## اشکال او د هغے جواب

بعض مفسرینو ته دا آیت مشکل ښکاره شویدے څکه چه د الله تعالیٰ نه د پردے کولو څه معنیٰ ده؟ الله تعالیٰ خو په هر څه پوهه دے؟ نو بیا ئے ددے تاویلات کړیدی

(١) یو دا چه استتار په معنیٰ د گمان دے، یعنی تاسو گمان نکولو. (معالم التنزیل)

(٢) استتار په معنیٰ د تقویٰ دے. (وَمَا كُنْتُمْ تَتَّقُوْنَ) تاسو به یره نهٔ کوله. لکه څوك چه د چا نه پرده کوی نو د هغه نه خان ساتی.

(٣) استتار په معنیٰ د حیاء کولو سره دے. (قاسمیؒ)

لیکن که آیت په ظاهر پریخودے شی، په همدے کښ کمال دے، استتار پردے ته وائی یعنی تاسو به پرده نهٔ کوله د گواهئ د غوږونو او سترگو نه، بلکه ددے اندامونو مخامخ به تاسو گناه کوله، او دا خیال به مو نهٔ کولو چه دا اندامونه به په مونږ باندے د قیامت په ورځ گواهی وکړی. یعنی تاسو د بعث بعد الموت او حساب کتاب نه منکر وئ. او هرکله چه بنده د گناه په وخت د خپلو اندامونو نه په پټیدو باندے قادر نهٔ دے نو

پټيدو نه مراد به دلته ګناه پريخودل وي۔ يعني تاسو به ګناه نهٔ پريخودله۔ (فتح البيان) او دغه مخکنی تاويلات ئې حاصل ترجمې دي۔

اَنْ يَّشْهَدَ : ١- اَىْ مَخَافَةَ اَنْ يَّشْهَدَ ۔ يعني پدې يره چه ګواهي به وکړي په تاسو غوږونه۔ ٢- لِاَجْلِ اَنْ يَّشْهَدَ) ددې وجه نه چه ګواهي به وکړي الخ۔

ارداكم : اَىْ طَرَحَكُمْ فِي النَّارِ ۔ هلاك ئې کړئ يعني اُورته ئې ګوزار کړئ۔ لوی هلاکت همدغه دې۔

**فائده** : که يو تن غواړي چه ما کښې پوره تقویٰ راشي او په آخرت کښې هيڅ قسم ذليله نشم، نو د څلورو څيزونو نه به حياء کوي، او ټول په قرآن کښې راغلی دي۔

١- اَلْحَيَاءُ مِنَ اللّٰهِ۔ د الله تعالیٰ نه حياء کول چه رب تا ته ګوري۔

٢- اَلْحَيَاءُ مِنَ الْكِرَامِ الْكَاتِبِيْنَ۔ د کراما کاتبين (ليکونکو ملائکو) نه حياء کول۔

٣- اَلْحَيَاءُ مِنَ الْاَرْضِ ۔ د زمکې نه حياء کول۔ ﴿ يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ اَخْبَارَهَا ﴾ ۔ څکه چه زمکه به د قيامت په ورځ په انسان باندې ګواهي کوي۔

٤- اَلْحَيَاءُ مِنَ النَّفْسِ ۔ د خپل نفس نه حياء کول۔ د خپل لاس، سر، سترګو، غوږونو او نورو اندامونو نه۔ ليکن دا کار ډير سوچ او تدبر غواړي۔ که دا څلور قسمه حياء بنده کښې پيدا شوه، نو اول به ئې هيڅ ګناه نهٔ وي، او که پيدا شوه نو زر به الله تعالیٰ ته په توبه رجوع کوي، نو هميشه به پاك وي۔

**فائده** : پدې آيت کښې دا خبرداړې دې چه مؤمن له پکار دي چه دا يقين وکړي چه په دهٔ باندې داسې وخت او حال نـهٔ راځي چه په دهٔ باندې يو رقيب (نګهبان) نهٔ وي۔ لکه ابونواس ددې ځای نه خپل مضمون اخستې دې هغه فرمائي :

| | | |
|---|---|---|
| اِذَا مَـا خَـلَـوْتَ الـدَّهْـرَ يَـوْمًـا فَلَا تَقُلْ | ❁ | خَـلَـوْتُ وَلَـٰـكِـنْ قُـلْ : عَـلَـيَّ رَقِـيْـبٌ |
| وَلَا تَـحْـسَـبَـنَّ الـلّٰـهَ يَـغْـفُـلُ سَـاعَـةً | ❁ | وَلَا اَنَّ مَـا يَـخْـفٰـى عَـلَـيْـكَ يَـغِـيْـبٌ |

چه کله يوه ورځ په زمانه کښې يواځې شوې، نو داسې مهٔ وايه چه زهٔ يواځې شوم، بلکه داسې وايه چه ما باندې نګهبان ذات شته۔ او دا ګمان مهٔ کوه چه ګنې الله يو ساعت غافله کيږي، او نهٔ دا چه په تاسو باندې يو شې غائب (پټ) دې ګنې هغه به په الله هم غائبيږي۔ (پټيږي) (القاسمیّ)

ظَنَنْتُمْ بِرَبِّكُمْ : علماء فرمائي : ګمان په دوه قسمه دې، يو ښائسته ګمان او بل قبيح، ښائسته ګمان دا دې چه بنده په الله تعالیٰ باندې د رحمت او فضل او احسان ګمان وکړي

لکه الله فرمائي : [ أَنَا عِنْدَ ظَنِّ عَبْدِيْ بِيْ ] زهٔ د خپل بنده د گمان سره یم. (بخاري في التوحید باب ١٥)

او رسول الله ﷺ فرمائي : [ لَا يَمُوْتَنَّ أَحَدُكُمْ إِلَّا وَهُوَ يُحْسِنُ الظَّنَّ بِاللّٰهِ تَعَالٰى ] په تاسو کښې دِې یو تن نه مرګ رانشي مګر په داسې حال کښې چه هغه په الله باندې ښائسته ګمان کوي ځکه چه یو قوم په الله باندې بد ګمان کولو هلاك کړل، الله تعالیٰ د هغوی په باره کښې فرمایلي : ﴿ وَذٰلِكُمْ ظَنُّكُمْ ﴾ (مسلم في الجنة حدیث ٨٢،٨١)

او قبیح (ناکاره) ګمان دا دې چه بنده دا ګمان وکړي چه الله تعالیٰ بعض کارونو باندې نهٔ پو هیږي، او هغه باندې بعض خبرې پټې پاتې کیږي.

قتادة وائي : یو هلاکونکې ګمان دې او بل نجات ورکونکې، ښه ګمان په الله او په قیامت باندې نجات ورکونکې دې ﴿ إِنِّيْ ظَنَنْتُ أَنِّيْ مُلٰقٍ حِسَابِيَهْ ﴾ او هلاکونکې ګمان پدې آیت کښې ذکر دې.

فَإِنْ يَّصْبِرُوْا : یعني نن که جهنمیان د صبر مظاهره کوي، نو ددې نه سیوئ بله چاره نشته، ځکه اُوس خو بس جهنم د دوئ د همیشه وسیدو ځای دې، اوکه غواړي چه الله تعالیٰ د دوئ نه راضي شي، او جنت ته داخل کړې شي، نو د دوئ دا آرزو به هیڅ کله پوره نشي، یعني نهٔ به جهنم نه اُوخکلې کیږي او نهٔ به د دوئ نه عذاب سپکیږي.

الْمُعْتَبِيْنَ : د عتاب نه دې ملامتیا ته وائي. یعني دوی به د الله تعالیٰ ملامتیا د خپل ځان نه نشي زائله کولې پدې طریقه چه الله راضي کړي. ١- نو معنیٰ دا ده که دوی د الله ملامتیا د ځان نه زائله کوي نو دوی نه به د الله تعالیٰ ملامتیا نشي زائله کیدې نو ددې حاصل معنیٰ د رضا هم ده. ٢- یعني که دوی طلب د رضا د الله کوي نو دوی نه به الله نشي راضي کیدې. ٣- یا د عُتبیٰ نه دې په معنیٰ د رجوع سره. یعني که دوی طلب د واپسئ کوي نو نهٔ به وي دوی د هغه کسانو نه چه واپس کړې شي.

٤- که چرې عفوه غواړي نو نهٔ دي دوی د هغه چا نه چه عفوه ورته وکړې شي.

| وَقَيَّضْنَا لَهُمْ قُرَنَاءَ فَزَيَّنُوْا لَهُمْ |
| --- |
| او مقرر کړيدي مونږ د دوی دپاره ملګري (شیطانان) نو ښائسته کړي ئې دي دوی ته |
| مَّا بَيْنَ أَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ |
| هغه خواهشات چه مخکښې د دوی نه دي او هغه چه روستو د دوی نه دي |

وَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ فِيْ أُمَمٍ قَدْ خَلَتْ

او ثابته شویده په دوی باندے وینا د عذاب، داخلیږی به په هغه ډلو کښې چه تیر

مِنْ قَبْلِهِمْ مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ إِنَّهُمْ كَانُوْا خَاسِرِيْنَ ﴿٢٥﴾

شویدی مخکښې د دوی نه د پیریانو او د انسانانو نه یقیناً هغوی تاوانیان وو۔

**تفسیر** : پدے آیت کښې د دوی د گمراهئ او د کفر او شرك او د قرآن نه د انکار سبب بیانوی، چه دوی د قرآن نه چا اړولی نو هغه شیطانان دی چه دوی سره ترلے شویدی۔ او دا آیت د سورة مریم (۸۳) آیت ﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّا أَرْسَلْنَا الشَّيَاطِيْنَ عَلَى الْكَافِرِيْنَ تَؤُزُّهُمْ أَزًّا﴾ په شان دے۔ او مطلب دا دے چه کله د کافرانو او مشرکانو په باطل باندے ټینګیدل، او د دوئ د نفسونو خباثت د حد نه زیات شی، نو الله تعالیٰ څهٔ خبیث شیطانان د دوئ سره لګوی، چه هغه د دوئ دوستان جوړیږی، لکه الله فرمائی : ﴿وَمَنْ يَّعْشُ عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمٰنِ نُقَيِّضْ لَهٗ شَيْطَانًا فَهُوَ لَهٗ قَرِيْنٌ﴾ (الزخرف : ٣٦) (څوك چه ړوند شی د یاداشت د رحمٰن نه، مقرر به کړو مونږ هغه لره شیطان نو هغه به ددهٔ سره پیوسته وی)۔

قَيَّضْنَا : تقییض مسلط کولو (مقرر کولو) او پیوست کولو او آسانولو او تیارولو ته وئیلے شی۔ او قیض په اصل کښې د پیاز یا د اګدے پوستکی ته وائی چه په اندِه باندے راتاؤ وی۔

فَزَيَّنُوْا لَهُمْ مَّا بَيْنَ أَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ : د مَابَيْنَ اَيْدِيْهِمْ نه مراد دنیا ده، او مَا خَلْفَهُمْ نه مراد انکار د آخرت دے۔ یعنی شیطانانو د دوی په نظرونو کښې د دنیا کارونه او د هغے شهوات ښائسته کړیدی، او ددے په وجه ئے په ګناهونو کښې ورننویستی دی، او دوی ته ئے د آخرت کارونه ښائسته کړیدی نو دوی د بعث او حساب او جنت او جهنم نه انکار کړیدے۔ ۲- زجاج وائی : ما بین ایدیهم : مَا عَمِلُوْهُ، وَمَا خَلْفَهُمْ : مَا عَزَمُوْا عَلٰى اَنْ يَّعْمَلُوْهُ ۔ کوم عملونه چه دوی مخکښې کړیدی۔ او وما خلفهم هغه عملونه چه دوی ئے اراده کړیده چه کوی به ئے۔ (فتح البیان)

۳- مَّا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ نه مراد : اَلشَّهَوَاتُ الْحَاضِرَةُ ۔ حاضر شهوتونه او ګناهونه دی۔ او مَّا خَلْفَهُمْ نه مراد : (اَلْاَمَانِي الَّتِيْ لَايُدْرِكُوْنَهَا) هغه آرزوګانے او ارمانونه چه دوی ورته نشی رسیدلے چه لس کاله بعد به دا کوو، او شل کاله بعد به دا کوو۔ لکه دا د

شیطان طریقه ده۔
وَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ: یعنی هر کله چه د دوئ دا حال شی نو د دوئ دپاره آبدی شقاوت او بدبختی ولیکلے شی، او د الله تعالیٰ دا فیصله په دوی باندے ثابته شی چه ﴿لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكَ وَمِمَّنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ اَجْمَعِيْنَ﴾ (ص: ۸۵) ځکه چه دا ضدیان کافران دی۔ او اَلْقَوْلُ نه مراد فیصله د عذاب ده۔
فِيْ اُمَمٍ: ۱- اَیْ يَدْخُلُوْنَ فِيْ اُمَمٍ: دوی به داخلیږی۔ ۲- یا کَائِنِيْنَ۔ دوی به وی په هغه ډلو کښ چه د دوی نه مخکښ د پیریانو او انسانانو نه په کفر باندے تیر شوی وو۔
یا معنیٰ دا ده: د دوئ نمونه به د هغه تیر شوو پیریانو او انسانانو سره ولیکلے شی چه هغوئ خپل انبیاء دروغژن ګنړلی وو، خپله ګمراه شوی وو، او نورئے هم ګمراه کړی وو، او بیا د دنیا او آخرت تاوان د دوئ برخه جوړیږی۔
۳- یا فِيْ په معنیٰ د مَعَ سره دے۔ لیکن اول او دویم قول غوره دے۔
اِنَّهُمْ كَانُوْا خَاسِرِيْنَ: دا علت دے د عذاب د مستحق کیدو۔ یعنی دوی ته دا عذاب پدے وجه ورکړے شو چه دوی تاوان کړے وو، چه بهترین ایمان ئے پریخودو او کفرئے واخستو۔

| وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَا تَسْمَعُوْا لِهٰذَا الْقُرْآنِ وَالْغَوْا |
| --- |
| او وائی هغه کسان چه کفرئے کړیدے غوږ مۀ ایږدئ دے قرآن ته او شور کوئ |
| فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُوْنَ ﴿۲۶﴾ فَلَنُذِيْقَنَّ الَّذِيْنَ |
| پدے کښ دے دپاره چه تاسو غالبه شئ۔ نو خامخا وُبه څکوو هغه کسانو ته |
| كَفَرُوْا عَذَابًا شَدِيْدًا وَّلَنَجْزِيَنَّهُمْ اَسْوَاَ الَّذِيْ |
| چه کفرئے کړیدے عذاب سخت او خامخا بدله به ورکړو دوی ته بده سزا د هغه |
| كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۲۷﴾ ذٰلِكَ جَزَآءُ اَعْدَآءِ اللّٰهِ النَّارُ لَهُمْ فِيْهَا دَارُ |
| عملونو چه دوی کول۔ دا سزا د دشمنانو د الله اُور دے، دوی لره پدے کښ کور د |
| الْخُلْدِ جَزَآءً بِمَا كَانُوْا بِآيَاتِنَا يَجْحَدُوْنَ ﴿۲۸﴾ |

همیشوالی دے بدله ده په سبب د هغې چه وو دوی چه زمونږ د آیتونو نه ئے انکار کولو۔

**تفسیر :** شان نزول

ابن ابی حاتمؒ د ابن عباس ﷺ نه روایت کړے چه نبی کریم ﷺ به په مکه مکرمه کښې په اُوچت آواز سره قرآن لوستلو، نو مشرکانو به آوریدونکی د دغه ځای نه شړل او وئیل به ئے چه ((تاسو دا قرآن مه آورئ، او نورے بیهوده خبرے کوئ، دے دپاره چه آوریدونکی ددے نه منع کړے شئ)) او کله به ئے چه په مزه آواز سره لوستلو نو کومو خلقو چه به قرآن آوریدل غوښتل نو هغوئ به نهٔ آوریدلو، نو د سورتِ اسراء (۱۱۰) آیت ﴿وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا﴾ نازل شو، یعنی (مهٔ تهٔ خپل مونځ په ډیر اوچت آواز سره کوه، اومهٔ بیخی پټ)۔

نو الله تعالیٰ د مکے مشرکانو ته په دے عنادی کار باندے زجر او رټنه ورکوی، او دوی ته عذاب بیانوی۔ او دا خلك ئے د الله تعالیٰ دشمنان گرځولی دی۔

مناسبت او ربط

هر کله چه شیطانانو دوی ته شرکیات ښائسته ښکاره کړیدی، او قرآن کریم خو په شرك باندے ښکاره رد کوی، نو پدے وجه سره مشرکان په غصه شو او خلك ئے د قرآن نه منع کول شروع کړل۔

كَفَرُوْا : دا صفت ئے پدے وجه ذکر کړو چه معلومه شی چه د قرآن آوریدو نه منع کونکے کافر دے که په هره زمانه کښې وی، پدے وجه حافظ ابو الفداء عماد الدین ابن کثیرؒ لیکلی دی چه پدے آیت کښې هر هغه څوك داخل دے چه د دوی په مسلك (طریقه) باندے تلل کوی په وخت د آوریدو د قرآن کښې۔

لَا تَسْمَعُوْا : ۱- یعنی مشرکانو به یو بل ته وئیل چه غوږ مهٔ ږدئ دے قرآن ته۔

۲- یا معنیٰ ده : (لَاتُطِيْعُوْا) تابعداری مهٔ کوئ ددے قرآن۔ او دا مهٔ قبلوئ۔

والغوا فیه : یعنی شور کوئ پدے کښې۔ ۱- مجاهدؒ ددے تفسیر دا بیان کړے چه شپے تږقے کوئ، لاسونه پړقوئ، او اخوا دیخوا خبرے کوئ دے دپاره چه د محمد (ﷺ) قرآت بے معنیٰ جوړ شی۔ ۲- یا خبرے ډیرے کړئ دے دپاره چه دهٔ باندے خپله وینا گډه وده شی۔ (ضحاكؒ) ۳- قَعُوْا فِيْهِ وَعَيِّبُوْهُ) ددے بدی او عیب بیان کړئ۔ (ابو العالیةؒ)

٤- عَارِضُوْهُ بِاللَّغْوِ وَالْبَاطِلِ) مقابله وکړئ د قرآن په لغو او باطل سره۔
معلومه شوه چه د قرآن په مقابله کښې چه څوك باطل دليلونه وائي، او بيهوده خبرے کوي، يا داسے اعمال کوي چه د قرآن د آوريدو نه خلق منع کوي، هغه ايمان والا نۀ دے۔
د ﴿ لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُوْنَ ﴾ (دے دپاره چه تاسو غالبه شئ)
معنیٰ دا ده چه په دے طريقه به ستاسو آوازونه د محمد په آواز باندے غالبه راشي، او هغه به د قرآن لوستلو نه منع شي۔
دا د دوی انتهائي ضعيفه حربه وه، پدے سره د قرآن دعوت دوی نۀ شو ختمولے، او نۀ ئے مقابله کولے شوه۔ ددے وجه نه الله تعالیٰ د دوی په خلاف ايمان والو ته حکم وکړو، وے فرمايل: ﴿ وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴾ (اعراف: ٢٠٤)
کله چه قرآن لوستلے کيږي نو تاسو ورته غوږ کيږدئ او چپ شئ دے دپاره چه په تاسو رحم وکړے شي۔ د هغوی د الفاظو مطابق الفاظ ووئيل شو۔ (لَا تَسْمَعُوْا) په مقابل کښې (فَاسْتَمِعُوْا)، د (وَالْغَوْا) مقابل کښې (وَاَنْصِتُوْا) او د (لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُوْنَ) مقابل کښې ﴿ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴾ راغے۔ دا هم دليل دے چه په دغه آيت کښې مقصد د سورة الفاتحے لوستل په مانځه کښې رد کول نۀ دي بلکه ددے نه مراد عام قراء ت آوريدل دي۔ لکه تفصيل ئے په سورة الاعراف کښې ذکر شوے۔ (ابن کثيرؒ)
فَلَنُذِيْقَنَّ: الله تعالیٰ د مشرکانو په دے نازيبا او بيهوده کارونو باندے رد کړے او فرمايلي ئے دي چه مونږ به دے کافرانو له سخت عذاب ورکړو، او د قيامت په ورځ به دوئ له د دوئ د کړو بدترينه بدله ورکړو۔ په دے ورځ به د الله تعالیٰ د دشمنانو بدله د جهنم اُور وي، چه په دے کښې به دوئ هميشه سوزي، په سبب ددے چه دوئ په دنيا کښې د الله تعالیٰ د کتاب نه انکار کولو۔
ذٰلِكَ: دا اشاره ده عذاب شديد ته۔ النار: دا بيان د عذاب شديد دے کوم ته چه اشاره په ذٰلِكَ سره شوے ده۔ يا خبر د مبتداء محذوف دے يعنی هِيَ النَّارُ۔ دغه جزاء اُور دے۔
لَهُمْ فِيْهَا دَارُ الْخُلْدِ: سوال: اُور پخپله دار الخلد (د هميشوالی کور) دے، نو د (فِيْهَا) راوړو څه معنیٰ ده؟ جواب دا دے چه په فِيْ کلمه راوړو کښې معنیٰ د اِنغماس (دوبيدو، غوپه کيدو) ده، يعنی دوی باندے به اُور د هر جانب نه احاطه کړی وي، او دوی به پکښې غوپه وهي او دا سخت عذاب ته اشاره ده۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا رَبَّنَا اَرِنَا

او وبه وائی هغه کسان چه کفر ئے کړیدے اے ربه زمونږ اُوښایه مونږ ته

الَّذَيْنِ اَضَلّٰنَا مِنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ نَجْعَلْهُمَا

هغه دوه طبقے چه گمراه کړی ئے یو مونږ د پیریانو او د انسانانو نه چه اُوکرځوو دواړه

تَحْتَ اَقْدَامِنَا لِيَكُوْنَا مِنَ الْاَسْفَلِيْنَ ﴿۲۹﴾ اِنَّ

لاندے د قدمونو زمونږ نه دے دپاره چه شی دواړه د لاندو (ذلیلانو) نه۔ یقیناً

الَّذِيْنَ قَالُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوْا

هغه کسان چه وئیلی ئے دی رب زمونږ الله دے بیا کلك شویدی (پدے باندے)

تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةُ اَلَّا تَخَافُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَاَبْشِرُوْا

نازلیږی به په دوی باندے ملائك چه مهٔ یریږئ او مهٔ خفه کیږئ او خوشحاله شئ

بِالْجَنَّةِ الَّتِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ ﴿۳۰﴾ نَحْنُ اَوْلِيٰٓؤُكُمْ فِي الْحَيٰوةِ

په جنت هغه چه تاسو سره ئے وعده کیدے شوه۔ مونږ ملګری یو ستاسو په ژوند

الدُّنْيَا وَفِي الْاٰخِرَةِ وَلَكُمْ فِيْهَا مَا تَشْتَهِيْٓ

دنیوی کښ، او په آخرت کښ او تاسو لره پدے کښ هغه شے دے چه خوښوی ئے

اَنْفُسُكُمْ وَلَكُمْ فِيْهَا مَا تَدَّعُوْنَ ﴿۳۱﴾

نفسونه ستاسو او تاسو لره پدے کښ هغه څه دی چه تاسو ئے غواړئ۔(روح

نُزُلًا مِّنْ غَفُوْرٍ رَّحِيْمٍ ﴿۳۲﴾

ستاسو) میلمستیا ده د طرف د بخونکی رحم کونکی ذات نه۔

**تفسیر :** جهنمیان چه کله په اُور کښ سوزی، او څهٔ ترے جوړ نشی، نو د خپل غم او غصے اظهار به د هغه اِنسی او جِنی شیطانانو په خلاف وکړی، چه په دنیا کښ هغوئ کفر او ګناهونه د دوئ په نظرونو کښ ډولی کولو سره پیش کول، وائی به چه اے زمونږه ربه ! کوم اِنسی او جِنی شیطانانو چه مونږ په دنیا کښ بے لارے کړی یو، لږ

هغوئ زمونږ مخامخ کړه، دے دپاره چه مونږ په هغوئ باندے په خپو وګرځو، او دوئ د جهنم آخری کندے ته اُورسوو، دے دپاره چه مونږه دوئ لره د خپل ځان نه په بدترین حال کښ اُووینو او خپل زړهٔ پرے یَخ کړو.

یا دوی د خپل ځان نه لاندے کړو چه ددے په وجه زمونږ نه د اُور څه ګرمائش کم شی.

مِنَ الْأَسْفَلِيْنَ: ۱- فِيْهَا مَكَانًا. یعنی په هغے کښ د خکته ځای والا نه شی. (زجاج)

۲- أَوْ لِيَكُوْنَا مِنَ الْأَذَلِّيْنَ الْمُهَانِيْنَ. یا شی دوی د ذلیلانو سپکو خلقو نه.

إِنَّ الَّذِيْنَ قَالُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ: قرآن کریم د خپلے معلومے طریقے مطابق د کافرانو د حال بیانولو نه پس، اُوس د مومنانو حال بیانوی. الله تعالیٰ وفرمایل چه کوم خلق یو الله مَنی، د باطلو معبودانو نفی کوی، او صرف د هغهٔ عبادت کوی، د دوئ خواته به په دنیا کښ، یا د مرګ په وخت، یا د دوباره ژوندی کیدو په وخت ملائك راځی، او دوئ له به اطمینان ورکوی چه کوم ژوند اُوس راتلونکے دے، د هغے په باره کښ تاسو خاطر جَمع اُوسیږئ، او کوم خلق چه تاسو په دنیا کښ پریښی دی او راغلی یئ، د هغوئ فکر هم مهٔ کوئ، د هغوئ حفاظت به مونږه کوو، او په دنیا کښ چه تاسو سره د جنت کومه وعده شوے وه، د هغے په موندلو سره اُوس خوشحاله شئ.

إِنَّ الَّذِيْنَ: دا زیرے صحابه کرامو او د اُمت صحیح مؤمنانو ته دے.

رَبُّنَا اللّٰهُ: کافران هم د الله د ربوبیت قائل دی، نو بیا د دوئ او د مؤمنانو د اقرار څهٔ مطلب شو؟ جواب دا دے چه دلته رب په معنیٰ د معبود سره دے، لکه روستو نه معلومیږی. یعنی یواځے د الله بندګی کوی.

ثُمَّ اسْتَقَامُوْا: استقامت په لغت کښ برابریدو ته وئیلے شی، او په اصطلاح د شریعت کښ استقامت عمل ته وائی. یعنی بیائے نیك عمل وکړو. او دا نیك عمل به تر کوم وخت پورے وی؟ نو دا به تر مرګه پورے وی. لکه ددے تفصیل په سورة هود کښ وکوره.

استقامت د قرآن نه هم معلومیږی چه عمل ته وائی، او د صحابه کرامو په آثارو کښ هم موجود دے. سورة الاحقاف آیت (۳۰) کښ دی ﴿جَزَاءً بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾ اول ئے استقامت ذکر کړیدے بیائے وئیلی دی چه دوی ته د دوی د عمل د وجه نه بدله ورکولے شی.

د ابوبکر صدیق ﷛ نه نقل دی چه د الله بندګی ئے شروع کړه (فَلَمْ يَلْتَفِتُوْا إِلَى إِلٰهٍ غَيْرِهٖ)

او د الله نه علاوه بل چا ته ئې توجه ونکړه۔ یعنی یواځې د الله بندګي کوي۔
سیدنا عمر فاروق ﷛ فرمائي : (اَنْ تَسْتَقِيْمَ عَلَى الْاَمْرِ وَالنَّهْيِ وَلَا تَرُوْغَ رَوْغَانَ الثَّعَالِبِ) یعنی د الله په امر او نهی باندې مضبوط ودریدل او د هغې نه د ګیدړانو په شان اخوا دیخوا نهٔ اوړیدل۔
سیدنا عثمان ﷛ فرمائي : (اَخْلَصُوْا فِي الْعَمَلِ) چه د الله دپاره ئې یواځې بندګي وکړه۔
سیدنا علي ﷛ فرمائي : (اَدُّوا الْفَرَائِضَ) یعنی فرائض ئې د الله دپاره ادا کړل۔
نو د ټولو خلفاء راشدینو په نیز استقامت عمل ته وائي، نو د اِسْتَقَامُوْا معنیٰ ده : چه الله ته برابر ودریدل، او الله ته برابر ودریدل دې ته وائي چه د هغهٔ په حکمونو عمل کوي، او د الله تعالیٰ د حکمونو نه اخوا دیخوا نهٔ اوړي، ظاهري او باطني ټول اعمال د الله دپاره ادا کوي۔ خو دې کښې ورسره دا مراد ده چه دا عملونه به تر مرګه پورې کوي، یعنی پدې عملونو به همیشوالې کوي۔ نو د استقامت په معنیٰ کښې برابر عمل کول چه افراط او تفریط پکښې نهٔ وي، او همیشه کول دواړه مراد دي۔ او دا د قرآن کمال دې چه د (اِسْتَقَامُوْا) لفظ ئې راوړو۔
او دارنګه اَقَامُوْا ئې ونهٔ ویل بلکه سین او تاء ئې پکښې زیات کړل، اشاره ده چه دوی د الله تعالیٰ نه همیشه په دین باندې پوخ والې طلب کوي۔
تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةُ : وکیعؒ او زید بن اسلمؒ وائي : دا زیرې به په درې ځایونو کښې ورکوي، یو په وخت د مرګ کښې، او په قبر کښې، او کله چه د قبرونو نه راپورته کولې شي۔ ابن کثیرؒ وائي: دا غوره قول دې۔
بیضاويؒ وائي : او په دنیا کښې به هم زیرې ورکوي کله چه دوی باندې کوم حالات راځي، نو د دوی سینه ورته کولاووي او د دوی نه به خوف او حزن دفع کوي۔
۲- د ﴿ اَلَّا تَخَافُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا ﴾ دویم تفسیر دا بیان شوې چه تاسو د اسرافیل ؑ د شپیلۍ او د قیامت د ګهبراهټ فکر مهٔ کوئ۔ یعنی تاسو ته به په دې وخت کښې هیڅ ګهبراهټ نهٔ رسیږي۔ د سورتِ انبیاء په (۱۰۳) آیت کښې راغلي دي :
﴿ لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْاَكْبَرُ وَتَتَلَقّٰهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ ﴾ (دوئ لره به لوئې ګهبراهټ غمژن کوي نهٔ، او ملائك به دوئ سره مخامخ کیږي)۔
۳- مهٔ یریږئ د مرګ نه او مهٔ غمجن کیږئ په خپل اولاد څکه چه الله تعالیٰ د هغوی نګهبان او حفاظت کونکې دې۔ (مجاهدؒ)

٤- عطاء وئیلی دی چه مه یریږئ د ثواب د رد کیدو نه ځکه چه زهٔ یې قبلوم او مهٔ غمجن کیږئ په ګناهونو ځکه چه زهٔ یې درته معاف کوم.
مګر ظاهر دا ده چه ددې خوف او حزن د نفی کیدو هیڅ مقرر وخت او خاص حالت نشته. بلکه خوف د راتلونکی څیز نه یریدل دی، او حزن په تیره شوې زمانه کښې د یو څیز په فوت کیدو باندې وی.
وَأَبْشِرُوا: د روح د وتو په وخت کښې مؤمن ته تکلیف هم وی، لیکن زړه یې خوشحاله وی، ځکه چه مشقت د سفر د لوازماتو نه دې، خو زړه ورسره خوشحاله وی لکه یو تن یو ملك ته سفر کوی نو تکلیف هم پکښې وی، لیکن انسان پکښې خوشحاله وی، یا لکه یو تن د سفر نه بیرته خپل کلی ته واپس کیږی، نو په لاره کښې ورته ډیر تکلیف هم راځی، ستړی والې او مزلونه به هم وی لیکن زړه یې خوشحاله وی ځکه چه خپلې ښځې او بچو له روان دې. دغسې مؤمن ته تکلیف هم وی لیکن پدې تکلیف کښې خوشحاله وی ځکه چه مزو له روان دې.
نَحْنُ أَوْلِيَاؤُكُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا: ملائك به دوئ ته دا هم وائی چه مونږ په دنیا او آخرت دواړو ځایونو کښې تاسو سره محبت کونکی یو، ځکه چه زمونږ او ستاسو ترمینځ شریك شې د الله تعالیٰ طاعت او بندګی ده، لکه څنګه چه شیطانان د کافرانو سره محبت لری، ځکه چه د دوئ ترمینځه قدرِ مشترك (شریك شې) د الله تعالیٰ نافرمانی او د رحمت نه لرې والې دې.
یا د ملائکو دوستانه په دنیا کښې دا ده چه د مؤمنانو حفاظت کوی، هغوی ته د خیر الهامونه کوی، او دوی له استغفار غواړی.
ابن کثیرؒ وائی: ملائك به مومنانو ته د ساه وتلو په وخت وائی چه مونږ په دنیا کښې تاسو سره وو، ستاسو رهنمائی به مو کوله، د خیر توفیق به مو در کولو، او د الله په حکم سره به مو ستاسو حفاظت کولو. او د قیامت په ورځ به هم مونږ تاسو سره یو. قبرونو کښې او د اسرافیل عليه السلام د شپیلئ په وخت به ستاسو مونِس (ملګری) یو،
قبرونو نه د پورته کیدو په وخت به تاسو ته اطمینان درکوو، او مونږ به تاسو په پُلِ صراط باندې پورې ایستلو سره تاسو جنت ته رسوو. نو مؤمن به پدې زیری او تسلئ باندې څو مره خوشحاله وی.
وَفِي الْآخِرَةِ: په آخرت کښې د ملائکو ملګرتیا دا ده چه دوی ته به زیری ورکوی چه

(لَمْ تَرَاغُوْا) تاسو مهٔ یربږئ۔ او بل په شفاعت سره چه د مؤمنانو سفارش به کوی، او بیا په جنت کښ به خدمت کوی، سلامونه به راوړی او نور نعمتونه به راوړی۔

وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَشْتَهِیۡۤ اَنۡفُسُكُمْ: د دواړو جملو فرق دا دے چه اول هغه خواهشات دی چه بدنونه ئے غواړی، او مَا تَدَّعُوْنَ هغه روحانی نعمتونه دی، خوشبوئیانے او خوشحالیانے او عزتونه دی۔

۲- اول نه مراد هغه خواهشات دی چه د دوی ورته ضرورت وی، او د دوی نفسونه ئے غواړی، او مَا تَدَّعُوْنَ نه مراد هغه نعمتونه دی چه دوی ئے طلب کوی، برابره ده چه د دوی نفسونه ورته ضرورت لری او که نه۔

۳- یا د اول نه مراد هغه نعمتونه دی چه نفسونه ئے غواړی، او دویم نه مراد عام دے چه د هغے طلب کوی په قول یره یا په تمنا د زړه سره وی۔ او پدے کښ اشاره ده چه د خولے په طلب او د زړه په تمنا او د نفس په اشتهاء باندے په جنت کښ پابندی نشته ځکه چه دوی په دنیا کښ د غلطو خواهشاتو نه ځان ساتلے وو۔

نزلا من غفور رحیم: دا تمام نعمتونه به ستاسو د بخښونکی مهربان رب د طرفه ستاسو د میلمستیا دپاره وی۔

او غفور کښ اشاره ده چه مؤمنان به ګناهګار هم وی لیکن الله غفور ذات دے، ګناهونه ئے هم ورله معاف کړل۔

نزلا: حال دے د لفظ د مَا نه، یعنی په داسے حال کښ چه دا میلمستیا ده۔ ۲- یا تقدیر داسے دے: مَا اَعۡطَاهُمُ اللّٰهُ كَانَ نُزُلًا۔ دا څه چه الله تعالیٰ دوی ته ورکوی دا به میلمستیا وی۔ (تفسیر مقاتل) ۳- اَنۡزَلۡنَا نُزُلًا۔ مونږ نازل کړیدی دا نعمتونه میلمستیا۔

٤- یا د پټ (اَعۡدَدۡتُ) دپاره مفعول به دے۔ یعنی ما تیاره کړیده میلمستیا۔

٥- یا نزل جمع د نازل ده لکه صُبُر جمع د صَابِر ده۔ نو دا بیا حال دے د تَدَّعُوْنَ د (واو فاعل) نه۔ یعنی چه تاسو ئے راغواړئ په داسے حال چه تاسو به میلمانهٔ یئ د طرف د غفور رحیم نه۔ یا مِنۡ غَفُوۡرٍ متعلق دے د تَدَّعُوْنَ پورے۔ یعنی چه تاسو ئے غواړئ د غفور رحیم نه۔ (التبیان فی اعراب القرآن)

| وَمَنۡ اَحۡسَنُ قَوۡلًا مِّمَّنۡ دَعَاۤ اِلَى اللّٰهِ |
| --- |
| او څوک دے ډیر ښائسته خبرے والا د هغه چا نه چه دعوت ورکوی الله طرف ته |

﴿وَعَمِلَ صَالِحًا وَّقَالَ إِنَّنِي مِنَ الْمُسْلِمِينَ ﴿٣٣﴾﴾

او عمل کوي نیك، او وائي یقیناً زهٔ د تابعدارو نه یم.

**تفسیر:** ربط او مناسبت

١ - مشرکان وائي ﴿لَا تَسْمَعُوا لِهٰذَا الْقُرْآنِ﴾ دے قرآن ته غوږ مهٔ ږدئ نو الله فرمائي چه تاسو دغه الله او دے قرآن ته دعوت ورکړئ. د هغوی برعکس کار وکړئ.

٢ - بل مناسبت دا هم دے چه مخکښې بیان د کاملینو وو چه استقامت والا وو، نو اُوس د مُکمّلینو حال بیانوی چه په دعوت سره د بل د کمال کوشش کوی.

٣ - مخکښې د قریشو د کافرانو کفر او عناد، د قرآن کریم نه د هغوئ اعراض، او په اسلامی دعوت کښې د هغوئ خنډونه وړدرول بیان شو، نو اوس نبی کریم ﷺ ته نصیحت کیږي چه تهٔ د قرآن کریم د تلاوت کولو په وخت د مشرکانو د شرارتونو پرواه مهٔ کوه، او پوره پابندئ سره د توحید دعوت خلقو ته ورکوه.

او پدے آیت کښې د دعوت الی الله فضائل او د دعوت آداب ذکر دي.

رسول الله ﷺ به قرآن بیانولو، خلکو به ترے اعراض کولو نو الله تعالیٰ ورته پدے آیتونو کښې ادب ورکوی.

**مِّمَّنْ دَعَا إِلَى اللّٰهِ:** دے کښې د دعوت اول ادب دا دے چه دعوت به صرف او صرف الله ته ورکولے شي. نهٔ تنظیم او پارټۍ، نهٔ یو شخص ته.

بیا الله تعالیٰ ته د دعوت ډیر صورتونه دي: (١) د الله محبت ته، د هغهٔ عبادت ته، د هغهٔ دین ته، د الله کتاب ته، د رسول الله ﷺ طریقو او د هغے اطاعت ته، دا هم الله ته دعوت دے څکه چه پدے باندے الله امر کړیدے او هغه پرے خوشحالیږي.

او الی الله کښې اشاره ده چه په دعوت کښې به خیر خواهي کوے، خلکو ته به خان نهٔ ښکاره کوے چه ما ویږنئ؛ بلکه الله ویږنئ، د هغهٔ بندګي شروع کړئ.

**وَعَمِلَ صَالِحًا:** ورسره خپله نیك عمل هم کوي. انسان چه خپله نیك عمله نهٔ وي، نو بیا ئے دعوت کښې اثر نهٔ وي او خلك هم پرے اعتراض کوي.

**وَّقَالَ إِنَّنِي مِنَ الْمُسْلِمِينَ:** یعنی اظهار د خپلے عقیدے کوي دے دپاره چه څوك پرے بد ګماني ونکړي چه دا سړے به څهٔ ته دعوت ورکوي، او دا اظهار په بعض اوقاتو کښې ضروري وي. یا کله چه پرے څوك اعتراض وکړي چه تهٔ څوك ئے؟ نو هغه ورته ووائي

چه زهٔ یو مسلمان یم د عامو مسلمانانو نه. او دائے پدیے وجه د دعوت نه روستو ذکر کړو چه دا په وخت د ضرورت کښې وئیلے کیږی.

یا دا قول په طریقه د فخر او خوشحالئ سره دے، یعنی په پوره فخر او عزتمندئ سره وائی چه زهٔ مسلمان یم، په اسلام باندے فخر کوی، او دا ورته د زړهٔ نه خوښ وی.

وَقَالَ إِنَّنِيْ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ: کشاف کښې ئے لیکلی دی چه ددے مطلب دا دے (جَعَلَ الْإِسْلَامَ مَذْهَبَهُ وَمُعْتَقَدَهُ) یعنی اسلام نه خپل مذهب او عقیده جوړه کړی او صرف په همدے روان وی، په نورو لارو نهٔ وی روان، نو دا ښه سړے دے.

**فائده** : دا صفتونه په رسول الله ﷺ کښې په اعلیٰ درجه کښې موجود وو، دے وجے نه د رسول الله ﷺ خبره د ټولو نه زیاته ښه خبره وه، او هغه د ټولو نه زیات الله تعالیٰ طرفته ښهٔ دعوت ورکونکے وو، او هغهٔ ته الله تعالیٰ مشوره ورکړه چه هغه دے د مشرکانو د خبرو پراه نهٔ کوی او د خپل مِشن (کار) په مخکښې بوتللو کښې دِے مشغوله اوسیږی.

مفسرین لیکی چه ددے آیت مصداق د ټولو نه مخکښې انبیاء کرام دی چه دوی په معجزاتو، دلائلو او توره باندے دعوت ورکوی، بیا علماء دی چه دوی صرف په دلائلو دعوت ورکوی،

بیا علماء په دریے قسمه دی، په الله باندے عالِمان (یعنی د هغهٔ توحید پیژندونکی) دویم د الله په صفاتو علماء، او دریم د الله په احکامو او شریعتونو علماء دی، بیا مجاهدین چه د کفارو سره جهاد کوی دے دپاره چه هغوی د الله تعالیٰ په دین او د هغهٔ په طاعت کښې داخل شی، بیا اذان کونکی چه دوی هم الله تعالیٰ او د هغهٔ طاعت ته دعوت ورکوی، او بیا د خالص توحید او د قرآن او سنت دعوت ورکونکې.

عائشه رضی الله عنها فرمائی : اذان کونکے الله تعالیٰ ته دعوت ورکونکے دے او عمل صالح دا دے چه د اذان او اقامت ترمینځ دوه رکعاته کوی. (فتح البیان)

| وَلَا تَسْتَوِي الْحَسَنَةُ وَلَا السَّيِّئَةُ ادْفَعْ بِالَّتِيْ هِيَ أَحْسَنُ |
| --- |
| او نهٔ ده برابره نیکی او نهٔ بدی، دفعه کړه (بدئ لره) په هغه اخلاقو چه ښائسته دی |
| فَإِذَا الَّذِيْ بَيْنَكَ وَبَيْنَهُ عَدَاوَةٌ كَأَنَّهُ |
| نو دغه وخت هغه څوک چه په مینځ ستا او په مینځ د هغهٔ کښې دشمنی وی ګویا که |

| وَلِيٌّ حَمِيمٌ ﴿٣٤﴾ وَمَا يُلَقَّاهَا إِلَّا الَّذِينَ |
|---|
| دے دوست کرم (مخلص) دے۔ او نۀ ورکړے کیږی دا خوئی مګر هغه کسانو ته چه |
| صَبَرُوا وَمَا يُلَقَّاهَا إِلَّا ذُو حَظٍّ عَظِيمٍ ﴿٣٥﴾ وَإِمَّا يَنزَغَنَّكَ |
| صبر ئے کړیدے او نۀ ورکړے کیږی دا مګر خاوند د برخے لوئی ته۔ او که چرته اُورسیږی تا |
| مِنَ الشَّيْطَانِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿٣٦﴾ |
| ته د شیطان نه څه وسوسه، نو پناهی غواړه په الله سره یقیناً هغه آوریدونکے پو هه دے۔ |

**تفسير**: پدے آیت کښ دوه آداب ذکر دی، یو ولا تستوی الخ یعنی داعی له پکار دی چه د حسنه او سیئه فرق پوره وپیژنی، دے دپاره چه په حسنه باندے امر وکړی، او د سیئه نه منع وکړی۔

د الحسنه نه مراد اَلْمُدَارَاةُ (نرمی کول) او صبر دے، او د سیئه نه مراد غِلظت (سختی) او شتم (کنځلے) دی۔ یا د حسنه نه مراد توحید او سنت او سیئه نه مراد شرك او بدعت او فسق او فجور دی۔ یا حسنه ښائسته اخلاق دی او سیئه بد اخلاق دی۔

ددے بل تعبیر داسے هم دے: نبی کریم ﷺ او هر داعی الی الله ته دا تعلیم ورکوی چه ښۀ عمل او بد عمل برابریدے نشی، ښۀ عمل انسان جنت طرفته رسوی، او د ملائکو د ملګرتیا سبب جوړیږی، او بد عمل انسان جهنم طرفته بوځی، او د شیطانانو د دوستئ ذریعه جوړیږی، پدے وجه په نیك عمل سره بد عمل دفع کړه۔

اِدْفَعْ بِالَّتِيْ: دا دویم ادب دے په طریقه د تفریع سره، او پدے کښ د حسنے ښائسته انجام بیانوی۔ او ددے مطلب دا دے: هرکله چه نیکی او بدی برابر نۀ دی نو تۀ په نیکئ سره بدی دفع کړه، یعنی که یوه بدی ستا مخے ته خنډ راشی، نو د نیکئ په ذریعه هغه د ځانه لرے کړه، د بدئ جواب په نیکئ سره، د قصور جواب په عفو او درګذر سره، د غصے جواب په صبر سره، د لغزش جواب په مخ اړولو سره او د دعوت په لاره کښ تکلیفونو برداشت کولو سره ور کړه۔ تۀ چه کله داسے وکړے نو دشمن به د دوست او لرے به د نزدے پشان شی۔

عبد الله بن عباس رضی الله عنهما فرمائی: مسلمانانو ته حکم شویدے چه د غضب

په وخت صبر وکړي، او د جهل په وخت حِلم (بردباري) وکړي، او د بدئ په وخت معافي وکړي، نو کله چه دوی دا وکړل نو الله تعالیٰ به ئے یو د شیطان نه محفوظ کړي، او بل به دوی ته د دوی دشمن عاجزي وکړي، د مخلص دوست په شان به شي۔

ابن عباس ﷛ دا هم وائي چه اَلَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ دا ده چه د هغه سره په سلام کولو ملاؤ شي، مجاهدؒ او عطاءؒ وائي: اَلَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ دا ده چه د دشمن سره کله ملاؤ شے نو سلام پرے واچوے۔ بعض وائي: د ملاقات په وخت ورسره مصافحه وکړے۔

او انس بن مالك ﷛ فرمایلي دي: یو سړے چه بل ته کنځل وکړي نو هغه ورته ووائي: که ته پدے خبره کښ رشتینے ئے نو الله دِے ما ته بخښنه وکړي او که ته دروغجن ئے نو الله دِے تا ته بخښنه وکړي۔ او دا قول قرطبيؒ د ابوبکر صدیق ﷛ نه نقل کړیدے۔

یا مطلب دا دے چه د توحید او سنت په بیان سره دفع کړه شرك او بدعت، او گناهونو لره۔ پدے کښ اشاره ده چه د مسئلے مقابله په مسئلے سره کوه، په کنځلو او جگړے کولو سره مهٔ کوه۔

ولا السیئه: کښ ئے لام دوباره راوړو، پدے کښ یو د تاکید د فرق په مینځ د حسنه او سیئه کښ لکه په سورة فاطر آیت (۲۲) کښ ﴿وَمَا يَسْتَوِى الْاَحْيَاءُ وَلَا الْاَمْوَاتُ﴾ کښ تیر شویدي۔ یا ددے وجه نه چه د حسناتو په مینځ کښ هم تفاوت دے، او د سیئاتو په مینځ کښ هم۔

اَحْسَنُ: صیغه د اسم تفضیل ده، یعني بدی به په لره نیکئ باندے نهٔ بلکه په ډیره بنائسته نیکئ سره لرے کوے۔

قاسانيؒ لیکي: کله چه تهٔ د خپل دشمن بدی په ډیرے زیاتے بهترے ذریعے سره لرے کولے شے، نو ددے نه په کمے درجے بهترئ سره هغه مهٔ لرے کوه۔ د بدئ په ذریعه د هغے لرے کول خو په هیڅ حال کښ جائز نهٔ دي، ځکه د اُور لمبے به نورے هم زیاتے شي، او تهٔ به د خپل خواهش او د شیطان تابعدار جوړ شے۔ (القاسميؒ)

ډیر کم داعیان پدے آدابو باندے عمل کوي۔

فَاِذَا الَّذِىْ: په همدغه طریقه باندے د دعوت کولو فائده ذکر کوي، او د هغے ثمره او نتیجه ده۔ ولي یعني دوست او قریب به شي۔

حَمِيْمٌ: مخلص به وګرځي۔

**سوال:** نبي کریم ﷺ خو پدے ادب باندے ضرور عمل کړیدے او ابوجهل او ابولهب

وغیره کافران ته دوستان جوړ شوی نهٔ دی؟

۱- جواب دا دے چه دا قضیه مهمله ده، په قوت د جزئیه کښې ده، یعنی دا کُلی قاعده نهٔ ده، چه د هرے نرمئ کولو سره به هر دشمن دوست جوړیږی۔ بلکه ډیر غلیظ کافر ددے سره سره بیا هم په ضد ولاړ وی۔

۲- جواب : دا په ظاهر بناء دے چه کله یو تن د بد اخلاقه انسان په مقابله کښې نیك اخلاق اختیار کړی، نو هغه څه ناڅه نرمیږی، که د هغه د قتل اراده وی، نو قتل پریدی او که د وهلو اراده ئے وی نو وهل پریدی، او که د کنځلو اراده لری نو کنځل پریدی۔ په هغه به ضرور اثر کیږی۔

۳- جواب : دلته د دشمن نه مراد هغه دشمن دے چه د جهل د وجه نه دشمنی کوی او عنادی دشمن نهٔ دے مراد لکه پدے باندے دلیل د سورة عنکبوت (٤٦) آیت دے چه ﴿وَجَادِلُهُمْ بِالَّتِيْ هِيَ أَحْسَنُ إِلَّا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْهُمْ﴾ نو پدے کښې ئے د جدال بِالْأَحْسَن نه د عنادیانو استثناء کړیده، او هرکله چه کتابیانو کښې ضدیان عنادیان زیات وو په نسبت د نورو عوامو نو په سورة عنکبوت کښې ئے په استثناء باندے تصریح وکړه، او پدے سورت کښې ئے استثناء ونکړه۔ (احسن الکلام)

وَمَا يُلَقَّاهَا: پدے آیت کښې د دغه خصلت عظمتِ شان ذکر کوی، یعنی دفاع په احسن طریقے سره د صبرناکو او جنتیانو خصلت دے۔

ذُوْ حَظٍّ عَظِيْمٍ : ددے نه مراد جنت دے، معلومه شوه چه څوك پداسے طریقے سره دعوت کوی نو دا د الله تعالیٰ په نیز د لوی برخے خاوند دے، مگر ډیر جاهلان د برخے خاوند هغه چا ته وائی چه د شرك گودے، خیرن خچن او لیونے او مجذوب وی۔

ذو حظ عظیم عالِم ته وائی لکه حدیث کښې دی : [فَمَنْ أَخَذَهُ أَخَذَ بِحَظٍّ وَافِرٍ] یعنی کوم خلك چه لوی علم والا وی، او د دعوت په باب کښې بصیرت لری، نو هغه داسے صبرونه کوی، او تکلیفونه د دشمنانو برداشت کوی۔

وَإِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطَانِ : پدے آیت کښې د دعوت بل ادب ذکر دے، کله نا کله د دعوت په وخت کښې مخالفین کنځل او رد بد وئیل شروع کړی نو شیطان انسی یا جنی تا ته وسوسه وکړی چه تهٔ هم ورته کنځل وکړه او جګړے ته ورته تیار وی نو دغه وخت اعوذ بالله وایه۔

نَزْغٌ: دا فاعل د يَنْزَغَنَّكَ دے۔ او دلته ئے مصدر فاعل گرځولے دے، پدے کښې زیات

تاکید مقصد دے۔ او نزغ په معنیٰ د نَازِغ دے۔ یعنی که وسوسه واچوی تا ته یوه وسوسه اچونکے د شیطان د طرف نه۔

په قرآن کریم کښې استعاذه بالله باندے په دوه وختونو کښې امر دے، یو د قرآن کریم د تلاوت شروع کولو په وخت کښې لکه په سورة نحل (۹۸) آیت کښې، او دویم په وخت د غضب او غصه کیدو کښې لکه په سورة الاعراف (۲۰۰) آیت کښې۔ بیا ئے په سورة الاعراف کښې ﴿ إِنَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾ نکره ویلی، او دلته ئے معرفه او ضمیر فصل راوړو۔ وجه دا ده (وَاللهُ اَعْلَم) چه پدے سورت کښې د منکرینو ډیر ضد او عناد ذکر کړے شو نو د هغے د دفع کولو دپاره ډیر تاکیدی الفاظ پکار دی، او سورتِ اعراف کښې د منکرینو ضد او عناد ئے نهٔ دے ذکر کړے نو هلته تاکید ته دومره ضرورت نهٔ وو۔

| وَمِنْ آيَاتِهِ اللَّيْلُ وَالنَّهَارُ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ لَا تَسْجُدُوا |
|---|
| او بعض د نخو د الله تعالیٰ نه شپه او ورځ او نمر او سپوږمئ دی، سجدے مهٔ کوئ |
| لِلشَّمْسِ وَلَا لِلْقَمَرِ وَاسْجُدُوا لِلَّهِ الَّذِي خَلَقَهُنَّ إِنْ |
| نمر او نهٔ سپوږمئ ته او سجدے کوئ هغه الله ته چه پیدا کړی ئے دی دا، که چرته |
| كُنْتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ ﴿۳۷﴾ فَإِنِ اسْتَكْبَرُوا فَالَّذِينَ |
| یئ تاسو د هغه عبادت کوئ۔ نو که چرته دوی خان لوئی گنړی نو هغه کسان چه |
| عِنْدَ رَبِّكَ يُسَبِّحُونَ لَهُ بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَهُمْ لَا يَسْأَمُونَ ﴿۳۸﴾ س. |
| ستا د رب سره دی تسبیح وائی هغهٔ لره د شپے او د ورځے او هغوی نهٔ ستړی کیږی۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې په توحید باندے عقلی دلیل پیش کوی۔ او اشاره ده چه داعی اگرچه غصه شی نو اعوذ بالله وئیلو نه روستو ډے دلیلونه پیش کوی۔ او پدے آیت کښې بیا د الله تعالیٰ تعارف ذکر کیږی۔

## ربط او مناسبت

۱- ابن عاشورؒ لیکی ددے آیت تعلق د ﴿ قُلْ اَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُوْنَ ﴾ آیت (۹) سره دے، او په هغے باندے عطف القصه عَلَى القصه دے۔ هلته د الله تعالیٰ د توحید دلیل وو، نو دلته بیا د هغه د اُلوهیت دلیل ذکر کیږی۔ هلته استدلال وو په ذوات د مخلوقاتو د هغهٔ

باندې، اُوس انتقال دې استدلال ته په احوالو د دغه مخلوقاتو.
۲ - دوېم ددې تعلق ددې نزدې آيتونو سره دې، يعنې د دغه الله دپاره ته سخته تيره کړه، او په هغهٔ باندې پناهي طلب کړه، ځکه چه دغه ډير لوی شان او قدرت والا دې، وګوره د هغهٔ د قدرت نخې، نو هغه ذات قادر دې چه ستا نه د شيطان وسوسه لرې کړي. نو ددې ځای نه د الله تعالیٰ هغه لوی نښې نښانې بيانوی چه هغه د الله تعالیٰ په کامل قدرت او علم او حکمت باندې دلالت کوی او انسان ته د ايمان دعوت ورکوی.
**اللَّيْلُ وَالنَّهَارُ**: شپه او ورځ مُسَبَّبات دی او نمر او سپوږمۍ ئې اسباب دی، نو پدې کښې اشاره ده چه د اسبابو او د مسبباتو پيدا کونکے هم صرف الله تعالیٰ دې.
د شپې او د ورځې ګردش او د نمر او سپوږمۍ رنړا، او د دوئ ديو محکم نظام مطابق په خپل خپل دائره کښې چليدونکی اوسيدل، او په دې کښې د ذرې هومره فرق نهٔ راتلل، دا ټول د الله تعالیٰ نښې دی.
**لَا تَسْجُدُوْا لِلشَّمْسِ وَلَا لِلْقَمَرِ**: چونکه نمر او سپوږمۍ د الله تعالیٰ پيدا کړې شوی څيزونه دی، دې وجې نه انسانان مخاطب کړې شوی دی، او ورته وئيلې شوی چه اې خلقو! د نمر او سپوږمۍ عبادت مهٔ کوئ، بلکه د هغه الله تعالیٰ عبادت کوئ، چه دا ټول ئې پيدا کړی دی، او په عبادت کښې د هغهٔ سره بل هيڅوك شريك مهٔ جوړوئ.
پدې کښې رد دې په هغه مشرکانو چه د نمر او سپوږمۍ عبادت کوی، لکه د ابراهيم ﷵ قوم او بلقيس او د هغې قوم، او د کنانه بعض قومونو د سپوږمۍ عبادت کړې، او په حديث کښې دی چه د نمر د راختو او پريوتو په وخت کښې عبادت کونکی د نمر هغې ته سجدې کوی.
**الَّذِيْ خَلَقَهُنَّ**: پدې آيت کښې اشاره ده چه مشرکان ډيرې عقله دی، چه کوم څيزونه د توحيد دليلونه دی، هغه ئې معبودان ګرځولی دی.
خَلَقَهُنَّ ضمير څلور وارو ﴿اللَّيْلُ وَالنَّهَارُ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ﴾ ته راجع دې يا صرف شمس او قمر ته. **سوال**: په دې مخکنو څيزونو کښې څو مؤنث طرف نمر دې، او درې مذکر دی نو پکار وو چه مذکر له ئې تغليب ورکړې وې په مؤنث باندې؟
جواب دا دې چه په تانيث د ټولو کښې اشاره ده د دوی ضعف او کمزورئ ته چه دوی داسې کمزوری دی لکه مؤنث. يا د مخکښې مِنْ آيَاتِهٖ د وجه نه ئې دا مؤنث راوړل ځکه هرکله ئې چه دا په ترتيب د آياتو کښې ذکر کړو نو دا هريو جدا جدا آية (د الله د قدرت

نښه) شوه نو ددې نه ئې تعبیر په مؤنث سره وکړو. (فتح البیان)
بله دا چه اکثر مشرکان د نمر عبادت ډیر کوی په نسبت د سپوږمۍ، د هغې عبادت کونکی لږ دی، نو ددې وجه نه ضمیر د مؤنث ئې راوړو.
إِنْ كُنْتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ: یعنی که تاسو د الله تعالیٰ عبادت کونکی یئ نو صرف الله تعالیٰ ته سجده ولګوئ ځکه چه سجده خو عبادت دے. او عبادت حق صرف د الله تعالیٰ دے.
مشرکان هم دعوه کوی چه مونږ د الله تعالیٰ عبادت کوو، نو اشاره ئې وکړه چه عبادت په شرع کښې توحید دے، نو که بندګی د الله تعالیٰ په توحید سره کول غواړئ نو غیر الله ته سجدے مه کوئ.
صاحب د فتح البیان لیکی: دلته ئې صرف د سجدے د نمر او سپوږمۍ نه منع وکړه ځکه چه څه خلکو به نمر او سپوږمۍ ته سجده لګوله، او دا ګمان به ئې کولو چه دوی پدے طریقه د الله تعالیٰ عبادت کوی، نو دلته ددے کار نه منع شول.
یا پدے وجه چه سجده د عبادت اعلیٰ مرتبه ده.
پدے آیت کښې سجده د تلاوت ده، بغیر د اختلاف نه، لیکن په مقام د سجده کښې اختلاف دے، بعض وائی په (إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ) باندے سجده ده، ځکه چه دا د امر سره متصل دے، او بعض وائی په (لَا يَسْأَمُونَ) سجده ده، ځکه چه پدے سره خبره پوره کیږی.
ابن عباس ﷺ به په روستنی آیت سجده کوله، او ابن مسعود ﷺ به په اولنی آیت او ابن عمر ﷺ به کله په اول او کله په روستنی آیت سجده کوله. (فتح البیان)
فَإِنِ اسْتَكْبَرُوا: پدے کښې زجر دے کافرانو ته په پریخودو د سجدے سره د استکبار د وجه نه لکه د ابلیس په شان. او دا متعلق دے د آیت ﴿فَأَعْرَضَ أَكْثَرُهُمْ﴾ سره. یعنی کافران د قرآن نه هم اعراض کوی او د عبادت د رحمٰن نه هم.
یعنی که ددے تمامو نښو لیدلو باوجود د مکے مشرکان د کبر او غرور لاره اختیاروی، او الله تعالیٰ دپاره بندګی نۀ خالص کوی، نو دوئ ته ووایه چه ملائک ورځ او شپه ستا د رب په تسبیح کښې مشغول دی، او هیڅ کله هم نۀ ستومانه کیږی، نو د الله تعالیٰ ستاسو عبادت ته هیڅ ضرورت نشته.
باللیل والنهار نه مراد دوام دے. وهم لایسأمون: د ملائکو دپاره تسبیح وئیل داسے دی لکه انسان چه ساه اخلی، او په هغے باندے نۀ ستړے کیږی. او معلومه شوه چه د

تسبیح سره ملائك نور كارونه هم د الله تعالىٰ په امر سره كولے شي، تسبیح وئیل دوی لره د نورو كارونو نه نهٔ منع كوي۔

| |
|---|
| وَمِنْ آيَاتِهِ أَنَّكَ تَرَى الْأَرْضَ خَاشِعَةً فَإِذَا أَنْزَلْنَا |
| او بعض د نخو د هغهٔ نه دا ده چه تهٔ به وینے زمكه اُوچه نو كله چه نازلے كړو مونږ |
| عَلَيْهَا الْمَاءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ ۚ إِنَّ الَّذِيْ أَحْيَاهَا |
| په هغے باندے اُوبهٔ، اُوخوزیږی او بوګه شي یقیناً هغه ذات چه راژوندئ ئے كړه دا |
| لَمُحْيِ الْمَوْتٰى إِنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۳۹﴾ |
| خامخا هغه راژوندی كونكے د مړو دے، یقیناً هغه په هر شي باندے پوره قدرت لرونكے دے۔ |

**تفسیر** : اُوس بل عقلي دلیل دے پدے كښ د الله د تعالىٰ د تعارف سره سره د اثبات د بعث بعد الموت دلیل هم دے۔ د الله تعالىٰ یوه نښه دا هم ده چه كله د باران د نهٔ كیدو په وجه قحط سالي شي، نو زمكه د كانړي غونته سخته شي، او په دے كښ هیڅ وابښهٔ او بوټے باقي پاتے نشي، بیا چه كله الله تعالىٰ باران را اولیږی نو په خاوره كښ حركت راشي، بوټي راخیژي، ددے پورتنئ سطح راپورته شي، او هر طرفته د ژوند نښے نښانے په نظر راشي۔ الله تعالىٰ وفرمایل چه كوم الله تعالىٰ چه دے مړے زمكے له ژوند وركړے، او په دے كښ ئے بوټي زرغون كړي، هم هغه به مړي دوباره ژوندي كوي، هغه په هر شئ باندے قادر دے۔ دا چرته نشي كیدے چه هغه د یو شئ كیدل وغواړي، او هغه دے په وجود كښ رانشي۔

او پدے كښ اشاره ده چه لكه څنګه په باران سره په زمكه كښ انقلاب راځي نو دارنګه په قرآن بیانولو سره په خلقو كښ انقلاب راځي۔

خَاشِعَةً: اُوچه، شاړه، او دوړو والا، خړه پړه چه بوټي او ګیاه پكښ نهٔ وي۔

اهْتَزَّتْ: اَيْ اَهَلَّتْ لِلْاِنْبَاتِ۔ یعني د بوټو دپاره لائقه شي۔

إِنَّ الَّذِيْ أَحْيَاهَا : پدے كښ ورته د قیامت تذكیر كوي یعني هركله چه انسان خپل فصل د زمكے ویني نو هسے نهٔ چه د دنیا د محبت د وجه نه بعث بعد الموت هیر كړي۔

إِنَّ الَّذِيْنَ يُلْحِدُوْنَ فِيْ آيَاتِنَا لَا يَخْفَوْنَ عَلَيْنَا

یقیناً هغه کسان چه کوږوالے کوی په آیتونو زمونږ. کښې نهٔ دی پټ دوی په مونږ

أَفَمَنْ يُلْقٰى فِي النَّارِ خَيْرٌ أَمْ مَّنْ

باندے آیا پس هغه څوك چه گوزار به کړے شي په اُور کښې غوره دے یا هغه څوك

يَّأْتِيْ آمِنًا يَّوْمَ الْقِيَامَةِ اعْمَلُوْا مَا شِئْتُمْ إِنَّهٗ بِمَا

چه رابه شي امن والا په ورځ د قیامت، کوئ څه چه مو خوښه وی یقیناً الله په هغه

تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿٤٠﴾ إِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِالذِّكْرِ لَمَّا

عملونو چه تاسو ئے کوئ لیدونکے دے۔ یقیناً هغه کسان چه کافر شو په قرآن هرکله

جَاءَهُمْ وَإِنَّهٗ لَكِتَابٌ عَزِيْزٌ ﴿٤١﴾ لَا يَأْتِيْهِ

چه راغے دوی ته (نو هلاك شو) او یقیناً دا خامخا کتاب دے زورور۔ نشی راتلے دے ته

الْبَاطِلُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهٖ تَنْزِيْلٌ مِّنْ حَكِيْمٍ حَمِيْدٍ ﴿٤٢﴾

باطل د مخکښې ددے نه او نهٔ د روستو ددے نه، نازلول دی د حکمتونو والا ستائیلے شوی نه۔

**تفسیر** : اُوس زجر ورکوی مُعرضینو د کتاب د الله تعالیٰ ته۔ او دا متعلق دے د ﴿لَا تَسْمَعُوْا لِهٰذَا الْقُرْآنِ﴾ سره۔ د اِلحاد ډیر صورتونه دی (۱) یو صورت دا دے چه خلق د قرآن کریم نه منع کوی، او تحریف او باطل تاویلونه کوی او مقابلے کوی۔

(۲) ابن عباس رضی الله عنه فرمائی : وَضْعُ الْقُرْآنِ فِيْ غَيْرِ مَوْضِعِهٖ ۔ د قرآن بے ځایه استعمالول۔ د قرآن یو مطلب وی او انسان ئے په بل مطلب کښې استعمال کړی۔ د کافر سره لګی او دے په مؤمن باندے تطبیق کړی۔

(۳) قتادهٔ وئیلی دی چه په قرآن باندے کفر او عناد کول اِلحاد دے۔

(٤) مجاهد وائی : [يَمِيْلُوْنَ عَنِ الْإِيْمَانِ بِالْقُرْآنِ] چه په قرآن باندے ایمان نهٔ راوړی، دا الحاد دے۔

(٥) ابن کثیر وئیلی دی چه د الله تعالیٰ په اسماء او صفاتو کښې چه څوك تحریف کوی،

او اخوا ديخوا كوي ئے، هغه زمونږ نه پټ نهٔ دی۔
(٦) صاحب د محاسن التنزيل (قاسمیؒ) ليكي چه په دے كښې په هر هغه باطلو فرقو باندے رد دے، چه هغوئ د خپلو نظرياتو د تائيد دپاره په خپله طبع باندے د قرآن كريم تفسير كوي۔ په دے ضمن كښې تمام باطني فرقے، ملحدين، گمراه صوفيان، (قاديانی، بَهائی او قبر پرستے) ولے داخلے دی چه هغوئ د خپلو باطلو عقائدو د تائيد دپاره په قرآن كښې معنوی تحريف كوي،آه۔
باطنيه هغه خلك وو چه د مانځه معنیٰ به ئے كوله په نيت صفائي سره۔ د الله په آيتونو كښې به ئے تحريف كولو۔ د دهريه ملحدينو هم دغه طريقه ده چه د قرآن نه د خپل باطل او فساد دپاره دليلونه نيسي، بعض گمراه حُكام هم داسے كوي۔
او غالي صوفياء هم دا كار كوي چه د آيت معنے د خپل ذهن مطابق اخلي، او كله وائي چه مونږ حقيقت والا يو، زمونږ شريعت ته ضرورت نشته۔ لكه د دوی گمراه كُن واقعات د ډاكټر ابو عدنان سهيلؔ كتاب د تصوف په رد كښې وگوره۔
لَا يَخْفَوْنَ عَلَيْنَا : په مونږ باندے پټ نهٔ دی، يعني مونږ هر وخت د دوی په هلاكولو باندے قادر يو۔
أَفَمَنْ يُلْقٰى: اُوس كيفيت د جزاء، او د مؤمن او د كافر ترمينځ فرق بيانوي۔ يعني د قيامت په ورځ چه كوم كس اُور ته واچولے شي دا به بهتر وي، اوكه هغه كس چه هغه ددے ورځے د هر خوف او خطر نه خاطر جَمعه وي ؟ جواب معلوم دے چه يقينًا د جهنم د عذاب نه بچ كيدونكے به بهتر وي۔ بيا مشركان هغه لاره ولے نهٔ اختياروي چه هغه دوئ لره د جهنم نه بچ كړي، او جنت ته ئے اورسوي چه هغه په قرآن باندے ايمان لرل او ځان د إلحاد نه بچ كول دی۔
اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ : پدے كښې بل قسم زجر او دهمكي ده چه دنيا كښې خو ستاسو اختيار دے چه هر عمل كوئ نيك وي او كه بد خو يوه ورځ راروانه ده چه په هغے كښې به الله تعالیٰ تاسو ته ستاسو د عملونو جزاء او سزا دركوي۔
إِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِالذِّكْرِ: پدے كښې هم د قرآن كريم ملحدينو ته زجر دے او د قرآن كريم صدق او رشتينوالے ئے په ځلورو صفتونو سره بيان كړيدے۔
د ان الذين خبر پټ دے دپاره د تعميم د بد حالئ د هغوی۔ او خبرونه ئے ډير كيدے شي (١) دوی تباه شو۔ (٢) عذاب به وركړے كيږی۔ (٣) بے عقله دی (٤) اُور كښې به پرمخے

غورزولے شی۔

الذكر نه مراد قرآن كريم دے چه دا د ياداشت او د عزت او د وقار كتاب دے۔

عَزِيْزٌ: (١) عزتمند دے د الله په نيز۔ (٢) غالب دے په هر كتاب باندے۔ (٣) بے مثله، بے نظيره دے۔ (٤) گران دے، يعني څوك ئے مقابله نشي كولے۔

(٥) زوره ور كتاب دے چه څوك ددے دليل او حجت او خبره نشي ماتولے۔ ددے وجه نه څوك چه پرے عمل كوى هغه كښ هم عزت او طاقت پيدا كيږى۔

(٦) منع كړے شويدے د قبلولو د باطلوالى او تحريف نه۔

لَا يَأْتِيْهِ الْبَاطِلُ: دا بل صفت د قرآن دے۔

(١) دے محفوظ دے د زيات او د نقصان نه، نقصان پكښ نشي راتللے چه باطل ورته د مخكښ نه راشي، او زيادت پكښ نشي كيدے چه باطل ورته د شا نه راشي۔ نو د باطل نه مراد زيادت او نقصان دے۔ (زجاجؒ، سدىؒ وقتادهؒ)

(٢) يا نشي راتللے دے ته تكذيب د مخكنو كتابونو نه، او نهٔ ددے نه روستو بل كتاب راځى چه دا باطل كړى او ددے تكذيب وكړى۔ (مقاتلؒ والكلبىؒ وسعيد بن جبيرؒ)

دا دليل دے چه دا آخرى كتاب دے۔

(٣) باطل نه مراد شيطان دے۔ يعني شيطان طاقت نهٔ لرى چه پدے كښ زيادت او نقصان وكړى۔ (بغوىؒ) دا ئے حاصل معنىٰ ده۔

(٤) يا باطل نه مراد كذب (دروغ) دى، او بَيْنَ يَدَيْهِ مخكنى واقعات، او مِنْ خَلْفِهٖ روستنى واقعات او خبرونه دى۔ يعني نشي راتللے دروغ ددے په مخكنو قصو كښ، او نهٔ د راتلونكى زمانے په خبرونو كښ ئے دروغ شته۔

(٥) قاسمىؒ وغيره وائى چه دا دا كنايه ده د جميع الْجِهَات نه، يعني باطل دے ته هيڅ قسمه لاره نشي موندلے، د هيڅ طرف نه ورته نشي راتللے، او باطل ددے سره نشي ملاويدے۔ يعني دے كښ چه څه دى دا حق او رشتيا دى، او پدے كښ خلاف الواقع خبره نشته، او باطل ئے مقابله نشي كولے۔

دويم او څلورم تفسير غوره دے۔

| مَا يُقَالُ لَكَ اِلَّا مَا قَدْ قِيْلَ لِلرُّسُلِ مِنْ قَبْلِكَ اِنَّ |
|---|
| نهٔ وئيلے كيږى تا ته مگر هغه چه وئيلے شويدى رسولانو ته مخكښ ستا نه يقيناً |

| رَبَّكَ لَذُوْ مَغْفِرَةٍ وَّذُوْ عِقَابٍ اَلِيْمٍ ﴿٤٣﴾ وَلَوْ |
|---|
| رب ستا خامخا خاوند د بخنے دے او خاوند عذاب دردناك دے۔ او كچرته |
| جَعَلْنَاهُ قُرْآنًا اَعْجَمِيًّا لَّقَالُوْا لَوْلَا فُصِّلَتْ |
| مونږ كرځولے وے دا قرآن عجمئ ژبے والا خامخا وئيلے به دوى ولے نۀ دى جدا جدا |
| آيَاتُهٗ ءَاَعْجَمِيٌّ وَّعَرَبِيٌّ |
| (ولے نۀ دى واضحه كړے شوى) آيتونه ددے، آيا كتاب عجمى دے او سړے عربى دے، |
| قُلْ هُوَ لِلَّذِيْنَ آمَنُوْا هُدًى وَّشِفَاءٌ وَالَّذِيْنَ |
| ووايه دا دپاره د هغه كسانو چه ايمان ئے راوړيدے هدايت دے او شفاء ده او هغه كسان |
| لَا يُؤْمِنُوْنَ فِيْ آذَانِهِمْ وَقْرٌ وَّهُوَ عَلَيْهِمْ |
| چه ايمان نۀ راوړى په غوږونو د هغوى كښ بوج دے او دا قرآن په هغوى باندے |
| عَمًى ط اُولٰٓئِكَ يُنَادَوْنَ مِنْ مَّكَانٍ بَعِيْدٍ ﴿٤٤﴾ |
| ړوندوالے دے، دغه كسان دوى ته آوازونه كيدے شى د ځائے وړاندے نه۔ |

**تفسير**: پدے آيت كښ ظاهر تفسير دا دے چه دا تسلى ده رسول الله ﷺ ته چه د قريش كافران تا پسے خبرے كوى، تا ته ساحر او شاعر او دروغجن او ليونے وائى، او كله قرآن پسے خبرے كوى، پدے كښ شكوك او شبهات راپيدا كوى۔ نو دا اعتراضات په پخوانو پيغمبرانو هم شويدى، هغوى صبر كړيدے نو تۀ هم صبر كوه۔

**مَا يُقَالُ لَكَ**: اَىْ مِنْ جِهَةِ الْقَوْمِ۔ يعنى تا ته د خپل قوم طرف نه هغه خبرے كيږى چه پخوانو پيغمبرانو ته هم شوے وے۔

**لَذُوْ مَغْفِرَةٍ**: يعنى ستا رب د موحدينو گناهونه بخښونكے دے، چه هغوئ ستا او ستا نه د مخكنو انبياؤ پيروى كړے ده، او كوم كافران چه ستا خِلاف كوى هغوئ له به هغه سخته سزا وركوى۔ او مغفرت دا هم دے چه عذاب د مجرمانو نه روستو كړى۔

(۲) دے كښ دويم تفسير: دا دے چه تا ته د توحيد وحى وئيلے كيږى لكه چه پخوانو ته هم د توحيد وحى وئيلے شوے وه۔ ليكن دا تفسير دومره غوره نۀ دے۔ ذ سياق نه

وړاندې دې.
وَلَوْ جَعَلْنَاهُ قُرْآنًا أَعْجَمِيًّا: دا د هغوی دیو اعتراض جواب دې، هغوی ونیلی وو چه دا قرآن عربی کتاب دې، او دا سړې هم عربی دې، کـه یـو عربی سړې عربی کتاب راوړی، دا خـو کـمـال نهٔ دې، دا ډې عربی وې او اعجمی کتاب ډې نې راوړې وې، نو مونږ به یقین کړې وې چه دا الله تعالیٰ رالیږلې دې. او عربی چه عربی کتاب راوړی نو کیدې شی چه ځان نه ئې جوړ کړې وی؟ نو الله تعالیٰ ورله پدې خبره رد کوی فرمائی چه اُوس خـو تاسو یوه شبهه کوئ او که دا کتاب په عجمی ژبه نازل شوې وې، نو بیا به تاسو دوه اعتراضونه کولې (او ستاسو ضد او عناد او سرکشئ کښې به هیڅ کمې نهٔ راتللو) یو دا چه (لَوْلَا فُصِّلَتْ آيَاتُهُ) ددې آیتـونـه ولې واضحه نهٔ دی، ځکه چه په لغتِ عربی کښې چه کـوم وضـاحت او تفصیل دې دا په نورو لغتونو کښې نشته. یعنی بیا به مو وئیلې چه دا په عربی ژبه کښې ولې نهٔ دې نازل شوې کومه چه واضحه ژبه ده.
دویم دا چه (ءَاَعْجَمِيٌّ وَعَرَبِيٌّ) آیا کتاب عـجـمی دې او رسـول عـربی دې. دا څنګه مـخـتـلـف او ګډوډ کار شویدې. نو سړې چه ضد کښې راشی نو د هغه اعتراضات زیات شی، د هر طرفنه په ځان باندې لارې د هدایت بندوی. نو د دوئ مـقـصـد ایمان راوړل نهٔ دی، دې وجې نه د الله تعالیٰ آیتونه چه په څهٔ طریقه هم د دوئ خواته اورسیږی، دا خلق ئې قبلوی نهٔ.

## فرق د اعجمی او عجمی

اعـجـمی هغه دې چه هیڅ وضاحت نشی کولې، برابره خبره ده که عربی وی او که غیر عربی. او عجمی هغه دې چه د عربی نسب نه نهٔ وی اګرچه هغه هم کله د عربو په شان فصیح او بلیغ وی.
قُلْ هُوَ لِلَّذِيْنَ: دا هـغـوی تـه بـل قـسـم دعـوت دې چه څوك د ایمان اراده لری او د الله تعالیٰ په خبرو ئې یقین وی، نـو هغه دپاره دا کتاب د هدایت راغلې دې چه حق ته پرې رسیږی، او ددې په وجه د هر شك او شبهې نه شفاء حاصلوی. یعنی دا کتاب خو دوی دپاره هـدایت کـونکې دې، او د دوی د سینو نه د شبهاتو د ختمولو دپاره کافی شافی دې، پدې وجه د دوی په ژبه راغلو. (فتح البیان)
هُدًى وَّشِفَاءٌ: پـه هـدایت کښې تحلیه ته اشاره ده چه انسان بنائسته کوی په بنائسته

اعمالو، او شفاء كښې تخليه ته اشاره ده چه دا كتاب د انسان نه مرضونه او گندونه وباسي، كفر، شرك، حسد، ضد، بدعت او تكبر ختموي.

وَالَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ فِيْ آذَانِهِمْ: يعنى د كافرانو ضديانو غوږونه ددے د ايمان آواز آوريدو نه او د دوئ ستر گے ددے د هدايت د نُور نه د نفع پورته كولو نه كوتاه دى.

وَّهُوَ عَلَيْهِمْ عَمًى: يعنى دا قرآن د دوى په زړونو باندے روندوالے دے، يعنى ددے قرآن نه د دوئ زړونه راندۀ دى، يعنى دوئ پرے ځان روند كونړ كړيدے چه د قرآن هيڅ دليل او عبرت نۀ وينى او نۀ ئے آورى. ليكن د مبالغے دپاره ئے (عَمًى) مصدر حمل كړو. په اصل كښې داسے دے: [وَهُمْ عَلَيْهِ ذُوْ عَمًى] او دا خلك په قرآن باندے راندۀ دى.

بعض مفسرين د آسانوالى دپاره داسے تعبير كوى: فِيْ قُلُوْبِهِمْ عَمًى عَنِ الْقُرْآنِ. د دوئ په زړونو كښې د قرآن نه روند والے دے.

او د قرآن په تعبير كښې كمال دا دے چه كله د يوتن ستر گه صحيح وى، او مخے ته ئے شيشه راشي نو هغه شيشه ورته ډيره صفا ښكاره كيږى، او په هغے كښې د خپل مخ او د خپل ځان اصلاح وكړى، او كله چه د انسان ستر گه خيرنه خچنه وى نو كه شيشه ډيره صفا وى ليكن دۀ ته به هغه شيشه خيرنه ښكارى او د مخے نه به ئے لرے كوى. نو دغه شان كافرانو ته هم قرآن روند كتاب ښكاره كيږى ځكه چه خپله راندۀ دى.

بل مثال: يو تن عِنِّيْن (نامرد) دے د هغه مخے ته يوه ښكلے ځوانه ښځه راوستے شى نو دا ښځه به په دۀ باندے هسے شيته لگيږى، د هغے سره خبرے اترے، او هغے ته كتل به ورله هيڅ خوند نۀ وركوى. او چا ته چه الله تعالىٰ خواهش وركړے وى، نو هغه چه داسے زنانه وينى، نو د هغے مخ او د هغے خبرے او د هغے كپړے تول به پرے اثر كوى، نو دغه شان د الله تعالىٰ كتاب ډير ښكلے، او د فائدو نه ډك دے، ليكن كافران نامرد دى، يعنى بے ايمانه دى نو ځكه ورله دا ښكلے قرآن مزه نۀ وركوى، پدے كښې ورته رڼړا نۀ ښكاره كيږى، او په مؤمن كښې د ايمان رڼړا شته، نو كله چه دا كتاب وينى، نو پدے كتاب كښې ورته زياته رڼړا ښكاره شى (نُوْرٌ عَلٰى نُوْر) شى.

ددے نه دا هم معلومه شوه چه چا كښې څومره ايمان زيات وى، هغۀ ته به قرآن كريم كښې ډير كمالات ښكاره كيږى، او هر څه به پدے كښې گنړى، او دا به ورته ناقص نۀ ښكاره كيږى، دا د بې ايمانه خلكو خبرے دى چه قرآن او حديث ورته نيمگړے ښكارى، كله وائى ميخه پكښې وښايه، او كله وائى چه د نيَا حرمت پكښې وښايه.

أُولَٰئِكَ يُنَادَوْنَ مِن مَّكَانٍ بَعِيدٍ : دا د کافرانو ضدیانو بل مثال دے۔ یعنی دوی چه قرآن نهٔ آوری، نو مثال ئے د هغه سړی دے چه هغه ډیر لرے وی، او څوك ورته آوازونه کوی نو هغه نهٔ آوری او نهٔ پوهیږی، نو عبارت کښې تقدیر دے ﴿أُولَٰئِكَ مِثْلَ الَّذِينَ يُنَادَوْنَ﴾ دا خلك په شان د هغه چا دی چه د وړاندے نه ورته آواز کولے شی او هغه ته نهٔ رسیږی، نو دغه شان د کفر او عناد په وجه د دوی په زړونو باندے مهر لګیدلے دے، ددے وجه نه د قرآن نه دوی ته هیڅ فائده نهٔ رسیږی۔

ضحاك وئیلی دی چه دا به په قیامت کښې وی چه د دوئ د شرمنده کولو دپاره به دوی ته د لرے نه په ناکاره نومونو سره آواز کولے شی۔ (فتح البیان)

نو بیا تقدیر ته ضرورت نشته۔

| وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ فَاخْتُلِفَ فِيهِ |
|---|
| او یقیناً ورکړے مونږ موسیٰ (علیه السلام) ته کتاب نو اختلاف وکړے شو په هغے کښې |
| وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ لَقُضِيَ |
| او که چرته نهٔ وے فیصله چه مخکښې شویده د طرف د رب ستا نه خامخا فیصله به |
| بَيْنَهُمْ وَإِنَّهُمْ لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ |
| شوے وے په مینځ د دوی کښې، او یقیناً دوی خامخا شك کښې دی ددے (کتاب) نه |
| مُرِيبٍ ﴿٤٥﴾ مَّنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهِ وَمَنْ أَسَاءَ |
| په سخت شك کښې۔ چا چه عمل اُوکړو نیك نو فائده دهٔ ده او چا چه بدی وکړه |
| فَعَلَيْهَا وَمَا رَبُّكَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيدِ ﴿٤٦﴾ |
| نو وبال به په هغهٔ باندے وی او نهٔ دے رب ستا هیڅ ظلم کونکے په بندګانو باندے۔ |

**تفسیر** : دا هم تسلی ده رسول الله ﷺ ته چه دا د امتونو پخوانے عادت دے چه د رسولانو په کتابونو کښې اختلاف کوی لکه چه ستا په کتاب قرآن کښې ددے خلقو اختلاف دے نو دغه شان د موسیٰ علیه السلام په کتاب تورات کښې اختلاف کړے شوے وو۔ چا ئے تصدیق وکړو او چا تکذیب، نو که ستا تکذیب وشی خفګان مهٔ کوه۔

دارنګه پدے آیت کښې په مشرکانو پدے طریقه هم رد دے چه د الله تعالیٰ عادت دا دے

چه د خپل طرفنه د بندګانو د اصلاح دپاره کتابونه رالیږلي لکه ستاسو نه مخکښې لوی امت بنی اسرائیل تیر شویدی هغوی ته هم الله تعالیٰ کتاب (تورات) رالیږلے وو، نو تاسو ته ئې هم د قرآن په شکل کښې راولیږلو نو ددے نه ولے انکار کوئ۔

دارنګه دا خبره بیانوی چه د الله تعالیٰ په کتاب تورات باندے اکثرو بنی اسرائیلو ایمان رانهٔ وړو، او د هغے نه عقیدةً او عملاً واوښتل، نو دوئ د عذاب مستحق وو لیکن الله تعالیٰ ورله سمدست عذاب ورنکړو د یو قانون د وجه نه چه هغهٔ ایخودے دے چه د هر قوم د هلاکت دپاره ئې یوه نیټه مقرر کړیده، نو دغه شان که دا موجوده کافران ددے قرآن نه واوړیدل، نو د عذاب مستحق دی خو په خپله نیټه به پرے راځی، نو د عذاب روستو کیدل او دوی ته لږ مهلت ورکول دِے دوی لره په دهوکه رانهٔ ولی چه ګنې دوی په حقه باندے دی، او دوئ ته به ګنې عذاب نهٔ ورکړے کیږی، بلکه ضرور به پرے راځی۔ او دا واقعی ده چه څوك د قرآن خلاف کوی الله تعالیٰ ئې نهٔ پریدی، ولید، ابوجهل، عتبه، شیبه، ابولهب غوندے د کفر مشران ئې پرینخودل۔ ددے امت نور مجرمان ئې په قِسماقسم طریقو سره هلاك کړیدی، او بیا به ورله په قبر او حشر او جهنم کښې عذابونه ورکوی۔

او بیا دا خبره بیانوی چه بنی اسرائیل د شك په وجه هلاك شو، نو دغه شان دا قریش او نور مجرمان به هم په قرآن کریم کښې د شك کولو په وجه هلاکیږی۔

**مضمون :** بیا فرمائی : دا کتاب د څهٔ دپاره راغلے دے؟ نو روستو آیت کښې به ووائی چه دا د عمل دپاره راغلے دے چه بندګان نیك عمل وکړی۔ او که چا نیك عمل وکړو نو خپله فائده ئې ده، او که وے نکړو نو ضرر ئې خپل دے۔ او دوی ته که کومه سزا ورکولے شی نو دا به ظلم نهٔ وی، بلکه سراسر عدل او انصاف به وی۔

بیا بیان د علم د الله تعالیٰ بیانیږی، بیا د مشرکانو په شرك رد کوی چه داسے وخت به راشی چه دوی به د خپل شرك نه انکار کوی، بیا تر (۵۱) آیت پورے د انسان تعریف بیان شویدے چه وجه به ئې روستو راشی۔ بیا الله تعالیٰ توبیخ ورکړیدے په اعراض کتاب الله نه۔ چه دا لوی ګمراه دے۔ بیا ددے کتاب د صدق موجوده او راتلونکی دلیلونه دی۔ موجوده دلیل د الله ګواهی ده، او راتلونکی دلیلونه ﴿سَنُرِيهِمْ آيَاتِنَا فِي الْآفَاقِ﴾ دے۔ بیا سبب د انکار د قرآن ئې بیان کړیدے چه هغه د آخرت نه انکار دے۔ او چا سره چه د آخرت پرواه نهٔ وی، هغه په قرآن څهٔ کوی او ددے نه چرته فائده اخلی۔ نو

په اول د سورت کښې وائي ﴿فَأَعْرَضَ أَكْثَرُهُمْ﴾ نو په آخر کښې وائي چه دوئ ځکه اعراض وکړو چه دوی آخرت نۀ مني۔

فَاخْتُلِفَ فِيهِ : د اختلاف صورت دا وو چه څۀ کسان د تورات د عقيدے او د عمل نه منکر شو۔ نو دلته وقف دے : اَیْ فَاسْتَحَقُّوا الْعِقَابَ) يعنی دوی د عذاب مستحق شو۔

وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ : نو سوال پيدا شو چه الله تعالیٰ ورله سمدست عذاب ولے نۀ ورکولو چه غرئے پرے راپورته کړے وے؟ دغه شان پدے مخالفينو د قرآن باندے ولے عذاب نۀ راځی؟ حاصل د جواب مخکښې ذکر شو چه د دوی عذاب الله تعالیٰ په تقديری حکم (فيصلے) سره روستو کړيدے، او دا د الله تعالیٰ احسان دے چه کيدے شی چه دوی ايمان راوړی۔ او د الله په هر کار کښې بيشماره حکمتونه دی۔

كَلِمَةٌ سَبَقَتْ: د مخکښې فيصلے نه مراد دا دے (بِاَنْ جَعَلَ لِكُلِّ اُمَّةٍ اَجَلًا) چه د هر امت دپاره الله تعالیٰ يوه نيټه مقرر کړيده۔

لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ : اَیْ بِالْعِقَابِ۔ يعنی فيصله به شوے وے د دوی ترمينځ په عذاب سره۔

وَإِنَّهُمْ لَفِي شَكٍّ : ۱- ضمير بنی اسرائيلو ته راجع دے۔ لکه مخکښې نه معلومه شوه۔ ۲- دارنګه د مکے مشرکانو ته هم راجع دے، او دواړه تفسيرونه صحيح دی۔

مِنْهُ : ضمير قرآن يا تورات ته راجع دے، او دا هم صحيح ده چه قيامت ته راجع شی، يعنی دا خلق د قيامت په ورځ بيخی يقين نۀ لری، دے وجے نه دوئ د کفر او عناد ژوند اختيار کړے دے۔

د شک نه مراد ظنّ مرجوح دے، او د اهل منطق والو شک نۀ دے چه تساوی الطرفين ته وائی چه شک مے دے چه يا به حق وی يا نۀ۔ نو د شک نه مراد دلته انکار او ناغوره ګمان دے۔ چه خلک داسے وائی نو کيدے شی چه وی به، نو پدے کيدے شی بنده نۀ بخښلے کيږی۔

مُرِيبٍ : يعنی داسے شک دے چه خلک په جګړه کښې اچوی، کله شک کمزورے وی، په معمولی خبره انسان هغه پريدی، او مُريب هغه شک دے چه په جګړه کولو سره هم هغه نۀ پريدی، او دا وائی چه زما پدے خبرو ذهن نۀ کولاويږی۔

مَنْ عَمِلَ صَالِحًا : اُوس فرمائی : د الله تعالیٰ کتاب د څۀ دپاره راغلے دے؟ نو ددے مقصد دا دے چه خلک پدے روان شی او نيک عملونه وکړی، نو الله عامه قاعده بيانوی۔

وَمَا رَبُّكَ بِظَلَّامٍ: ظلام مبالغه ده دلته نفی د هر قسم ظلم مراد ده چه لرې وی که ډیر۔ یعنی هیڅ قسم ظلم نکوی۔ نو دلته نفی د قید او مقید دواړو ده۔

| |
|---|
| اِلَيۡهِ يُرَدُّ عِلۡمُ السَّاعَةِ وَمَا تَخۡرُجُ مِنۡ ثَمَرَاتٍ مِّنۡ اَكۡمَامِهَا |
| خاص الله ته واپس کولے شی علم د قیامت او نهٔ راوځی میوے د خپلو کڅوړو نه |
| وَمَا تَحۡمِلُ مِنۡ اُنۡثٰى وَلَا تَضَعُ اِلَّا بِعِلۡمِهٖ |
| او حمل نهٔ اخلی یوه زنانه او نهٔ زیږوی حمل مګر په علم د الله تعالیٰ سره |
| وَيَوۡمَ يُنَادِيۡهِمۡ اَيۡنَ شُرَكَآءِىۡ قَالُوۡٓا |
| او په کومه ورځ چه آواز به وکړی دوی ته چرته دی شریکان زما، دوی به ووائی |
| اٰذَنّٰكَ مَا مِنَّا مِنۡ شَهِيۡدٍ ﴿۴۷﴾ |
| مونږ خبر درکوو تا ته چه نشته زمونږ نه هیڅ ګواهی کونکے۔(پدے خبره) |
| وَضَلَّ عَنۡهُمۡ مَّا كَانُوۡا يَدۡعُوۡنَ مِنۡ قَبۡلُ |
| او ورك به شی د دوی نه هغه څه (معبودان) چه رابلل به دوی مخکښ ددے نه |
| وَظَنُّوۡا مَا لَهُمۡ مِّنۡ مَّحِيۡصٍ ﴿۴۸﴾ |
| او یقین به وکړی دوی چه نشته دوی لره ځائے د تختیدلو۔ |

**تفسیر:** پدے آیت کښ بیان د علم د الله تعالیٰ دے په درے څیزونو، او نفی د علم غیب ده د غیر الله نه۔ په داسے موقعه کښ د علم بیان د ډیرو حکمتونو او فائدو دپاره کیږی۔ یو مناسبت د مخکښ سره دا دے چه الله تعالیٰ هغه ذات دے چه عَلِيۡمٌ بِكُلِّ شَيۡءٍ دے، یعنی په هر شی باندے پوهیږی، د قیامت علم، د میوه جاتو علم، او د زنانه د خیټے د بچی او د هغے د زیږولو په وخت باندے علم لری۔ نو دا د (لَقُضِيَ بَيۡنَهُمۡ) سره متعلق دے یعنی الله تعالیٰ به په خلکو فیصله کوی د خپل علم مطابق۔ هغهٔ ته معلومه ده چه کوم وخت دوی له عذاب پکار دے، نو علیم ذات ته دا خبره سپارلے شویده۔

❁ دویم دا د (مَنۡ عَمِلَ صَالِحًا) او (اَسَآءَ) سره لګی، یو سړی نیك عمل وکړو د قرآن په تابعداریٔ کښ، او یو اڅے پټ ځای کښ ئے وکړو، او بل ګناه وکړه په پټ ځای کښ، نو دے

به وائی چه زما د نیك عمل یا د بد عمل نه به څوك خبر شی؟
نو الله فرمائی زهٔ پرے خبرداریم۔ ❁ دارنګه د ﴿وَمَا رَبُّكَ بِظَلَّامٍ لِّلۡعَبِيۡدِ﴾ سره لګی چه الله
په چا ظلم نهٔ کوی بلکه هر چا ته د خپل عمل بدله ورکوی، نو دا به کله وی؟ نو الله
فرمائی چه دا به د قیامت په ورځ وی۔
❁ دارنګه الله تعالیٰ په چا ظلم نکوی ځکه چه ظلم خو هغه څوك کوی چه علم او
قدرت ئے نقصانی وی، او الله تعالیٰ په هر غیب باندے پوره عالِم او قادر دے نو ظلم ته ئے
ضرورت نشته۔
❁ ورسره دا خارجی فائده هم معلومه شوه چه د قیامت ورځ غیب دے، ددے علم د الله
نه سیوئ د هیچا سره نشته نو اے مشرکانو! ستاسو شرکاء پدے خبرو کښ په یوه خبره
هم علم نهٔ لری، نو تاسو ولے دویٔ د الله تعالیٰ سره شریك ګرځوئ۔ او دا هم معلومه شوه
چه رسول الله ﷺ په غیبو نهٔ پوهیږی، هغه به هم غیبدان نهٔ ګنړی۔
اِلَیۡهِ یُرَدُّ: جار مجرورئے د حصر دپاره مخکښ راوړو۔ او مطلب دا دے چه د قیامت علم
صرف الله تعالیٰ ته سپارلے شویدے۔ چا نه چه تپوس وکړے شی چه قیامت به کله
راځی؟ نو هغه وائی چه اَللّٰهُ اَعۡلَمُ ۔ الله ښهٔ پوهه دے۔ د جبرئیل علیه السلام په حدیث کښ
راغلی دی چه کله دهٔ رسول الله ﷺ نه تپوس وکړو چه د قیامت ورځ به کله راځی؟ نو
نبی علیه السلام جواب ورکړو چه تپوس کړے شوے د تپوس کونکی نه زیات پوهه نهٔ دے۔
یعنی لکه څنګه چه تا ته معلومه نهٔ ده، دغه شان ماته هم معلومه نهٔ ده۔ او د سورتِ
نازعات په (۴۲، ۴۳، ۴۴) آیتونو کښ راغلی ﴿يَسۡـَٔلُوۡنَكَ عَنِ السَّاعَةِ اَيَّانَ مُرۡسٰهَا ۞ فِيۡمَ اَنۡتَ
مِنۡ ذِكۡرٰهَا ۞ اِلٰى رَبِّكَ مُنۡتَهٰهَا﴾ (خلق تانه د قیامت واقع کیدو وخت تپوسی، ددے د بیانولو
سره ستا څهٔ تعلق، ددے د علم انتهاء خو الله ته ده)۔
او د سورتِ اعراف په (۱۸۷) آیت کښ راغلی دی: ﴿يَسۡـَٔلُوۡنَكَ عَنِ السَّاعَةِ اَيَّانَ مُرۡسٰهَا
قُلۡ اِنَّمَا عِلۡمُهَا عِنۡدَ رَبِّىۡ لَا يُجَلِّيۡهَا لِوَقۡتِهَاۤ اِلَّا هُوَ﴾ (دا خلق تانه د قیامت په باره کښ تپوس
کوی چه دا به کله واقع کیږی، تهٔ ورته ووایه چه ددے عِلم صرف زما رب سره دے، ددے
په خپل وخت باندے د الله تعالیٰ نه سوئ بل هیڅوك نهٔ ښکاره کوی)۔
او مخکښ تیر شویدی چه د قیامت علم الله تعالیٰ ځکه پټ ساتلے دے چه بندګان هر
وخت په یره کښ وی، او د الله تعالیٰ په بندګئ کښ مصروف شی۔
وَمَا تَخۡرُجُ مِنۡ ثَمَرٰتٍ: مَا نافیه ده ځکه چه که موصوله شی، نو بیا تقدیراتو ته

ضرورت راځی. مِنْ ثَمَرَاتٍ کښې مِنْ د تاکید دپاره زیات دے، او ثَمَرات فاعل د تَخْرُجُ دے.
أَكْمَام جمع د كِمٌّ ده په كسره د كاف سره، د ميوے كسوړے تـه وئيلے شي، دارنګه بيا استعماليږي د هر لوښي د مال وغيره دپاره.
ابـو عبيـدةٌ وائي : اکمام هغه لوښو ته وئيلے شي چه ميوه په هغے کښې وي. يعني هره ميوه چه د کځوړے نه راوځي، نو هره دانه او هره ذره ئے الله تعالیٰ ته معلومه ده، او هغه ئے په راويستلو قادر دے. نو پدے کښې اشاره دا ده چه الله تعالیٰ تاسو لره دا ميوه جات د کوم ځای نـه پيدا کوي دا ددے مقصد دپاره چه ﴿مَنْ عَمِلَ صَالِحًا﴾ نيك عمل وکړئ. لکه د قرآن دا د دعوت طريقه ده. ﴿وَارْزُقْهُمْ مِنَ الثَّمَرَاتِ لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُوْنَ﴾ چه رزق خورئ نو د هغه شکر به هم کوئ.
وَمَا تَحْمِلُ مِنْ أُنْثٰى : او د مور په رَحِم کښې چه کوم بچے پرورش مومي، او څومره ورځے پس بـه ددے پيدائش کيږي، او دا به نيمګړے وي او که پوره، ښائسته به وي او که بدرنګه، ددے ټولو خبرو علم صرف الله تعالیٰ ته دے.
پدے کښې اشاره ده چه که تا يو نيك عمل په داسے پټ ځای کښې وکړو لکه رَحِم د زنانه نو هم الله تعالیٰ ته معلوم ده. لکه دا خبره په سورة لقمان آيت (۱۶) کښې تيره شويده ﴿إِنَّهَا إِنْ تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ فَتَكُنْ فِي صَخْرَةٍ﴾. او اشاره ده چه اے انسانه! ته چه د دغه ځای نه راوتے ئے نو د يو عظيم مقصد دپاره.
وَيَوْمَ يُنَادِيْهِمْ : ربط دا دے چه د الله تعالیٰ د علام الغيوب کيدو او د هغهٔ د عظيم قدرت تقاضا دا ده چه صرف د هغهٔ عبادت وکړے شي، هيڅوك د هغهٔ شريك جوړ نهٔ کړے شي. هرکله چه قيامت تذکره وشو چه دا به راځي، نو اُوس دا بيانوي چه د قيامت په ورځ به حساب کتاب کيږي، نو اول حساب به د مشرك سره کيږي.
الله تعالیٰ بـه مشرکانو نه تپوس وکړي چه کوم باطل معبودان چه تاسو زما شريکان جوړول، هغه چرته دي؟ چه هغه اُوس راشي او تاسو سره مدد وکړي، او ستاسو سفارش وکړي، او تاسو د اُور نه خلاص کړي، او دا به د الله تعالیٰ حساب وي او دا به د الله تعالیٰ انتهائي توبيخ او زورنه وي چه دشمن راګير کړي چه زما شريکان راښايه.
قَالُوْا آذَنّٰكَ : يعني مونږ تا ته اعلان کوو او تا ته خبر درکوو. دا ماضي په معنیٰ د مضارع ده د تحقق او د تيقُّنْ دپاره ماضي ذکر شويده.
مَا مِنَّا مِنْ شَهِيْدٍ : زمونږ نه هيڅوك داسے نشته چه دا ګواهي ورکړي چه ستا څوك

شریك شته، اُوس مونږ ته پته ولګیده چه مونږ د دروغجنو معبودانو پورې انبتي وو، ځکه چه د دوی نه به د دوئ باطل معبودان براءت وکړي او بتان به هم ترې بیزاري وکړي۔

وَضَلَّ عَنۡهُمۡ: یعنی د دوئ نه به هغه ټول معبودان او بتان ورك او غائب شي کوم چه به دوئ په دنیا کښې رابلل او دوی به یقین وکړي چه اُوس دوی لره د عذاب نه خلاصونکے سوئ د الله تعالیٰ نه هیڅوك نشته، او الله تعالیٰ خو ئے دوست نۀ دے نو بس په عذاب کښې به راګیر شي۔

مَّحِيصٍ: ځاې د تیښتے او د خلاصیٔ ته وئیلے شي۔ حَاصَ يَحِيصُ: تښتیدو او په منډه باندے ځان خلاصولو ته وئیلے شي۔

| لَا يَسۡـَٔمُ الۡإِنۡسَانُ مِنۡ دُعَاءِ الۡخَيۡرِ وَإِنۡ مَّسَّهُ الشَّرُّ |
| --- |
| نۀ ستړے کیږي انسان د دعا غوختلو د خیر نه او که اُورسی دۀ ته تکلیف |
| فَيَـُٔوسٌ قَنُوطٌ ﴿۴۹﴾ وَلَئِنۡ أَذَقۡنَاهُ رَحۡمَةً |
| نو نا امیدي کونکے وي، تندے تریوونکے وي۔ او که چرته اُوڅکوو مونږ دۀ ته رحم |
| مِّنَّا مِنۡ بَعۡدِ ضَرَّاءَ مَسَّتۡهُ لَيَقُولَنَّ هٰذَا لِي |
| د طرف خپل نه روستو د تکلیف نه چه رسیدلے وو دۀ ته خامخا وائي دا زما د پاره دے، |
| وَمَا أَظُنُّ السَّاعَةَ قَائِمَةً وَلَئِنۡ رُّجِعۡتُ إِلَىٰ رَبِّي |
| او زۀ ګمان نۀ کوم په قیامت قائمیدونکے، او که چرته اُوکرځولے شوم زۀ رب خپل ته |
| إِنَّ لِي عِنۡدَهُ لَلۡحُسۡنَىٰ فَلَنُنَبِّئَنَّ الَّذِينَ |
| یقیناً ما لره د هغۀ سره خامخا خوشحالي ده نو خامخا خبر به ورکړو هغه کسانو ته |
| كَفَرُوا بِمَا عَمِلُوا وَلَنُذِيقَنَّهُمۡ |
| چه کفر ئے کړیدے په هغه عملونو چه دوی کړیدي او خامخا وبه څکوو دوی ته د |
| مِّنۡ عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴿۵۰﴾ وَإِذَا أَنۡعَمۡنَا عَلَى الۡإِنۡسَانِ أَعۡرَضَ |
| عذاب سخت نه۔ او کله چه احسان وکړو مونږ په انسان باندے مخ اړوي |

﴿وَنَاٰ بِجَانِبِهٖ ۚ وَاِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ فَذُوۡ دُعَآءٍ عَرِیۡضٍ ﴿۵۱﴾﴾

او وړاندې کړي اړخ خپل، او کله چه اُورسي دهٔ ته تکلیف نو وي خاوند د دعاء پلنې.

**تفسیر** : پدې درې آیتونو کښې د انسان تعریف ذکر دې، او دلته الله تعالیٰ انسان مطلق ذکر کړیدې، مراد ترې نه کافر انسان دې، نو الف لام عهدي دي. خو د عامو انسانانو په خوئي او مزاج کښې دا مرضونه شته، خو دا به د ځان نه د ایمان په ریاضت او مشقت باندې دا بد خویونه لرې کېږي، او اشاره ده چه دا په قرآن کریم سره لرې کېږي.

مناسبت د موضوع د سورت سره دې چه مقصد پدې آیتونو کښې توبیخ دې انسان ته په اعراض باندې، دویم ئې د ﴿اَیۡنَ شُرَکَآءِیۡ﴾ سره تعلق دې، چه الله تعالیٰ چه کومو مشرکانو ته آواز کوي، دوئ د همدې بدو خویونو والا خلك دې. نو اول دا مرضونه په مشرکانو کښې دي، بیا په فاسقانو مسلمانانو کښې هم راتلې شي.

## اشکال

پدې آیت کښې دي چه انسان د دعاء د خیر نه نهٔ ستړې کېږي، او دا ئې عیب ګرځولې دې حال دا چه د خیر دعاء کولو باندې خو قرآن کریم کښې ترغیب راغلې دې. دویم دا چه روستو راځي چه ﴿وَاِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ فَذُوۡ دُعَآءٍ عَرِیۡضٍ﴾ د تکلیف په وخت پلنې دعاګانې کوي. دا هم د انسان بدي ده.

نو سوال دا دې چه په مصیبت کښې د الله تعالیٰ نه دعا طلب کول خو ښه کار دې، هغه انسان صحیح نهٔ دې چه په مصیبت کښې هم د الله نه غافل وي.

**جواب** دا دې چه دلته د کافر بیا د عام انسان یو څو بد صفتونه ذکر کول مقصد دې. اول صفت ئې په دنیا باندې حرص دې، ددې نه بل تعبیر : حُبُّ الدُّنۡیَا دې. یعنې دنیا سره محبت. دویم (اَلۡیَاۡسُ وَالۡقُنُوۡط) ددهٔ نا امیدي د الله نه او د هغه د رحمت نه.

او ددې سره به دا خبره ملګرې کړې چه دهٔ کښې نا امیدي ولې پیدا کېږي [لِسُوۡءِ ظَنِّهٖ بِاللّٰهِ]. ځکه چه په الله باندې بد ګمانه دې. دریم بد صفت : اَلۡکِبۡر. په دهٔ کښې تکبر دې. خپل نفس ډیر لوی ګنړي حال دا چه ډیر کمزورې دې.

څلورم مرض : اَلۡغَفۡلَةُ وَالۡاِسۡتِغۡنَاءُ وَالۡاِعۡرَاضُ عَنِ اللّٰهِ. په انسان کښې غفلت دې، او د الله تعالیٰ نه بې پرواه دې، او ذ الله نه مخ اړوي. پنځم مرض : اَلۡجَزۡعُ وَعَدَمُ الصَّبۡرِ. د انسان جزع فزع او بې صبري ډیره زیاته ده. او دا ډیر قبیح مرضونه دي چه انسان خرابوي.

ددے برعکس مؤمن کښې به دا صفات وی :
(۱) اَلزُّهْدُ فِی الدُّنْیَا۔ دنیا کښې به بے رغبته وی۔ په دنیا به حریص نهٔ وی۔
(۲) حُسْنُ الظَّنِّ بِاللّٰہِ ۔ په الله تعالیٰ بـه ښهٔ گمان لری چه زمونږ رب شته، مخکښې ئے په ما رحم کړے وو، روستو به هم په ما رحم کوی۔
(۳) اَلتَّوَاضُعُ وَالشُّکْرُ۔ مؤمن کښې عاجزی او شکر وی چه کله یو نعمت ورله راشی، نو د الله تعالیٰ شکر کوی۔
(٤) اَلْمَحَبَّةُ وَالذِّکْرُ ۔ د خپل الله تعالیٰ سـره مینـه ډیره لری، کله چه یو نعمت ورته ملاؤ شی، نو الله تعالیٰ ډیر یادوی چه زهٔ څوك وم، او دا نعمت چه الله ما ته راکړو، نو د الله سره ئے مینه پیدا شی۔
(٥) اَلصَّبْرُ وَالثَّبَات۔ د تکلیف په وخت کښې ثابت قدم او صبرناك وی، او دا په ایمان او په کتاب او سنت لوستلو سره پیدا کیږی، لیکن دغه مخکښې د کافرو صفات کله نا کله په مؤمن کښې پیدا شی۔

**فوائد الالفاظ** بیا تطبیق ددے صفاتو۔

لَا یَسْأَمُ الْإِنْسَانُ : انسان د دعاء د خیر نه نهٔ ستړے کیږی، ولے ؟ ځکه : [لِحِرْصِہٖ عَلَی الدُّنْیَا] ځکـه چه په دنیا باندے حریص دے۔ او د خیر نه مراد دنیاوی خیر او مال دے، کوم انسـان چـه هر وخت د دنیا د مال او صحت او بچو او ښځے سوال کوی، نو ددهٔ د دنیا سره مینه ده۔ هسے د دنیا دعاء جائز ده لیکن دلته ددهٔ حرص بیانیږی۔
فَیَئُوْسٌ قَنُوْطٌ : نا امیده وی د الله نه [لِسُوْءِ ظَنِّہٖ بِاللّٰہِ] ځـکه چه په الله تعالیٰ باندے بد گمان لری، او د الله تعالیٰ نـه مرور شی۔ او څوك چه دلته دا معنیٰ کوی چه د باباگانو او بتانو خپلو نه نا امیده وی، دا صحیح تفسیر نهٔ دے۔

## د یَئُوْس او قَنُوط فرق

(۱) د یـؤوس او قـنوط فرق دا دے چه یؤوس د زړهٔ سره تعلق لری، او قنوط د ظاهر سره تـعلق لـری، او اول حال د کافر دے لکه په سورة یوسف (۸۷) آیت کښې ذکر دے، او دویم حال د گمراه دے لکه په سورة حجر (٥٦) آیت کښې ذکر دے۔
(۲) یـؤوس (نـا امیـده) دے د رحـمت د الله تعالیٰ نه، او قنوط (نا امیده) دے د ازالے د شر

نه. یعنی د الله تعالیٰ نه نا امیده دے چه ګنے هغه به ترے دا تکلیف لرې کړی. بلکه دده ګمان دا دے چه دا مصیبت په ما همیشه دے، او ما نه به لرے نشی، او الله تعالیٰ هغه چا ته خاندی چه سهار پرے باران کیږی او دا ماښام کښې نا امیده وی.

رَحْمَةً مِّنَّا : یعنی اول فقیر وو بیا الله تعالیٰ مالداره کړو، اول بیمار وو، بیا الله تعالیٰ صحتمند کړو، اول بے اولاده وو بیا الله تعالیٰ بال بچه دار کړو.

لَيَقُولَنَّ هٰذَا لِي : دے ولے دا خبره کوی چه زهٔ ددے مستحق یم؟ (لِکِبْرِهٖ) ځکه چه دے متکبر دے، چه نعمت ورله الله تعالیٰ ورکړی، او دے وائی چه زهٔ ددے اهل او لائق یم، ما کښې کمالات دی، او دومره متکبر شی چه قیامت هم پکښې نهٔ منی. او دغه شان خبره فرعونیانو هم کړے وه (لَنَا هٰذِهٖ) (الاعراف : ۱۳۱). (دا هر څه زمونږ حق دے).

مجاهدؒ وائی : هذا لی معنیٰ ده :

[هٰذَا بِعَمَلِيْ وَاَنَا مَحْقُوْقٌ بِهٖ اَوْ هٰذَا لِيْ دَائِمًا لَا يَزُوْلُ] . یعنی دا زما په عمل سره حاصل شویدی او زهٔ ددے لائق یم، یا دا زما دپاره همیشه دے چه نهٔ به زائله کیږی.

او بیا دپاسه دا عقیده هم ساتی چه قیامت اول نهٔ راځی، که راشی هم ما ته به هلته ښائسته حالت راکوی ځکه چه زهٔ الله ته ګران یم، په دنیا کښې ئے راکړیدی نو په آخرت کښې به ئے هم راکوی.

وَّلَئِنْ رُّجِعْتُ : یعنی اول خو قیامت نهٔ راځی خو کیدے شی چه راشی، ځکه چه د مشرکانو مخامخ به د قیامت تذکرے زیاتے کیدے نو هغوی به کله نا کله شکیان شو چه کیدے شی چه راشی. لکه روستو سورة الجاثیه آیت (۳۲) کښې به راشی ﴿اِنْ نَّظُنُّ اِلَّا ظَنًّا﴾ زمونږ صرف معمولی شان ګمان دے.

د الحسنیٰ نه مراد ښائسته حالت دے. یا (اَلْعِیْشَةُ الْحُسْنٰی) ښائسته ژوند دے. یا مراد ترے جنت دے.

فَلَنُنَبِّئَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا : هر کله چه دے مجرمانو ته د دوی بد عملونه بیان کړے شی، نو دویٔ به خپله اقرار وکړی چه مونږ د جنت او ښائسته ژوند لائق نهٔ یو.

غَلِيْظٍ: ټینګ او چقړ یعنی ګنده عذاب ته وئیلے شی.

## د اَعْرَضَ او نَاٰیٰ بِجَانِبِهٖ فرق

(۱) اعرض ونأى بجانبه : مخ اړوی د شکر نه. او خپل اړخ وړاندے کړی یعنی حق ته د

غاړے کیخودو نه ځان پورته وګنړی، او دا کار ولے کوی؟ [لِغَفْلَتِهٖ وَاسْتِغْنَائِهٖ عَنِ اللّٰهِ] ځکه چه د الله تعالیٰ نه غافل او بے پرواه او موړ دے، هغهٔ ته خپل ضرورت نهٔ محسوس کوی۔

(۲) اعرض : اَیۡ بِقَلۡبِهٖ ۔ یعنی په زړهٔ سره اعراض او نفرت کوی۔ ونأی بجانبه : اَیۡ اَعۡرَضَ عَنِ الطَّاعَةِ بِالۡجَسَدِ ۔ یعنی د طاعت نه مخ اړوی په بدن سره، هغهٔ ته رکوع، سجده او د هغهٔ ذکر نهٔ کوی۔

**فَذُوۡ دُعَاءٍ عَرِیۡضٍ** : پلنے او اُوږدے دعاګانے کوی، ولے؟ [لِعَدَمِ صَبۡرِهٖ] ځکه چه صبرناك نهٔ دے۔ هسے ډیره دعا د الله تعالیٰ نه کول ښه کار دے، لیکن دے صبریٔ د وجه نه عیب دے، ایوب ﷺ دومره صبرناك وو چه اتلس کاله روستو ئے د بیماریٔ د ښه کیدو دعاء وکړه۔ هرکله ئے چه پلنوالے ذکر کړو، معلومیږی چه اُوږدوالے به ئے هم زیات وی ځکه چه د کوم څیز پلنوالے وی نو اوږدوالے ئے د هغے نه زیات وی۔

او په عریض کښ اشاره ده چه دغه یو حاجت بار بار ذکر کوی نور حاجتونه د الله تعالیٰ نه نهٔ طلب کوی، نو د یو څیز تکرار ته عَرض وئیلے کیږی او د ډیرو حاجتونو ذکر کولو ته طول وئیلے کیږی۔

نو دا ډیر جامع او ښکلے آیتونه دی چه د انسان تعریف پکښ ذکر دے، او زمونږ دپاره په کښ ډیر لوی سبق پروت دے چه دا بد صفتونه د ځان نه وباسو۔ او زیات مقصود پکښ بیان د اعراض د انسانانو دے۔

| |
|---|
| قُلۡ أَرَأَیۡتُمۡ إِنۡ کَانَ مِنۡ عِنۡدِ اللّٰهِ ثُمَّ کَفَرۡتُمۡ |
| اُووایه ! خبر راکړیٔ ما ته که چرته وی دا قرآن د طرف د الله نه بیا کفر کویٔ تاسو |
| بِهٖ مَنۡ أَضَلُّ مِمَّنۡ هُوَ فِیۡ شِقَاقٍ بَعِیۡدٍ ﴿۵۲﴾ |
| پدے باندے نو څوك لوئی ګمراه دے د هغه چا نه چه هغه په دشمنیٔ لرے کښ دے۔ |
| سَنُرِیۡهِمۡ آیَاتِنَا فِی الۡآفَاقِ وَفِیۡ أَنۡفُسِهِمۡ |
| زردے چه وبه ښایو دوی ته نخے خپلے په اطرافو (د دنیا) کښ، او په نفسونو د دوی |
| حَتّٰی یَتَبَیَّنَ لَهُمۡ أَنَّهُ الۡحَقُّ أَوَلَمۡ یَکۡفِ بِرَبِّكَ |
| کښ تردے چه ښه به ښکاره شی دوی ته چه دا حق دے آیا نهٔ دے کافی رب ستا چه |

| اَنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ شَهِيۡدٌ ﴿۵۳﴾ اَلَاۤ اِنَّهُمۡ فِىۡ مِرۡيَةٍ |
|---|
| هغه په هر شي باندې حاضر ناظر دے۔ (گواه دے)۔ خبر شئ يقيناً دوی په شك كښ |
| مِّنۡ لِّقَآءِ رَبِّهِمۡ‌ ؕ اَلَاۤ اِنَّهٗ بِكُلِّ شَىۡءٍ مُّحِيۡطٌ ﴿۵۴﴾ |
| دی د ملاقات د رب خپل نه خبر شئ يقيناً الله په هر شي باندې راګيرونکے دے۔ |

**تفسير** : اُوس بيا زجر دے په اعراض او انكار د قرآن باندے۔ نبي كريم ﷺ ته فرمائي چه ته قريشو كافرانو ته ووايه چه كه دا قرآن د الله تعالىٰ كلام وی، او تاسو ددے نه انكار كوئ نو لږ دا راته ووايئ چه تاسو نه به زيات گمراه بل څوك وی ؟۔

نو ددے جزاء دا ده : [مَنۡ اَضَلُّ مِمَّنۡ] ستاسو نه به لوی گمراه بل څوك وی؟۔

ليكن دغه جزاء ئے رانۀ وړه بلكه خبره ئے عامه كړه (مَنۡ اَضَلُّ) سره، څكه چه كيدے شی مخاطبينو كښ به ښه خلك هم وی۔

اَرَءَيۡتُمۡ: دا لفظ د مخاطبينو د متوجه كولو او هغوی ته د فكر دعوت وركولو دپاره وئيلے كيږی۔

دا حقيقت خو د روښانه ورځے پشان واضح شوے چه قرآن واقعی د الله كلام دے، او تاسو په غير د دليل او د برهان نه ددے نه انكار كوئ۔ (اِنۡ) ئے په طريقه د اِرۡخَاءُ الۡعِنَانِ (د واګے سستولو) دپاره ذكر كړيدے، او مقصد پكښ مخاطبين متوجه كول دی، او دا د دعوت او د مناظرے طريقه ده چه مخاطب له د فكر موقع وركړی۔ يعنی سوچ وكړئ كه دا قرآن حق وی او تاسو ئے نۀ منئ او عذاب درباندے راشی نو څه به كوئ۔ نو راشئ پدے باندے په جلتئ سره ايمان راوړئ۔

شِقَاقٍۢ بَعِيۡدٍ: ددے نه مراد د قرآن نه انكار كول سره د علم نه چه دا حق دے۔

سَنُرِيۡهِمۡ : پدے آيت كښ بيان د صدق او د حقانيت د قرآن دے په دوه قسمه دليلونو سره، چه په يو قسم كښ بيا دوه قسمه دليلونه دی۔ ورسره ضمناً تخويف دے منكرينو ته۔ يعنی دوی ته به مونږ د قرآن په حقانيت باندے ښيے ښانے په نزدے زمانه كښ وښايو چه د دوئ به يقين راشی چه دا حق كتاب دے۔

فِى الۡاٰفَاقِ: جمع د اُفُق ده، د آسمان يا د زمكے طرفونو او كنارو ته وئيلے شی۔

(۱) د آفاق نه مراد د آسمان ښيے دی، او د فِىۡۤ اَنۡفُسِهِمۡ نه مراد د زمكے حوادث دی۔ (ابن

زیندٌ)

(۲) مجاهدؒ وائی : دآفاق نه مراد د زمکے اطراف او کلی فتح کیدل دی، د کوم فتح چه الله د رسول الله ﷺ دپاره آسانه کریده، او فِیۡۤ اَنۡفُسِهِمۡ نه مراد مکه فتح کیدل دی۔

او همدغسے وشوه چه مشرق او مغرب او د قیصر او کسریٰ او نورو طاقتونو زور مات شو او اسلام په تیزیٔ سره خور شو، او مکه هم فتح شوه، او کافرانو ته یقین وشو چه واقعی دا قرآن د الله کلام دے، او پدے کښ بیان شوے خبرے حقے دی۔ نو ډیرو ته پکښ الله تعالیٰ د ایمان توفیق ورکرو۔

(۳) دارنګه انفس د آفاق په مقابله کښ دی نو خپل بلاد (کلی) هم ترے مراد دی۔

(٤) دے کښ بعید تاویل قتادهؒ او ضحاكؒ دا کریدے چه د آفاقی نښو نه مراد نمر سپوږمیٔ ، شپه او ورځ او بادونه، بارانونه، رعد او برق او تندرونه او ګیاه او ونے او غرونه او دریابونه وغیره دی۔

او د فِیۡۤ اَنۡفُسِهِمۡ نه مراد (لَطِیۡفُ الصُّنۡعَةِ وَبَدِیۡعُ الۡحِکۡمَةِ فِی النَّفۡسِ) دے، یعنی د الله باریك پیدائش او ناشنا حکمتونه په نفسونو د انسانانو کښ موجود دی تردے چه د بول وبراز په دواړو لارو کښ هم شته چه سرے خوراك او څکاك په یو ځای کوی، او وباسی ئے په جدا جدا لارو باندے، په دواړو سترګو باندے د زمکے نه آسمان پورے نظر کوی چه اندازه ئے پنځه سوه کاله مزل دے۔ او په دواړو غوږونو باندے مختلف آوازونه جدا جدا کوی، دا ټول د الله د ناشنا حکمت نه دی، او اهل علم وائی چه د انسان په بدن کښ پنځه زره نښے د قدرت دی، آه۔

دا د قدرت نښے صحیح دی، او الله تعالیٰ پدے باندے انسان ته د فکر کولو دعوت ورکریدے لکه فرمائی ﴿وَفِیۡۤ اَنۡفُسِکُمۡ اَفَلَا تُبۡصِرُوۡنَ﴾ ستاسو په نفسونو کښ د الله د قدرت نښے دی، آیا نو تاسو نهٔ ګوریٔ۔ مګر دلته دا تفسیر مراد نهٔ دے څکه چه (سَنُرِیۡهِمۡ) استقبال صیغه ورسره نهٔ لګی۔ دا نښے خو د مخکښ نه معلومی دی۔

اګرکه صاحب د فتح البیان جواب کریدے، لیکن دلته مطلب دا دے چه مونږ به دوی ته د آسمانونو او د زمکے د نښو رازونه او حکمتونه وښایو۔ نو نښے اګرکه د مخکښ نه معلومے دی لیکن رازونه ئے وخت په وخت راښکاره کیږی۔

نو ظاهر دا ده چه دا د الله تعالیٰ د طرف نه یوه وعده چه د سلفو په زمانه کښ ددے پوره مصداق نهٔ وو، او کله نا کله داسے شویدی چه یو آیت یا حدیث به داسے وی چه د سلفو

په زمانه کښې به د هغې مصداق نهٔ وو روستو زمانه کښې د هغې انکشاف شوېدے لکه مثلاً د کائناتو تذکره چه قرآن کښې کېږي نو د سلفو په دور کښې د آلاتِ جدیده د نهٔ موجودېدو په وجه هغوی د ډېرو مصداقاتو د معلومات نه محروم وو، او زمونږ په زمانه کښې آلات جدیده او موبائلونه، کمپیوټرے د خلکو لاسونوته راغلل نو ددے وجه نه دوی لږ ډېر خبر دی، لکه پخوا د علماؤ پدے کښې اختلاف وو چه باران د ورېځې نه راځي او که د آسمان نه، حال دا چه آلاتِ جدیده ؤ دا اختلاف بیخي ختم کړو او یقین وشو چه باران د ورېځے نه راځي۔

پخوا په نظام شمسی کښې د اُوه ستورو اکتشاف شوے وو، اُوس د لسو اکتشاف شوېدے۔ نو دارنګه پدے آیت کښې هم دغه اشاره ده۔ یعني قسماقسم آلات به الله تعالیٰ پیدا کړي چه په هغې کښې به خلکو ته د قرآن حقانیت معلومېږي، هغه داسے چه په اطرافو کښې هم، او دارنګه زمونږ په نفسونو او روزمره زندګۍ هم الله تعالیٰ داسے آلات پیدا کړېدی چه په هغې سره الله تعالیٰ وحدانیت او د هغه د دین حقانیت معلومېږي، لکه د هغې مثال:

قرآن کریم کښې دی چه سلیمان علیه السلام به په تخت باندے آلوتلو او د هوا په شا باندے به روان وو، د هغې مثال زمونږ په زمانه کښې جهازونه دی چه په سلګونو خلك پورته کوی۔ او په حدیث که دی چه د یاقوت نه جوړ اس به وی او جنتی به پرے سور وی او په جنت کښې به الوزی۔ معتزله ؤ جاهلانو ویل چه دا څنګه کیدے شی، نو د هغې مثال اُوس د وسپنے او المونیم جهازونه دی چه دومره درون وزن په هوا کښې ګرځي۔

رسول الله ﷺ وفرمایل : چه زهٔ په لږ وخت کښې آسمانونو ته لاړم او بیرته راغلم خلکو انکار وکړو نو الله تعالیٰ مونږ ته د هغې نښه راوخودله چه تاسو هم په لږ ساعت کښې مثلاً د مکے نه بیت المقدس ته په جهاز کښې په نیمه ګینټه کښې بلکه ددے نه هم زر رسیدلے شئ۔

دارنګه سَنُرِيهِمۡ آيَاتِنَا کښې د الله نښے هم داخل دی، یعني الله حق دے، نښه ئے آلاتِ جدیده دی، وګوره بجلي لګیدلے ده، مګر د واپډا دفتر نه ددے کرنټ ضروري دے، که کرنټ نهٔ وی، نو بجلي به وی او بلپ به نهٔ لګی۔ موبائل ئے مثال دے چه ددے سګنل وی نو کار کوی او که سګنل ئے نهٔ وی نو هسے سیټ به ستا لاس کښې وی، لیکن کار به نهٔ کوی۔ نو دغه شان رب العالمین دے ټول عالم ته کرنټ ورکوی، او د هغهٔ په امر

باندے دا نظام چلیږي، چه د هغهٔ امر ترے لرے کړے بیا به ئے څوك راتینګ کړي۔ ﴿وَلَئِنۡ زَالَتَآ اِنۡ اَمۡسَکَهُمَا مِنۡ اَحَدٍ مِّنۡۢ بَعۡدِهٖ﴾۔

نو د موبائل په ذریعه د الله وجود او د آخرت ډیر احوال، عملنامه مخامخ راتلل او هغے کښې هر څه ښکاره کیدل او د عملونو تلل کیدل دا ټول آسان شو۔ دارنګه په نورو آلاتو سره د انسان تبه، ګرمي، یخني تللے کیږي۔

اَوَلَمۡ یَکۡفِ بِرَبِّكَ: دا دویم دلیل دے چه دا کافي دلیل دے چه ستا رب په هر شي ګواه دے، او په هر شي کښې خو قرآن هم داخل دے نو ستا دپاره د خپل رب ګواهي کافي ده، هغه ګواهي ورکوي چه دا قرآن حق کتاب دے۔ لنډ مطلب دا دے [اَوَ لَمۡ یَکۡفِ بِرَبِّكَ اَنَّهٗ یَشۡهَدُ عَلٰی اَنَّ هٰذَا کِتَابُ اللّٰهِ] الله پدے ګواهي ورکوي چه دا قرآن د الله حق کتاب دے۔ لکه د ﴿لٰکِنِ اللّٰهُ یَشۡهَدُ بِمَآ اَنۡزَلَ اِلَیۡكَ﴾ (النساء: ١٦٦) په شان دے۔ خو د خبرے د تعمیم دپاره فرمائي چه الله په هر شي ګواه دے۔

او چونکه الله په هر شي باندے ګواه او حاضر (باعتبار العلم) او ناظر دے، نو که دا د هغه کتاب نهٔ وے نو هغه به دے نبي ته سزا ورکړے وے ځکه چه دهٔ به په الله باندے زیاتے ونیلے وے ﴿وَلَوۡ تَقَوَّلَ عَلَیۡنَا بَعۡضَ الۡاَقَاوِیۡلِ لَاَخَذۡنَا مِنۡهُ بِالۡیَمِیۡنِ﴾ (که دهٔ په ما باندے بعض وینا ګانے کړے وے، خامخا مونږ به دے د نبي لاس نه نیولے وے) لکه څنګه ئے چه مسیلمة الکذاب او اسود عَنۡسِيُ او نور د نبوت دعویدار راونیول، او هرکله چه الله تعالیٰ دے نبي ته ګوري او څه ورته نهٔ وائي بلکه وخت په وخت ئے تائید کوي، دا دلیل دے چه دا نبي او دا کتاب حق دے۔

نو د الله دا تائیدات او نصرتونه دلیل دے ددے کتاب د حقانیت او رشتینوالي۔

اَلَآ اِنَّهُمۡ فِیۡ مِرۡیَةٍ: اُوس دا خبره بیانوي چه ددے څه وجه ده چه دا خلك د قرآن کریم نه اعراض کوي؟ نو وجه دا ده چه دویٔ د آخرت نه منکر دي، او د الله ملاقات نهٔ مني، که د دویٔ دا یقین وے چه مونږ به د الله تعالیٰ سره ملاویږو، او د الله تعالیٰ مخے ته به ودریږو او هغه به مونږ سره حساب کوي، نو ضرور به ئے دا قرآن منلے۔

معلومه شوه چه څوك د الله تعالیٰ ملاقات پوره طریقے سره مني، نو هغه به قرآن ته غاړه ورکوي، او ددے نه به زاریږي، او ددے سره به انتهائي محبت ساتي، او څومره چه د آخرت استحضار او د هغے تخویف کمیږي، نو هغومره به د قرآن نه اعراض او غفلت زیاتیږي۔ نو پدے کښې مونږ ته دعوت دے چه که تهٔ د آخرت ډیر ویریدے، نو د قرآن نه

به ناشنا فائدے واخلی۔
أَلَا إِنَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ مُّحِيطٌ : یعنی خبر شئ چه الله تعالیٰ د دوئ عمل، بدنونه او روحونه ټول په خپل علم او قدرت کښ راګیر کړیدی، نو قیامت به راولی او دوئ ته به د دوئ د عملونو خامخا بدله ورکوی۔ وبالله التوفیق۔

## امتیازات

۱- پدے سورت کښ مسئله د اعراض زیاته وه۔
۲- د کافرانو دا قول پکښ وو ﴿وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا فِيْٓ اَكِنَّةٍ﴾ ﴿وَمِنْ بَيْنِنَا وَبَيْنِكَ حِجَابٌ﴾
۳- مسئله د اِستقامت پکښ دوه ځله ذکر ده۔
٤- آداب الدعوة الی الله پکښ ذکر دی۔
٥- د کائناتو د پیدائش تفصیل بیان شو۔
٦- الله تعالیٰ د خپلو أعداؤ تذکره وکړه چه څوك د قرآن دشمن وی هغه د الله تعالیٰ دشمن دے۔
۷- او په قرآن باندے ډیر اعتراضات او د هغے جوابونه ذکر شول۔
۸- او د انسان جامع مانع تعریف پکښ بیان شو۔

ختم شو تفسیر د سورة حم السجده په مدد د رب العزت سره۔ تاریخ: شوال ۱٤۳٦/۱٥ هـ الموافق: ۲۰۱٥/اګست/۱ د پشکال میاشت: (۱٦)۔
شیخ آباد نمبر ٤ پشاور۔

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ○

| رکوعاتها (٥) | (٤٢) سورة الشوری مکیة (٦٢) | آیاتها (٥٣) |
|---|---|---|

سورة الشوریٰ مکی دے، په دے کښې درے پنځوس آیتونه او پنځه رکوع دی

## تفسیر سورة الشوریٰ

**نوم :** د (٣٨) آیت ﴿ وَأَمۡرُهُمۡ شُوۡرَىٰ بَیۡنَهُمۡ ﴾ نه اخستے شوے ځکه چه د مؤمنانو په صفاتو کښې یو صفت دا دے چه خپل مینځ کښې به مشوره کوی. او دیته سورتِ حٰمٓ عٓسٓقٓ هم وئیلے کیږی.

**د نازلیدو زمانه :** ابن عباس او ابن الزبیر رضی الله عنهم په نیز ټول سورت مکی دے. د ابن عباس ﷺ د یو بل قول مطابق (٢٣) آیت ﴿ قُلۡ لَّآ أَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَیۡهِ أَجۡرًا ﴾ نه څلور آیتونه مدنی دی. دا قول د قتادةؒ هم دے. (فتح البیان)

## مناسبت

١- مخکښې سورت کښې معرضینو د قرآن نه رټنه ورکړے شوه، نو اُوس پدے سورت کښې د وحی عظمت بیانوی. د قرآن نه ولے اعراض کوئ، دا خو ډیر قیمتی شے دے چه بندګانو ته رب العالمین وحی نازله کړے.

٢- توحیدی انداز سره مناسبت دا دے چه مخکښې سورت کښې د مشرکانو ددے خبر رد وشو چه دا اولیاء مونږ ته خوبونو کښې راځی چه زمونږ بندګی وکړئ نو الله وفرمایل چه ﴿ وَقَیَّضۡنَا لَهُمۡ قُرَنَآءَ ﴾ دا خو شیطانان دی چه تاسو ګمراه کوی. نو دے سورت کښې رد کوی په اتخاذ الاولیاء باندے، چه د ځان دپاره د الله تعالیٰ نه سویٰ نور معبودان مه نیسئ.

٣- دارنګه هلته معرضینو د قرآن ته رټنه وه، نو دلته دعوت دے فیصلے کولو ته په قرآن باندے. ٤- په مخکښې سورت کښې دعوت الی الله ته ترغیب وو، نو پدے سورت

کښې د دعوت کونکو لس ذمه واریانے ذکر کوی۔

٥- په مخکښې سورت کښې د قرآن نهه صفات ذکر شو، نو په دے سورت کښې د اهل قرآن نهه صفات ذکر کیږی۔

## موضوع د سورت

١- زمونږ بعض مشائخ وائی چه په دے سورت کښې رد د شرك فی الولایة دے۔ ﴿اَمِ اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ اَوۡلِیَآءَ﴾ یعنی د الله نه بغیر بل معبود نشته۔ په بل تعبیر سره رد د شرك فی العبادة پکښې ذکر دے، لیکن دا موضوع دومره ظاهره نهٔ ده۔

٢- ظاهر موضوع دا ده چه په دے کښې بیان د عظمة الوحی دے، د وحی اقسام، چا چه د وحی تابعداری کړے، د هغوئ فوائد او د وحی نه چه چا اعراض کړے د هغوی نقصان۔

یعنی آثَارُ الْوَحْيِ فِي الْاِنْسَانِ وُجُوۡدًا وَعَدَمًا۔ یعنی په انسان کښې د وحی کوم وجودی او کوم عدمی اثرات پیدا کیږی۔ ددے سورت موضوع د سورت رعد د موضوع په شان ده، لیکن ددے سورت طرز د هغے نه بدل دے، په دے سورت کښې به لنډے لنډے جملے راځی۔ دا موضوع د اول د سورت نه معلومیږی بیا فرمائی : ﴿وَكَذٰلِكَ اَوۡحَیۡنَاۤ اِلَیۡكَ﴾ بیا فرمائی : ﴿وَمَا اخۡتَلَفۡتُمۡ مِنۡ شَیۡءٍ فَحُكۡمُهٗۤ اِلَی اللّٰهِ﴾ د الله حکم د هغهٔ کتاب دے۔

بیا په (١٣) آیت کښې دی ﴿شَرَعَ لَكُمۡ مِنَ الدِّیۡنِ﴾ بیا په آخر د سورت کښې دی :

﴿وَكَذٰلِكَ اَوۡحَیۡنَاۤ اِلَیۡكَ رُوۡحًا مِنۡ اَمۡرِنَا﴾ ۔ نو ددے فائده به دا راوځی چه اے خلکو! تاسو به د وحی مطابق دین باندے عمل کوئ۔ که څوك د وحی مطابق دین باندے عمل نکوی، او د ځان نه دین جوړ کړی نو دا به بدعت وی، دے له به اعتبار نهٔ وی۔

چونکه د وحی مناسبت د آخرت سره هم دے، نو په دے وجه دا خبره به هم بیانوی چه وحی ددے دپاره راغلے ده چه د بندګانو دآخرت ورځ بنه شی۔ او عام آیتونه به ددے موضوع سره په آسانئ لګی او د وحی متعلقات به بیانیږی۔

دا سورت په لنډو لنډو جملو مشتمل دے نو ددے لګول ډیر مشکل وی خو د الله په توفیق سره چه کله تا موضوع د سورت وپیژنده نو ددے لګول به آسان شی۔

| حٰمٓ ﴿١﴾ عٓسٓقٓ ﴿٢﴾ كَذٰلِكَ یُوۡحِیۡۤ اِلَیۡكَ وَاِلَی الَّذِیۡنَ |
|---|
| ددے حروفو په مطلب الله ښهٔ پوهیږی۔ دغسے وحی کوی تا ته او هغه کسانو ته |

| مِنْ قَبْلِكَ اللّٰهُ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۳﴾ |
| --- |
| چه مخکښې ستا نه دی الله تعالیٰ چه زورور دے، حکمتونو والا دے۔ |

**تفسیر** : حٰمٓ، عٓسٓقٓ: دے سورت کښې هم حروف مقطعات زیات راوړے شو اشاره ده چه پدے سورت کښې به د قرآن متعلق خبرے زیاتے وی، ددے د حقانیت، ددے د اثر او ددے د عظمت بیان به وی، لکه څنګه ئې چه د سورتِ رعد په ابتداء کښې د (الٓر) سورتونو په جانب کښې (الٓمٓر) یو حرف زیات راوړو. بیا دا په لوستو کښې د (کٓهٰیٰعٓصٓ) په شان دے، لیکن دواړه جدا ولیکلے شو، یوه وجه دا ده چه دا دوه آیتونه شمار کړے شویدی. دویمه وجه دا ده چه ددے سورت په امثالو کښې مخکښې هم حم او روستو هم حم جدا ذکر دے، نو پدے کښې هم حم جدا ولیکلے شو. او پدے کښې هم هغه خبره ده کومه چه په نورو حروفِ مقطعاتو کښې ذکر شویده چه الله ددے په مطلب پو هیږی.

كَذٰلِكَ يُوْحِيْٓ: دا کاف تشبیهی دے، د چا سره تشبیه ده؟۔ ۱- چا چه د مخکښې سورت (سَنُرِيْهِمْ اٰيٰتِنَا فِي الْاٰفَاقِ) سره تشبیه ورکړیده، نو دا ډیره بعیده ده، ځکه چه هغه او دا جدا جدا سورتونه دی. نو پدے کښې درے تفسیرونه دی (۱) یو دا چه دا تشبیه ده د پخوانو رسولانو د وحی سره. [اَیْ كَمَا اُوْحِیَ اِلٰی مَنْ قَبْلَكَ مِنَ الرُّسُلِ كَذٰلِكَ يُوْحِيْٓ اِلَيْكَ] یعنی لکه چه الله پخوانو رسولانو ته وحی کړیده، نو دغه شان تا ته هم وحی رالیږی نو ﴿وَاِلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكَ﴾ ګویا که مشبه به ده.

(۲) دویم دا چه كذلك کښې تشبیه ده د وحی سره، کومه چه په يُوْحِيْٓ کښې ذکر ده. او د خپلے وحی سره تشبیه ورکوی د کمال دپاره. اَیْ مِثْلَ هٰذَا الْوَحْيِ يُوْحِيْٓ اِلَيْكَ یعنی لکه ددے وحی په شان چه تا ته الله مخکښې کړیده آینده کښې هم وحی کوی. (التنویر)

او يُوْحِيْٓ ئې مضارع راوړه، اشاره ده چه دا د الله تعالیٰ عادت دے چه پیغمبرانو ته وحی رالیږی.

او صاحب د محاسن التاویل داسے تعبیر کوی : اَیْ مِثْلَ مَا فِیْ هٰذِهِ السُّوْرَةِ مِنَ الْمَعَانِیْ اُوْحِیَ اِلَيْكَ فِیْ سَائِرِ السُّوَرِ وَاِلٰی مَنْ قَبْلَكَ مِنَ الرُّسُلِ فِیْ كُتُبِهِمْ مِنَ الدَّعْوَةِ اِلَی التَّوْحِیْدِ وَالْاِرْشَادِ اِلَی الْحَقِّ وَمَا فِیْهِ صَلَاحُ الْعِبَادِ فِی الْمَعَاشِ وَالْمَعَادِ] لکه دے سورت کښې چه کوم مقاصد او مطلبونه ذکر دی، دغه شان وحی تا ته په باقی سورتونو کښې هم شویده او پخوانو رسولانو ته په کتابونو کښې هم شویده، هغه دا چه د الله توحید ته دعوت او

حق طرفته رهنمائی کول، او د بندګانو چه دنیا او آخرت په څه جوړیږی هغه پکښې بیان شویدی۔ نو دا به داسې وی لکه ﴿اِنَّا اَوْحَیْنَا اِلَیْكَ کَمَا اَوْحَیْنَا اِلٰی نُوْحٍ وَّالنَّبِیّٖنَ مِنْ بَعْدِهٖ﴾۔ (النساء: ۱٦۳)

(۳) قول: یا کَذٰلِكَ کښې کله د تشبیه معنیٰ نهٔ وی، بلکه د کمال او تاکید معنیٰ وی لکه عرب وائی: کَذٰلِكَ الشُّجَاعُ۔ بهادر دغه شان وی۔ یعنی دا کامل بهادر دے۔ نو دلته هم کَذٰلِكَ په معنی د (هٰکَذَا) دے۔ یعنی همداسې (کامله) وحی کوی تا ته رب ستا۔

(٤) او بعض مفسرینو د ذٰلك مشار الیه (حم، عسق) ګرځولے ده۔ یعنی پخوانو ته ئے دغه شان حروف مقطعات ورکړی وو لکه چه تا ته ئے درکړیدی۔ دا ډیر اَبْعَد تفسیر دے۔ ظاهر دا ده چه حروفِ مقطعات ددے کتاب خصوصیت دے۔

او دا جواب د اولې شبهې دے چه منکرینو وئیلی وو چه دا پیغمبر داسې څیز دعویٰ کوی چه ددهٔ نه وړاندې هیچا نهٔ ده کړے۔ ﴿مَا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِی الْمِلَّةِ الْاٰخِرَةِ﴾ اُوس هم چه څوك د توحید او سنت دعوت ورکوی نو هغه باندې داسې اعتراض کیږی۔

حاصل د جواب دا دے چه دا نوے څیز او نوے خبره نهٔ ده بلکه مخکنو انبیاء علیهم السلام ته هم داسې وحی راغلې ده، او مکې والا ددے خبرې نه بنهٔ خبر دی، دے وجې نه که الله په تا باندې وحی نازله کړے نو دوئ ولې په دے تعجب کوی۔

اَللّٰهُ الْعَزِیْزُ الْحَکِیْمُ: دا فاعل ئے روستو راوړو دپاره د تشویق پیدا کولو، او بل د رعایت د فواصلو دپاره۔ او عزت او حکمة صفتونه ئے راوړل پدے کښې د قرآن ډیر عظمت ته اشاره ده چه دا هغه ذات رالیږلے دے چه هغهٔ دپاره عزت او حکمة ثابت دے نو په کتاب کښې به ئے هم عزت او حکمت وی۔

| لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی |
|---|
| خاص د هغهٔ په اختیار کښې دی هغه څه چه په آسمانونو کښې او هغه څه چه په |
| الْاَرْضِ وَهُوَ الْعَلِیُّ الْعَظِیْمُ ﴿٤﴾ تَکَادُ السَّمٰوٰتُ یَتَفَطَّرْنَ مِنْ فَوْقِهِنَّ |
| زمکه کښې دی، او هغه اُوچت دے لوئی دے۔ نزدې دی آسمانونه چه اُوچوی د بره |
| وَالْمَلٰٓئِکَةُ یُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَیَسْتَغْفِرُوْنَ |
| طرف نه او ملائك تسبیح وائی سره د حمدونو د رب د دوی نه، او بخنه غواړی |

| لِمَنْ فِي الْأَرْضِ أَلَا إِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَفُورُ |
|---|
| دپاره د هغه چا چه په زمکه کښې دي، خبردار يقيناً الله تعالىٰ هغه بخښنه کونکے دے |
| الرَّحِيْمُ ﴿٥﴾ |
| رحم کونکے دے۔ |

**تفسير** : اُوس د الله عظمت راوړی دپاره د عظمت د کتاب د هغهٔ، لکه دا طرز د سورة الرعد هم وو۔ يعنى دا کتاب داسے عظيم او قادر رب رالیږلے دے چه د هغهٔ په اختيار کښې هر څه دي، بندګان هم د هغهٔ په اختيار او ملکيت کښې دي، نو څکه دوی ته د دوی د رهنمائی دپاره کتاب راليږی۔ او لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ کښې خلاصه د وحی هم ذکر ده چه هغه اثبات د تصرف او ولايت دے الله تعالىٰ دپاره او رد د شرك في التصرف دے۔

**يَتَفَطَّرْنَ**: آسمانونه ولے چوی او شليږی؟ ددے درے وجے دي، يوه پکښې ظاهره ده۔

(١) ظاهره وجه دا ده چه [يَتَفَطَّرْنَ مِنْ عَظَمَةِ اللّٰهِ تَعَالىٰ] د الله د عظمت د وجه نه نزدے ده چه آسمانونه وچوی۔ يعنى د الله په عرش، او کرسی او آسمانونو باندے دومره هيبت دے چه نزدے ده چه آسمانونه خکته راپريوزی نو داسے لوی ذات دا وحی راليږلے ده۔ او د روستو نه هم معلوميږی چه لوی ملائك د هغهٔ په تسبيحاتو کښې مشغول دي، او د الله لوی والے ورته معلوم دے پدے وجه د زمکے والو مؤمنانو دپاره بخښنه غواړی۔ لکه دا خبره سورة الرعد کښې هم وه ﴿ وَيُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهٖ وَالْمَلٰئِكَةُ مِنْ خِيفَتِهٖ﴾۔

(٢) يَتَفَطَّرْنَ مِنْ عِبَادَةِ الْمَلَائِكَةِ ۔ يعنى نزدے ده چه آسمان وچوی د عبادت د ملائکو د وجه نه۔ لکه حديث کښې دي : آسمان چغيږی او لائق ده چه وچغيږی پدے کښې د څلورو ګوتو په اندازه ځای نشته مګر په هغے کښې ملائك ولاړ دي چه د الله بندګی کوی۔ (ترمذى : ٢٣١٢) احمد : (٢١٥٥٥) باسناد حسن)

ليکن دا وجه ددے ځای سره دومره ډيره مناسب نهٔ ده۔

(٣) يَتَفَطَّرْنَ مِنْ شِرْكِ النَّاسِ ۔ نزدے ده چه آسمانونه راپريوزی د خلکو د شرك د وجه نه۔ لکه سورت مريم کښې راغلی وو ﴿ تَكَادُ السَّمٰوٰتُ يَتَفَطَّرْنَ ﴾ روستو وائى ﴿ اَنْ دَعَوْا لِلرَّحْمٰنِ وَلَدًا﴾ چه دوی د رحمٰن سره نور اولاد رابلی۔ دا روستنئ دواړه خبرے صحيح دي ليکن ددے سره لګول ئے بعيد دي۔

لِمَنۡ فِي الۡاَرۡضِ: ۱- اکثرو مفسرينو وئيلي دي چه د زمکے والو نه مراد مؤمنان دي، او دليل پرے د سورة حم المؤمن ﴿ وَيَسۡتَغۡفِرُوۡنَ لِلَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا﴾ (۷) آيت دے، هغه مقيد دے او دا مطلق دے۔ وائي چه زمکے والو کښې خو مشرکان هم دي، او هغوی له ملائك بخنه نۀ غواړي۔ ۲- ليکن حقه دا ده چه هغه آيت جدا دے او دا جدا۔ هلته د ايمان والو دپاره د استغفار مطلب دا دے چه د دوی ګناهونه معاف کړي، او جنت ته ئے داخل کړي او دلته جدا استغفار مراد دے۔ يعنې تاخير د عذاب د کافرانو نه۔

او وجه دا ده چه ملائك د الله تعالیٰ د حملے نه په بندګانو باندے يريږي نو ځکه د ټولے زمکے والو دپاره بخنه غواړي۔ اَیۡ وَيَسۡتَغۡفِرُوۡنَ لِمَنۡ فِي الۡاَرۡضِ لِلۡخَوۡفِ مِنۡ سَطۡوَةِ جَبَرُوۡتِهٖ۔ دوی بخنه زمکے والو دپاره غواړي ځکه چه يريږي د هغۀ د جبروت د حملے نه۔ الله جبار ذات دے او زمکے والا د هغه مخالفتونه او ګناهونه کوی نو نزدے ده چه الله پرے حمله وکړي، او عذاب پرے نازل کړي، او ټول په يو ځل ختم کړي، نو ملائك الله تعالیٰ ته وائي چه اے الله ! دا ستا بندګان دي او ستا قدرت او عظمت ئے نۀ دے پيژندلے، جاهلان دي، د دوی نه دا عذابونه روستو کړه۔ ګويا که الله تعالیٰ ته يو قسم سفارش کوی پدے اميد چه کيدے شي چه دوی به توبه وباسي او د الله تعالیٰ د عذاب نه به خلاص شي۔

ددے مثال دا دے چه د يو بادشاه يا يو مشر سړي په مجلس کښې يو ناکاره انسان هغۀ ته بده او د بے ادبیٔ خبره وکړي، بادشاه اراده وکړي چه دغه سړي ته سزا ورکړي، نو په دغه مجلس کښې وُزراء او اشراف خلك ناست وي، هغوی بادشاه ته سفارش وکړي چه بادشاه صيب ! دا سړے جاهل دے، ستا قدر او مرتبه نۀ پيژني، نو ځکه داسے ورانے خبرے کوی، که دۀ ستا قدر پيژندلے، نو دا بے ادبي به ئے نۀ کولے۔ نو د بادشاه عظمت بيان کړي او ددے سړي نا اهلي نو بادشاه د دوی سفارش ومني۔

لکه دا معنیٰ د يو حديث نه هم معلومه ده چه کله بندګان د الله تعالیٰ نافرماني شروع کړي نو الله تعالیٰ اراده وکړي چه دوی باندے عذاب نازل کړي نو دے وخت کښې ملائك د هغه په تسبيحاتو کښې مشغول شي، او الله تعالیٰ ته زاري کوی چه دا خلك جاهلان دي، عذاب ترے روستو کړه نو دے وخت کښې د الله غضب روستو شي۔

وَالۡمَلٰٓئِكَةُ يُسَبِّحُوۡنَ: د آسمان د چاودو نه مانع د ملائکو تسبيحات او د هغوی استغفار دے۔ او د زمکے د شليدو نه د بچ کيدو سبب د بندګانو تسبيحات او توحيد دے لکه حديث کښې دي: [لَا تَقُوۡمُ السَّاعَةُ حَتّٰى لَا يُقَالَ فِي الۡاَرۡضِ اَللّٰهُ، اَللّٰهُ] قيامت به تر هغه

وختــه پورے نــهٔ قــائـمیږی تــردے چــه د زمکے نــه د الله توحيد ختم شي۔ (مسند احمد ١٢٦٨٩) ومسلم (١/٩١رقم :٢٩٢)

**اَلَا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الۡغَفُوۡرُ الرَّحِيۡمُ:** پدے کښ الله تعالىٰ دعـوت ورکوی چه د الله تعالىٰ جباریت او قهاریت تـه هـم وګوره او د هغهٔ غفوریت او رحیمیت ته هم۔ نو ستا په زړهٔ کښ به الله تعالىٰ نـه يره او د هغهٔ سره بيحده محبت پيدا شي۔ او همدا د قرآن د لوستلو فائده ده۔ نو په اول د آيت کښ ذکر د هيبت او رعب دے، او په آخر کښ ذکر د رحمت او د لطف دے۔ او پدے جملـه کښ سبب د استجابت د ملائکو ته اشاره ده چه الله د دوی سفارش څکه قبلوی چه هغه د خپلو بندګانو سره د مغفرت او رحمت معامله کوی۔ دا خو تـول د الله تعالىٰ فـضـل دے چـه سَره د دومره عظمت او هيبت نه بيا هم بندګانو سره ښه معامله کوی۔

| وَالَّذِيۡنَ اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِهٖۤ اَوۡلِيَآءَ اللّٰهُ |
|---|
| او هغه کسان چه نيولی ئے دی سوئ د الله نه دوستان (معبودان) الله تعالىٰ |
| حَفِيۡظٌ عَلَيۡهِمۡ وَمَاۤ اَنۡتَ عَلَيۡهِمۡ بِوَكِيۡلٍ ﴿٦﴾ |
| راګيرونکے دے په دوی باندے او نهٔ ئے تهٔ په دوی باندے ذمه وار۔ |

**تفسير:** دا د قرآن طريقه ده چه د الله تعالىٰ عظمت ذکر کړی نو روستو رد د شرك کوی لکـه سـورة الرعد آيت (١٤) کښ ئے فرمايلی وو ﴿لَهٗ دَعۡوَةُ الۡحَقِّ وَالَّذِيۡنَ يَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِهٖ لَا يَسۡتَجِيۡبُوۡنَ لَهُمۡ بِشَىۡءٍ﴾۔ نـو پـه آيت کښ يو رد د شرك فى الولاية دے، او د معبود من دون الله کـمـزورتيـا ذکـر ده، او دويـم رسـول الله ﷺ تـه تسلی ده چـه الله تعالىٰ د دوئ د حالاتـو نه خبر دے، که توفيق د توبے ورکوی او که نهٔ ورکوی ليکن په تا باندے دد ے هيڅ ذمه واری نشته۔

**اَوۡلِيَآءَ:** دلتـه د ولايت نـه مـراد ولايـت (دوستی) د عبادت مراد ده، څکه چه څوك د چا عبادت کوی نو د هغه سره ئے مينه او دوستی وی، او هسے محبت خو د هر چا سره جائز دے۔ محبة د عبوديت د غيـر الله سره نـاروا دے۔ دارنګـه د اولياء نه مراد اختيارمند او واکدار د نفع او د ضرر دی، او دارنګه اختيار مند د احکام شرعيو ګنړل۔

**حَفِيۡظٌ عَلَيۡهِمۡ:** اَیۡ يَحۡفَظُ اَعۡمَالَهُمۡ وَيُحۡصِيۡهَا عَلَيۡهِمۡ ثُمَّ يُجَازِيۡهِمۡ ۔ الله تـعالىٰ د دوئ د

عملونو حفاظت کوي، او دا د دوئ دپاره راګیروي، بیا به ورته د هغې سزا ورکوي۔
وَمَآ اَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيْلٍ: یعني ستا کار صرف وحي بیانول دي او د دوئ د هدایت ذمه وار نهٔ يې۔

| وَكَذٰلِكَ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا لِّتُنْذِرَ اُمَّ |
|---|
| او دغه شان وحي کړیده مونږ تا ته قرآن عربي ژبې والا دے دپاره چه ته اُویروې اصل د |
| الْقُرٰى وَمَنْ حَوْلَهَا وَتُنْذِرَ يَوْمَ الْجَمْعِ |
| کلو او هغه څوك چه چاپیره دي ددې نه او اُویروې (خلقو لره) د ورځې د راجمع کولو |
| لَا رَيْبَ فِيْهِ فَرِيْقٌ فِي الْجَنَّةِ وَفَرِيْقٌ فِي السَّعِيْرِ ﴿۷﴾ |
| نه نشته هیڅ شك په هغې کښې، یوه ډله به په جنت کښې وي او بله ډله به په اُور کښې وي۔ |

**تفسیر**: دا هم رسول الله ﷺ ته تسلي ده چه ته ذمه وار نهٔ يې بلکه ستا کار صرف خلك په وحي سره یرول دي، او پدے کښې بیا د قرآن کریم عظمت، او ددے د راتللو مقصد بیانیږي هغه دا چه انسانان د الله تعالىٰ په حقوقو خبر شي، او مکے والا پدے سره د الله تعالىٰ د عذابونو نه ویرولے شي۔
وَكَذٰلِكَ: یعني لکه څنګه چه مخکښې وحي مے تا ته وکړه، نو دغه شان درته دا وحي هم کوم۔ یا کذلك د بیان د کمال دپاره دے۔
لِتُنْذِرَ ددے نه مخکښې (لِيَفْهَمُوْا مَا فِيْهِ) لفظ پټ دے۔ یعني قرآن مے درته په عربي ژبه کښې ددے دپاره نازل کړو چه خلك پدے باندے په واضحه طریقه سره پوهه شي، او دویم لِتُنْذِرَ اُمَّ الْقُرٰى: ددے دپاره چه ته مکے والا او نورے دنیا والا پدے سره ویروے، نو رسول الله ﷺ ټولے دنیا والا څهٔ بالذات یرولي دي، او څهٔ بالواسطه۔ او اول انذار د کفر او شرك او ګناهونو نه دے، او دویم انذار د آخرت نه یرول دي، چه کفر او شرك مهٔ کوئ، آخرت راروان دے۔ نو اول انذار بیان د مسئلے شو او دویم انذار د عذابونو نه شو۔
وَتُنْذِرَ يَوْمَ الْجَمْعِ: دلته باء پټه ده۔ اَىْ بِيَوْمِ الْجَمْعِ ـ او ته خلك ویروے په ورځ د قیامت یعني د هغے په عذابونو سره۔ د قیامت یو نوم دے يَوْمُ الْجَمْعِ۔ ورځ د راجمع کیدو د روحونو د بدنونو سره۔ یا د راجمع کیدو د ظالم او مظلوم۔ یا د عمل او عامل۔

فَرِیۡقٌ فِی الۡجَنَّةِ: دا هم هیبت د قیامت دے چه داسے سخته ورځ ده چه د بعض انسانانو فیصله به جنت ته کیږی، او د بعضو به اُور ته، نو ددے دپاره تیارے وکړئ۔

او فریق نکره ده مبتداء واقع شویده ځکه چه دلته (مِنۡهُمۡ) جار مجرور پټ دے، په هغے سره ئے تخصیص شویدے۔ (یعنی د دوی نه به یوه ډله په جنت کښ وی الخ)۔

| وَلَوۡ شَاءَ اللّٰهُ لَجَعَلَهُمۡ اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلٰـکِنۡ یُّدۡخِلُ |
| --- |
| او که غوختلے الله تعالیٰ خامخا کرځولی به ئے ورے دوی امت یو لیکن داخلوی |
| مَنۡ یَّشَآءُ فِیۡ رَحۡمَتِهٖ وَالظّٰلِمُوۡنَ مَا لَهُمۡ |
| چا له چه اُوغواړی په رحمت خپل کښ، او ظالمان خلق نشته دوی لره |
| مِّنۡ وَّلِیٍّ وَّلَا نَصِیۡرٍ ﴿۸﴾ |
| هیڅوك دوست او نهٔ مددګار۔ |

**تفسیر** : دا جواب د سوال دے چه هرکله قرآن پوره هدایت دے او رسول الله ﷺ کامل انذار کونکے دے، نو بیا ټول خلك ولے ایمان نهٔ راوړی؟ حاصل د جواب دا دے چه اختیار د هدایت د الله تعالیٰ سره دے۔ او دا د سورة الرعد د آیت (۳۱) ﴿ اَفَلَمۡ یَایۡـَٔسِ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡۤا اَنۡ لَّوۡ یَشَآءُ اللّٰهُ لَهَدَی النَّاسَ جَمِیۡعًا ﴾ په شان دے۔

یعنی الله کولے شی چه ټولو انسانانو ته هدایت وکړی لیکن هغهٔ د څهٔ حکمت په بنیاد داسے نهٔ دی کړی، بلکه انسانانو ته ئے اختیار ورکړیدے، چه څوك په دنیا کښ کفر اختیاروی او که ایمان۔ او چا ته چه د ایمان توفیق ورکړی، نو هغه ئے په خپل رحمت کښ داخل کړو۔ او کوم خلك چه د هدایت او ایمان نه محروم شو او جهنم ته ئے داخل کړی، نو ددے سبب د هغوی ظلم او عناد دے چه هغه په (وَالظّٰلِمُوۡنَ) سره ذکر کوی۔ نو مخکښنو خلکو سره ئے احسان وکړو، او د ظالمانو سره ئے عدل وکړو۔ نو په الله تعالیٰ باندے هیڅ اعتراض نشته۔

| اَمِ اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِهٖۤ اَوۡلِیَآءَ فَاللّٰهُ هُوَ الۡوَلِیُّ |
| --- |
| آیا نیولی دی دوی سویٰ د الله تعالیٰ نه دوستان (معبودان) نو الله تعالیٰ هغه دوست |

| وَهُوَ يُحْيِ الْمَوْتٰى وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٩﴾ |
|---|
| دے، او هغه راژوندی کوی مړی او هغه په هر شی باندے قدرت لرونکے دے۔ |

**تفسیر** : اُوس بیا په شرك باندے رد کوی۔ یو پدے کښې تعریف د ظالمانو دے۔ دویم جواب د سوال دے چه دا ظالمان مشرکان وائی چه مونږ به څنګه اُورته لاړ شو، زمونږ اولیاء او معبودان شته هغه به مو خلاصوی؟ حاصل د جواب دا دے چه د دویٔ د اولیاؤ په لاس کښې هیڅ اختیار نشته، په هیڅ قادر نهٔ دی، د ولایت مستحق خو صرف الله تعالیٰ دے چه په هغهٔ کښې دا صفتونه دی چه هغه مړی راژوندی کولے شی، او په هر شی قدرت لری۔

فَاللّٰهُ هُوَ الْوَلِيُّ : ۱- ظاهر تفسیر دا دے چه دویٔ د الله تعالیٰ نه سویٰ نور دوستان د عبادت دپاره نیسی نو مستحق د ولایت خو صرف الله دے، هغه سره دوستی پکار ده۔ هغه دوی لره د عذابونو نه په خلاصولو قادر دے۔ او بعض علماؤ (زمخشری) ددے نه داسے تعبیر کړیدے چه فالله کښې فاء جزائیه ده، او شرط پټ دے اَیْ اِنْ اَرَادُوْا وَلِيًّا بِحَقٍّ فَاللّٰهُ هُوَ الْوَلِيُّ ۔ یعنی که دوی حقدار دوست نیول غواړی، نو الله تعالیٰ د دوستیٔ لائق دے۔ لیکن ابوحیانؒ وائی چه دے تقدیر ته حاجت نشته، ځکه چه خبره بغیر ددے نه هم پوره ده۔ او علامه کرخیؒ وئیلی دی چه فاء د مجرد عطف دپاره ده، ددهٔ مقصد هم په زمخشری باندے رد کول دی۔

۲- وړاندے تفسیر دا دے : [اَیْ فَاللّٰهُ وَلِيُّكَ وَوَلِيُّ مَنِ اتَّبَعَكَ] یعنی الله ستا دوست هم دے، او ستا د تابعدارو هم۔ اول تفسیر ظاهر د قرآن دے۔

| وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيْهِ مِنْ شَيْءٍ فَحُكْمُهٗ إِلَى اللّٰهِ |
|---|
| او هغه څه چه اختلاف پیدا شو ستاسو په هغے کښې نو فیصله د هغے به الله ته وی |
| ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبِّيْ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ |
| دغه ذات الله دے رب زما دے، په هغهٔ باندے ما ځان سپارلے دے، او خاص هغهٔ ته |
| أُنِيْبُ ﴿١٠﴾ فَاطِرُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ جَعَلَ لَكُمْ |
| زهٔ رجوع کوم۔ اول پیدا کونکے د آسمانونو او د زمکے دے کړځولی ئے دی تاسو لره |

| |
|---|
| مِّنۡ اَنۡفُسِكُمۡ اَزۡوَاجًا وَّمِنَ الۡاَنۡعَامِ اَزۡوَاجًا ۚ يَذۡرَؤُكُمۡ |
| د نفسونو ستاسو نه جوړې او چارپیانو نه هم جوړې، خوره وی تاسو لره |
| فِيۡهِ ؕ لَيۡسَ كَمِثۡلِهٖ شَىۡءٌ ۚ وَهُوَ السَّمِيۡعُ الۡبَصِيۡرُ ﴿۱۱﴾ |
| پدے (انتظام) کښې، نشته پشان د هغهٔ هیڅ شے، او هغه آوریدونکے لیدونکے دے۔ |
| لَهٗ مَقَالِيۡدُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ ۚ يَبۡسُطُ الرِّزۡقَ لِمَنۡ يَّشَآءُ |
| خاص هغهٔ لره کنجیانے د آسمانونو او د زمکے دی، فراخوی رزق چا له چه وغواړی |
| وَيَقۡدِرُ ؕ اِنَّهٗ بِكُلِّ شَىۡءٍ عَلِيۡمٌ ﴿۱۲﴾ |
| او کموی ئے یقیناً هغه په هر شی باندے پو هه دے۔ |

**تفسیر** : سورت کښې چونکه موضوع د وحی ده نو پدے وجه دلته تمامو انسانانو ته خطاب کوی چه د دین او د دنیا په هره یوه معامله کښې که ستاسو ترمینځه اختلاف پیدا شی، نو ددے فیصله به الله تعالیٰ کوی، چه د هغهٔ هره فیصله په عدل او انصاف باندے مبنی وی۔ نو د اول د سورت سره متعلق شو ﴿ وَكَذٰلِكَ اَوۡحَيۡنَاۤ اِلَيۡكَ قُرۡاٰنًا ﴾ ما تاسو ته دا قرآن راولیږلو نو تاسو تول به دے ته فیصله راوړئ۔ نو تولے عقیدے او عملونه او د دنیا لانجے به د الله تعالیٰ په دے کتاب فیصله کیږی۔

صاحب د محاسن التنزیل لیکی : آیت کښې اشاره ده چه رشتینی دین صرف اسلام دے، او د مکے د مشرکانو او د نورو مشرکانو دین او مذهب د دوئ د پلرونو او نیکونو مشرکانه رسمونه او د نفس د خواهشاتو اتباع ده۔ او اگرکه دا سورت مکی دے، لیکن دا آیت دلالت کوی چه په کومو مسائلو او معاملاتو کښې اختلاف پیدا شی، په هغے کښې به صرف د رسول الله ﷺ حدیث فیصله کُن گنړلے کیږی۔ (ځکه چه الله تعالیٰ صرف د هغهٔ په فیصله راضی دے)۔ او دا تمهید دے د روستو آیت، چه په هغے کښې په اقامة د دین باندے حکم شویدے۔

دے آیت کښې دویم تفسیر بعض اهل علمو دا ذکر کړیدے چه دنیا کښې ستاسو کوم اختلاف پیدا شو، نو ددے فیصله به په قیامت کښې الله تعالیٰ عملی طریقے سره کوی۔ لیکن دا تفسیر ددے ځای سره پوره مناسبت نهٔ لری۔

ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبِّىۡ : دا د مخکښې دپاره علت دے په درے طريقو، يو دا چه فيصله به الله تعالىٰ ته ددے وجه نه پيش كوو چه هغه زمونږ رب دے، او هغه پدے طريقه زمونږ تربيت كوى. دويمه طريقه دا چه توكل په تولو امورو كښې په الله تعالىٰ دے، نو په احكامو كښې هم د هغۀ په فيصله باندے اعتماد دے. دريمه طريقه دا چه په هر وخت او هر كار كښې الله تعالىٰ ته زمونږ رجوع ده نو په هر حكم كښې به ضرور د هغۀ كتاب ته رجوع كوو. (احسن الكلام).

ذلكم : كښې اشاره ده دغه عظيم الشان فيصله كونكے ذات الله ته چه هغه زما رب دے، هغۀ ما ته حكم كړيدے چه د هغۀ په كتاب فيصله وكړم.

عَلَيۡهِ تَوَكَّلۡتُ : توكل ته د وحى په بيانولو كښې سخت ضرورت راځى، ځكه چه د وحى په بيانولو كښې مخالفين ډير پيدا كيږى، او د هغوى د طرفنه ډير مشكلات رامخے ته كيږى. او دا آيت د سورة الرعد آيت (۳۰) په شان دے ﴿قُلۡ هُوَ رَبِّىۡ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ عَلَيۡهِ تَوَكَّلۡتُ وَاِلَيۡهِ مَتَابِ﴾ متاب او انابت نزدے نزدے دى.

انابت معنىٰ ده الله تعالىٰ ته په زړۀ سره ورګرځيدل. او څوك چه دا د آخرت سره لګوى چه زۀ به الله تعالىٰ ته په آخرت كښې ورګرځم. دا معنىٰ دلته خطاء ده.

او پدے كښې دعوت دے چه زۀ الله تعالىٰ ته ځان سپارم، نو تاسو هم راشئ په هغه توكل وكړئ او خاص هغۀ ته انابت وكړئ.

فَاطِرُ السَّمٰوٰتِ : اُوس د الله تعالىٰ نور تعارفونه راوړى، او دا علت دے د توكل او انابت دپاره چه په الله تعالىٰ باندے توكل ځكه پكار دے او هغه ته انابت ځكه ضرورى دے چه هغه داسے كمالاتو او قدرتونو والا دے.

زما رب هغه دے چه هغۀ آسمانونه او زمكه ناشنا پيدا كړے، او ستاسو د جنس نه ئے ستاسو ښځے پيدا كړى په دے طور چه حواء ئے د آدم ﷺ د پُښتئ نه پيدا كړه، بيا د ښځے او خاوند د خپل مينځى ملاويدو نه ئے انسانى نسل باقى وساتۀ. او زما رب هغه دے چه هغۀ د ځناورو هم (نر او ماده) جوړے پيدا كړى، دغه لوى الله تعالىٰ د نارينه او زنانه د خپل مينځى ملاويدو نه د انسانانو او تمامو ځناورو او چارپايانو نسلونه باقى ساتلى دى، او د دوئ شماره ئے ډيره كړه او په دنيا كښې ئے خوره كړه.

يَذۡرَؤُكُمۡ فِيۡهِ : ۱ - الله تعالىٰ تاسو پيدا كوى پدے تزويج كښې (يعنى جوړئ جوړئ پيدا كولو كښې) يعنى ښځه او خاوند پيدا شى، نو هغوى يو بل سره ملاؤ شى، نو د

هغوی نه نور نر او ماده پیدا شی، بیا د هغوی هر یو ودونه وشی نو د هغوی نه نور دغسې نسل خوریږی۔

۲- حاصل معنیٰ داسې هم کولے شی چه الله تعالیٰ تاسو پیدا کوی په دے تدبیر کښې۔ یعنی داسې ناشنا تدبیر سره الله تعالیٰ تاسو پیدا کوی۔

ذره پیدا کولو او خورولو ته وئیلے شی۔ لکه د ښځې او خاوند نه لویه قبیله جوړه شی۔

لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ: پدے کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ پدے تصرفاتو کښې اسبابو ته محتاج نۀ دے په شان د مخلوق۔ دارنګه په مخلوقاتو کښې هیڅوك د الله تعالیٰ سره په تصرفاتو د اُلوهیت کښې مشابه او مماثل نشی کیدے، نو پدے جمله کښې نفی ده د تشبیه د الله تعالیٰ د مخلوق سره، او نفی ده د اشتراك د مخلوق د الله تعالیٰ سره، او دا پوره مقصد د توحید دے۔

علامه قرطبیؒ د واسطیؒ نه نقل کړیدی چه نشته د الله د ذات او د هغهٔ د نومونو او د هغهٔ د فعل او د هغهٔ د صفت په شان هیڅ شے مګر که د هغهٔ د فعل یا د صفت یا د نوم په شان کوم فعل یا نوم یا صفت وی نو صرف موافقتِ لفظیه به وی۔

**فائده۱**: د پیغمبرانو او د قرآن طریقه دا ده چه د الله تعالیٰ دپاره په صفاتو کښې اثبات مُفَصَّل او نفی مُجْمَل کوی۔ یعنی ثبوتی صفات زیات بیانوی، او منفی صفات کم۔ او نفی د هغه صفاتو کوی چه هغه مُتضمن وی ثبوت د صفتِ کمالی لره۔ او د متکلمینو طریقه دا ده چه هغوی سلبِ مُفَصَّل کوی، او اثباتِ مُجْمَل کوی، داسې وائی: لَيْسَ بِجَوْهَرٍ وَلَا عَرَضٍ وَلَا يَجْرِيْ عَلَيْهِ زَمَانٌ، وَلَا يَتَمَكَّنُ فِيْ مَكَانٍ وَلَا يُحَدُّ وَلَا يُتَصَوَّرُ (الخ) دا د پیغمبرانو طریقه نۀ ده، پدے کښې ډیره فائده نشته بلکه بعض بے فائدے نفی ده۔

او دلته فرمائی: لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ لِكَمَالِ قُدْرَتِهٖ ۔ د الله تعالیٰ هیڅوك مِثل (مشابه) نشته ځکه چه الله تعالیٰ د کامل قدرت خاوند دے۔

**فائده ۲**: دا آیت رد دے په مشبهۀ او مجسمو ډلو باندے چه هغوی د الله تعالیٰ دپاره صفات د لاس او د سترګے او پورته والے او په عرش باندے برابروالے وغیره د مخلوق په شان ثابتوی، او وائی چه دا صفتونه بالکل د مخلوق په شان صفتونه دی۔

او څوك ددے تشبیه سره د هغهٔ دپاره جسم هم د مخلوق په شان ثابتوی، او دا باطله عقیده ده۔ او که څوك ددے صفاتو نه انکار کوی په طریقه د تاویل لکه جهمیه او معطله او منکرین د صفاتو، نو دویٔ هم ښکاره ګمراهان دی۔ پدے کښې صحیح مذهب

د سلفو صالحینو دے چه د الله تعالیٰ دپاره هغه صفتونه ثابتوی چه الله تعالیٰ خپل ځان دپاره په قرآن کریم کښې او نبی کریم ﷺ په صحیح احادیثو کښې هغهٔ له ثابت کړیدی بغیر د تمثیل او تشبیه نه د مخلوق سره، او بغیر د تاویل نه یعنی د هغے ظاهری حقیقی معانی مراد دی چه مثلًا د ید معنیٰ لاس، د عین معنیٰ سترګه ده، او کیفیت د هغے مونږ ته نهٔ دے معلوم، او تپوس د کیفیت د هغے بدعت دے۔ نو دا صفات معلوم المعنیٰ او مجهول الکیف دی۔ او پدے خبره د ډیرو بدعتیانو ذهن نهٔ کولاوېږی، او په باب د صفاتو د الله تعالیٰ کښې سرګردانه وی، او فضول سرسری اشکالات خپل ذهن ته راوړی، او د صحیح عقیدے نه محرومه کیږی۔ والله المستعان۔

## اشکال وجواب

**سوال** دا دے ددے جملے معنیٰ خو دا ده چه د الله مثل نشته، او دلته خو کاف هم د تشبیه دپاره دے، او مثل هم د تشبیه معنیٰ ورکوی نو ددے معنیٰ خو دا جوړیږی چه د الله د مِثل مثل نشته او یو مثل ئے شته؟ (العیاذ بالله)

مفسرینو ددے اشکال ډیر جوابونه ورکړیدی:

(۱) یو دا چه کاف د تاکید دپاره زیات شویدے۔

(۲) مثل په معنیٰ د عین او ذات سره دے۔

(۳) دلته په طریقه د کنایه او دلیل سره نفی د مثل د الله تعالیٰ غرض ده۔ یعنی د الله مثل ځکه نشته چه د الله تعالیٰ د مِثل مثل نشته، ولے که د الله تعالیٰ مثل وے نو د هغهٔ د مثل مثل به هم ضرور وے، هرکله چه د الله تعالیٰ د مثل مثل نشته، نو معلومه شوه چه مثل ئے په طریقِ اولیٰ نشته۔

(٤) یا مثل په معنیٰ د صفت دے۔ دا د عامو مفسرینو تعبیرات دی۔

(٥) لیکن ډیره صحیح خبره دا ده چه کاف او مثل په خپل ځای صحیح راوړے شویدی، او په علم بلاغت کښې دا قانون دے چه کاف د تشبیه د صفت او مثل د تشبیه د ذات دپاره استعمالیږی لکه تهٔ چه زید د زمری سره مشابه کوے، نو داسے به وائے زید کَالۡاَسَدِ اَیۡ فِی الشُّجَاعَةِ او چه کله د زمری د بچی تشبیه د زمری سره ورکوے، نو داسے به وائی لکه مقاماتِ حریری کښې دی: [وَالشِّبۡلُ فِی الۡمَخۡبَرِ مِثۡلُ الۡاَسَدِ] د زمری بچے په ځنګل کښې د زمری په شان دے۔ او مُتنبیّ وائی:

| | |
|---|---|
| كَالْبَدْرِ مِنْ حَيْثُ الْتَفَتَّ رَأَيْتَهُ | يُهْدِيْ إِلَى عَيْنَيْكَ نُوْرًا ثَاقِبَا |
| كَالْبَحْرِ يَقْذِفُ لِلْقَرِيْبِ جَوَاهِرًا | جُوْدًا وَيَبْعَثُ لِلْبَعِيْدِ سَحَائِبَا |
| كَالشَّمْسِ فِيْ كَبِدِ السَّمَاءِ وَنُوْرُهَا | يَغْشَى الْبِلَادَ مَشَارِقًا وَمَغَارِبَا |

پدے ټولو کښې کاف د تشبیه د صفت دپاره ذکر دے۔ یعنی سیف الدولة د څوارلسمے سپوږمۍ او د دریاب او د نمر په شان دے۔ یعنی د هغے په شان صفات لری۔

ددے نه بل تعبیر داسے دے چه مثل د مماثلة نه دے، اشتراك د شیئینو په نوع کښې مراد وی، او کاف د تشبیه او مشابهت دپاره راځی، او مشابهت اشتراك د شیئینو دے په صفت کښې۔ بناء پدے باندے دلته په معنیٰ کښې کمال دے یعنی نۀ د الله د صفت په شان د چا صفت شته، او نۀ د چا ذات د الله تعالیٰ د ذات په شان شته۔

**لَهٗ مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ:** نور تعارف د رب العالمین دے۔ یعنی الله تعالیٰ په آسمانونو او زمکه کښې د خپلو مخلوقاتو دپاره چه کومه روزی پیدا کړے ده او د انعاماتو او اکراماتو کومے خزانے ئے چه په دے کښې ایښی، ددے چابیانے صرف هغۀ سره دی، چه په دے کښې څنګه غواړی د خپلے مرضۍ مطابق تصرف کوی، د خپل علم او حکمت مطابق د چا په روزۍ کښې فراخی کوی، او د چا روزی تنګوی۔ دے وجے نه روزی او نور ټول حاجتونه صرف هغۀ نه غوښتل پکار دی، هغۀ نه سوئ د پناهۍ او وسیدو هیڅ ځای نشته۔

**مَقَالِيْدُ:** جمع د مِقْلِيْد یا مِقْلَادْ ده، چابیانو ته وئیلے شی، او دا ظاهره خبره ده چه د چا سره د خزانو چابیانے وی، نو هغه د خزانو مالك وی، نو الله تعالیٰ د آسمانونو او د زمکے د خزانو مالك دے۔ او پدے کښې رد د شرك هم دے، چه د خزانو چابیانے د هغۀ سره دی، نو کوم پیر او بابا نشته چه چا ته د هغۀ د خزانو نه ورکړه وکړی، بل څوك داتا، ګنج بخش نشته۔

**يَبْسُطُ الرِّزْقَ:** دے سورت کښې د رزق مسئله زیاته ذکر کیږی، پدے کښې حکمة دا ښکاره کیږی (والله اعلم) اشاره ده چه تاسو ته الله تعالیٰ خوراکونه څکاکونه او مختلف رزقونه درکوی، دا ددے دپاره چه تاسو د وحی اتباع وکړئ، او د الله تعالیٰ قانون او شرع ومنئ، او دارنګه د الله تعالیٰ بندګی وکړئ۔ رزقونه الله تعالیٰ درکوی او تاسو بندګی د بل چا کوئ دا څومره بے وفائی او کمینه ګی ده۔

او پدے کښې بله اشاره دا ده چه مشرکانو وویل چه الله تعالیٰ دا وحی ولے په یو داسے

غریب سړی نازله کړه چه رزق ئې هم فراخه نهٔ دے؟ او بل طرفته مالداره خلك په مونږ کښې موجود دی هغه ته ولې وحی نهٔ راځی؟

لکه روستو سورة الزخرف (۳۱) آیت کښې د دوئ دا اعتراض ذکر شی ﴿ لَوْلَا نُزِّلَ هٰذَا الْقُرْاٰنُ عَلٰى رَجُلٍ مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيْمٍ ﴾ نو الله دلته مشرکانو ته اشاره ورکوی چه وحی د رزق فراخئ او تنګئ سره تعلق نهٔ لری چه ګنې غریب باندے به وحی نهٔ راځی، او همیشه به په مالداره راځی، دا خبرے د جاهلانو دی۔

| |
|---|
| شَرَعَ لَكُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا وَصّٰى |
| ښکاره کړے دے الله تعالىٰ تاسو ته د دین نه هغه چه مضبوط حکم ئې کړے وو |
| بِهٖ نُوْحًا وَّالَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ وَمَا |
| په هغے سره نوح (علیه السلام) ته او هغه چه وحی کړے ده مونږ تا ته او هغه چه |
| وَصَّيْنَا بِهٖٓ اِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى وَعِيْسٰٓى |
| مضبوط حکم کړے وو مونږ په هغے سره ابراهیم او موسیٰ او عیسیٰ علیهم السلام |
| اَنْ اَقِيْمُوا الدِّيْنَ وَلَا تَتَفَرَّقُوْا فِيْهِ كَبُرَ عَلَى الْمُشْرِكِيْنَ |
| ته چه اُودروئ دین لره او ولے مهٔ جوړوئ پدے کښې، ګران دے په مشرکانو باندے |
| مَا تَدْعُوْهُمْ اِلَيْهِ اَللّٰهُ يَجْتَبِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ |
| هغه دین چه تهٔ بلنه کوے د دوی هغے ته، الله غوره کوی دے ته (یا ځان ته) هغه څوك |
| يَّشَآءُ وَيَهْدِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ يُّنِيْبُ ﴿۱۳﴾ |
| چه وغواړی او هدایت کوی دے ته د هغه چا چه واپس کیږی الله ته۔ |

**تفسیر** : دا متعلق دے د (كَذٰلِكَ يُوْحِيْ) سره۔ یعنی تا ته ئې د کومے خبرے وحی کړیده نو هغه وحی دا ده چه الله تعالیٰ تاسو ته اتفاقی دین درکړیدے، دا به قائموئ، او اختلافات به پکښې نهٔ پیدا کوئ۔ دارنګه په (۱۳) آیت کښې الله تعالیٰ خپل نبی کریم ﷺ مخاطب کړے او ورته فرمائیلی ئې دی چه په تا باندے او تا نه مخکښې په نورو انبیاؤ باندے الله تعالیٰ وحی نازله کړے ده۔ په دے آیتِ کریمه کښې د همدے تفصیل دے چه الله

تعالیٰ تاته او هغه څلورو اولو العزم انبیاؤ ته چه په دے آیت کښې هغوئ ذکر دی، د یو ے خبرے حکم درکړے دے چه صرف ددے یو ذات عبادت ډِے وکړے شی چه د هغهٔ هیڅ برخه دار نشته۔ د سورتِ انبیاء په (۲۵) آیت کښې الله تعالیٰ فرمایلی :

﴿ وَمَآ أَرۡسَلۡنَا مِن قَبۡلِكَ مِن رَّسُولٍ إِلَّا نُوحِيٓ إِلَيۡهِ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنَا۠ فَٱعۡبُدُونِ ﴾ (مونږ چه کله هم کوم رسول لیږلے نو هغهٔ له مو د وحی په ذریعه دا حکم ورکړے چه مانه سویٰ هیڅوک د عبادت لائق نشته، دے وجے نه تاسو صرف زما عبادت کوئ)۔

او د صحیح بخاری په کتاب الانبیاء کښې د ابو هریره ﷺ نه روایت دے چه نبی کریم ﷺ وفرمایل : ((انبیاء د یوے مور د اولادو پشان دی، زمونږ دین یو دے (یعنی د یو الله بندګی کول، اګر که زمونږ شریعتونه جدا جدا دی))۔ (بخاری : ۳۴۴۳)

دارنګه دا متعلق دے د ﴿ فَحُكۡمُهُۥٓ إِلَى ٱللَّهِ ﴾ سره۔ او مقصد د آیت دے : اختیار د تشریع د احکامو صرف د الله تعالیٰ سره دے۔ او دارنګه توحید شرع د الله تعالیٰ ده په ټولو امتونو کښې،.نو د هغے خلاف مهٔ کوئ۔او دا دلیل دے چه شارع د احکامو صرف الله تعالیٰ دے او انبیاء علیهم السلام د شرع بیانونکی دی۔

**شَرَعَ لَكُم:** أَيْ بَيَّنَ وَاَوْضَحَ وَسَنَّ وَأَظْهَرَ طَرِيقًا وَاضِحًا ۔ الله بیان کړے او واضحه کړے، مقرر کړیده، او رابنکاره کړیده تاسو ته روښانه لاره۔ شرع او شریعت لارے ته هم وائی۔

**مِّنَ الدِّيْنِ :** دا (مِنۡ) بیان دے د روستو (مَا) دپاره۔ یعنی د پخوانو پیغمبرانو دین الله تعالیٰ تاسو ته رابنکاره کړیدے او تاسو ته ئے بیان کړیدے، او ستاسو دپاره ئے لاره مقرر کړیده چه پدے به روانیږئ، او هغه دین څه شے دے؟ هغے ته اسلام او دین توحید وائی۔

او په شَرَعَ لَكُمۡ لفظ کښې اشاره ده چه زمونږ په دین کښې د قرآن او د حدیث په ذریعه سره وضاحت او ظهور د مخکنو دینونو په نسبت زیات دے لکه رسول الله ﷺ دے ته اشاره کړیده په خپل دے قول سره : [أَنَا عَلَى الْمِلَّةِ الْحَنِيفِيَّةِ الْبَيْضَاءِ لَيْلُهَا كَنَهَارِهَا] زهٔ په داسے توحید والا دین باندے رالیږلے شوے یم چه شپه پکښې نشته بلکه ټوله رڼا رڼا ده۔

**وَصّٰى بِهٖ:** اول تشریعی پیغمبر نوح ﷺ وو، یعنی چه توحید او نور احکام شرعیه ئے راوړیدی، او قوم ئے مخالفت کړیدے۔

**وَالَّذِيٓ أَوۡحَيۡنَا :** دا عطف دے په لفظ د (مَا) باندے۔ یعنی دین د نوح ﷺ ئے اول ذکر کړو اشاره ده چه دا زوړ دین دے، بیا وروستے دین د آخری نبی ﷺ ذکر کړو اشاره ده چه دا آخری دین دے، نو اول او آخر ئے رومبے ذکر کړو، او بیا ئے مینځنی دینونه ذکر کړل نو

معلومه شوه چه دا دین په اول او په آخر او په مینځ کښې یو شان دے۔

او دلته ئے په آیت کښې صرف د پنځه اولو العزم انبیاؤ ذکر پدے وجه وکړو چه دا ډیر غټ انبیاء کرام وو، د دوئ شریعتونه هم لوی لوی وو، او د دوئ د منونکو شماره په دنیا کښې ډیره زیاته وه۔ دارنګه د کافرانو زړونه اسلامی دین طرفته مائل کول هم مقصد دی، ځکه چه په دے انبیاء کرامو کښې ځینے داسے هم دی چه د هغهٔ په نبی کیدو باندے د ټولو اتفاق دے، او د هغوئ دین هم اسلام وو۔

أَنْ أَقِيمُوا الدِّينَ: د دین قائمولو څه معنیٰ؟ نو ددے غوره معنیٰ دا ده چه په دین باندے په صحیح طریقه عمل وکړے شی کومه طریقه سره چه دغه انبیاء علیهم السلام په دین باندے عمل کړے وو، او د دغه دین نه مراد د الله تعالیٰ توحید منل، او په هغهٔ باندے ایمان راوړل او د هغهٔ د رسولانو تابعداری کول، او د هغهٔ شریعتونه قبلول۔ او بیا ددے دین نه مدافعت کول او پدے باندے همیشه دپاره عمل کول دی۔

سدیؒ دا معنیٰ کړیده: (اِعْمَلُوْا بِهٖ) عمل وکړئ پدے دین باندے۔

مجاهدؒ فرمائی: هر یو نبی ته الله تعالیٰ د مانځه او د زکاة او الله ته په طاعت باندے د اقرار وصیت کړیدے، نو دا هغه دین دے چه دغه نبی دپاره ئے مقرر کړیدے۔

قتادهؒ وائی: ددے نه مراد د الله تعالیٰ حلال حلال ګڼړل او د هغهٔ حرام حرام ګڼړل دی۔ (فتح البیان)

علامه قرطبیؒ لیکی: هغه اصول چه ټول شریعتونه په هغے کښې متفق دی هغه توحید، مونځ، زکاة، روژه، حج، امانت ادا کول، صله رحمی قائمول، د کفر، قتل، زنا، خلکو ته ضرر ورکولو حرامولے، په حیوان باندے زیاتے کول، رذیل کارونه کول، او هغه کارونه چه سړیتوب خرابوی، ددے حرامولے دا ټول یو دین او یو ملت دے۔

بعض تنظیمونه دے آیت له ډیر زور ورکوی په خلافت باندے چه ددے نه مراد خلافت دے، هغه هم پکښې داخلیږی لیکن اول مراد ئے نهٔ دے ځکه چه د عیسیٰ علیه السلام او د نوح علیه السلام په زمانه کښې کوم خلافت قائم شویدے۔ هغوی خو داسے غریبانان وو چه چا په کلی کښې هم نهٔ پریخودل۔ آؤ اسلامی خلافت دپاره کوشش په هر مسلمان ضروری دے، لیکن په شرعی طریقو نهٔ په طریقه د ووټونو لکه بعض ملیان دا آیت د ووټونو دپاره پیش کوی چه حکومت راوستل فرض دی، او بیا هغه په غیر شرعی طریقه راولی۔ دا صحیح نهٔ ده۔

**وَلَا تَتَفَرَّقُوۡا فِيۡهِ** : اقامة دین عمل دے په دین باندے او لَا تَتَفَرَّقُوۡا کښې ترك عمل دے.
او ددے تفرق نه مراد په اصولو د دین کښې تفرقه پیدا کول دي چه هغه توحید او په الله باندے ایمان لرل، او د هغهٔ د رسول طاعت کول او د هغهٔ شریعت قبلول دي.
او هرچه فروع یعنی جزئیات او طریقے دي نو هغه په دینونو کښې جدا جدا دي، لیکن هغې ته تفرق نهٔ وئیلے کیږي، او هغه سبب د تفرق نهٔ دي کرخول پکار. بلکه دلته مقصد دا دے چه د دین توحید نه دین شرکي، یهودیت، نصرانیت، مجوسیت، هندومت وغیره ته مهٔ اوړئ.

**كَبُرَ عَلَى الۡمُشۡرِكِيۡنَ مَا تَدۡعُوۡهُمۡ اِلَيۡهِ** : پدے کښې تفرقے والا بیانوی، یعنی مشرکان هغه خلك دي چه په دین توحید کښې ئے تفرقه پیدا کړیده. یعنی تاسو چه کوم دین، توحید او د شرك او بتانو پریخودو ته دعوت ورکوئ نو دا په مشرکانو ډیر ګران لګی ځکه چه د هغوی دین د خواهشاتو دین دے، او وحی د خواهش خلاف ده. دا هغوی نشی برداشت کولے چه اُوس به د پلار نیکه شرکي دین ددے سرې د وجه نه پریدو. لیکن الله خپل نبی ته فرمائي چه تهٔ به بیا هم همت نهٔ بائیلے، او په پوره عزم او ثابت قدمئ سره به د الله تعالیٰ پیغام دوئ ته رسوے، څوك به ئے قبلوی او څوك به ئے رد کوی، دا ستا ذمه داري نهٔ ده. الله تعالیٰ د خپل حکمت او مصلحت، او د مرضئ مطابق چاته چه غواړي په الله تعالیٰ باندے د ایمان راوړو توفیق ورکوی. او دے آیت کښې اشاره ده چه څوك دینِ اسلام او توحید او د هغې نورو اصولو ته بد ګوري، نو هغه مشرك دے.

**اَللّٰهُ يَجۡتَبِيۡۤ اِلَيۡهِ**: سوال پیدا شو چه هرکله په مشرکانو باندے توحید بد لګی نو پدے سره به زمونږ دعوت ضائع شي. حاصل د جواب دا دے چه دعوت نهٔ ضائع کیږي بلکه الله تعالیٰ به دے ته څوك چه غواړي راولي. یعنی ستاسو په ذمه باندے دین قائمول، او دے ته دعوت ورکول دي، او هدایت د الله تعالیٰ په اختیار کښې دے، هغه به دے ته اهل خلك راولي. او په ضدیانو به حجت قائم شي، او تاسو ته به اجر ملاؤ شي، نو دعوت په هر حال کښې فائده مند دے.

## د اجتباء او هدایت فرق

**يَجۡتَبِيۡۤ**: اجتباء : اَلۡاِخۡتِيَارُ لِمَعَالِي الۡاُمُوۡرِ ته وئیلے شي، یعنی د لوی کار دپاره غوره کول او منتخب کول، لکه نبوت ورکول او د دین لوی منصب ورسپارل لکه ابوبکر او عمر او

عثمان او علي رضي الله عنهم ئې ددې منصب دپاره منتخب کړل، او د دين امامان ئې ترې جوړ کړل. او يَهْدِيْ نه مراد دا دې چه ډير خلك به ددې دعوت په وجه هدايت ته راشي، او الله به توفيق د قبلولو ورکړي. او چونکه اجتباء صرف د الله تعالیٰ په اختيار کښې ده، پدې کښې د انسان دخل نشته، ددې وجه نه ئې مَنْ يَّشَاءُ ووېل او هدايت دپاره اول انابت شرط دې ددې وجه نه ئې (مَنْ يُّنِيْبُ) ذکر کړو.

| |
|---|
| وَمَا تَفَرَّقُوْا إِلَّا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ |
| او دوی نۀ دي جوړې کړي دوی (جدا نۀ شو دوی) مګر روستو د هغې نه چه راغې دوی |
| الْعِلْمُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ |
| ته علم د وجې د ضد کولو نه په مينځ د دوی کښې او که چرته نۀ وې فيصله |
| سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى لَّقُضِيَ |
| چه مخکښې شويده د طرف د رب ستا نه تر نيټې مقررې پورې خامخا فيصله به |
| بَيْنَهُمْ وَإِنَّ الَّذِيْنَ أُوْرِثُوا |
| شوې وې په مينځ د دوی کښې، او يقيناً هغه کسان چه په ميراث کښې ورکړې شو |
| الْكِتَابَ مِنْ بَعْدِهِمْ لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيْبٍ ﴿١٤﴾ |
| کتاب روستو د دوی (مشرانو) نه خامخا په شك کښې دي ددې نه په سخت شك کښې. |

**تفسير** : (۱) د قريشو کافرانو به وئيل چه که الله تعالیٰ مونږ ته خپل کوم پيغمبر را اوليږي نو مونږ به په هغۀ ايمان راوړو، او د يهودو او نصاراؤ نه به زيات په نيغه لاره تلونکي جوړ شو، ليکن کله چه نبي کريم ﷺ را اوليږلې شو، نو دوئ د حق پيژندلو باوجود، د هغۀ په رسالت باندې د ايمان راوړلو نه صرف په دې وجه انکار وکړو چه د جاهليت د زمانې نه چه د دوئ کومه سرداري را روانه وه هغه په خطره کښې پريوته، دې وجې نه په زړۀ کښې د حق د اقرار باوجود صرف د جاهلي غيرت د وجې نه ئې دا قبول نۀ کړو.

(۲) بعضِ مفسرينو ليکلي دي چه دلته يهود او نصاریٰ مراد دي، لکه د سورتِ البينه

په (٤) آيت كښې راغلي دي : ﴿ وَمَا تَفَرَّقَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتَابَ اِلَّا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَةُ ﴾ (اهلِ كتاب جدا نشو مګر پس د هغې نه چه دوی ته ښكاره دليل راغلو).

(٣) مګر غوره دا ده چه پدې كښې په هر هغه چا رد دے چه د انبياء عليهم السلام دين يو وو، او هغوی د پيغمبرانو نه روستو راغلل او د هغوی دين ئې پريخودو، پدې كښې اول د مكې مشركان داخل وو چه دوی د ابراهيم عليه السلام دين توحيد پريخودو، او دويم يهوديانو د موسیٰ عليه السلام او د نصاراؤ د عيسیٰ عليه السلام دين پريخودو.

دارنګه دې درې واړو ډلو ته رسول الله ﷺ آخري نبي راغلو مګر په دوی كښې ځينې خلكو د هغه دعوت قبول كړو او ځينو د حق پيژندلو او رسيدو باوجود انكار وكړو.

دارنګه دا جواب د شبهې هم دے چه تاسو چه كوم دين ته دعوت وركوئ ددې نه خو ډير علماء مخالفت كوي، لكه يهوديان، نصارىٰ وغيره نو معلوميږي چه دا دين صحيح نهٔ دے ؟ حاصل د جواب دا دے چه ددې مليانو مخالفت له اعتبار نشته ځكه چه د دوی تفرق او اختلاف د علم او دليل نه مخالف دے، او دارنګه د دوی مخالفت په ضد او عناد باندې بناء دے.

او دا آيت دليل دے چه اكثرو خلكو سَره د علم نه اختلاف كړيدے، نو د حق دشمني اول باطل پرستو مليانو كړيدے. د عوامو ديني اختلاف ته تفرق نشي وئيل كيدے.

وَلَوْلَا كَلِمَةٌ : سوال پيدا شو چه هركله چه دوئ سَره د علم نه ضد كوي او د حق سره اختلاف لري، نو پكار ده چه دوی باندې عذاب نازل شي؟ نو الله تعالىٰ خپل حكمت ذكر كوي چه كه د الله تعالىٰ دا فيصله مخكښې نهٔ وې شوې چه دوئ له به په دنيا كښې عذاب وركولو سره نهٔ هلاك كيږي، بلكه د قيامت ورځې پورې به د دوئ سزا روستو كولے شي، نو د دوئ جرمونه داسې دي چه دوئ به ئې فورًا هلاك كړي وې.

وَاِنَّ الَّذِيْنَ اُوْرِثُوا الْكِتَابَ : يعني كومو خلكو ته چه كتاب په ميراث كښې وركړے شو چه ددې نه درې ډلې مراد دي، يهود، نصارىٰ او عرب مشركان چه دوی ته د انبياء عليهم السلام نه روستو كتاب وركړے شو، كتاب تورات، انجيل او قرآن درې واړو ته شامل دے. نو دې درې واړو ډلو پكښې شكونه او جګړې شروع كړې. او د خلكو په زړونو كښې شبهات پيدا كوي، او خلك ددې نه منع كوي نو الله به د دوی سره ګوري. نو پدې كښې زجر دے دوی ته پدې شكونو او شبهاتو پيدا كولو باندې.

يا د اُوْرِثُوا الكتاب نه مراد عوام او نيمګري مليان دي، چه د كتاب وارثان دي، او پوره

علم ئې نهٔ دې حاصل کړې، نو د دواړو جملو مطلب دا دې چه غټو ملیانو د ضد او د عناد د وجه نه د توحید او د حق دین مخالفت وکړو، او د هغې په مقابله کښې ئې د شرك او ګمراهئ کتابونه ولیکل او روستو نیمګړی ملیانو او امیانو د غټو علماؤ موافقت وکړو، او د شرك او د ګمراهئ د کتابونو تقلید ئې وکړو، او د توحید او د سنت نه ئې انکار وکړو. نو دلته الله تعالیٰ دواړو ډلو ته زجر ورکړو چه دې مشرانو او کشرانو دواړو ته به الله تعالیٰ سزا ورکوی چه د حق خلاف کوی.

| فَلِذٰلِكَ فَادۡعُ وَاسۡتَقِمۡ كَمَا |
|---|
| نو ددې (تفرقې او اختلاف) د وجه نه دعوت کوه ته او کلك شه (پدې) لکه څنګه |
| أُمِرۡتَ وَلَا تَتَّبِعۡ أَهۡوَاءَهُمۡ وَقُلۡ آمَنۡتُ |
| چه حکم کیدې شی تا ته او مهٔ روانیږه د خواهشاتو د دوی پسې او وایه ! ما ایمان |
| بِمَا أَنۡزَلَ اللّٰهُ مِنۡ كِتَابٍ وَأُمِرۡتُ |
| راوړیدې په هغهٔ څه چه نازل کړیدې الله تعالیٰ د کتاب نه او ما ته حکم شویدې |
| لِأَعۡدِلَ بَيۡنَكُمُ اللّٰهُ رَبُّنَا وَرَبُّكُمۡ |
| چه زهٔ انصاف وکړم په مینځ ستاسو کښې، الله رب زمونږ دې او رب ستاسو دې، (نو |
| لَنَا أَعۡمَالُنَا وَلَكُمۡ أَعۡمَالُكُمۡ |
| تفرقو ته حاجت نشته) مونږ دپاره زمونږ عملونه دی او ستاسو دپاره ستاسو عملونه |
| لَا حُجَّةَ بَيۡنَنَا وَبَيۡنَكُمُ اللّٰهُ |
| دی، نشته هیڅ جګړه په مینځ زمونږ او په مینځ ستاسو کښې، الله تعالیٰ |
| يَجۡمَعُ بَيۡنَنَا وَإِلَيۡهِ الۡمَصِيرُ ﴿۱۵﴾ |
| به جمع والې راولی په مینځ زمونږ کښې او خاص هغهٔ ته ورګرځیدل دی. |

**تفسیر** : پدې آیت کښې لس کلمات دی، ددې نظیر صرف آیة الکرسی دې چه په هغې کښې هم لس جملې دی. خو دا د دعوت په باره کښې دی، د دعوت آداب پکښې ذکر دی، او هغه د الله تعالیٰ د صفاتو په باره کښې دی. نو څکه ترې آیة الکرسی د موضوع

په لحاظ غوره دے۔ او پدے آيت كښ علاج دے دپاره د دفع كولو د تفرق او اختلاف۔
فَلِذٰلِكَ: دے كښ دوه تفسيره دى: (۱) تاويلى تفسير دا دے چه لام په معنىٰ د (اِلىٰ) دے او (ذلك) اشاره ده دغه مخكنى دين د پيغمبرانو ته۔ اَىْ فَاِلٰى ذٰلِكَ الدِّيْنِ فَادۡعُ۔ يعنى د دغه پيغمبرانو دين ته دعوت وركړه، نهٔ بل دين ته۔
(۲) ظاهر د قرآن دا دے چه ذلك اشاره ده تفرق او اختلاف ته، او لام تعليليه دے۔ او د فاء راوړو مطلب دا دے چه هركله چه خلك په صحيح دين او وحى او كتاب كښ شكونه او اختلافات پيدا كوى، نو تهٔ حق دين طرفته دعوت وركوه۔ (ځكه چه كه اختلاف نهٔ وے نو دعوت ته هم ضرورت نهٔ وو)
او خپله هم پدے ولاړ اُوسه، او د يهود او نصارىٰ په پيروىٔ كښ ددے نه هيڅ كله آوړه مهٔ، او ښهٔ په ډاګه ددے خبرے اعلان وكړه چه زهٔ په هغه ټولو كتابونو ايمان لرم كوم چه الله تعالىٰ نازل كړى، زما عادت د يهود او نصارىٰ غوندے نهٔ دے چه د الله تعالىٰ په يو كتاب دے ايمان راوړم او د بل نه دے انكار اوكړم، او ماته ددے خبرے حكم شوے چه كه تاسو په خپله كومه مسئله كښ زما خواته د فيصلے دپاره راشئ، نو پوره عدل او انصاف سره به فيصله كوم، او د الله تعالىٰ د شريعت نه به د ويښتهٔ د سر هومره خِلاف نهٔ كوم۔
او اے د قريشو كافرانو! او اے يهود او نصارىٰ! واورئ، زمونږ او ستاسو رب الله دے، هغهٔ نه سِوىٰ هيڅ رب نشته، هم هغه يو ذات د هر شى رب او مالك دے، زمونږ د عملونو ثواب او عذاب زمونږ دپاره دے، او ستاسو د عملونو ستاسو دپاره، هر يو ته به د هغهٔ د عمل بدله وركړے كيږى۔
او چونكه حق ښكاره شوے، په دے كښ د هيڅ شك او شبهے ګنجائش باقى نهٔ دے پاتے شوے، دے وجے نه زمونږ او ستاسو ترمينځه د اختلاف او جګړے هيڅ ضرورت نشته، مونږ له خپله معامله په الله باندے پرېښودل پكار دى، د قيامت په ورځ به هغه مونږه خامخا جمع كوى، او زمونږ ترمينځ به فيصله كوى، اهلِ حق به د جهنم نه خلاص كړى، او جنت ته به ئے ننباسى، او باطل پرست به هميشه دپاره جهنم ته ګذار كړى۔
وَاسۡتَقِمۡ كَمَاۤ اُمِرۡتَ: ۱- اَىْ وَاسۡتَقِمۡ فِى الۡعَمَلِ بِكِتَابِ اللّٰهِ۔ په كتاب الله باندے په عمل كولو كلك ودريږه۔ ۲- وَاسۡتَقِمۡ فِى الدَّعۡوَةِ اِلَى اللّٰهِ۔ يعنى په دعوت الى الله كښ برابر او مضبوط ودريږه۔ دواړه خبرے صحيح او مراد دى۔
وَلَا تَتَّبِعۡ اَهۡوَآءَهُمۡ: د كافرانو خواهش دا دے چه تهٔ حق دين ته دعوت پريدے، او د

هغوی په لاره روان شے. او د اهواء نه مراد بے دلیله مسئلې دی چه ملیانو د ځان نه جوړې کړے وی. یعنی څوك چه ستا نه د الله تعالیٰ په دین کښې خلاف کوی د هغوی اختلاف ته مه ګوره.

وَقُلۡ آمَنۡتُ بِمَا : ۱- یو مطلب دا دے چه اهل کتابو ته دا دعوت ورکړه چه مونږ ټول کتابونه چه الله نازل کړی هغه منو نو پدے کښې به د هغوی زړونه مائله شی، او په هغوی به تعریض شی چه تاسو بعض منئ او بعضو نه انکار کوئ، او اشاره ده چه په اصولو د دین کښې ټول کتابونه متفق دی. او کله نا کله اظهار د عقیدے ته په باب د دعوت کښې ضرورت راځی چه زما عقیده څومره صفا ده، ټول کتابونه منو، هیڅ ضد راکښې نشته. ۲- دویم مطلب : کله چه مخالفین د شرك او د بدعت او د نورو ګمراهیو دپاره دلیلونه پیش کوی، او کتابونه ئے لاس کښې راخستی وی، نو ته به ورته ووائے چه زهٔ په منزل کتاب باندے ایمان لرم.

وَأُمِرۡتُ لِأَعۡدِلَ بَيۡنَكُمُ : أَیۡ اُمِرۡتُ اَنۡ اُسَوِّیَ فِی الدَّعۡوَةِ بَيۡنَكُمۡ . ما ته دا حکم شویدے چه زهٔ تاسو ټول په دعوت کښې برابر کړم، او ټولو ته یو شان په اخلاص سره دعوت ورکړم. دا فرق نشته چه مکے والو ته زیات او نورو ته کم، او اهل بیتو ته خصوصی مسائل او نورو نه هغه پټول لکه چه شیعه ګان وائی. نهٔ، بلکه رسول الله ﷺ چه کور کښې یوه خبره وکړه، نو هغه به د ټول امت دپاره یو شان وی.

او رسول الله ﷺ به په هر شی کښې عدل او انصاف کولو، په خبره، په مسئلو، په فیصلو، په تقسیم د څیزونو کښې. او هر کله چه رسول الله ﷺ ته دا حکم شویدے چه هغه په هر شی کښې عدل وکړی نو مونږ ته به هم ضرور دا حکم وی.

اللَّهُ رَبُّنَا وَرَبُّكُمۡ : ددے مطلب دا دے : (فَلَا حَاجَةَ اِلَی التَّفَرُّقِ) هر کله چه زمونږ او ستاسو رب یو دے، نو بیا تفرق او اختلاف پیدا کولو ته ضرورت نشته. نو راځئ چه د دغه یو الله بندګی شروع کړو.

لَنَآ أَعۡمَالُنَا وَلَكُمۡ أَعۡمَالُكُمۡ : یعنی اختلاف څکه مهٔ کوئ چه د هر چا خپل خپل عمل دے، مونږ ته به الله تعالیٰ په خپل عمل جزاء او سزا راکوی او تاسو ته به په خپل عمل جزاء او سزا درکوی. نو د خپل عمل غم وکړئ. او اختلاف خلك پدے وجه پیدا کوی چه د خپل عمل غم ورسره نهٔ وی، او د بل په عمل ردونه کوی لکه اهل تکفیر دا کار کوی. نو دا اختلاف د ختمولو ښه طریقه دا ده چه هر سړے خپل عمل ته متوجه

شی، او هغه د حق برابر کړی، نو اختلاف به خپله ختم شی. که ستا عمل په دلیل د کتاب او سنت باندے بناء وی بس ته کامیاب او که داسے نهٔ وی نو ناکام.

لَا حُجَّةَ بَيۡنَنَا : مجاهدؒ وائی : حجة نه مراد خصومت (جګړه کول) دی، او دا په باب د دعوت کښې مراد دے، نو دا په آیت د جهاد سره منسوخ نهٔ دے. اَیۡ لَا وَجۡهَ لِلۡخُصُوۡمَةِ بَيۡنَنَا وَبَيۡنَكُمۡ بَعۡدَ ظُهُوۡرِ الۡحَقِّ) یعنی زمونږ او ستاسو ترمینځ د جګړے کولو هیڅ وجه نشته پس د هغے نه چه حق ښکاره شویدے، حق چه واضح شو نو بیا خو جګړے ته ضرورت نشته. نو یا به په حق باندے اقرار کوے یا به عناد کوے. که اقرار کوے نو زمونږ ملګرے ئے، او که عناد کوے نو الله به درسره ګوری، بیا هم حجة او جګړه نشته.

لکه چه فرمائی :

اَللّٰهُ يَجۡمَعُ بَيۡنَنَا : اَیۡ فَيَقۡضِیۡ لِلۡمُحِقِّ عَلَى الۡمُبۡطِلِ. یعنی الله تعالیٰ به زمونږ او ستاسو ترمینځ جمع والے راولی په قیامت کښې، او خپلے مخے ته به مو ودروی او د حق پرست دپاره به په باطل پرست باندے فیصله کوی.

وَإِلَيۡهِ الۡمَصِيۡرُ: ځکه چه خاص الله ته ورګرځیدل دی نو فیصله به ضرور کیږی.

| وَالَّذِيۡنَ يُحَاجُّوۡنَ فِي اللّٰهِ مِنۡ بَعۡدِ مَا اسۡتُجِيۡبَ |
|---|
| او هغه کسان چه جګړے کوی په باره د الله تعالیٰ کښې روستو د هغے نه چه قبولیت |
| لَهٗ حُجَّتُهُمۡ دَاحِضَةٌ عِنۡدَ رَبِّهِمۡ |
| کړے شویدے د هغهٔ، (نو) دلیل د دوی باطل (برباد) دے په نیز د رب د دوی |
| وَعَلَيۡهِمۡ غَضَبٌ وَّلَهُمۡ عَذَابٌ شَدِيۡدٌ ﴿١٦﴾ |
| او په دوی باندے غضب دے او دوی لره عذاب سخت دے. |

**تفسیر** : دا متعلق دے د (لَا حُجَّةَ بَيۡنَنَا) سره یعنی مونږ سره د الله تعالیٰ په باره کښې جګړے نهٔ دی پکار، کوم خلك چه د الله تعالیٰ په باره کښې جګړے کوی، د هغهٔ توحید نهٔ منی، د هغهٔ رسولان او د هغهٔ شرع نهٔ منی، نو د هغوی جګړه او دلیل د الله تعالیٰ په نیز بیکاره دے، او الله تعالیٰ به په دوی باندے غضب نازلوی، او سخت عذاب سره به مخامخ کیږی.

دارنګه دا تسلی ده دعوت کونکی ته چه ستا د مخالفینو دلیلونه باطل او بیکاره دی

د هغې پرواه مهٔ کوه۔
يُحَاجُّوْنَ فِي اللهِ: ۱- فِيْ تَوْحِيْدِ اللهِ۔ د الله په توحيد کښې جګړې کوي، يعنې د هغهٔ سره شريکان مني۔ ۲- فِيْ كَلَامِهٖ۔ د الله په کلام کښې جګړې کوي، الله تعالیٰ وحی رالیږلې ده، هغه ترې انکار کوي۔ او پدې کښې نورې جګړې هم داخل دي لکه دهريه الله تعالیٰ نهٔ مني، څوك پکښې د الله تعالیٰ حکمونه او د هغه فيصلې نهٔ مني، او څوك د هغهٔ د نبي سنت طريقې نهٔ مني۔
مِنْ بَعْدِ مَا اسْتُجِيْبَ لَهٗ: دا لفظ ورسره د زيات وضاحت دپاره وائي۔ يعنې ډيرو هوښيارو خلکو د الله دعوت قبول کړيدے نو دا هم يو الزامي حجت دے په منکرينو باندې، ځکه که يو پيغمبر راشي او ټول خلك ئې مخالف شي، او يو تن ئې هم خبره ونهٔ مني نو بيا هم د سړي يو قسم شك پيدا کيږي چه دا څنګه انسانان دي، عقلمند دي، او ددې شخص خبره نهٔ مني، ليکن کله چه يو نبي راشي او د هغهٔ څه کسان خبره ومني، او د الله تعالیٰ دعوت قبول کړي، او د هغوی نه ښه خلك جوړ شي، او بيا هم يو تن انکار کوي نو دا ډير لوی مذموم دے ځکه چه دليلونه د حق دعوت شته، او څه خلکو منلے هم دے نو بيا ئې ته ولې نهٔ منې۔ لکه دا خبره هم سورة رعد آيت (۱۹) کښې ذکر شويده ﴿اَفَمَنْ يَّعْلَمُ اَنَّمَا اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ الْحَقُّ كَمَنْ هُوَ اَعْمٰى اِنَّمَا يَتَذَكَّرُ اُولُوا الْاَلْبَابِ﴾
حُجَّتُهُمْ دَاحِضَةٌ: د دوئ دليل بيکاره او خوئيدلے دے۔ دحض باطلوالي او خوئيدلو ته وئيلے شي۔ او د مشرکانو دليل ته ئې حجت ووئيلو ځکه چه د دوی په ګمان باندې دا حجت وو اګرکه دا هسې شبهه ده۔
ابن عباس رضی الله عنهما فرمائي: دا آيت د څه اهل کتابو په باره کښې نازل وو چه هغوی به د مسلمانانو سره جګړې کولې او هغوی به ئې د هدايت نه منع کول پس د هغې نه چه هغوی د الله تعالیٰ دين منلے وو۔ او دارنګه څه ګمراهان خلك وو، هغوی به دا انتظار کولو چه دوی ته به جاهلي دين بيرته راواپس شي۔
قتادة وائي: ددې نه مراد يهود او نصاریٰ دي، او د هغوی جګړه دا وه چه زمونږ نبي ستاسو د نبي نه مخکښې دے او زمونږ کتاب ستاسو د کتاب نه مخکښې نازل دے او خپل ځانونه ئې پدې غوره ګڼړل چه دوی اهل کتاب دي، او د انبياؤ اولاد دي۔
او مشرکانو به وئيل چه ﴿اَىُّ الْفَرِيْقَيْنِ خَيْرٌ مَّقَامًا وَّاَحْسَنُ نَدِيًّا﴾ (مريم: ۷۳) يعنې مونږ په مجلس او مرتبه کښې د اصحاب محمد (ﷺ) نه غوره يو۔

مجاهدؒ وائي : كله چه خلق په اسلام كښې په كثرت سره داخليدل شروع شو، نو څۀ كفارو په خپلو زړونو كښې آرزو وكړه چه كاش ! د جاهليت زمانه بيا را واپس شوې وې او د اسلام روان سيلاب بند شوې وې، نو دا آيت نازل شو. چه مطلب ئې دا دې چه كفار غواړي چه په څۀ طريقه باندې محمد (ﷺ) او د هغۀ ملګري د اسلام نه واوړي. الله وفرمايل چه د قيامت په ورځ به د دوئ لچر دليلونه هيڅ ګكار رانشي، او د نمر غونته ښكاره حق د انكار د وجې نه به په دوئ باندې د الله غضب نازل شي، او دوئ له به سخت عذاب ورکړې شي. (البغوى/ وفتح البيان)

| |
|---|
| اَللّٰهُ الَّذِيۡۤ اَنۡزَلَ الۡكِتٰبَ بِالۡحَقِّ وَ الۡمِيۡزَانَ وَمَا يُدۡرِيۡكَ |
| الله هغه ذات دې چه نازل كړې ئې دې كتاب په حق سره او تله او څه خبر دركړيدې |
| لَعَلَّ السَّاعَةَ قَرِيۡبٌ ﴿۱۷﴾ يَسۡتَعۡجِلُ بِهَا الَّذِيۡنَ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ |
| تا ته چه يقيناً قيامت نزدې دې. په جلتئ سره غواړي دې لره هغه كسان چه ايمان |
| بِهَا وَالَّذِيۡنَ آمَنُوۡا مُشۡفِقُوۡنَ مِنۡهَا وَيَعۡلَمُوۡنَ |
| نۀ لري په هغې باندې او هغه كسان چه ايمان ئې راوړيدې يريږي د هغې نه او پوهيږي |
| اَنَّهَا الۡحَقُّ اَلَاۤ اِنَّ الَّذِيۡنَ يُمَارُوۡنَ فِي السَّاعَةِ |
| چه بيشكه دا حق دې، خبردار! يقيناً هغه كسان چه شك كوي په باره د قيامت كښې |
| لَفِيۡ ضَلٰلٍۢ بَعِيۡدٍ ﴿۱۸﴾ |
| خامخا په ګمراهئ وړاندې كښې دي. |

**تفسير :** پدې آيت كښې ترغيب دې قرآن كريم ته. او مخكښې آيت سره ئې تعلق دا دې چه مخكښې د مخالفينو د حجت باطلوالے ذكر شو، نو اوس د الله تعالىٰ حجت بيانوي چه هغه د هغۀ كتاب دې. دارنګه د الله تعالىٰ په باره كښې جګړه نۀ ده ګكار ځكه چه الله تعالىٰ ښكاره حجت راليږلے دې چه هغه دا قرآن دې.

**اَلۡكِتٰبَ:** ددې نه مراد جنس پخواني كتابونه دي، يا ترې مراد قرآن كريم دې.

**وَالۡمِيۡزَانَ:** ددې نه مراد قرآن كريم دې. يعنى الله تعالىٰ پخواني كتابونه هم په حق سره راليږلي وو، او بيا ئې قرآن راوليږلو چه پدې سره به پخواني كتابونه تللے كيږي. او اوس

به تابعداری صرف د قرآن وی. یا د دواړو نه مراد قرآن کریم دے او دا عطف د یو صفت دے په بل صفت باندے. یعنی قرآن میزان (تله) ده، چه پدے باندے خپل او پردی عقائد، اقوال، اعمال، اشخاص، تنظیمونه او ډلے تللے کیږی، کومه عقیده او عمل او قول او شخص او ډله چه د قرآن موافق وو هغه حقه او کومه چه ددے خلاف وه هغه باطله ده.

۲- یا میزان نه مراد عدل دے. اَیۡ اَمَرَ بِالۡعَدۡلِ فِی الۡکُتُبِ. یعنی الله تعالیٰ کتابونه هم رالیږلی او بیا ئے په دے کتابونو کښ په عدل او انصاف باندے حکم کړیدے. الله تعالیٰ په هر کار کښ د بندگانو نه عدل او انصاف غواړی. دواړه خبرے صحیح دی، د الله کتاب تله هم ده، او عدل هم پکښ ذکر دے، نو اول تفسیر غوره او دویم پکښ داخل دے.

بِالۡحَقِّ: د حق نه مراد اظهار د حق دے. یعنی دے دپاره چه حق ښکاره شی او هغه حق کامل دین دے.

وَمَا یُدۡرِیۡكَ لَعَلَّ السَّاعَةَ: سمدست د قیامت تذکره کوی ځکه چه مخکښ مونږ بار بار ذکر کړی چه د قرآن او د قیامت ډیر سخت مناسبت دے. یعنی ددے قرآن نه به څوك فائده اخلی، او پدے عدل به څوك روانیږی؟ نو څوك چه د آخرت د ورځے نه یریږی.

نو سوال پیدا شو چه د آخرت ورځ به کله راځی؟ نو فرمائی چه (وَمَا یُدۡرِیۡكَ) یعنی تا ته پته نشته خو امید ولره چه قیامت ډیر نزدے راروان دے. نو دلته لَعَلَّ په نسبت د مخاطب دے.

دے وجے نه اے زما نبی! ته د قرآن کریم په احکامو عمل کوه، او د عدل او انصاف تقاضے پوره کوه، د هغے ورځے راتللو نه مخکښ کله چه د خلقو اعمال به وتللے شی، او هر چاته به د هغے پوره پوره بدله ورکړے شی.

د قیامت او د قرآن نور مناسبتونه دا دی:

۱- (فَاسۡتَمۡسِكۡ بِالۡعَدۡلِ قَبۡلَ اَنۡ یَّاۡتِیَكَ الۡقِیَامَةُ) یعنی پدے عدل او قرآن باندے منگولے ولگوه مخکښ ددے نه چه تا ته قیامت راشی. ځکه چه کله د قیامت ورځ راشی نو بیا به ددے عدل او د قرآن په باره کښ تپوس کیږی.

۲- بعض مفسرین وائی (یَذۡکُرُ مَوۡضِعَ الۡعَدۡلِ الۡکَامِلِ). چه پدے کښ د کامل عدل د ځای تذکره ده چه پوره عدل به په قیامت کښ راښکاره کیږی.

وَمَا یُدۡرِیۡكَ: ددے دویم مفعول پټ دے (وَقۡتَ السَّاعَةِ) یعنی تا ته څه شے پوهه درکوی

په وخت د قيامت باندے۔ او ما استفهام انكاري دے۔ او دا لفظ په هغه ځاى كښې استعماليږي چه پيغمبر ته ئے خبر نۀ وى وركړے۔

يَسۡتَعۡجِلُ بِهَا الَّذِيۡنَ: په دے آيت كښې رتنه ده په استعجال د قيامت، او پدے باره كښې په جګړه كولو باندے او د مؤمنانو صفت كوى په اشفاق او يقين كولو په آخرت باندے.

يعنى د قيامت د ورځے په راتلو كښې هغه خلق تادى او جلتى كوى چه هغوئ ددے په راتلو باندے يقين نۀ لرى، دے وجے نه زمونږ د نبى نه مطالبه كوى چه كه ستا خبره رشتينے وى، نو بيا هغه ورځ ولے نۀ راځى، لږ مونږ ته ئے خو هم اوښايه، يعنى د دوباره پورته كيدو خبره بيخى بے بنياده او د عقل نه لرے ده، ليكن كوم خلق چه د مرګ نه پس په دوباره ژوند، د قيامت په ورځ او ددے ورځے په جزاء او سزا باندے ايمان لرى، د هغے د راتللو د تصور نه هم يريږى، ځكه چه دوئ ته معلومه نۀ ده چه په دے ورځ به د دوئ انجام څۀ وى.

يَسۡتَعۡجِلُ بِهَا: يعنى په طريقه د استهزاء سره قيامت په جلتئ غواړى، د دوى ګمان دا دے چه دا به نۀ راځى۔ يا په ضعيفو خلكو دا شك اچوى چه دا نشى راتللے۔

مُشۡفِقُوۡنَ مِنۡهَا : كوم خلك چه په قيامت باندے يقين لرى، نو د هغے نه ډير زيات يريږى ځكه چه هغوى ته معلومه ده چه ډيره سخته ورځ ده، پته نۀ لګى چه د دوى سره به څه كيږى (مقاتلؒ) يا دوى د هغے د حساب نه يريږى۔ (زجاجؒ)

وَيَعۡلَمُوۡنَ اَنَّهَا الۡحَقُّ: دا ورسره ځكه وائى اشاره كوى چه د دوى دا اشفاق (يره) د يقين او جزم د وجه نه ده، او د تردد او د شك يره نۀ ده۔ (ابن عاشورؒ)

او حصر ئے وكړو اشاره ده چه دوى ته د حق د ښكاره كيدو دومره زيات دلائل راغلى دى چه ګويا كښې دوى ته بل شے حق نۀ ښكاره كيږى سوئ ددے نه۔

اَلَاۤ اِنَّ الَّذِيۡنَ يُمَارُوۡنَ: يعنى كوم خلك چه د قيامت په باره كښې شك يا جګړے كوى نو دا خلك د حق نه ډير لرے ګمراه شويدى نو پدے كښې اشاره ده چه كوم خلك قيامت منى نو هغه په هدايت روان دى۔

يُمَارُوۡنَ: د مُمَاراة نه دے او هغه د مِرۡيَة نه دے په زير د ميم سره شك ته وائى۔ يا د مِراء نه دے جګړے ته وئيلے شى۔ او دواړه معانى د يو بل سره لازم ملزوم دى، ځوك چه شك كوى هغه جګړه كوى، او ځوك چه جګړه كوى د هغۀ شك وى۔

ضَلَالٍ بَعِيۡدٍ: دلته ئے كفر مشابه كړيدے د ګرځيدونكى د ضلال (لاره ورك كيدو)

سره، او دا کرخیدل هله سخت وي چه کله لاره لرې وي. نو دا کنایه ده ددې نه چه ددۀ راواپس کیدل مقصد ته ډیر سخت دي. نو ضلال بعید نه مراد ضلال شدید دے، یعنې سخته گمراهي. (ابن عاشورؒ)

| |
|---|
| اَللّٰهُ لَطِيۡفٌۢ بِعِبَادِهٖ يَرۡزُقُ مَنۡ يَّشَآءُ ۚ وَهُوَ |
| الله تعالىٰ مهربان دے په بندگانو خپلو، رزق ورکوي چا له چه وغواړي او هغه |
| الۡقَوِيُّ الۡعَزِيۡزُ ﴿۱۹﴾ مَنۡ كَانَ يُرِيۡدُ حَرۡثَ الۡاٰخِرَةِ |
| طاقتور دے عزتمند دے. څوك چه اراده لري (په عمل خپل سره) فصل د آخرت (نو) |
| نَزِدۡ لَهٗ فِيۡ حَرۡثِهٖ ۚ وَمَنۡ كَانَ يُرِيۡدُ حَرۡثَ الدُّنۡيَا |
| زیات به ورکړو دۀ ته په فصل ددۀ کښې، او څوك چه اراده لري د فصل د دنیا |
| نُؤۡتِهٖ مِنۡهَا وَمَا لَهٗ فِي الۡاٰخِرَةِ مِنۡ نَّصِيۡبٍ ﴿۲۰﴾ |
| نو ورېه کړو مونږ دۀ ته د هغې نه او نۀ به وي دۀ لره په آخرت کښې څۀ حصه. |

**تفسیر**: الله تعالىٰ په خپلو بندگانو بیحده مهربانه اورحم کونکے دے، د هغۀ لطف او کرم مومن او کافر او نیك او بد ټولو ته شامل دے، ځکه خو هغه ټولو ته روزي ورکوي، کافر کفر کوي، او فاسق د فسق او فجور نه دنیا ډکوي، بیا هم هغوئ نۀ تباه کوي، بلکه د زندگئ آخري ساه پورې هغوئ له خوراك څښاك ورکوي. نو د رزق مسئله ئې هم دلته ددې مناسبت دپاره راوړه چه بندگان د هغۀ بندگي وکړي او الله تعالىٰ د کافرو نه رزق منع نۀ کړو دے دپاره چه هغه په قیامت کښې دلیل ونۀ نیسي د عمل نۀ کولو دپاره. چه ووائي چه تا خو رزق مؤمنانو ته ورکړے وو، او مونږ خپل سیر وږو پسے کرځیدو، مونږ کوم عمل ته وزګار وو. نو ځکه الله تعالىٰ رزق ټولو ته عام کړو.

او ابن عاشورؒ وائي چه دا آیت د روستو آیت (مَنۡ كَانَ يُرِيۡدُ) دپاره توطئه او تمهید په طریقه راوړے شویدے ځکه چه روستو آیت کښې څۀ ذکر کیږي، دا د الله تعالىٰ د لطف او مهربانئ اثر دے، چه الله ایمان والا او کافرو ټولو ته دنیا کښې رزق آسان کړیدے، او بیا ئې ایمان والو ته په آخرت کښې خصوصي رزق ورکړیدے.

لَطِيۡفٌۢ بِعِبَادِهٖ: جعفر بن محمدؒ وائي: په باب د رزق کښې د الله تعالىٰ لطف په بندگانو

باندے په دوه قسمه دے : (۱) بِاَنۡ جَعَلَ رِزۡقَهُمۡ مِنَ الطَّيِّبَاتِ۔ د بندګانو رزق ئے د پاك څیزونو نه مقرر کړیدے، دوی ئے خلاصه او نچوړ خوری۔

(۲) اِنَّهُ لَمۡ يَدۡفَعۡ اِلَيۡكَ رِزۡقَكَ دَفۡعَةً وَّاحِدَةً ۔ الله تا ته رزق په یو ځل درنکړو، که د شپیته کالو زندګئ خوراك ئے درکړے وے نو کوم ځای به دِے ساتلے نو دا رزق به ستا دپاره عذاب وے۔

قرطبیؒ وغیره د لطیف شل معانی ذکر کړیدی هغے ته رجوع وکړه۔

علامه خطابیؒ وائی : الله تعالیٰ احسان کونکے دے د بندګانو سره، په دوی مهربانی کوی د هغه ځای نه چه دوی پرے نۀ پو هیږی، او دوی ته د دوی مصلحتونه او فائدے برابروی د هغه ځای نه چه دوی پرے ګمان هم نۀ لری۔

بعض وائی : لطیف دے چه د بندګانو نیك صفتونه راښکاره کوی، او بد ورله پټوی۔ یا د هغوی د زَلّة او لغزش نه معافی کوی۔ یا بنده ته د هغۀ د ګوزارے نه زیاته ورکوی او دومره طاعت پرے مقرروی چه د هغۀ د وس لاندے وی۔

مَنۡ يَّشَاءُ: سوال دا دے چه رزق خو هر چا ته ورکوی نو د مَنۡ يَّشَاءُ څه معنیٰ ده؟ آیا بے رزقه هم څوك شته ؟ (۱) بعضو جواب کړیدے چه يَرۡزُقُ نه مراد يَزِيۡدُ فِي الرِّزۡقِ دے، یعنی الله تعالیٰ رزق د بعض خلکو زیاتوی چا له چه وغواړی۔ مګر دا تاویل د ظاهر د قرآن خلاف دے۔

(۲) ظاهر دا ده چه رزق ورکوی چا له چه وغواړی، او چا له ئے چه رزق ورکړیدے نو هغه ته ئے اراده شویده۔ [اَیۡ كُلُّ مَنۡ يُّرۡزَقُ فَهُوَ مِمَّنۡ يَّشَاءُ] یعنی چا ته چه رزق ورکړے کیږی نو هغه په مَنۡ يَّشَاءُ کښ داخل دے۔ نو بعضو مخلوقاتو ته الله تعالیٰ رزق ورکوی لکه انسانان، پیریان، او حیوانات او مارغان شو، او بعض مخلوقات لکه ملائك، کانړی، جمادات وغیره خوراك نۀ کوی۔

وَهُوَ الۡقَوِيُّ : دا ئے په (لطیف) عطف کړو، اشاره ده چه د الله تعالیٰ مهربانی د هغۀ د عجز او تصنع د وجه نه نۀ ده، بلکه هغه قوی او عزیز (غالب) ذات دے۔

دارنګه په القوی کښ نفی د اسباب د شُح (بخل) ده۔ او په العزیز کښ نفی د سبب د فقر دے، نو رزق د الله تعالیٰ د هغۀ د علم او د حکمة په تقاضا بناء دے۔

مَنۡ كَانَ يُرِيۡدُ حَرۡثَ الۡاٰخِرَةِ: ابن عاشورؒ وائی : دا متعلق دے د ﴿يَسۡتَعۡجِلُ بِهَا الَّذِيۡنَ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ الخ﴾ سره، یعنی دوه ډلے دی، د ایمان والو اَهم مقصد د آخرت ژوند دے، او دے

ایمانه خلکو همت په دنیاوی ژوند باندے رابند دے۔ نو پدے آیت کښې الله تعالیٰ تفصیل د دوارو ډلو د معاملو کوی چه دا دواړه د الله تعالیٰ بندګان دی، او د هغهٔ په لطف کښې شریك دی، لیکن په معامله کښې ئے فرق دے۔ او پدے آیت کښې د الله تعالیٰ د کرم او مهربانۍ د رابنکاره کیدو یو ځای خودلے شویدئے۔

نو غرض په آیت کښې زهد فی الدنیا او ترغیب الی الآخرة بیانوی۔

حَرۡثَ الۡاٰخِرَةِ : یعنی دا اراده لری چه دنیا کښې به ئے کرو او آخرت کښې به ئے ریبو۔ مطلب دا چه دنیا کښې نیك اعمال کوی او بیا د هغے د بدلے اراده په آخرت کښې لری۔

نَزِدۡ لَهٗ فِیۡ حَرۡثِهٖ : نو هغهٔ دپاره به د هغهٔ په فصل کښې زیاتوالے وکړو۔ ددے زیاتوالی یو مصداق دے : (۱) مُضَاعَفَةُ الۡاَجۡرِ۔ یعنی د اجر دوچند والے۔ چه په هر یو نیك عمل باندے د لسو چندو نه اُوو سوو چندونو پورے ثواب ورکوی، او چاله چه وغواړی ددے نه هم زیات ثواب ورکوی، او که مال خرچ کړی نو په هغے کښې ورله برکت اچوی۔

(۲) صورت : بِالتَّوۡفِیۡقِ۔ یعنی اول کښې به نیکی کول ګران وی، لیکن کله چه پکښې شروع وکړی، نو الله تعالیٰ ورته توفیق ورکوی، او بیا به ورله خوند ورکوی۔ لکه تهجد اول کښې ګران وی، لیکن بیا به خوند درکوی۔

وَمَنۡ كَانَ یُرِیۡدُ حَرۡثَ الدُّنۡیَا : او د چا مقصد چه دنیا او ددے د عارضی خوندونو حاصلول وی، مال د دنیا ددے دپاره ګټی چه د دنیا نه خوند واخلی، او ددے عزت او رفعت ورته حاصل شی، نو الله تعالیٰ به د دوئ د اعمالو بدله په هم دے دنیا کښې ورکړی، او په آخرت کښې به دوئ ته هیڅ خوشحالی نصیب نشی۔

یا مطلب دا چه په نیك عمل کښې اراده د دنیا کوی، یعنی عبادت او د دین کار، قرآن لوستل وغیره د دنیا په نیت باندے کوی، نو دنیا کښې به ئے دا مقصد حاصل شی که چرے الله وغواړی، لیکن آخرت ئے برباد دے۔

| أَمۡ لَهُمۡ شُرَكَاءُ شَرَعُوۡا لَهُمۡ مِّنَ الدِّيۡنِ مَا |
| --- |
| آیا شته دوی لره شریکان (د الله تعالیٰ) چه جوړ کړے ئے دے دوی لره د دین نه هغه |
| لَمۡ یَاۡذَنۡۢ بِهِ اللّٰهُ ؕ وَلَوۡلَا كَلِمَةُ الۡفَصۡلِ |
| چه اجازت نهٔ دے ورکړے د هغے الله تعالیٰ او که چرته نهٔ وے وینا د فیصلے خامخا |

﴿لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ وَإِنَّ الظَّالِمِينَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٢١﴾﴾

فيصله به شوے وے په مينځ د دوی کښې، او يقيناً ظالمان دوی لره عذاب دردناك دے.

**تفسير** : دا متعلق دے د ﴿شَرَعَ لَكُم مِّنَ الدِّينِ﴾ (۱۳) آيت سره، يعنی الله تعالىٰ خو تا ته اتفاقی دين درکړو، او قرآن ئے درته وحی راوليږله نو آيا د مشرکانو دپاره هم څوك داسے معبودان سوئ د الله تعالىٰ نه شته چه هغوی هم داسے وحی راليږلے ده، او دا مشرکان په هغه وحی باندے روان دی، نۀ داسے څه نشته، بلکه دوئ د ځان نه دين جوړ کړيدے، نو دا خلك د سخت عذاب لائق دی، ليکن الله فرمائی چه که ما د دوی دپاره وخت مقرر کړے نۀ وے، نو دوی به مے هلاك کړی وے، خو دوی ته به په خپل وخت دردناك عذاب ورکوم.

او دا رد دے په شرك فی التشريع والحکم باندے يعنی په شرع او کتاب د الله تعالىٰ کښې خو شرك او شرکی کارونه جائز نۀ دی، نو آيا دا کارونه دوئ لره نورو آلهه ؤ جائز کړل، او د الله نه سوئ خو نور آلهه نشی کيدے، نو معلومه شوه چه شرك په هيڅ شان سره جائز نۀ دے.

**فوائد الآية** : ۱- شريعتونه په دير قِسمه دی، يو شريعت منزله دے، دا واجب الاتباع دے. دويم شريعت منسوخه دے لکه د يهود او نصارا ؤ دين الله تعالىٰ منسوخ کړيدے.

دريم شريعت مُبَدَّله دے، چه د الله تعالىٰ دين کښې څوك تغيير او تبديل پيدا کړی.

او څلورم دے ته نزدے شريعت مُبْتَدَعه دے. چه څوك د ځان نه يو دين جوړ کړی او الله تعالىٰ ته ئے نسبت وکړی، چه دا د الله تعالىٰ دين دے، او هغے کښې ثواب گڼړی. نو پدے آيت کښې په شريعت مُبْتَدَعه باندے رد دے چه دے ته شرك فی التشريع والحکم هم وائی، او دے ته شرك فعلی او شرك فی التحليل والتحريم، او شرك فی الاطاعة هم وائی. يعنی چه څوك حلال او حرام د ځان نه جوړ کړی، يا ورله خپلو مشرانو او مليانو جوړ کړی وی، او نسبت ئے الله تعالىٰ ته کوی، نو څوك چه د چا حرام او حلال بغير د اجازے د الله تعالىٰ نه منی، دا شرك دے.

۲- شارع (شريعت جوړونکے) په حقيقت کښې يو الله تعالىٰ دے، که چرے په پيغمبر باندے د شارع اطلاق وکړے شی، نو هغه به په معنیٰ د شرع بيانونکی سره وی.

۳- ائمه مجتهدين شرع جوړونکی نۀ دی، بلکه د دليل شرعی نه احکام راويستونکی دی، نو کله به صحيح وی او کله به خطاء وی. نو څوك چه دا وائی چه

میبنـه امـام صـاحب حلاله کړیده، او قرآن او حدیث کښې نشته، نو دا لوی ګمراه دے، او امام صاحب ته ئے د شریعت جوړونکی نسبت وکړو. دے ته شرك فی الاطاعة وائی.

٤- یـو امام، مجتهد، یا مفسر، استاد، پیر او مرشد د تحلیل او تحریم اختیارمند ګنړل هم شرك دے.

٥- د یـو عـالِـم او پیـر د شرك او د بدعاتو، او د فسق او د فجور په کارونو کښې تابعداری کـول شـرکـی تقلید دے. ٦- یو امام مجتهد تقلید په داسے طریقه کول چه قرآنی آیات او صحیـح صریح حدیث نه د هغهٔ قول مخالف ښکاره شی، لیکن بیا هم په قول د امام بانـدے عـمـل کوی په دے بهانے سره چه هغه زمونږ نه ښه پوهیدو، او کیدے شی چه د هغـه سره بـه ددے نـه جـواب مـوجـود وی، یـا بـه ورسره بل دلیـل وی، نو دا تقلید هم ګمراهی ده. (احسن الکلام)

مَا لَمْ يَأْذَنْ بِهِ اللّٰهُ: دا دلیل دے چه د یو امام او عالِم او مُقتدیٰ په قول باندے د قرآن یا د صحیح حدیث نه دلیل موجود وی، نو د هغے تابعداری کول په حقیقت کښې د الله تعالیٰ او د هـغـهٔ د رسـول تـابـعـداری ده، او مـراد د اذن نه دلیل شرعی دے چه هغه کتاب الله او سنت رسول ﷺ دے.

وَإِنَّ الظّٰلِمِيْنَ : دا اِجمالی فیصله ده. او ظالم دلته هر هغه څوك دے چه اِلٰهی شرع ئے پریښے وی، او پـه هـغـه شی پسے روان وی چه په هغے الله تـعـالیٰ اجازه او دلیـل نهٔ دے راليږلے، او دا کار شرك دے، او شرك ظلم عظیم دے.

| تَرَى الظّٰلِمِيْنَ مُشْفِقِيْنَ مِمَّا كَسَبُوْا وَهُوَ |
|---|
| وینے به تهٔ ظالمانو لره یریدونکی د هغه عملونو نه چه کړے ئے دی، او دا |
| وَاقِعٌ بِهِمْ وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا |
| (عمل) به راپریوتونکے وی په دوی باندے، او هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے |
| وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فِيْ رَوْضٰتِ الْجَنّٰتِ لَهُمْ مَّا |
| او عملونه ئے کړیدی نیك په باغیچو د جنتونو کښې به وی دوی لره به وی هغه څه |
| يَشَآءُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ ذٰلِكَ هُوَ الْفَضْلُ الْكَبِيْرُ ﴿٢٢﴾ ذٰلِكَ الَّذِيْ |
| چه غواړی ئے دوی په نیز د رب د دوی دا کامیابی لویه ده. دا هغه شے دے |

| يُبَشِّرُ اللّٰهُ عِبَادَهُ الَّذِيْنَ |
|---|
| چه زيرے وركوى الله تعالىٰ (پدے سره) بندګانو خپلو ته هغه كسان |
| آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ قُلْ لَّا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ |
| چه ايمان ئے راوړيدے او عملونه ئے كړيدى نيك اُووايه ! نۀ غواړم تاسو نه پدے باندے |
| أَجْرًا إِلَّا الْمَوَدَّةَ فِي الْقُرْبٰى |
| مزدورى مګر مينه كول په خپلولئ كښ (مګر چه مينه اُوكړئ په نزديكت د الله |
| وَمَنْ يَقْتَرِفْ حَسَنَةً نَّزِدْ لَهٗ فِيْهَا حُسْنًا |
| تعالىٰ كښ)، او چا چه وكړه نيكى زيات به كړو دۀ لره په هغے كښ ښائست |
| إِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ شَكُوْرٌ ﴿۲۳﴾ |
| يقيناً الله تعالىٰ بخونكے قبلونكے دے۔ |

**تفسير** : پدے آيت كښ دوه ډلے ذكر كوى يو شرك كونكى ظالمان چه د ځان نه ئے شريعت جوړ كړے وو، نو هغوى ته تخويف اُخروى بيانوى۔ او دويمه ډله موحدين چه په شرعى دليل پسے روان وى، نو هغوى ته اُخروى بشارت وركوى۔ او دا آيت تشريح د ﴿مَنْ كَانَ يُرِيْدُ حَرْثَ الْآخِرَةِ﴾الخ) هم ده۔ چه يواځے د دنيا طلبګار ظالمان دى، او د آخرت طلبګار ايمان والا دى۔

**وَهُوَ وَاقِعٌ بِهِمْ**: يعنى بعينه دا بد عمل به په دوى باندے راپريوتونكے وى، ددے عمل نه به ورته بِلا جوړه شوى وى۔

**فِيْ رَوْضَاتِ**: جمع د رَوْضَةٌ ده، هغه باغيچے ته وئيلے شى چه په هغے كښ ډير ښينوالے او ډير لذتونه وى، نو معلومه شوه چه د جنت په درجاتو كښ ډير فرق دے، د بعضو به اعلىٰ درجات وى، او د بعضو د هغے نه لاندے۔ او چونكه دا ايمان او عمل صالح والا په دنيا كښ د الله تعالىٰ د تعلق او د وحى په باغيچو كښ ګرځيدل نو ځكه ئے الله تعالىٰ د جنت باغيچو ته بوځى۔

**الْفَضْلُ**: كښ اشاره ده چه دا خالص د الله تعالىٰ په فضل سره حاصليږى۔

**الْكَبِيْرُ** : هغه دے چه د هغے حقيقت او وصف ته د مخلوق عقلونه او تصور نۀ

رسیږي، ځکه چه کله حق ذات د یو شي په باره کښې کبیر ووائي، نو د هغې اندازه به څوك لګولې شي۔

قُلۡ لَّاۤ اَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ اَجۡرًا : الله تعالیٰ د نبی کریم ﷺ په ژبه وفرمایل چه اے قریشو ! د دومره لویو نعمتونو حاصلولو طرفته په لار ښوونه باندے زۀ تاسو نه هیڅ عوض نۀ غوارم، صرف دا غوارم چه تاسو سره چه زما کومه رشته داری او خپلولی ده، د هغې خیال وساتئ، او زما د ضرر رسولو نه منع شئ، او نور هم ماته د ضرر راکولو نه منع کړئ، دے دپاره چه زۀ په آسانئ سره د الله تعالیٰ پیغام د هغۀ مخلوق ته اُورسوم۔

اَلۡمَوَدَّةَ فِى الۡقُرۡبٰى : ددے ډیر مصداقات دی، بعض ظاهر او بعض بعید دی۔

(۱) یو دا چه قُربیٰ نه مراد قرابتِ نسبی د رسول الله ﷺ دے، امام شعبیؒ د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړیدی چه د رسول الله ﷺ د قریشو د ټولو خاندانو سره خپلولی وه، څۀ د نسب او څۀ د مصاهرت (سخرګنئ)۔

او د عربو عادت دا وو چه هغوی به خپل زوم د خپل بچی په شان ګڼړلو، نو الله تعالیٰ خپل نبی ته وائی چه تۀ دوی ته ووایه چه ستاسو د رواج مطابق زۀ خو درنه پیسے نۀ غوارم [اِلَّا اَنۡ تُوَادُّوۡنِیۡ لِقَرَابَتِیۡ فِیۡكُمۡ] لیکن غوارم چه تاسو زما د خپلولئ چه تاسو سره ده د هغې لحاظ وکړئ۔ یعنی که نور خلك په ما ایمان نۀ راوړی، نو تاسو خو له ضرور ایمان راوړل پکار دی، د خپل رسم او رواج لحاظ وکړئ، خو همیشه دپاره دا قانون راروان دے چه د حق پرست سره ډیرو خلکو د خپلولئ لحاظ هم نۀ دے ساتلے، او نۀ ئے د دنیاوی قانون او نۀ د خپل رسم ورواج او نۀ د قومی غیرت۔ اِلَّا مَنۡ رَّحِمَ رَبُّكَ ۔ او همدا ظاهر تفسیر دے۔

(۲) قربیٰ نه مراد تقرب الی الله دے۔ اَیۡ اِلَّا اَنۡ تُحِبُّوۡا قُرۡبَ اللّٰهِ ۔ یعنی زۀ تاسو نه غوارم چه تاسو د الله سره مودت وکړئ او هغه ته ځان نزدے کولو سره مینه وکړئ په طاعت سره۔ او دا به داسے آیت شی لکه سورة الفرقان کښې آیت (۵۵) ذکر شوے وو ﴿قُلۡ مَاۤ اَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ مِنۡ اَجۡرٍ اِلَّا مَنۡ شَآءَ اَنۡ يَّتَّخِذَ اِلٰى رَبِّهٖ سَبِيۡلًا﴾ نو دغه آیت به ددے آیت تفسیر شی۔ دا هم ښه تفسیر دے۔

(۳) بعید تفسیر د سدیؒ او کلبیؒ نه نقل دے چه د القربی نه مراد ذَوِی القربیٰ او ذوی القرابة د نبی کریم ﷺ دی چه هغه اهل بیت دی، یعنی زۀ ستاسو نه هیڅ نۀ غوارم لیکن دا غوارم چه زما د اهل بیتو سره محبت کوئ، هغوی ته اذیت مۀ ورکوئ، او

اهل بیت د رسول الله ﷺ ازواج مطهرات او د هغه آل دی، نو محبت او احترام د رسول الله ﷺ د آل او د هغهٔ د بيبيانو سره په امت باندې لازم دې، ليكن بغير د افراط او تفريط نه.

(٤) يا دا غواړم چه تاسو د خپلو خپلوانو لحاظ وساتئ. دا روستنی دوه تفسیرونه د سیاق نه بعید دی. او علامه قاسمیؒ دا ته وجو نه دریم او څلورم تفسير ضعيف کړيدې. اول تفسير د مقام د دعوت سره ډير زيات مناسب دې.

## سوال وجواب

په قرآن کريم کښې د نورو انبياؤ او دارنګه د رسول الله ﷺ نه ئې په سورة انعام (٩٠) آيت او سورة ص (٨٦) آيت کښې بغير د استثناء نه د اجر نهٔ طلب کول ذکر کړيدی، نو دلته ئې ولې استثناء وکړه چه ﴿إِلَّا الْمَوَدَّةَ فِي الْقُرْبَىٰ﴾ يعنې هيڅ اجر نهٔ غواړم صرف دا يو اجر غواړم؟

**جواب :** دا استثناء منقطع ده، يعنې په ﴿لَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا﴾ باندې خبره ختمه شوه. يعنې پدې بيان باندې تاسو نه هيڅ مزدوري نهٔ غواړم. ليکن يوه بله خبره درته کوم، او هغه دا چه دا غواړم چه تاسو زما د خپلولئ لحاظ وساتئ.

دويم جواب دا استثناء متصل ده په طريقه د اِدعاء او فرض کولو سره يعنې زهٔ هيڅ قسم اجر نهٔ غواړم، او فرض کړئ که چرې مودت في القربىٰ اجر وي نو هغه غواړم ليکن هغه خو اجر نهٔ دې، ځکه چه دنيوي اجر هغه شے دے چه په هغے سره دنيوي ترقي اجير ته ملاويږي، او په مودة في القربىٰ سره خو پيغمبر ته فائده نهٔ رسيږي، بلکه ددې خلکو خپله فائده ده. لکه په دويم تفسير کښې ورته اشاره ده.

**وَمَنْ يَقْتَرِفْ حَسَنَةً :** يعنې څوک چه څهٔ نيک عمل وکړي، نو مونږ به ددې بدله هغهٔ له څو چنده زياته ورکړو، او دارنګه توفيق به ورکړو پدې طريقه چه عمل به ورته آسان کړو.

**نَزِدْ لَهُ فِيهَا حُسْنًا :** الله تعالىٰ به په کښې زيات حسن پيدا کړي، مطلب دا چه څوک په نيک عمل کښې خواري کوي، نو الله تعالىٰ به ورته دغه عمل ښائسته ښکاره کوي، او خوند به ورله ورکوي، او ددې په وجه به د نورو نيک اعمالو توفيق ورته ملاويږي.

| |
|---|
| اَمۡ یَقُوۡلُوۡنَ افۡتَرٰی عَلَی اللّٰهِ کَذِبًا فَاِنۡ یَّشَاِ اللّٰهُ |
| آیا وائی دوی دهٔ جوړ کړیدی په الله باندې دروغ، نو که وغواړی الله تعالیٰ |
| یَخۡتِمۡ عَلٰی قَلۡبِکَ وَیَمۡحُ اللّٰهُ الۡبَاطِلَ وَیُحِقُّ الۡحَقَّ |
| مهر به ووهی په زړهٔ ستا او ختموی الله تعالیٰ باطل لره او ثابتوی حق لره |
| بِکَلِمَاتِهٖ ؕ اِنَّهٗ عَلِیۡمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوۡرِ ﴿۲۴﴾ |
| په خپلو وعدو سره، یقیناً هغه پوهه دې په هغه خبرو چه په سینو کښې دی. |

**تفسیر**: اُوس رد کوی په هغه کافرو چه هغوی به وئیل چه محمد (ﷺ) دروغژن دې، الله تعالیٰ دا خپل پیغمبر نهٔ دې جوړ کړې، اونهٔ ئې د وحی په ذریعه په دهٔ باندې خپل قرآن نازل کړې، نو الله فرمائی چه که تهٔ زمونږ نبی نهٔ وې، او قرآن زمونږ کلام نهٔ وې، بلکه ستا دروغ تړل وې، نو الله تعالیٰ به ستا په زړهٔ باندې مهر لګولې وې، نهٔ به کومه معنیٰ ستا په زړهٔ کښې راتلې، او نهٔ به کوم حرف ستا د ژبې نه اداء کیدې، لیکن داسې ونشوه، بلکه د وحی سلسله جاری ده، قرآن نازلیږی، او د اسلامی دین احکام مدوّن کیږی (لیکلې کیږی). دا ددې خبرې قطعی دلیل دې چه الله تعالیٰ تانه راضی دې، او قرآن زمونږ کلام دې، او د عربو مشرکان دروغژن دی. (القاسمیؒ)

په بله طریقه دا کافرانو ته یوه دهمکی غونته ده چه الله تعالیٰ فرمائی: ما تاسو ته دا بنکلې کتاب راولیږلو او تاسو وایئ چه دا دروغ جوړ شویدی، نو الله تعالیٰ به دا ددې پیغمبر نه هیر کړی، نو تاسو به ددې لوی خیر نه محروم پاتې شئ (قتادهؒ)

او دا د سورة الاسراء د آیت (۸۶) ﴿وَلَئِنۡ شِئۡنَا لَنَذۡهَبَنَّ بِالَّذِیۡۤ اَوۡحَیۡنَاۤ اِلَیۡکَ﴾ په شان دې. او دا ظاهر تفسیر دې. او چا دلته د ﴿یَخۡتِمۡ عَلٰی قَلۡبِکَ﴾ نه ربطِ قلب معنیٰ اخستې ده، یعنی که د الله اراده وشی، نو ستا زړه به مضبوط کړی په صبر سره د دوی په ضررونو. (مجاهدؒ ومقاتلؒ) نو دا تفسیر ضعیف دې ځکه چه ختم په معنیٰ د ربطِ قلب سره په قرآن کښې معهود نهٔ دې. دویم د رسول الله ﷺ زړه خو الله تعالیٰ په قرآن سره مضبوط کړې وو نو د (اِنۡ یَّشَاِ) څه معنیٰ شوه؟!.

وَیَمۡحُ اللّٰهُ الۡبَاطِلَ: زجاجؒ وائی: دا په دغه دروغجنو منکرینو باندې بل رد دې چه که د رسول الله ﷺ راوړې وحی دروغژنه او باطله وې، نو الله به هغه محوه کړې او ختم

کړے وے، لکه دا د الله عادت دے په دروغو جوړونکو کښې چه د هغوی نوم او نښان ختموی۔ (فتح البیان)

یا دا کلام مُستَأنَف دے، او پدے کښې د مخکښې اِنۡ یَّشَاْ نفی ده، یعنی الله داسے ونکړل چه قرآن ئې ختم کړے وے، او ستا د زړه نه ئې هیر کړے وے، او دا سلسله ئې جاری نۀ وے ساتلے، ځکه چه د الله تعالیٰ اراده ده چه پدے قرآن سره باطل ختموی، او حق رابښکاره کوی۔

زمخشری لیکلی دی چه په دے کښې نبی کریم ﷺ دپاره وعده ده چه الله تعالیٰ به د مشرکانو دروغ تړل کامیابولو ته نۀ پریدی، او د قرآن کریم په ذریعه به د حق دعوت جرړے خامخا مضبوطوی، انتهیٰ۔

همدغسے وشوه چه د رسول الله ﷺ د وفات کیدو په وخت جزیرة العرب د مشرکانو نه پاك شو، او د توحید جهنډه هر طرفته وخوزیدله۔ (القاسمی)

| وَهُوَ الَّذِیۡ یَقۡبَلُ التَّوۡبَةَ عَنۡ عِبَادِهٖ وَیَعۡفُوۡ عَنِ السَّیِّـَٔاتِ |
|---|
| او الله هغه ذات دے چه قبلوی توبه د بندګانو خپلو نه او معافی کوی د بدو نه |
| وَیَعۡلَمُ مَا تَفۡعَلُوۡنَ ﴿۲۵﴾ وَیَسۡتَجِیۡبُ |
| او پو هیږی په هغه کارونو چه تاسو ئې کوئ۔ او قبلوی الله تعالیٰ (عملونه او دعا) |
| الَّذِیۡنَ آمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ |
| د هغه کسانو چه ایمان ئې راوړیدے او عملونه ئې کړیدی د سنت مطابق |
| وَیَزِیۡدُهُمۡ مِّنۡ فَضۡلِهٖ وَالۡکَافِرُوۡنَ لَهُمۡ عَذَابٌ شَدِیۡدٌ ﴿۲۶﴾ |
| او زیاتوی دوی لره د فضل خپل نه او کافران چه دی دوی لره عذاب سخت دے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې الله تعالیٰ خپلو بندګانو دپاره خپل لُطف او کرم ذکر کوی فرمائی چه خاص الله هغه ذات دے چه هغه د بندګانو توبه قبلوی، او د دوئ ګناهونه معاف کوی، او د خپلو بندګانو د تمامو عملونو نه ښۀ خبر دے۔ او پدے کښې ترغیب دے توبے ته د هر قسم ګناهونو، او د پیغمبر د مخالفتونو نه، او هغۀ ته د دروغو د نسبت نه، او صحیح توبه دا ده چه فی الحال ګناه پریدی، او په زړۀ کښې په تیر شوی ګناه باندے

پښیمانه او خفه شي، او آینده دپاره عزم وکړي چه دا ګناه به بیا نهٔ کوم. که بیا درنه وشوه، بیا به دغه شان د زړهٔ د صدق نه توبه وباسي.
وَيَعْفُوْ عَنِ السَّيِّئَاتِ: یعنې تیر شوي ګناهونه معاف کوي د توبې سره، او کله بغیر د توبې نه هم کله چه سوئ د شرك نه وي، ځکه چه هغه بغیر د توبې نه نهٔ معاف کیږي.
وَيَعْلَمُ مَا تَفْعَلُوْنَ: یعنې الله تعالیٰ ستاسو د خیر او د شر ټولو کارونو نه خبردار دے، هر چا ته به د هغهٔ د عمل بدله ملاوېږي.
وَيَسْتَجِيْبُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا: دا بل بشارت دے، او دا عام دے. او د يَسْتَجِيْبُ دپاره مفعول (اَیْ اَعْمَالَهُمْ وَعِبَادَتَهُمْ وَدُعَاءَ هُمْ وَشَفَاعَتَهُمْ فِیْ اِخْوَانِهِمْ) یعنې الله تعالیٰ د ایمان او عمل صالح والو عملونه، عبادتونه او دعاګانې او د دوی د ورونو په باره کښې سفارش قبلوي. او د زیات تاکید دپاره ئې متعدي بالذات وګرځولو، په اصل کښې (وَيَسْتَجِيْبُ لِلَّذِيْنَ آمَنُوْا) دے. یعنې دا عملونه ورله داسې مضبوط قبلوي ګویا که دوی ئې قبول کړل.
وَيَزِيْدُهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ: یعنې دوئ چه کوم طلب کړي وي د هغې نه هم زیات په خپل فضل سره ورکوي. یا کوم شے چه دوی نهٔ وي طلب کړے هغه هم ورکوي. ددې بل مصداق دا دے چه عمل ئې لږ وي او اجر زیات ورکوي، لکه یو په لسو تر اوهٔ سوو پورې ورکوي. دویم: شفاعت د خپلو ورونو دپاره د خپلې مهربانۍ نه ورکوي. (ابن کثیر)

| وَلَوْ بَسَطَ اللّٰهُ الرِّزْقَ لِعِبَادِهٖ لَبَغَوْا |
|---|
| او که چرته فراخه کړي الله تعالیٰ رزق بندګانو خپلو لره خامخا سرکشي به ئې کړې |
| فِي الْأَرْضِ وَلٰكِنْ يُّنَزِّلُ بِقَدَرٍ مَّا يَشَآءُ |
| وې په زمکه کښې لیکن رالیږي الله تعالیٰ په اندازې سره څه چه وغواړي |
| إِنَّهٗ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرٌ بَصِيْرٌ ﴿۲۷﴾ |
| یقیناً هغه په بندګانو خپلو خبردار دے لیدونکے دے. |

**تفسیر**: دا د مخکښې آیت سره متعلق دے. او جواب د سوال دے چه هر کله الله تعالیٰ د مؤمنانو دعاګانې قبلوي، نو کله چه دوی فراخي د مال غواړي نو ولې ئې نهٔ ورکوي؟

دارنګه اصحاب صفه ؓ دا خبره کړې وه چه مونږ مؤمنان يو، او په مونږ باندې د رزق تنګي ده، او کافرانو مشرکانو به دا خبره کوله چه تاسو خو وايئ چه مؤمنان د الله دوستان دي، او د دوئ دعاګانې قبليږي حال دا چه دوی خو د لوږې نه مره کيږي؟ نو پدې آيت کښې الله تعالىٰ هغوی ته جواب ورکوی۔

حاصل د جواب دا دې چه الله تعالىٰ کله نا کله کافرانو ته فراخه رزق ورکوی، او مؤمنانو ته په تنګسيا سره پدې کښې د الله تعالىٰ په دواړو ډلو امتحان غرض وی، او که ټولو انسانانو ته يو شان فراخه رزق ملاؤ شي، نو دا به ئې سبب د بغاوت او فساد وګرځي۔ او دا د ﴿وَالْكَافِرُوْنَ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ﴾ سره هم لګی چه کافرانو ته به الله تعالىٰ په قيامت کښې سخت عذاب ورکوی، که په دنيا کښې ئې رزق ورله فراخه ورکړې وی، نو دا به په دوئ باندې امتحان وی، پدې سره د الله تعالىٰ د عذابونو نه نشي خلاصيدې۔

**لَبَغَوْا فِي الْأَرْضِ:** يعنى که الله تعالىٰ د خپلو ټولو بندګانو په روزئ کښې ښه فراخي او کشادګي ورکړې وې، نو ددې نتيجه به دا وې چه دوئ به په زمکه کښې سرکشي شروع کړې وې، او په کبر او غرور کښې به مبتلا شوی وې، او الله تعالىٰ نه به ئې هغه څه غوښتل شروع کړی وې چه د دوئ حق به نۀ وې، دې وجې نه هغه دوئ له صرف دومره روزي ورکوی چه هغه د هغۀ د حکمت او مصلحت مطابق وی، هغه د خپلو بندګانو د احوالو او ضرورياتو نه ښۀ خبر دې۔ نو ددې وجه نه الله تعالىٰ بعضو بندګانو ته فراخه او بعضو ته په تنګسيا رزق ورکوی۔

دارنګه د بعض بندګانو اصلاح په فقر سره راځي، او په مالدارئ سره خرابيږي، او د بعض کسانو اصلاح په مرض او بيمارئ سره کيږي، که روغ شي بيا خرابيږي، بعض کسان الله تعالىٰ روغ ساتلي وی، که بيمار شي نو ايمان ئې خرابيږي، نو الله تعالىٰ د هر بنده د هغۀ د مزاج مطابق تربيت کوی، او تۀ په خپل ځان کښې سوچ وکړه چه تا ته الله تعالىٰ بعض نعمتونه نۀ دي درکړی، که هغه درکړی نو تۀ په هغې خرابيږې، اګرکه انسان به وائي چه که ما ته دا نعمت راکړې شي ما نه به دغه ورانې نۀ کيږي، ليکن الله ته د هغې علم شته چه تا کښې دا مرض شته، ډيرو کسانو باندې هميشه ناجوړتيا او وخت په وخت پرې مرضونه ځي راځي، پدې سره الله تعالىٰ د هغۀ فساد ختم کړې وی، که داسې ونکړي، نو ددۀ نه لوی متکبر او جبار جوړيږي، په بعض کسانو باندې د انسان زړۀ وسوزي چه دا څومره فقير دې، ليکن هغه الله تعالىٰ ته معلوم وی چه که مالداره شي،

نو غټ متکبر او مفسد ترے جوړیږی. بعض کسانو سره چه لږے پیسے پیدا شی نو ټی وی، او کیبل او قسماقسم د فتنے موبائل او د ګمراهئ آلات ئے کورته راوړی وی.
د بغاوت نه مراد په یو بل باندے ظلم کول، او د الله تعالیٰ د حدودو نه اوړیدل او تکبر کول او هرقسم سرکشی کول دی، لکه ددے مثال حال د قارون او فرعون دے.
بعض وائی چه ددے مطلب دا دے چه که الله تعالیٰ ټولو بندګانو له یو شان رزق ورکړے وے، نو بیا به خینی خینو ته نهٔ وے تابع شوے، او د یو بل خدمتونه او کارونه به ئے نهٔ کولے، نو د دنیا نظام به ګډوډ شوے وے لیکن اول قول غوره دے.

| وَهُوَ الَّذِیۡ یُنَزِّلُ الۡغَیۡثَ مِنۡ بَعۡدِ مَا قَنَطُوۡا وَیَنۡشُرُ |
|---|
| او الله هغه ذات دے چه رالیږی باران روستو د نا اُمیده کیدلو د خلقو نه او خوره وی |
| رَحۡمَتَهٗ وَهُوَ الۡوَلِیُّ الۡحَمِیۡدُ ﴿۲۸﴾ وَمِنۡ آیَاتِهٖ |
| رحمت خپل او هغه دوست دے ستائیلے شویدے. او بعض د نخو د قدرت د هغهٔ نه |
| خَلۡقُ السَّمَاوَاتِ وَالۡاَرۡضِ وَمَا بَثَّ |
| پیدائش د آسمانونو او د زمکے دے او د هغه څه چه خوارهٔ کړی ئے دی |
| فِیۡهِمَا مِنۡ دَآبَّةٍ وَهُوَ عَلٰی جَمۡعِهِمۡ |
| پدے دواړو کښې د ژنده سرو نه، او هغه په راجمع کولو د دوی باندے |
| اِذَا یَشَآءُ قَدِیۡرٌ ﴿۲۹﴾ |
| کله چه وغواړی قدرت لرونکے دے. |

**تفسیر** : او الله تعالیٰ د خپل قدرت او حکمت د تقاضا مطابق د رحمت باران بندوی، تردے چه زمکه اُوچه شی، د قحط سالئ د وجے نه انسانان او چارپایان بدحاله شی، آن تر دے چه د باران نه بیخی نا امیده شی، او د الله تعالیٰ د ارادے مخے ته خپل ځانونه بیخی بے وسه وګنړی، او د مشرکانو د دروغژنو معبودانو عاجزی او بیوسی هم ښه ښکاره مخے ته راشی چه که دا معبودان وے او څهٔ قدرت ئے لرلے، نو بیا د خپلو عبادت کونکو د مدد کولو دپاره ولے نهٔ را مخکښې کیږی، او د آسمان نه باران ولے نهٔ نازلوی، نو بیا د الله

رحمت په جوش کښې راځي، او د رحمت په باران سره د بندګانو نا امیدي او پریشاني لرې کوي.

**الۡغَيۡثَ** : نه مراد باران دے چه دا د رزق د تهولو نه غوره او عامه ذریعه ده، او فائده ئے عامه او ډیره ده.

**وَيَنۡشُرُ رَحۡمَتَهٗ** : د رحمت نه مراد برکات او فائدے د باران دي په هر شي کښې، غرونه، هوارے، ګیاهګانے او حیوانات او تازګي د زمکے. یا رحمت نه مراد خپله باران دے او باران ئے په دوه نومونو سره ذکر کړو، غیث ورته ځکه وائي چه د تکلیفونو په وخت مدد جوړیږي، او رحمة ورته ځکه وائي چه دا شفقت او احسان دے. (فتح البیان)

یا د رحمت نه مراد رزقونه دي چه د باران په وجه پیدا کیږي.

**وَهُوَ الۡوَلِيُّ** : الله تعالیٰ د نیکانو بندګانو دوست دے چه دوی سره احسانات کوي، او دوی ته فائدے راکاړي او شرونه ترے دفع کوي. نو پدے کښې دعوت دے چه مشرکان د الله تعالیٰ نه سوئ نور اولیاء نیسي حال دا چه د دوستئ لائق خو صرف الله تعالیٰ دے.

**الۡحَمِيۡدُ** : هغه مستحق د حمد دے چه هغهٔ داسے خصوصي او عمومي انعامات وکړل.

**وَمِنۡ آيَاتِهٖ**: دا د الله تعالیٰ تعارف دے، او ددے تعلق هم د ﴿وَالۡكَافِرُوۡنَ لَهُمۡ عَذَابٌ شَدِيۡدٌ﴾ سره دے، یعني الله تعالیٰ د دوئ په عذاب باندے قدرت لرونکے دے، وګوره د هغهٔ د قدرت نښو ته.

**وَمَا بَثَّ فِيۡهِمَا مِنۡ دَآبَّةٍ** : په آسمانونو کښې هم بعض ملائك د دوابو په شکل پیدا دي، بعض د اَوعالو (صحرائي پسانو) او بعضِ د مارغانو په شکل دي، نو ځکه ئے د آسمان دپاره هم دابه لفظ استعمال کړیدے. یا دابه اګرکه په زمکه باندے ګرزیدونکي حیوان ته وئیلے شي، لیکن دلته ترے مراد هر ذي روح حرکت کونکے شے دے، نو پدے معنیٰ ملائکو ته هم وئیلے کیږي. او بعض وائي چه د (فِيۡهِمَا) نه مراد یو شے دے چه هغه زمکه ده، او ضمیر د تثنیه کله د یو دپاره استعمالیږي، خاصکر کله چه ددوو څیزونو د ګډون نه یو شے پیدا شوے وي، لکه ﴿يَخۡرُجُ مِنۡهُمَا اللُّؤۡلُؤُ وَالۡمَرۡجَانُ﴾. نو دغه شان د دابے په پیدا کیدو کښې آسماني او آرضي دواړه اسباب مشترك دي.

**وَهُوَ عَلٰى جَمۡعِهِمۡ إِذَا** : یعني د هغه د قدرت بله نښه دا هم ده چه هغه د هر ساه خاوند وژني، او توِل په توِل به خاورے کیږي، او کله چه قیامت راشي، نو د اسرافیل ؑ

د يوې شپېلۍ په ذريعه به تول ژوندي کړي او خپلې مخې ته به يې ودروي.
نو هرکله چه دغه ذات د بندګانو په راجمع کولو قادر دې، نو دغه ذات به بندګانو ته په دنيا کښې خپله وحي راليږي، او بيا به ترې په قيامت کښې د هغې په باره کښې تپوس کوي.

| |
|---|
| وَمَا أَصَابَكُم مِّن مُّصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ |
| او هغه چه اُورسيږي تاسو ته څه مصيبت نو په سبب د هغې عمل چه کړي دي |
| أَيْدِيكُمْ وَيَعْفُو عَن كَثِيرٍ ﴿٣٠﴾ وَمَا أَنتُم بِمُعْجِزِينَ |
| لاسونو ستاسو او معافي کوي د ډېرو (ګناه) نه. او نۀ يئ تاسو عاجزې کونکي (الله) |
| فِي الْأَرْضِ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ مِن وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴿٣١﴾ |
| لره په زمکه کښې او نشته تاسو لره سوئ د الله تعالىٰ نه هيڅ دوست او نۀ مددګار. |

**تفسير**: پدې آيت کښې تخويف دنيوي دې، او دا متعلق دې د (الْوَلِيُّ الْحَمِيدُ) سره چه هرکله چه الله تعالىٰ دوست دې، او په بندګانو مهربان دې، نو بيا د بندګانو نه مصيبتونه ولې نۀ اړوي؟ او په دوي باندې مصيبتونه ولې راځي؟ نو الله تعالىٰ دلته ددې وجه بيانوي چه دا بندګان د الله تعالىٰ د وحي مخالفت کوي نو ځکه پرې هغه مصيبتونه راولي، او دا داسې آيت دې لکه د سورة الرعد کښې ئې فرمايلي وو:
﴿لَهُ مُعَقِّبَاتٌ﴾ الله د ملائکو په واسطه حفاظت کوي، ليکن روستو وائي ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ حَتَّىٰ يُغَيِّرُوا مَا بِأَنفُسِهِمْ﴾ مصيبت په انسان باندې د هغۀ د ګناهونو د وجه نه راځي. نو الله د بعض ګناهونو عقوبت په دنيا کښې د مرضونو، قحطونو، غمونو او قرضونو وغيره په ذريعه ورکوي، او ډېر ګناهونه ورته بغير د عقوبت نه معاف کوي. يا که د کافرانو سره متعلق شي، نو کافرانو ته هم په بعض ګناهونو دنياوي سزا ورکوي، او باقي ورله آخرت ته ساتي.
سيدنا علي ﷜ فرمائي: [أَفْضَلُ آيَةٍ فِي الْقُرْآنِ] دا په قرآن کښې غوره آيت دې. (احمد ۸۵/۱ واسناده ضعيف- شعيب ارناووط) يعنې د يوې معنىٰ په اعتبار سره، او هغه دا چه دا آيت انسان ته ښکلې اخلاق ښائي، پدې طريقه چه هر تکليف راغلو نو ددې نسبت خلکو ته نۀ بلکه ځان ته ئې کوه، او د الله تعالىٰ احسان په ځان ګڼړه چه تکليف ئې

دربانديے راوستو ځکه چه الله تعالیٰ تا ته تنبيه درکړه۔

## د سلفو اقوال

مُرّه هَمدانيؒ وائي : ما د قاضي شُريح د لاس په شا بانديے يوه دانه وليده نو ما ورته وويل : چه اے ابوامیه ! دا څه دي؟ هغه وويل : (هٰذَا ﴿بِمَا كَسَبَتْ اَيۡدِيۡكُمۡ وَيَعۡفُوۡا عَنۡ كَثِيۡرٍ﴾ (يعني دا زما د گناه وجه ده)۔

ابن عونؒ وائي : محمد بن سيرينؒ بانديے به چه کله قرض واوريدو او د هغے دپاره به پريشانه شو، نو ويه ئے وئيل : [اِنِّيۡ لَاَعۡرِفُ هٰذَا الۡغَمَّ، هَذَا بِذَنۡبٍ اَصَبۡتُهٗ مُنۡذُ اَرۡبَعِيۡنَ سَنَةً] زۀ دا غم پيژنم چه دا ما ته د هغه گناه په وجه رارسيدلے دے چه ما څلوېښت کاله مخکښ کريده۔

احمد بن ابي الحواريؒ وائي : ابوسليمان الدارانيؒ ته وويل شو [مَا بَالُ الۡعُقَلَاءِ اَزَالُوا اللَّوۡمَ عَمَّنۡ اَسَاءَ اِلَيۡهِمۡ؟] چه دا څه وجه ده چه عقلمند خلك په هغه چا ملامتيا نۀ وائي څوك چه ورسره بدي وكړي؟ نو هغه وويل : [لِاَنَّهُمۡ قَدۡ عَلِمُوۡا اَنَّ اللّٰهَ ابۡتَلَاهُمۡ بِذُنُوۡبِهِمۡ] ځکه چه دوي پدے پو هيږي چه الله تعالیٰ په دوي بانديے د دوي د گناهونو ازميښت کوي۔ الله فرمائي : ﴿وَمَا اَصَابَكُمۡ مِنۡ مُصِيۡبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتۡ اَيۡدِيۡكُمۡ﴾ انتهیٰ.

نو دا يوه ښه نسخه ده چه کله تا ته څه مصيبت راغلو نو په ملگري، ښځه، خادم او کشر بانديے ملامتيا مۀ اچوه، بلکه خپلو گناهونو ته متوجه شه او صبر وکړه۔

د عِکرمةؒ نه نقل دي چه هرکله يو بنده ته يو مصيبت او تکليف رسي نو د هغے وجه گناه وي چه الله تعالیٰ ئے په همدغه مصيبت سره معاف کوي، يا يوے درجے ته رسول وي چه صرف په همدے طريقے سره رسولے شي۔ (هذا کله في القرطبي)

او دا د صحيح حديث نه هم معلومه ده چه مؤمن بنده ته هر قسم مصيبت ورسيږي نو الله تعالیٰ ورته اجر ورکوي، يا ترے گناهونه رژوي يا ئے درجات پورته کوي۔

بعض سلفؒ وائي چه زۀ کله گناه وکړم، هغه زۀ پدے طريقه پيژنم، چه دابه زما تابعداري نۀ کوي، ښځه مے بد اخلاقه شي کور کښ راته جنگ جوړ شي، نو الله تعالیٰ ته توبه او استغفار شروع کړم۔

ددے وجه نه حافظ ابن القيمؒ په ((مدارج السالکين)) کښ ليکي چه د گناه په کولو کښ ديارلس مشهده (د کتو ځايونه) دي، يو مشهد ئے دا دے چه د گناه نه روستو د

انسان ایمان زیاتیږي، پدې طریقه چه د گناه په وجه انسان ته سزا ورکړے شي، نو د انسان الله تعالیٰ ته توجه پیدا شي چه الله حق ذات دے، په گناه باندے ناراضه کیږي، الله علیم دے، زما په گناه خبر شو. خو دا کار د خواصو بندگانو دپاره کیږي. عام خلك په مصیبت کښې هم الله ته نۀ متوجه کیږي. والله المستعان.

ددے تولو وجو هو د وجه نه دے آیت ته غوره آیت وئیلے شویدے.

ضحاك فرمائي : [مَا تَعَلَّمَ الرَّجُلُ الْقُرْآنَ ثُمَّ نَسِيَهُ اِلَّا بِذَنْبٍ ثُمَّ قَرَأَ هٰذِهِ الآيَةَ وَقَالَ : اَىُّ مُصِيبَةٍ اَعْظَمُ مِنْ نِسْيَانِ الْقُرْآنِ] یو تن قرآن یاد کړي بیا ترے هیر شي ددے وجه گناه وي، بیا ئے دا آیت ولوستو او وے فرمایل : د قرآن د هیرولو نه بل لوی مصیبت کوم یو کیدے شي؟.

دارنگه د قرآن سره د سنت مطهره او دیني علوم هیرول او په هغے باندے عمل نۀ کول او په کتاب او سنت باندے خپله یا د یو عالم رایه غوره کول هم دي. (فتح البیان)

او فبما کسبت ایدیکم کښې په کافرانو هم رد دے چه هغوی ته به کله یو مصیبت ورسیدو نو هغوی به وئیل (هٰذَا بِشُؤْمِ مُحَمَّدٍ) دا د محمد سپیرۀ والے دے. نو الله ورته وفرمایل : دا ستاسو د جرمونو وجه ده.

وَيَعْفُوْ عَنْ كَثِيْرٍ : (مَا اَصَابَكُمْ) دا د الله تعالیٰ عدل دے او (وَيَعْفُوْا عَنْ كَثِيْرٍ) دا د الله تعالیٰ احسان دے او ظلم بیخي نۀ کوي.

ترمذي د ابو موسیٰ اشعري ﷛ نه روایت کړے، رسول الله ﷺ وفرمایل : بنده ته چه څۀ هم وړوکے یا غټ تکلیف رسیږي نو دا د هغۀ د څۀ گناه د وجے نه وي، او کوم گناهونه چه هغه معاف کوي هغه خو ډیر زیات وي. (واسناده حسن- البانی صحیح الجامع ۷۷۳۲)

واحدي لیکلي دي چه دا آیتِ کریمه مومن د تولو نه زیات اُمید والا جوړوي، ځکه چه د مومن گناهونه ئے په دوه برخو کښې ویشلي دي، او د یوے برخے په باره کښې وئیلے شوي دي چه الله تعالیٰ دا په مصیبتونو او تکلیفونو کښې په مبتلا کولو سره ختموي، او بله لویه برخه په خپل فضل او کرم سره په دنیا کښې معاف کوي. او د کافر د گناهونو سزا په دنیا کښې نۀ ورکړے کیږي، د هغۀ تمام جرمونه او گناهونه د قیامت ورځے ته ساتلے کیږي. (فتح البیان)

وَمَا اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ فِي الْاَرْضِ : یعني داسے نشي کیدے چه تاسو د الله تعالیٰ بغاوت کوئ او بیا د هغۀ نه په زمکه یا بالفرض په آسمان کښې پټ شئ، او هغه درته په عذاب

درکولو قادر نشي.

| وَمِنۡ آیَاتِهِ الۡجَوَارِ فِي الۡبَحۡرِ کَالۡاَعۡلَامِ ﴿۳۲﴾ اِنۡ یَّشَاۡ |
|---|
| او بعض د نخو د الله تعالیٰ نه کشتۍ دي په درياب کښې پشان د غرونو. که وغواړي |
| یُسۡکِنِ الرِّیۡحَ فَیَظۡلَلۡنَ رَوَاکِدَ عَلٰی ظَهۡرِهٖ ؕ اِنَّ فِيۡ ذٰلِكَ |
| هغه وبه دروی هوا نو وبه ګرځي کشتۍ ولاړې په شا د درياب، يقيناً پدې کښې |
| لَاٰیٰتٍ لِّکُلِّ صَبَّارٍ شَکُوۡرٍ ﴿۳۳﴾ اَوۡ یُوۡبِقۡهُنَّ |
| خامخا ډيرې نخې دي دپاره د هر ډير صبرناك ډير شکر ګذار. يا به هلاکې کړي دوی |
| بِمَا کَسَبُوۡا وَیَعۡفُ عَنۡ کَثِیۡرٍ ﴿۳۴﴾ وَّیَعۡلَمَ الَّذِیۡنَ |
| لره په سبب د عملونو د دوی او معافي کوی د ډيرو نه. او پته به اُولګي هغه کسانو |
| یُجَادِلُوۡنَ فِيۡ اٰیٰتِنَا مَا لَهُمۡ مِّنۡ مَّحِیۡصٍ ﴿۳۵﴾ |
| ته چه جګړې کوی په آيتونو زمونږ کښې چه نشته دوی لره ځائې د تيختې. |

**تفسیر** : پدې کښې بيا د الله تعالیٰ عظمت او د هغهٔ د قدرت، علم او حکمت او رحمت ښکاره کيدو ځای بيانوی چه په دريابونو کښې د غرونو غونته روانې کشتيو ته وګورئ کومې چه صرف د الله تعالیٰ د قدرت په ذريعه د يو ښار نه بل ښار ته رسيږي. که چرې الله غوښتلې نو هواء به ئې بنده کړې وې، بيا به دا کشتۍ د سمندر په سطح باندې ولاړې پاتې شوې وې، ځکه چه کشتۍ خو بغير د هوا نه نهٔ چليږي، ياکه الله غوښتلې نو په کشتۍ کښې د سورو خلقو د ګناهونو د وجې نه به ئې تيزه او تنده سيلۍ راليږلې وې او دا کشتۍ به ئې په سمندر کښې ډوبې کړې وې، ليکن الله د خپلو بندګانو ډير ګناهونه معاف کوی، او په دوئ باندې د رحم کولو دپاره دوئ په سمندر کښې نهٔ تباه کوی، او په معتدله هوا کښې دوی روانوی. دا ټولې خبرې د رب العالمين په وجود، د هغهٔ د قدرت او عظمت، او حکمت او رحمت ډير غټ واضح دليلونه دی، چه ددې نه هغه خلق نفع اخلی چه هغوئ د خپل رب د طاعت او بندګۍ په لاره کښې تکليفونه برداشت کوی، او د هغهٔ په ورکړو نعمتونو باندې د ژبې او عمل په ذريعه شکر اداء کوی.

یُسۡکِنِ الرِّیۡحَ : پخوانئ کشتۍ به ټولې په هوا سره چليدلې، اُوس خو په مشينريانو

سره چلیږي لیکن بیا هم هواء دپاره په هغې کښې دخل شته، او بعض کشتیانې اُوس هم په هواء سره چلیږي.

صَبَّارٍ: صبر به کوي د الله تعالیٰ د نافرمانۍ نه، او شکر به کوي د هغهٔ د نعمتونو. او صبار او شکورئې د مبالغې صیغې راوړې اشاره ده چه لږ صبر او شکر خو کافر هم کله نا کله کوي.

أَوْ يُوْبِقْهُنَّ: اَیْ یُهۡلِکۡهُنَّ بِالۡغَرَقِ. (ابن عباس ﷺ) یعنی یا به ئې هلاك کړي په غرقیدو سره.

بِمَا كَسَبُوْا: یعنی د دوئ د ګناهونو د وجه نه. ځکه چه هر مصیبت د ګناه په وجه راځي.

وَيَعْفُ: دا مجزوم دے په (یُوۡبِقۡهُنَّ) باندې. یعنی که الله تعالیٰ وغواړي نو څه خلك به هلاك کړي، او څه کسانو ته به نجات ورکړي په طریقه د عفو کولو د دوی نه. یا دا د سر نه کلام دے، او (واو) ترې خلاف القیاس حذف شویدے.

وَيَعْلَمَ: دا متعلق دے د (یُوۡبِقۡهُنَّ) پورے اَیۡ وَیَعۡلَمَ عِنۡدَ ذٰلِكَ الۡعَذَابِ. یعنی د دغه عذاب په وخت به مجادلینو ته پته ولګي. او دا عطف دے په علت مقدره باندې اَیۡ لِیَنۡتَقِمَ مِنۡهُمۡ وَیَعۡلَمَ. یعنی څه کسان به هلاك کړي په غرق کولو سره دے دپاره چه د هغوی نه انتقام واخلي، او نورو مجادلینو ته پته ولګي چه د دوئ دپاره د تیښتې ځاي نشته، یعنی دا یقین وکړي چه په دنیا کښې الله تعالیٰ عذاب راوستو نو په آخرت کښې هم عذاب راکولے شي. نو دوی له ایمان راوړل پکار دي.

اشاره ده چه د قرآن په مخالفت کښې ضرور عذاب شته، یا به ئې دریاندے په دریاب کښې راولي، یا په وچه باندې، او د مکې والو د دریاب سره هم ډیر تعلق وو لکه جدے سره دریاب دے، نو پدے وجه ورته قرآن کریم کښې دا زیات ذکر کوي.

| فَمَا أُوتِيتُم مِّن شَيْءٍ فَمَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَمَا |
|---|
| پس هغه چه درکړے شو تاسو ته یو شے نو سامان د ژوند دنیوی دے، او هغه |
| عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ وَّأَبْقٰى لِلَّذِيْنَ |
| چه د الله تعالیٰ سره دی غوره دی، او همیشه دی دپاره د هغه کسانو |

آمَنُوا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ﴿٣٦﴾

چه ایمان ئې راوړیدے او په خپل رب باندے خان سپاری.

**تفسیر**: پدے آیت کښې د دنیا زهد (بے رغبتی) بیانیږی. او دا آیت د سورة الرعد آیت (۲٦) ﴿اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَاءُ وَيَقْدِرُ وَفَرِحُوْا بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ په شان دے. حاصل ئې دا دے چه کافرانو وویل چه مونږ سره مالونه دی. نو الله وفرمایل چه د دنیا مال خو ختمیدونکے سامان دے، او اصلی شے خو دین او قرآن دے.

﴿اَفَمَنْ يَّعْلَمُ اَنَّمَا اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ الْحَقُّ كَمَنْ هُوَ اَعْمٰى﴾ (رعد : ۱۹)

بیا فرمائی چه قرآن چا منلے دے نو په هغه کښې ښائسته صفات پیدا شویدی ﴿اَلَّذِيْنَ يُوْفُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ﴾ (رعد: ۲۰)

نو دلته هم وائی چه وګوره په ایمان والو کښې قرآن کریم څو مره ښائسته صفات پیدا کړیدی. نو د وحی په تابعدارئ کښې انسان ته ښکلے صفات نصیب کیږی، او دا فائدة الوحی او اثر د وحی دے.

فَمَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا: یعنی دا خو د دنیا عارضی خوندونه او فائدے دی، نو پدے باندے فخر او تکبر او شرك کول او د توحید نه انکار نهٔ دے پکار.

لِلَّذِيْنَ آمَنُوْا: د آخرت د نعمتونو د حصول دپاره نهه صفتونه ذکر کوی.

دارنګه دا د وحی اثر دے چه په بنده کښې داسے ښکلے صفتونه پیدا کوی.

او پدے آیت کښې دوه صفتونه ذکر دی، ایمان او توکل.

په اول صفت کښې اشاره ده د شرك جلی (ښکاره شرك) نه بچ کیدو ته. او په دویم صفت کښې اشاره ده خان بچ کولو ته د شرك خفی نه ځکه چه په توکل کښې دا معنیٰ ده چه د الله تعالیٰ نه سوئ بل هیڅ څیز ته التفات او توجه نهٔ کوی.

وَالَّذِيْنَ يَجْتَنِبُوْنَ كَبٰٓئِرَ الْاِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ وَاِذَا مَا غَضِبُوْا

او هغه کسان چه خان ساتی د غټو ګناهونو او د بے حیایو نه او کله چه دوی غصه

هُمْ يَغْفِرُوْنَ ﴿٣٧﴾ وَالَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِرَبِّهِمْ

شی نو دوی بخنه کوی. او هغه کسان چه خبره ئې قبوله کړیده د رب خپل

| وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَأَمْرُهُمْ شُورَىٰ بَيْنَهُمْ وَمِمَّا |
|---|
| او پابندي د مانځه ئې کړېده او کار د دوی مشوره وي په مينځ خپل کښې او د هغې نه |
| رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ ﴿٣٨﴾ وَالَّذِينَ إِذَا أَصَابَهُمُ |
| چه مونږ ورکړيدی دوی ته خرچ کوی ئې۔ او هغه کسان چه کله اُورسيږی دوی ته |
| الْبَغْيُ هُمْ يَنتَصِرُونَ ﴿٣٩﴾ |
| ظلم دوی بدله اخلي۔ |

**تفسیر**: پدې آيت کښې دريم او څلورم صفت ذکر کوی. مخکنی ايجابی صفتونه وو او دا سلبی صفتونه دی۔

وَالَّذِينَ: دا عطف دے په مخکښې ﴿الَّذِينَ آمَنُوا﴾ باندې يا بدل دے د هغې نه۔

كَبَائِرَ الْإِثْمِ: لوی گناهونه هغه دی چه د هغې عقوبت او سزا ډيره سخته وی، لکه شرك، قتل، زنا، غلا، د مور او پلار نافرمانی، جادو، چغلی، په دروغه قسم کول، بهتان وغيره۔

وَالْفَوَاحِشَ: دا خاص دے پس د عام نه، فواحش هغه گناهونه دی چه عقل او شريعت ترې نه نفرت کوی او د هغې قباحت هر عقل والا ته ښکاره وی، لکه زنا، دروغ، دهوکه، خيانت وغيره۔

وَإِذَا مَا غَضِبُوا هُمْ يَغْفِرُونَ: مخکښې حقوق الله ذکر وو او پدې کښې حقوق العباد ذکر کوی۔ او دا د اعتدال صفت دے يعنی که څوك دوئ ته بے عزتی کوی، نو غصه کيږی د غيرت د وجه نه، ليکن بيا بدله نۀ اخلی بلکه بخنه کوی، او پدې کښې اشاره ده چه دوئ کښې تکبر نشته ځکه چه غصه کيدو سره خلك رانيول او معافی نۀ کول د زړۀ سختی او تکبر دے۔

وَالَّذِينَ اسْتَجَابُوا: پدې کښې پنځم، شپږم، اوم او اتم صفت ذکر کوی۔

اسْتَجَابُوا: يعنی دوی پس د ايمان نه د خپل رب د حکمونو پوره منقاد او تابعدار دی، هرې خبرې ته تسليم وی۔ او دا صفتونه اول په صحابه کرامو کښې موجود وو۔

وَأَمْرُهُمْ شُورَىٰ بَيْنَهُمْ: پدې کښې اشاره ده د دوئ اتفاق او اتحاد ته چه سبب د هغې مشوره کول دی د يو بل سره، او پدې کښې هم اشاره ده چه دوی کښې تکبر نشته، په

خپـلـه رأیـه بـانـدې استبداد (استقلال) نهٔ کوي، د دوی جهاد، دعوت او د دنیا کار ټول په مشـوره وي۔ او دا مشـوره به په هغه کار کښې وي چه د الله تعالیٰ د طرفنه متعین نهٔ وي، که یو کار په تا باندې د الله تعالیٰ د طرفنه لازم شي لکه ایمان راوړه، مونځ وکړه وغیره، نو دې کښې بـه د مـور او پـلار او مشرانـو سـره مشـوره نهٔ کوې۔ او دا مشوره بـه د احکامو جـوړولـو دپاره نـهٔ وي، بـلـکـه د احـکـامـو د چلولو وي، او دې ته اسلامي شوریٰ وئیلے کیږي۔

او رسول الله ﷺ به د خپلو ملګرو سره ډیرې مشورې کولې، او الله هم ورته په سورة آل عمران (۱۵۹) آیت کښې حکم کړیدے ﴿وَشَاوِرۡهُمۡ فِي ٱلۡأَمۡرِ﴾ (او دوی سره مشورې کوه په کـارونـو کـښې) نـو ایـمـان والا بـه پـه کار کښې جلتي نهٔ کوي، بلکه مشوره به کوي، او په خپله رأیه به کُلي اعتماد نهٔ کوي، او ډیر خلك د مشورې نهٔ کولو د وجه نه په ډیرو فتنو کـښې اختـه شـي، او انسـان کـه هر څومره لوی عالِم، عاقل شي، لیکن د یو د آدنیٰ انسان رائې او مشورې ته هم حاجت لري۔

ابـوبکر ابن العربيؒ فرمائي : مشوره د جماعت د اُلفت او محبت سبب دے، او د عقلونو د امتـحـان ذریعه ده، او حق ته د رسیدو سبب دے، او هر قوم چه کله هم مشوره کوي نو هدایت ته به رسیږي۔

وَٱلَّذِينَ إِذَآ أَصَابَهُمُ ٱلۡبَغۡيُ : دا نهم صفت دے۔ سوال دا دے چه ددې صفت او د شلورم صـفـت منافات دے، هلته وائي چه بخنه کوي او دلته وائي چه دوی سره کله زیاتے وشي نـو بدلـه اخلي؟ (۱) جواب دا دے چه دلته مقصد دا دے چه دوی په بدله اخستو باندې قـدرت لـري، او دوئ د چا نه کمزوري او ذلیله نهٔ دي، لیکن سره د قدرت نه معافي کوي دا د دوئ کمال دے۔ او کله نا کله بدله اخستل کمال وي لکه ابراهیم نخعيؒ فرمائي :

[ كَانُوا يَكۡرَهُونَ اَنۡ يُذِلُّوا اَنۡفُسَهُمۡ فَيَجۡتَرِئُ عَلَيۡهِمُ السُّفَهَاءُ وَالۡفُسَّاقُ ]

سلفـو بـه دا بده ګنڼله چه ځان خلکو ته په بدله نهٔ اخستو ذلیله کړي، ځکه چه پدې سره په دوی باندې بیوقوفان او فاسقان زړه ور کیږي۔

(۲) دویـم جـواب دا دے چـه مـعـافـي پـه بـاره د دعوت او تبلیغ کښې ده چه څوك ورته د دعـوت په وخت کنځل وکړي، او داعي غصه شي نو بخنه کوي، او دویم په باره د دنیوي امورو کښې دے، چه دې کښې ورله بدله اخستل جائز دي، اګرکه صبر او مغفرت کښې ډیر

اجر دے۔

(۳) دریم جواب دا دے چه په دے جملو کښې صیغه د امر نشته، بلکه اول ئې عزیمت ذکر کړیدے چه هغه ډیر غوره دے۔ او دویم ئې رخصت ذکر کړے چه په دے باندے هم عمل جائز دے۔

(٤) ابن العربیؒ وائی: دلته دوه حالته دی، یو دا چه یو تن ډیر لوی ضرری وی، چه وړوکی او غټ تولو ته ښکاره ضرر ورکوی، نو د هغهٔ نه انتقام اخستل افضل دی، او که یو تن داسے وی چه کله نا کله ترے نقصان وشی، او بیا معافی هم طلب کوی، نو په دغه وخت کښې ورته معافی کول افضل دی۔ (فتح البیان/ واحکام القرآن للکیا الطبری)

وَجَزٰٓؤُا سَیِّئَةٍ سَیِّئَةٌ مِّثۡلُهَا فَمَنۡ عَفَا وَاَصۡلَحَ فَاَجۡرُهٗ

او بدله د بدئ بدی وی پشان د هغے نو چا چه معافی وکړه او عمل ئې ښه کړو نو اجر

عَلَی اللّٰهِ اِنَّهٗ لَا یُحِبُّ الظّٰلِمِیۡنَ ﴿٤٠﴾ وَلَمَنِ انۡتَصَرَ

ددهٔ په الله باندے دے یقیناً الله مینه نهٔ کوی ظالمانو سره۔ او خامخا چا چه بدله

بَعۡدَ ظُلۡمِهٖ فَاُولٰٓئِكَ مَا عَلَیۡهِمۡ

واخسته روستو د ظلم د کیدو نه په هغهٔ باندے نو دغه کسان نشته په دوی باندے

مِّنۡ سَبِیۡلٍ ﴿٤١﴾ اِنَّمَا السَّبِیۡلُ عَلَی الَّذِیۡنَ یَظۡلِمُوۡنَ النَّاسَ

لاره (د ملامتیا)۔ یقیناً لاره د ملامتیا په هغه کسانو ده چه ظلم کوی خلقو سره

وَیَبۡغُوۡنَ فِی الۡاَرۡضِ بِغَیۡرِ الۡحَقِّ اُولٰٓئِكَ لَهُمۡ عَذَابٌ اَلِیۡمٌ ﴿٤٢﴾

او سرکشی کوی په زمکه کښې په ناحقه دغه کسان دوی لره عذاب دردناك دے۔

وَلَمَنۡ صَبَرَ وَغَفَرَ اِنَّ ذٰلِكَ لَمِنۡ عَزۡمِ الۡاُمُوۡرِ ﴿٤٣﴾

او خامخا چا چه صبر وکړو او بخنه ئې وکړه یقیناً دا کار خامخا د پخو کارونو نه دی۔

**تفسیر**: پدے آیت کښې درے خبرے ذکر کوی، یو عدل دے په دے کښې الله تعالیٰ اجازه ورکړیده، او دریم فضل (احسان) دے، دے ته ئې ترغیب ورکړیدے، او دریم ظلم دے ددے بدی ئې بیان کړیده۔

وَجَزٰٓؤُا سَیِّئَةٍ : یعنی بدله د بدیٔ بدی ده، د بدیٔ بدلے ته ئے بدی مشاکلةً وئیلے ده، اگرکه بدله اخستل بدی نهٔ ده، او مطلب دا دے چه یو تن تا ته کنځل وکړل، تهٔ ئے ووهلے نو تهٔ هم ورته هغه شان کنځل او وهل ورکولے شے، خو شرط دا دے چه مساوات او مثلیت به وی۔

نسائی، ابن ماجه او ابن مردویه د عائشے رضی الله عنها نه روایت راوړیدے چه زهٔ د رسول الله ﷺ سره ناسته وم پدے کښ زینب (رضی الله عنها) راننوته نو ما ته ئے رد بد وویل نو رسول الله ﷺ منع کړه، لیکن منع نشوه، نو ما ته رسول الله ﷺ وفرمایل: بدله ترے واخله۔ نو ما ورسره داسے خبرے وکړے چه د هغے په خوله کښ لاړے وچے شوے، او د رسول الله ﷺ مخ د خوشحالئ نه زلیدو۔ (احمد ٦/ ١٣٠) رقم (٢٤٦٦٤) اسناده حسن)

رسول الله ﷺ فرمائی : [اَلْمُسْتَبَّانِ مَا قَالَا مِنْ شَیْءٍ فَعَلَی الْبَادِیْءِ حَتّٰی یَعْتَدِیَ الْمَظْلُوْمُ) دوه کسان چه یو بل ته کنځل وکړی نو د هغے گناه به په اول شروع کونکی وی تردے چه مظلوم په هغه باندے زیاتے وکړی۔ (مسلم فی البر حدیث ٦٩، وابو داود فی الادب باب ٣٩)

فَمَنْ عَفَا: دا مقام د فضل دے او دے ته ئے دعوت ورکړیدے۔

وَاَصْلَحَ : کښ اشاره ده چه دا معافی کول به د فساد او منافقت په طریقه نهٔ وی، بلکه د اصلاح کولو دپاره به وی۔

اِنَّهٗ لَا یُحِبُّ الظّٰلِمِیْنَ : دا مقام د تحریم د ظلم دے۔ په بدله کښ به زیاتے نهٔ کوی، او دارنگه ابتداءً ظلم هم حرام دے۔

وَلَمَنِ انْتَصَرَ: پدے کښ الله تعالیٰ د مکے صحابه کرامو ته اجازه ورکړے وه چه کله نا کله بدله اخستل هم ښهٔ دی۔ او دا دفع د وَهم ده چه هرکله یو مظلوم د ظالم نه بدله واخلی، نو بعض ناپوهه خلك پدے مظلوم باندے ملامتیا وائی، نو پدے آیت کښ په هغوی باندے رد دے۔

بیا دا بدله اخستل عام دی، که په بدن کښ وی یا په مال کښ یا په عزت کښ۔

اِنَّمَا السَّبِیْلُ : پدے آیت کښ ئے د ملامتیا حقدار دوه قسمه خلك ذکر کړیدی، یو هغه دی چه په خلکو باندے ظلمونه کوی، یعنی حقوق العباد بربادوی، او دویم هغه چه حقوق الله بربادوی۔

یَظْلِمُوْنَ النَّاسَ: یعنی خلکو باندے ابتداءً ظلم او زیاتے کوی۔

وَيَبْغُوْنَ فِي الْاَرْضِ: یعنی په زمکه کښې فساد لټوی او ظلم او تکبر کوی.

وَلَمَنْ صَبَرَ : چه کوم کس د چا تکلیف برداشت کړی، هغه معاف کړی، او بدله وانخلی، دا به بهر حال د الله تعالیٰ په نیز د ستائینے وړ وی، ځکه الله هم دا غواړی چه د هغهٔ بنده په دے عظیم صفت سره متصف شی.

عَزْمِ الْاُمُوْرِ: ١ - اَیِ الْاُمُوْرِ الَّتِیْ عَزَمَهَا اللّٰهُ وَاَمَرَ بِهَا وَنَدَبَ اِلَیْهَا.

دا د هغه کارونو نه دی چه الله ئے د بنده نه عزم او اراده لری، او پدے باندے ئے امر کړیدے، او دے ته ئے ترغیب ورکړیدے.

٢ - اَیْ مِنَ الْاُمُوْرِ الَّتِیْ لَابُدَّ لِلْعَاقِلِ اَنْ یَّعْزِمَهَا عَلٰی نَفْسِهٖ) د هغه کارونو نه دی چه عقلمند لره پکار دی چه په ځان ئے لازم کړی.

| وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ وَّلِيٍّ مِّنْ بَعْدِهٖ |
|---|
| او هغه څوک چه گمراه ئے کړی الله نو نهٔ به وی دهٔ لره څوک دوست روستو د هغهٔ نه |
| وَتَرَى الظّٰلِمِيْنَ لَمَّا رَاَوُا الْعَذَابَ يَقُوْلُوْنَ هَلْ اِلٰى مَرَدٍّ |
| او وینے به ته ظالمان هرکله چه اُووینی عذاب لره وائی به دوی آیا شته واپسئ ته |
| مِّنْ سَبِيْلٍ ﴿٤٤﴾ وَتَرٰىهُمْ يُعْرَضُوْنَ عَلَيْهَا خٰشِعِيْنَ |
| څه لاره. او وینے به ته دوی لره چه پیش کولے به شی په اُور باندے عاجزی کونکی |
| مِنَ الذُّلِّ يَنْظُرُوْنَ مِنْ طَرْفٍ خَفِيٍّ وَقَالَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا |
| به وی د وجے د ذلت نه، گوری به (اُور ته) د نظر پټ نه او وائی به هغه کسان چه ایمان |
| اِنَّ الْخٰسِرِيْنَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْا اَنْفُسَهُمْ |
| ئے راوړیدے یقیناً تاوانیان هغه کسان دی چه تاوان کښې ئے اچولی دی نفسونه خپل |
| وَاَهْلِيْهِمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اَلَا اِنَّ الظّٰلِمِيْنَ فِيْ عَذَابٍ مُّقِيْمٍ ﴿٤٥﴾ |
| او اهل خپل په ورځ د قیامت، خبردار یقیناً ظالمان به په عذاب همیشه کښې وی. |
| وَمَا كَانَ لَهُمْ مِّنْ اَوْلِيَآءَ يَنْصُرُوْنَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ |
| او نهٔ به وی دوی لره څوک دوستان (مددگاران) چه مدد اُوکړی دوی سره سوئ د الله نه |

وَمَنْ يُضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ سَبِيْلٍ ﴿٤٦﴾

او هغه څوك چه الله تعالیٰ يې ګمراه کړي نو نۀ به وي هغۀ لره لاره (د هدايت).

**تفسير** : اُوس د مخکښې مقابله کښې هغه خلکو ته تخويف اُخروي بيانوي چه د مخکنو صفتونو نه محروم دي، او الله تعالیٰ ګمراه کړيدي د هغوي د ظلم او د عناد د وجه نه، لکه روستو ﴿وَتَرَى الظّٰلِمِيْنَ﴾ کښې ورته اشاره شويده.

مطلب دا دے چه الله تعالیٰ چه څوك ګمراه کړي، هغه څوك په نيغه لاره نشي راړولے. او د قيامت په ورځ چه کله مشرکان په خپلو سترګو سره جهنم ووينې نو آرزو به وکړي چه آرمان دے دنيا طرفته دوباره د واپس کيدو څۀ صورت راوتے وے دے دپاره چه مونږ ايمان راوړے وے، او موحدين جوړيدو سره د اُور د عذاب نه مو نجات موندلے وے، او جنت ته د تللو حقدار جوړ شوی وے.

وَتَرٰىهُمْ يُعْرَضُوْنَ : ذوئ به د جهنم مخے ته راوستے شي، نو د ذلت او رسوايئ په وجه به دوی عاجز او خشوع والا وي. خشوع په دوه قسمه ده، يو د عبادت خشوع ده، پدے باندے انسان ډير ښائسته ښکاره کيږي، او دويم د ذلت خشوع ده نو دا لوی عيب دے.

يَنْظُرُوْنَ مِنْ طَرْفٍ خَفِيٍّ: يعني دوی به د ذلت لاندے دومره دباؤ شوی وي، چه د ويرے د وجے نه به په لړ شان پرانستو سترګو سره ګوري. يا به په ذليل نظر سره ګوري.

قتادۃ او سعيد بن جبيرؒ وائي چه پټ نظر نه مراد دا دے چه دوی به د سختے يرے د وجه نه جهنم ته نشي کتلے خو په غلا غلا طريقے سره به ګوري، څنګه چه ناکاره څيز ته بنده مخامخ او متواتر نشي کتلے.

وَقَالَ الَّذِيْنَ آمَنُوْا : ايمان والا به خپله کاميابي او خوشحالي او د جهنميانو ذلت او رسوائي ويني، او ويه وائي چه واقعي تاوان پوره ته کونکي به نن هغه خلق وي چه د خپل اهل او عيال سره جهنم ته وغورزولے شي، او د جنت د آبدي نعمتونو نه هميشه دپاره محرومه کړے شي، او ددے سبب دا وو چه دوی خپله ګمراه وو په دنيا کښې، او خپل اهل ته به يې هم د ګمراهئ دعوت ورکولو.

اَلَا اِنَّ الظّٰلِمِيْنَ : پدے کښې ددے تاوان سبب بيانوي چه دے خلکو ولے تاوان وکړو؟ وجه يې دا وه چه دوی شرك کړے وو، او نور جرمونه او ظلمونه يې کړي وو.

وَمَا كَانَ لَهُمْ: که څوك ووائي چه د دوئ خو آلهه شته هغه به ورسره مدد له راشي،

نو الله تعالیٰ دا کمان اُوس نه ختموی. فرمائی: هیڅوك به نهٔ وی چه د الله تعالیٰ په مقابله کښې د دویٔ د مدد لپاره رامخکښې شی. او حقیقت خو دا دے چه چالره الله تعالیٰ بے لارے کړی هغه خو نهٔ په دنیا کښې په حقه لار روانیدے شی، او نهٔ په آخرت کښې د جنت په لاره تللے شی، چه په دے کښې داخل شی.

فَمَا لَهٗ مِنۡ سَبِيۡلٍ: د سبیل نه مراد لاره د نجات ده په دنیا او آخرت کښې، او لاره د هدایت ئے هم نشته په دنیا کښې.

| |
|---|
| اِسۡتَجِيۡبُوۡا لِرَبِّكُمۡ مِّنۡ قَبۡلِ اَنۡ يَّاۡتِىَ يَوۡمٌ لَّا |
| قبول والے وکړئ د رب خپل مخکښې ددے نه چه رابه شی یوه ورځ چه نهٔ به وی |
| مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ مَا لَكُمۡ مِّنۡ مَّلۡجَاٍ يَّوۡمَئِذٍ |
| واپسی هغے لره د طرف د الله نه، نهٔ به وی تاسو لره ځائے د پناهیٔ په دغه ورځ |
| وَّمَا لَكُمۡ مِّنۡ نَّكِيۡرٍ ﴿٤٧﴾ فَاِنۡ اَعۡرَضُوۡا فَمَاۤ اَرۡسَلۡنٰكَ |
| او نهٔ به وی تاسو لره هیڅ انکار (فائده مند). نو که دوی مخ واړولو نو نهٔ ئے رالیږلے |
| عَلَيۡهِمۡ حَفِيۡظًا ؕ اِنۡ عَلَيۡكَ اِلَّا الۡبَلٰغُ ؕ وَاِنَّاۤ اِذَاۤ |
| مونږ ته په دوی باندے نګهبان، نشته ستا په ذمه مګر رسول دی، او یقیناً مونږ کله |
| اَذَقۡنَا الۡاِنۡسَانَ مِنَّا رَحۡمَةً فَرِحَ بِهَا |
| چه اُوڅکوو انسان ته د خپل طرف نه مهربانی (نو) خوشحاله وی په هغے |
| وَاِنۡ تُصِبۡهُمۡ سَيِّئَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتۡ |
| او که اُورسی دوی ته تکلیف په سبب د هغے عملونو چه مخکښې لیږلی دی |
| اَيۡدِيۡهِمۡ فَاِنَّ الۡاِنۡسَانَ كَفُوۡرٌ ﴿٤٨﴾ |
| لاسونو د دوی (د بدو عملونو نه) نو یقیناً انسان ناشکره دے. |

**تفسیر**: هر کله چه داسے سخته ورځ راروانه ده نو څه کول پکار دی؟ نو الله فرمائی چه جلتیٔ وکړئ، او په دے وحی (قرآن) باندے ایمان راوړئ، نو دا د اول د سورت سره متعلق دے ﴿كَذٰلِكَ يُوۡحِىۡۤ اِلَيۡكَ وَاِلَى الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِكَ﴾ یعنی الله تعالیٰ وحی راولیږله نو

اُوس ددے قبولوالے وکړئ۔
نو پدے آیت کښې دا خبره ذکر کوی چه د دنیا او د آخرت د رسوایئ نه د بچ کیدلو صرف یوه طریقه ده چه د الله رب العالمین پیغمبر چه د ایمان او عمل کوم دعوت ورکړے هغه قبول کړے شی، دے وجے نه الله تعالیٰ دلته نصیحت کړے چه اے خلقو! د الله دعوت قبول کړئ، د قیامت د هغه ورځے نه مخکښې چه هغه به څوك رد کولے / واپس کولے نشی، او کافرانو ته به د الله تعالیٰ د عذاب نه د تښتیدو هیڅ ځائے ملاؤ نشی، او نۀ به دوئ د خپلو کوبیو نه انکار کولے شی۔
اِسْتَجِیْبُوْا: استجابت پوره طریقے سره خبره منل او غاړه کیخودل، د الله تعالیٰ هر حکم ته لبیك وئیل دی۔
لَّا مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ: مَرَد مصدر میمی دے۔ معنیٰ دا ده چه نشته واپس کول د هغے د طرف د الله تعالیٰ نه، او بل څوك خوئے واپس کولے نشی نو خامخا به راځی۔
او دے کښې تاویلی تفسیر دا دے: [لَا رَادَّ لَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ] ۔ د الله نه سویٰ بل څوك ددے واپس کونکے نشته۔
وَمَا لَكُمْ مِّنْ نَّكِیْرٍ: أَیْ مُفِیْدٍ۔ یعنی نۀ به وی ستاسو دپاره انکار۔ انکار خو به کوی لیکن دغه انکار به فائده نۀ ورکوی۔ لکه دنیا کښې یو مجرم انکار وکړی، نو جرم پرے ثابت نۀ شی نو بریٔ شی۔ او الله تعالیٰ ته خو د هر څه معلومات دے۔ نو د قیامت داسے لوی مصیبت دے چه انسان ترے په انکار سره هم نشی خلاصیدے۔
فَاِنْ اَعْرَضُوْا: دا مقابل د اِسْتَجِیْبُوْا دے، او پدے کښې زجر دے اعراض کونکو ته، او تسلی ده رسول الله ﷺ ته چه که خلق ستا د توحید دعوت نۀ قبلوی، نو نۀ دے قبلوی، تۀ په دوئ باندے داروغه او څوکیدار جوړ شوے نۀ ئے، ستا کار خو صرف پیغام رَسَول دی، چه دا تۀ کوے، د دوئ د کفر او شرك غم مۀ کوه، او د دوئ معامله مونږ ته حواله کړه۔
فَاِنْ اَعْرَضُوْا: ددے جزاء پټه ده: (فَلَا یُسْأَلُ عَنْكَ) که دوی اعراض وکړو نو تا نه به د دوئ په باره کښې هیڅ تپوس نۀ کوی، ځکه چه ﴿فَمَا اَرْسَلْنَاكَ عَلَیْهِمْ حَفِیْظًا﴾ ۔ (نۀ مونږ په دوئ باندے نګهبان نۀ ئے مقرر کړے) نو دا علت د جزاء شو۔
وَاِنَّا اِذَا اَذَقْنَا الْاِنْسَانَ: بیا تعریف د انسان ذکر کوی، او خلقو ته مُعْرِض انسان په ګوته کوی، چه الله تعالیٰ نعمتونه ورکړی نو مخ اړوی او تکبر کوی او چه مصیبت پرے

راشي نو بیا اعراض کوي په طریقه د ناشکرۍ او نا امیدۍ او په الله باندې بد ګمانۍ سره. او مقصد پدې کښې ترهیب (یرول) دي ددې صفاتو نه.

فَرِحَ بِهَا : یعنې تکبر پرې کوي، او د حق په مقابله کښې پرې خوشحاله وي. لکه مخکښې سورت کښې ئې وفرمایل : ﴿ هٰذَا لِیْ﴾ زهٔ ددې مستحق یم. نو د حد نه تیروزي او شکر ادا کول هیر کړي.

او د دنیا نعمتونه که هر څومره لوی شي خو د آخرت د نعمتونو په مقابله کښې داسې دي لکه یو څاڅکې د ټول دریاب په نسبت، ددې وجه نه ئې دې نعمت دپاره اِذَاقَه (څکول) لفظ استعمال کړو.

وَإِنۡ تُصِبۡهُمۡ: **حکمة** : په رحمة کښې الله تعالیٰ خپل ځان ته نسبت وکړو چه مونږه دوی ته وڅکوو یو نعمت او په مصیبت کښې ئې (تُصِبۡهُمۡ) ووېل، اشاره ده چه الله تعالیٰ چا ته براهِ راست مصیبت نهٔ رسوي مګر د هغهٔ د ګناه په وجه ئې رسوي. او نعمت بنده ته بغیر د استحقاق د هغهٔ نه ورکړې شویدې، او بیا هم تکبر کوي.

او په (اَذَقۡنَا) کښې دا اشاره هم ده چه دې انسان ته معمولي غوندې نعمت ملاؤ شي نو د حق نه ورله مانع وګرځي او تکبر شروع کړي او د الله تعالیٰ نه مور او غافل شي.

**فائده:** په حال د نعمت کښې ئې مفرد ذکر کړو او په حال د مصیبت کښې ئې جمع ضمیر (تُصِبۡهُمۡ) راوړو اګرکه انسان لفظ اسم جنس دې، خو پدې کښې اشاره ده چه په حال د تکبر کښې انسان ځان لره د نورو نه مُسۡتَغۡنِي (بې پرواه) ګڼړي او په حال د مصیبت کښې نورو خلکو سره یو ځای کیږي او هغوی ته فریادونه کوي او دا لله تعالیٰ ناشکري کوي.

**فائده:** د اولې جملې په سر کښې ئې (اِذَا) راوړو چه په تَیَقُّن دلالت کوي، او د دویمې جملې په اول کښې ئې (اِنۡ) راوړو چه په شك او تردد دلالت کوي، پدې کښې اشاره ده چه نعمتونه د الله تعالیٰ د طرفنه راتلل اصل څیز دې، او خامخا راځي او مصیبتونه عارضي څیز دې او راتلل ئې یقیني نهٔ دي.

کَفُوۡرٌ : ناشکره وي، او نا شکري د بد ګمانۍ نه پیدا کیږي وائي چه الله رانه نعمت واخستو او الله راته مصیبت راورسولو او دا ولې ئې زهٔ لیدلې یم. او دا کفر دې. نو ددهٔ مصیبت یاد دې او نعمتونه ئې هیر کړي. پکار خو دا وه چه د مصیبت په وخت کښې ئې هم د الله تعالیٰ شکر کولې. او په مصیبت به د الله نه راضي وې. او پدې کښې اشاره ده چه څوك د وحې تابعداري نهٔ کوي نو داسې مرضونه به پکښې پیدا کیږي، او چه څوك د

وحی پسے روان وی نو هغوی کښې الله تعالیٰ دا بد صفات نهٔ پیدا کوی۔

| |
|---|
| لِلّٰهِ مُلۡكُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ يَخۡلُقُ مَا يَشَآءُ |
| خاص الله لره بادشاهی د آسمانونو او د زمکے ده، پیدا کوی څه چه وغواړی، |
| يَهَبُ لِمَنۡ يَّشَآءُ اِنَاثًا وَّيَهَبُ لِمَنۡ يَّشَآءُ الذُّكُوۡرَ ﴿۴۹﴾ |
| بخښی چا ته چه وغواړی جینکۍ او بخښی چا له چه وغواړی نارینه۔ |
| اَوۡ يُزَوِّجُهُمۡ ذُكۡرَانًا وَّاِنَاثًا وَيَجۡعَلُ مَنۡ يَّشَآءُ عَقِيۡمًا |
| یا یو ځای ورکوی دوی ته نارینه او زنانه، او گرځوی چا لره چه وغواړی شنډ |
| اِنَّهٗ عَلِيۡمٌ قَدِيۡرٌ ﴿۵۰﴾ |
| یقیناً الله تعالیٰ پوهه دے قدرت لرونکے دے۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کښې بیان د تصرف د الله تعالیٰ دے، او دا دلیل عقلی دے په اثبات د توحید فی الولایة۔ یعنی معبود صرف یو الله دے ځکه چه هغه لره پوره بادشاهی ده، او د هغهٔ په اختیار کښې پیدائش د انسانانو او د اولادو تقسیم دے۔

ربط او مناسبت

۱ – دا آیت علت د ماقبل دے، یعنی بادشاهی د الله تعالیٰ ده نو ددے وجه نه [بَعۡضُهُمۡ يُثِيبُ وَبَعۡضُهُمۡ يُصِيبُ]۔ چا ته ثواب ورکوی او چا باندے مصیبت راولی، پدے طریقه سره الله تعالیٰ د بندگانو تربیت کوی او د دنیا نظام چلوی۔

۲ – دا د اِعراض سره متعلق دے، یعنی د الله د وحی نه او د هغهٔ د خبرو نه اعراض نهٔ دے پکار ځکه چه هغه بادشاه او هغه خالق دے، او د بادشاه او خالق د خبرو نه اعراض نهٔ وی پکار۔ او د اِسۡتَجِيۡبُوۡا سره هم لگی یعنی د الله تعالیٰ استجابت وکړئ ځکه چه هغه مالك او خالق او هغه علیم او قدیر دے۔

۳ – مفسرینو دا هم وئیلی دی چه دا آیتونه د انبیاء علیهم السلام سره هم لگی۔ کومو انبیاؤ ته چه الله تعالیٰ وحی رالیږلے ده نو په هغوی کښې تقسیم دے، نو دغه تقسیم ته اشاره کوی۔ او دا آیت د سورة الرعد (۳۸) آیت ﴿ وَلَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا رُسُلًا مِّنۡ قَبۡلِكَ وَجَعَلۡنَا لَهُمۡ اَزۡوَاجًا وَّذُرِّيَّةً﴾ پیغمبران الله تعالیٰ رالیږلی دی، او هغوی له ئے بیبیانے او اولاد ورکړی وو۔

نو دلته وائی چه بعض پیغمبران داسے وو چه تولے لونړه ئے وے، لکه لوط ﷺ او ابراهیم ﷺ ته ئے تهول زامن ورکړی وو، او محمد رسول الله ﷺ ته ئے دواړه قسمه ورکړی وو۔ او بعض شنډ وو لکه عیسیٰ او یحییٰ علیهما السلام چه د دوی ښځے نهٔ وے نو ښځے او بچی ورکول دا د الله تعالیٰ په مشیئت بناء دی، او دا د نبوت سره منافات نهٔ لری۔ یو نبی به وی ښځه به ئے نهٔ وی، نو بچی به ئے نهٔ وی، او کله به ئے نارینه اولاد وی، او کله سو چه زنانه، نو د مشرکانو خبره غلطه ده چه نبی هغه څوك نشی کیدے چه ښځے کوی او اولاد راوړی، دا نظریه د مشرکانو خطاء ده۔ لکه دا سوال اوجواب د سورة الرعد په آخر کښ ذکر شویدے۔ او اشاره ده چه انبیاء علیهم السلام په خپل اولاد کښ اختیار نهٔ لری، بلکه الله تعالیٰ ته محتاج دی، نو اولیاء او بزرګان او قبرونو والا به چا ته اولاد څنګه ورکړی، لکه اُوس هم مشرکان د قبرونو پسے منډے وهی، او هلته نه تالی کولاوی چه دا بابا به ما ته اولاد راکړی، دا ښکاره شرك دے۔

او په آیت کښ بیا نور ډیر فوائد دی،(۱) یو دا چه الله تعالیٰ خالق دے، پیدا کونکے صرف هغه دے، نهٔ بل څوك۔

(۲) مالك او اختیارمند صرف الله تعالیٰ دے، بچی د الله تعالیٰ په مشیت پیدا کیږی، د والدینو هیڅ اختیار پکښ نشته۔ ددے وجه نه ئے دلته مؤنث (اِنَاثًا) مقدم کړو۔ دوه اشارے دی، یو دا چه جینکۍ پیدا کیدل د الله تعالیٰ په اختیار سره دی، اګرکه مور او پلار به ئے بد ګنړی۔ دویم پدے کښ اشاره ده چه د زنانو کثرت دے په نسبت د سړو باندے، او دا د قیامت د علاماتو نه هم ده چه زنانه به په سړو باندے زیاتیږی۔

او علامه قرطبیؒ د واثله بن الاسقع ﷺ نه نقل کړی: چه برکت د زنانه دا دے چه اول ترینه لور پیدا شی بیا وریسے څوی۔ (لیکن دا روایت ابن عساکرؒ، ابونعیمؒ او خرائطیؒ په مکارم الاخلاق ص (۷۲) کښ راوړیدے او موضوع (منګهړت) دے– انظر الضعیفة رقم (٤٥١٩) وضعیف الجامع ٥٢٩٣)

۳– فائده: (اِنَاثًا) ئے نکره او (اَلذُّکُوْر) ئے معرفه راوړه، پدے کښ اشاره ده چه زنانه دپاره د ناشنائی حالت پکار دے، چه پرده نشینه وی چه نَکِره وی یعنی نهٔ پیژندلے کیږی، او نارینه خو ښکاره وی، پیژندلے کیږی۔

٤– فائده: یُزَوِّجُهُمْ: جوړه ورکوی دوی ته۔ دا کله داسے وی چه غبرګونی ورکړی په یو وخت کښ چه هغے ته تَوْأَمَیْن وائی۔ هلك او جینئ، یا دوه جینکۍ یا دوه هلکان په

يو ځاى پيدا شي۔ يا په جدا جدا وختونو كښ هلك بيا پيدا شي۔

٥- فائده: عقيما: دا قسم د مخكښ په نسبت ډير كم دے نو پدے وجه ئے روستو ذكر كړو۔

٦- فائده: دا تقسيم په اعتبار د غالب او اكثر سره دے، نو پدے سره انكار د خُنثىٰ نه نشي كيدے ځكه چه (يَخۡلُقُ مَا يَشَآءُ) او عليم او قدير كښ خُنثىٰ پيدا كولو ته اشاره ده۔

٧- عليم كښ اشاره ده چه دا تقسيم د اولادو د الله تعالىٰ د علم مطابق دے، هغهٔ ته د بندګانو احوال معلوم دي چه څوك د كوم اولاد مستحق دے، او څوك د شنډوالي۔ نو د هغهٔ په علم باندے بندګانو له راضي كيدل پكار دي۔ او قدير كښ اشاره ده چه الله تعالىٰ چا له اولاد نهٔ وركوي، يا نارينه اولاد نهٔ وركوي نو ددے وجه د الله تعالىٰ كمزورتيا يا عاجزوالے نهٔ دے۔

| |
|---|
| وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنۡ يُّكَلِّمَهُ اللّٰهُ اِلَّا |
| او نشي كيدے دپاره د يو بنده چه خبرے وكړي ددهٔ سره الله تعالىٰ مګر |
| وَحۡيًا اَوۡ مِنۡ وَّرَآءِ حِجَابٍ اَوۡ يُرۡسِلَ رَسُوۡلًا |
| په طريقه د وحي كولو سره (زړهٔ د هغهٔ ته) يا اخوا د پردے نه يا راوليږي استازے |
| فَيُوۡحِيَ بِاِذۡنِهٖ مَا يَشَآءُ ؕ اِنَّهٗ |
| (جبريل) نو هغه وحي وكړي په حكم د هغهٔ سره څه چه غواړي، يقيناً هغه |
| عَلِيٌّ حَكِيۡمٌ ﴿٥١﴾ |
| اُوچت دے، حكمتونو والا دے۔ |

**تفسير**: دا د ابتداء د سورت سره متعلق دے (كَذٰلِكَ يُوۡحِيۡ) نو پدے كښ د وحي درے طريقے بيانوي چه پدے طريقو سره عامو پيغمبرانو ته وحي شويده، او بيا رسول الله ﷺ ته خصوصي په ډيرو طريقو سره شويده۔

د نزدے سره ئے جزوي مناسبت دا دے چه مخكښ تفاوت في الاولاد بيان شو نو اُوس تفاوت د وحي د نازلولو بيانوي۔

په بل تعبير سره: مخكښ تقسيم د ظاهري نعمت وو اُوس تقسيم د باطني نعمت

بيانيږي چه هغه وحی ده۔
نو پدے آيت کښې د الله تعالیٰ عظمت او د وحی د طريقو بيان او د رسولانو الله تعالیٰ ته عجز بيانيږي چه دوی الله ته محتاج دی نو دوی مرتبے د اُلو هيت ته نشی رسيدے۔

## د وحی طريقے

د وحی ټولے اُوه طريقے دی چه هغه په سيرت کښې بيانيږي زمونږ کتاب ((سيرت رسول)) او ((اصول التفسير وعلوم القرآن)) کښې تفصيلاً وګورئ. دا اُوه واړه طريقے په دے درے طريقو کښې داخليږي۔

(۱) کله وحی د رشتينی خوبونو په طريقه وه۔ او دا ابتدائی وحی وه۔

(۲) کله به ملائك د رسول الله ﷺ په زړه او سينه کښې خبره واچوله۔ لکه چه نبی کريم ﷺ فرمائی: [اِنَّ رُوۡحَ الۡقُدُسِ نَفَثَ فِیۡ رَوۡعِیۡ اَنَّهٗ لَنۡ تَمُوۡتَ نَفۡسٌ حَتّٰی تَسۡتَكۡمِلَ رِزۡقَهَا]۔ (جبريل عليه السلام زما په زړه کښې دا خبره واچوله چه بيشکه هيچرے به هيڅ نفس نۀ مری تردے چه خپل رزق پوره کړی)۔

(۳) کله به ورته ملائك د يو سړی په شکل کښې راغلو نو هغه سره به ئے خبرے وکړی نو رسول الله ﷺ به د هغۀ وينا زده کړه۔ او پدے څل کښې به کله نا کله صحابه کرامؓ هم ليدلو۔

(٤) کله به ورته د صلصلة الجرس (د ټلۍ د آواز) په شان راتلله او دا به په رسول الله ﷺ باندے ډيره ګرانه تماميده، ملائك به ورسره خوخت شو تردے چه د هغۀ تندے به په سخته يخه ورځ کښې د خولو نه ويهيدو۔ او تردے چه د هغۀ اُوښه به په زمکه کيناسته کله چه به پرے هغه سور وو۔

(٥) کله به رسول الله ﷺ ملائك (جبريل عليه السلام) د هغۀ په خپل اصلی شکل کښې ليدلو چه هغه به ورته وحی کوله او دا کار دوه کرته شويدے لکه په سورة النجم کښې ذکر دے۔

(٦) کله ورته الله تعالیٰ د آسمانونو دپاسه نه وحی کړيده لکه په ليلة المعراج کښې ئے ورته د مونځونو د فرضيت وحی وکړه۔

(۷) الله ورسره خبرے کړيدی په غير د واسطے د ملائك نه لکه څنګه ئے چه د موسی عليه السلام سره کړيدی لکه دا د موسیٰ عليه السلام دپاره په نص د قرآن سره ثابت دی او زمونږ د پيغمبر دپاره په حديث د اسراء کښې ثابت دی۔

(۸) او بعضو پکښې اتمه طريقه دا زياتې ذکر کړېده چه الله تعالىٰ ورسره مخامخ په غير د حجاب (پردې) نه خبرې کړيدى. ليکن دا مسئله اختلافي ده د سلفو او د خلفو ترمينځ (چه آيا نبي کريم ﷺ الله تعالىٰ لره ليدلے او که نهٔ ؟. راجح دا ده چه نهٔ ئې دے ليدلے). (زاد المعاد ۱۸/۱) والرحيق المختوم ص (۷۸/۷۹)

وَمَا كَانَ: يعني ممکن هم نهٔ ده او مناسب هم نهٔ ده.

لِبَشَرٍ: يعني دا نشي کيدے چه الله تعالىٰ د يو بشر سره خبرې وکړي ځکه چه بشر ډير ادنىٰ دے، او الله تعالىٰ ډير اعلىٰ دے، او د ډير اعلىٰ او د ډير ادنىٰ په مينځ کښې مناسبت نهٔ وي، نو سوال پيدا شو چه بيخي نشي کيدے حال دا چه خبرو ته خو ضرورت شته، نو فرمائي :

إِلَّا وَحْيًا: مګر په طريقه د وحي سره. د وحي نه مراد (اِلْقَاءِ فِي الرَّوْعِ) ده، يعني په زړه کښې اچول دي، او دا په ډيرو طريقو سره. يو دا چه الله تعالىٰ د پيغمبر په زړه کښې يوه خبره واچوي، او هغه ورله خپل الفاظ جوړ کړي لکه عامو حديثونو کښې داسے شويدي. يا ئې د موسىٰ ؑ د مور په زړه کښې خبره واچوله.

دويم دا چه په خوب کښې ورته الهام وکړي لکه ابراهيم ؑ ته ئې د هغهٔ د بچي په ذبح کولو حکم په خوب کښې کړے وو. او دا دواړه طريقے د قرآن په باره کښې نهٔ دي. او وحي کله په معنىٰ د اشارے، کله په معنىٰ د رسالت (پيغام ليږلو)، او کله په معنىٰ د ليکلو سره استعماليږي. او هر هغه شے چه تهٔ ئې بل ته د هغهٔ د تعليم دپاره ګوزاروے دا وحي ده.

أَوْ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ : دويمه طريقه دا ده چه الله تعالىٰ براهِ راست خبرے کوي، او يو نبي ئې آوري خو مينځ کښې پرده وي، د جبريل ؑ واسطه نهٔ وي لکه موسىٰ ؑ سره په کوهِ طور کښې او رسول الله ﷺ سره په معراج کښې داسے شوي وو.

أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا: دا دريمه طريقه: يو ملائك راوليږي لکه جبريل ؑ. او دا به کله د يو صحابي (دحية الكلبى ؓ) په شکل راغلو او کله به د يو اعرابي (بانډچي، ناشنا مسافر) په شکل او کله به جبريل ؑ په خپل شکل وو، او دا رسول الله ﷺ دوه کرته ليدلے دے، او کله به جبريل ؑ د رسول الله ﷺ خوا کښې ناست وو، او رسول الله ﷺ به نهٔ ليدلو او خبرے به ئې کولے. او د بخاريؒ په روايت کښې دي چه دا به په رسول الله ﷺ باندے ډيره ګرانه پريوته، او رسول الله ﷺ ته به ئې دومره زور ورکولو چه په سخته

یخه ورځ کښې به د هغه نه خولے ووتلے۔

اِنَّهٗ عَلِيٌّ: دا د ماقبل دپاره علت دے، یعنی الله تعالیٰ د بندګانو سره ډارك خبرے نۀ کوی ځکه چه الله تعالیٰ ډیر پورته دے په اعتبار د ذات او په اعتبار د قدر او مرتبے سره چه یو مخلوق ډیے د هغۀ مخے ته راشی، او هغۀ سره ډیے خبرے وکړی، که چرے داسے فرض کړے شی نو د الٰهی تجلیٰ رڼرا به هغه ایره کړی، ځکه دا نشی کیدے چه د هغۀ مخے ته ډیے بل څوك ایسار شی۔ او هغه د ډیر زیات حکمت او پوهے خاوند دے، هغه بۀ پیژنی چه خپل پیغام خپل رسول ته څنګه ورسوی۔ او دا قانون دے چه څومره یو شے عزتمند او شرافت والا کیږی نو هغومره لرے کیږی لکه د یو تهانیدار سره ملاقات لږ مشکل وی، بیا کرنل سره ډیر ګران وی، بیا د وزیر او بادشاه سره د هغے نه هم ګران وی۔ نو الله تعالیٰ سره هم بندګان ملاقات نشی کولے چه خبرے ورسره وکړی، بلکه هغه د بندګانو سره په دغه درے واسطو سره خبرے کوی،

پدے کښې عظمتِ شان د رب العالمین ذکر دے۔

مفسرین لیکی چه یهودیانو نبی کریم ﷺ ته وویل: تۀ الله سره ولے خبرے نۀ کوے او هغه ته ولے نۀ ګورے که ته چرته نبی ئے لکه موسیٰ علیه السلام چه ورسره خبرے کړے وے؟ نو دا آیت نازل شو، چه الله تعالیٰ ډیرلوی ذات دے، د هغۀ سره د بنده دپاره خبرے مناسب نۀ دی په دنیا کښې مګر که الله تعالیٰ خبرے کوی نو دغه واسطه به وی، د وجه د پورته والی او عظمتِ شان د هغۀ نه۔

**فائده**: ددے آیت نه دلیل نیولے شوے چه انبیاء علیهم السلام په دنیا کښې د الله تعالیٰ ملاقات نشی کولے، صرف کلام الله آوریدے شی، نو کوم قصه ګو ملیان چه وائی چه رسول الله ﷺ الله تعالیٰ معراج ته پورته کړو، او هلته ئے یو په یو ملاقات وکړو او بعض پکښې لا دا وائی چه الله تعالیٰ ته ئے غاړه ورکړه، نو دا سو چه دروغ او د الله رب العالمین په شان کښې انتهائی لویه ګستاخی ده۔

| وَكَذٰلِكَ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ رُوْحًا مِّنْ أَمْرِنَا مَا كُنْتَ تَدْرِيْ |
|---|
| او دغه شان وحی کړیده مونږ تا ته د روح (قرآن) د حکم زمونږ نه، تۀ نۀ پو هیدلے |
| مَا الْكِتَابُ وَلَا الْإِيْمَانُ وَلٰكِنْ جَعَلْنَاهُ نُوْرًا |
| چه څه دے کتاب او نۀ په تفصیل د ایمان، لیکن اُوګرځولو مونږ دے لره رڼرا |

| نَهْدِیْ بِهٖ مَنْ نَّشَآءُ مِنْ عِبَادِنَا وَاِنَّكَ |
| --- |
| چه هدایت کوو مونږ پدے سره چا له چه اُوغواړو د بندګانو زمونږ نه، او یقیناً ته |
| لَتَهْدِیْ اِلٰی صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ ﴿۵۲﴾ صِرَاطِ اللّٰهِ الَّذِیْ لَهٗ |
| خامخا هدایت کوے لارے نیغے ته۔ لاره د الله تعالیٰ هغه ذات چه د هغهٔ په اختیار |
| مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ |
| کښې دی هغه څه چه په آسمانونو کښې دی او هغه څه چه په زمکه کښې دی، |
| اَلَآ اِلَی اللّٰهِ تَصِیْرُ الْاُمُوْرُ ﴿۵۳﴾ |
| خبردار خاص الله ته ورګرځی ټول کارونه۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کښې د قرآن کریم عظمتِ شان او ددے صدق ذکر دے او دا متعلق دے د ابتداء د سورت سره چه قرآن کریم تا ته په دغه درے طریقو نازل شویدے کومے چه مخکښې آیت کښې بیان شوے۔

**وَكَذٰلِكَ**: یعنی مونږ تا ته خپله وحی په دے مذکوره درے طریقو سره را رسولے ده۔ وحی ته ئے روح وویل ځکه چه په روح سره بدن ژوندے کیږی، نو دغه شان په وحی سره زړهٔ او روح ژوندے کیږی۔ نو قرآن کښې یو روحانیت دے، او بل نورانیت دے لکه روستو وائی۔

**مَا كُنْتَ تَدْرِیْ**: د وحی نازلیدو نه مخکښې خو نهٔ تا ته د قرآن پته وه، او نهٔ د ایمان او عمل صالح تفصیلات تا پیژندل چه خپله تاله څنګه ژوند تیرول پکار دی، او نورو ته څنګه تعلیم ورکول پکار دی۔ دا خو د اِلٰهی وحی برکت دے چه مونږ تا ته قرآن درکړے چه ددے د رڼړا په ذریعه مونږ د خپلو بندګانو نه چا ته چه غواړو حقه لاره ښایو، او ددے په وجه تهٔ خلقو ته د دینِ اسلام دعوت ورکوے، چه دا د زمکے او آسمانونو مالك ته د رسیدو یوا ځینۍ نیغه لاره ده۔

**وَلَا الْاِیْمَانُ** نه معلومه شوه چه د وحی او د ایمان مینځ کښې ډیر ژور مناسبت دے، که غواړے چه خپل ایمان مضبوط کړے نو دا په وحی سره قوی کیږی۔ په کتاب د رب العالمین باندے ایمان په هغه درجه پورته کیږی چه دا په بل هیڅ شی نهٔ اُوچتیږی۔

**سوال :** آیا نبی ددے وحی نه مخکښې په ایمان نهٔ پو هیدو حال دا چه پدے باندے خو د امت اتفاق دے چه په نبی باندے قبل النبوت هم زمانه د کفر او زمانه د فسق بیخی نهٔ راځی، نو بیا د (وَلَا الۡاِيۡمَانُ) څه معنىٰ ده ؟ جواب دا دے چه د (وَلَا الۡاِيۡمَانُ) نه مراد تفصیلات د ایمان دی، یعنی ایمان خو پکښې مخکښې د نبوت نه هم موجود وو، لیکن د تفصیلاتو نه پوره خبر نهٔ وو، په وحی سره د ایمان د تفصیلاتو نه خبر شو۔ قرآن سړی ته د الله تعالىٰ د ادب، د هغهٔ سره د اُنس او د هغهٔ د بندګئ چل او طریقه ښائی، د الله د حقوقو او د هغهٔ د ملاقات او د هغهٔ دپاره د غیرت طریقه ورته ښائی۔

**وَلٰكِنۡ جَعَلۡنٰهُ نُوۡرًا نَّهۡدِىۡ بِهٖ :** یعنی قرآن الله تعالىٰ د هدایت دپاره نازل کړو دے دپاره چه څوك اهل وی، نو هغه به دے طرفته راشی، او نیغے لارے او مقصد ته به پرے ورسیږی، دے نه معلومه شوه چه دا د الله تعالىٰ خالص فضل وی چه بنده ته الله تعالىٰ قرآن طرفته هدایت وکړی۔

**نُوۡرًا:** نه معلومه شوه چه قرآن روح هم دے او نور هم دے، په روح باندے حیات راځی او په نور (رڼړا) باندے لاره لیدلے کیږی۔ او حیات او نور کمال دے، او دا کمال په قرآن کریم کښې دے چه پدے سره زړهٔ هم ژوندے کیږی، او بیا ورته د ژوند په هره برخه او معامله کښې رڼړا هم ورکوی۔ او ددے مثال مونږ د ګاړی او د لیتهونو سره ورکړے وو چه تفصیل ئے په سورة الانعام او سورة النور کښې ذکر شویدے۔

**وَاِنَّكَ لَتَهۡدِىۡ:** یعنی اګرکه ته هر مکلف او هر انسان ته نیغے لارے طرفته رهنمائی کوے لیکن توفیق د الله تعالىٰ په مشیت بناء دے، هغه چه چا ته توفیق ورکړی نو هغه هدایت قبول کړی او قرآن ته راشی۔

**فائده :** ددے آیت نه معلومه شوه چه قرآن هم هدایت کوی (نَهۡدِىۡ بِهٖ) او دویم سنت هم هدایت دے (وَاِنَّكَ لَتَهۡدِىۡ) نو قرآن او سنت د هدایت ذریعے شوے، او ددے نه اوړیدل ګمراهی ده۔

**صِرَاطِ اللّٰهِ:** دا تفسیر د صراطِ مستقیم دے، او بدل دے د صراط مستقیم نه۔ او پدے کښې د صراط مستقیم عظمتِ شان ذکر دے، چه صراط مستقیم هغه لاره ده چه سیده الله ته رسیدلے ده۔

**لَهٗ مَا فِى السَّمٰوٰتِ:** اشاره ده چه څوك د الله تعالىٰ وحی نهٔ منی، نو الله ته به هیڅ ضرر ورنکړی ځکه چه هر څه د هغهٔ دی، واکدار د هر شی هغه دے۔ او بل اشاره ده چه

هر کله هر څهٔ د الله دی، نو بیا صرف د هغهٔ د وحی تابعداری پکار ده، ځکه چه تول کارونه الله تعالیٰ ته واپس کیږی نو هغه به ئے د بندګانو سره حساب کوی.

أَلَا إِلَى اللَّهِ تَصِيرُ الْأُمُورُ: او دا دفع د وَهُم ده چه که څوک ووائی چه په بعض ځیزونو کښ خو د بندګانو ملکیت هم شته، نو څرنګ ووئیل شو چه (لَهُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ) هر څه د الله دی؟ حاصل د جواب دا دے چه په حقیقت او عاقبت کښ ددے تولو ملکیت الله تعالیٰ ته ورګرځی. او پدے کښ اثبات د آخرت دے. یعنی هر کله چه په قیامت کښ د تولو فیصلو اختیار صرف د الله تعالیٰ دے، نو د هغهٔ د وحی په تابعدارئ به انسان خلاصیږی. رزقنا الله الاستقامة علیه. آمین.

## امتیازات د سورة الشوریٰ

١- پدے سورت کښ عظمت د وحی ذکر دے.

٢- لفظ د ولی پکښ ډیر استعمال دے.

٣- رزق په اتباع د وحی سره ملاویږی.

٤- لیس کمثله شئ وهو السمیع البصیر (د الله د اسماء او صفاتو قاعده) کلیه پکښ ذکر ده.

٥- د مؤمنانو خصوصی نهه صفات په خاص انداز سره پدے کښ ذکر دی.

٦- د وحی د راتللو طریقے پکښ ذکر دی.

٧- قرآن ته په کښ روح او نور وئیلے شویدے.

ختم شو تفسیر د سورة الشوریٰ په سخته ګرمئ پشکال ٢٢/ شوال ٢٣/ ١٤٣٦ هـ موافق: ١٧/٢٠١٥/ اګست. شیخ آباد پشاور.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

| آیاتها (۸۹) | (۴۳) سورة الزخرف مکیة (۶۳) | رکوعاتها (۷) |
|---|---|---|

سورتِ زخرف مکی دے، په دے کښې نهه اتیا آیتونه او اُووه رکوع دی

## تفسیر سورة الزخرف

نوم: د (۳۵) آیت ﴿ وَزُخْرُفًا وَإِن كُلُّ ذَٰلِكَ لَمَّا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ﴾ آیت نه اخستے شوے.
صاحب د محاسن التنزیل د مهایمیؒ په حواله لیکلی چه ددے سورت د نوم دپاره دا لفظ ځکه اختیار شوے چه دا آیت د دنیا په ذلت او رذالت او په دے خبره دلالت کوی چه دا دنیا د خپل رب په نظر کښې مبغوض ده، دے وجے نه په اصل کښې دا د هغهٔ د دشمنانو ځائے دے.

د نازلیدو زمانه: قرطبیؒ لیکلی دی چه دا سورت په اجماع سره مکی دے. ابن عباس رضی الله عنهما هم دا قول کوی.

مناسبت:

۱- مخکښې سورت کښې عظمة الوحی وو نو دلته زجر ورکوی په استهزاء کولو.
۲- مخکښې سورت کښې ئے وویل چه دوی د قرآن نه اعراض کوی نو دلته وائی چه اعراض خو چه دوی ورپورے توقے هم کوی.
۳- توحید انداز کښې مناسبت دا دے چه مخکښې په شرك فی التحلیل والتحریم یعنی ځان نه دین جوړولو (بدعت) باندے رد وشو، نو دلته په مشرکین بالملائکه او مشرکین بالولد باندے رد کوی. نو گویا که مخکښې ئے وویل چه د ځان نه دین مهٔ جوړوئ، دلته وائی چه د ځان نه عقیدے هم مه جوړوئ.

د سورت موضوع او مقصد

۱- زمونږ مشائخ فرمائی چه پدے سورت کښې رد د شرك دے په رد د حجتونو او

دليلونو د مشركانو باندې چه هغوی د شرك په جواز باندې د الله په مشيت دليل نيولے وو، دارنگه عقيده د شركي شفاعت، او دريم حجت په اتباع د آباؤ دے۔

دارنګه پدے سورت کښې رد دے په شركونو د مشركانو په اتخاذ الولد او په شرك فی العبادة او فی الدعاء سره۔

او پدے سورت کښې دوه عقيدے نورے بيانيږی چه هغه صدق د رسول او صدق د قرآن۔

۲- پدے کښې په آسانئ سره دا هم وئيلے شی چه پدے سورت کښې يوه موضوع ده چه متضمن ده نورو موضوعاتو لره او هغه ده : اَلزَّجْرُ بِالْاِسْتِهْزَاءِ۔

(زورنه ده په ټوقو کولو د کافرانو) چه دوی په دوه ځيزونو پورے ټوقے کوی، يو ددے رسول پورے نو د دوی عيبونه او سزاګانے به بيانيږی چه پخوانو استهزاء وکړه لکه فرعون وغيره، نو الله تعالیٰ هلاك کړل نو دوی به هم هلاکيږی۔

دويم استهزاء د الله د کتاب پورے۔

بيا چه د رسول او د قرآن پورے استهزاء کوی نو ددے په نتيجه کښې په انسانانو کښې نور مرضونه پيدا کيږی چه هغه مرضونه دا دی : يو د هغے نه شرك دے۔ ځوك چه د قرآن پورے ټوقے کوی، نو آخر دا چه مشرك به شی۔

دويم تقليد د آباؤ۔ (يعنی په جهالت به روان شی)۔

نو ددے سره به دا خبره ملګرے وی [اَلتَّخْوِيْفُ لِلْمُسْتَهْزِئِيْنَ] ۔ د ټوقو کونکو دپاره تخويفونه او عذابونه به ذکر کيږی۔ د دنيا او د آخرت عذابونه۔

دا موضوع د (۷) آيت نه معلوميږی۔ بيا د مشرکانو استهزاء ات ذکر دی، او د هغے چغے د قرآن او د رسول په خلاف، او د فرعون استهزاء او هلاکت ئے ذکر کړيدے، بيا ددے استهزاء يو سبب ئے بيان کړيدے چه هغه محبت د دنيا دے، نو وائی دوی چه الله تعالیٰ قرآن پدے غريب سړی باندے نازلولو نو زمونږ په مشرانو مالدارو ئے ولے نهٔ نازلولو؟۔ نو الله به د دنيا بدی بيانه کړی۔

نو پدے سورت کښې استهزاء او د هغے متعلقات بيانيږی۔

| حٰمٓ ﴿۱﴾ وَالْكِتَابِ الْمُبِيْنِ ﴿۲﴾ إِنَّا جَعَلْنَاهُ |
|---|
| ددے حروفو په مطلب الله پوهه دے۔ قسم دے په کتاب ښکاره۔ يقيناً مونږ ګرځولے |

| قُرۡآنًا عَرَبِیًّا لَّعَلَّکُمۡ تَعۡقِلُوۡنَ ﴿۳﴾ وَاِنَّهٗ |
|---|
| دے دا قرآن عربی ژبے والا، دے دپاره چه تاسو د عقل نه کار واخلئ۔ او یقیناً دا |
| فِیۡۤ اُمِّ الۡکِتٰبِ لَدَیۡنَا لَعَلِیٌّ حَکِیۡمٌ ﴿۴﴾ |
| په اصل د کتاب کښې زمونږ سره خامخا اُوچتے مرتبے والا دے حکمتونو والا۔ |

**تفسیر** : دلته عجیب بلاغت نه کار اخستے شویدے چه الله تعالیٰ په قرآن کریم باندے قسم خوړلے دپاره د رشتینوالی ددے قرآن، یعنی ددے قرآن عظمت ددے لائق دے چه پدے باندے قسم وخوړلے شی، نو قرآن باندے قسم شویدے دپاره د قرآن۔ پدے سره مقصد د خلقو په زړونو او دماغو کښې د قرآن کریم قدر او مرتبه کینول دی۔ یعنی دا روښانه کتاب هغه عظیم کتاب دے چه ددے د قدر او مرتبے قسَم الله تعالیٰ خوړلے۔

یعنی اے د عربو خلقو ! په هغه واضح کتاب مے دِے قسَم وی کوم چه خلقو ته حق او باطل ښکاره بیانوی، دا په عربیٔ ژبه کښې مونږ نازل کړے، دے دپاره چه تاسو ددے غرضونه او مقصدونه راگیر کړئ او په غیر د واسطے نه پرے پو هه شئ چه مونږ تاسو نه څهٔ غواړو۔

جَعَلۡنٰهُ: ددے نه معتزله ؤ استدلال کړیدے چه قرآن کریم مخلوق دے ځکه چه جعل په معنیٰ د خلق (پیدائش) سره استعمالیږی۔ اهل سنت وائی چه قرآن کریم په اعتبار د لفظ او معنیٰ دواړو سره مخلوق نهٔ دے بلکه دا د الله تعالیٰ کلام دے، او هرچه کته او کاغذ او سیاهی ده، نو هغه مخلوق ده، او په هغے باندے خلق قسم نکوی، بلکه قسم په کلام د الله تعالیٰ باندے کیږی۔ او هرچه جعل دے نو د عربی قانون مطابق دا چه کله دوه مفعولو ته متعدی وی، نو په معنیٰ د صَیَّرَ سره وی، نهٔ په معنیٰ د خَلَقَ سره۔ او دے ته جعل مُرکّب او جَعۡلِ مُؤَلَّف وائی۔

امام عبد العزیز الکنانیؒ د بشر المریسی معتزلی په یوه مناظره کښې کله چه هغه وویل چه جعل په معنیٰ د خلق دے، نو دهٔ ورته وفرمایل : چه هر ځای جعل په معنیٰ د خلق سره نهٔ وی، ددے راتلونکی آیتونو سره به څه کوے : ﴿وَقَدۡ جَعَلۡتُمُ اللّٰهَ عَلَیۡکُمۡ کَفِیۡلًا﴾ دلته خو د خلق معنیٰ بیخی نهٔ جوړیږی۔ چه تاسو الله تعالیٰ پیدا کړیدے په خپلو ځانونو ذمه وار۔ دارنګه ﴿وَتَجۡعَلُوۡنَ رِزۡقَکُمۡ اَنَّکُمۡ تُکَذِّبُوۡنَ﴾ ﴿وَیَجۡعَلُوۡنَ لِلّٰهِ الۡبَنٰتِ﴾ وغیره۔ انظر کتاب الحیدة للکنانی۔

نو هر ځای جعل په معنیٰ د پیدائښ نه وی بلکه دلته قرطبیؒ (سَمَّیۡنَاهُ) سره معنیٰ کړیده یعنی مونږ نوم ایخی دے دے ته) (وَصَفۡنَاهُ) (صفت مو ورکړیدے) (اَنۡزَلۡنَاهُ) مونږ نازل کړیدے۔ (وَبَیَّنَّاهُ) او مونږ دا بیان کړیدے۔

او حافظ ابن کثیرؒ د نازلولو معنیٰ غوره کړیده۔

۳- دارنګه جعل په معنیٰ د تقدیر (مقررولو) او کتابت (لیکلو) سره دے، یعنی مونږ په تقدیر کښ قرآن عربی لیکلے دے، او هغه تقدیر لوح محفوظ دے۔ او ددے تائید په روح المعانی کښ د طاوس نه نقل کړیدے چه یو سړے د حضرموت نه راغے او د ابن عباس ﷛ نه ئے تپوس وکړو چه ما له خبر راکړه چه آیا قرآن کریم د الله کلام دے، او که د هغهٔ د مخلوق نه یو مخلوق دے؟ هغه جواب ورکړو چه قرآن کلام الله دے، او د سورت توبه ﴿حَتّٰی یَسۡمَعَ کَلَامَ اللهِ﴾ آیت ئے ولوستلو، نو بیا هغه سړی دا آیت ﴿اِنَّا جَعَلۡنَاهُ قُرۡآنًا عَرَبِیًّا﴾ ذکر کړو، نو ابن عباس ﷛ ورته وفرمایل:

ددے مطلب دا دے چه الله تعالیٰ لیکلے دے په لوح محفوظ کښ په عربی سره۔ او آیت ئے ولوستلو ﴿بَلۡ هُوَ قُرۡآنٌ مَجِیۡدٌ فِیۡ لَوۡحٍ مَحۡفُوۡظٍ﴾ (سورتِ بروج: ۲۱/۲۲)

او امام رازیؒ او خطیب شربینیؒ وغیره چه کوم جواب ذکر کړیدے چه ددے نه مراد کلام لفظی دے، او هغه مخلوق دے نو دا قول غلط دے ځکه چه تقسیم د کلام، لفظی او نفسی ته بدعت دے، په سلفو کښ د هیچا نه ندے نقل نو قرآن مَقۡرُوۡءٌ، مَتۡلُوٌّ او مَسۡمُوۡعٌ کلام الله دے او دا مذهب د امام ابو حنیفه رحمه الله دے، لکه فقه اکبر او شرح العقیدة الطحاویه ص (۱۸۸) کښ په تفصیل سره ذکر دے۔

او امام ذهبیؒ په کتاب اَلۡعُلُوُّ لِلۡعَلِیِّ الۡغَفَّار کښ د امام ابو یوسفؒ مناظره د امام ابو حنیفه رحمه الله سره ذکر کړیده چه په نتیجه کښ امام صاحب د امام ابو یوسفؒ قول ته رجوع وکړه، او ویے ویل: چه څوک وائی چه قرآن مخلوق دے نو هغه کافر دے۔

لَعَلَّکُمۡ تَعۡقِلُوۡنَ: اول به عرب په قرآن کښ سوچ او عقل چلوی او نورو ژبو والا به د هغوی نه روستو عربی زده کوی او بیا به پکښ سوچ کوی۔ دویم دا ورسره ځکه وائی چه په عربیٔ ژبه کښ تَعَقُّل (فکر) بنهٔ کیږی، په نورو ژبو کښ دومره کمالات نشته کوم چه په عربیٔ کښ دی، پدے وجه په هغے کښ دومره تعقل نه کیږی، او هرچه عربی ده نو ددے دومره زور والے دے چه په هر لفظ کښ ئے ډیرے اشارے وی، او قرآن پدے کښ په اعلیٰ درجه د کمال کښ دے، هر لفظ چه په کوم مناسب ځای کښ استعمال شویدے هغے کښ که سوچ وکړے شی، نو د ټولے دنیا او د آخرت خبرو ته پکښ اشاره شته، خو

زموږ د علم د کمی د وجه نه موږ صرف د قرآن یوه خاکه او تصویر ذهن کښې کینولو کوشش کوو۔ لکه په خبال لفظ کښې موږ ذکر کړیدی چه د کافرانو څونو ته پکښې څومره ډیر اشارات دی۔

وَاِنَّهٗ فِیْٓ اُمِّ الْكِتٰبِ: او دا واضح قرآن زموږ سره په لوحِ محفوظ کښې موجود دے، او ددے مرتبه ډیره اُوچته ده، او دا ډیر زیات د حکمتونو کتاب دے۔

مفسرین لیکی چه ددے نه مقصد دا بیانول دی چه د آسمان والو په زړونو کښې ددے قرآن قدر او مرتبه، د زمکے والو نه غواړی چه دوئ هم ددے صحیح مقام اُوپیژنی او په دے کښې د ذکر شوو شرعی احکامو پابندی اُوکړی۔

همدا معنیٰ د سورتِ بروج په (۲۱، ۲۲) آیتونو کښې داسے بیان شوے : ﴿ بَلْ هُوَ قُرْاٰنٌ مَّجِیْدٌ فِیْ لَوْحٍ مَّحْفُوْظٍ ﴾ (بلکه دا لوئے شان والا قرآن دے، په لوحِ محفوظ کښې (لیکلے شوے)۔

اُمِّ الْكِتٰبِ : اصل د کتابونو دے چه هغه لوح محفوظ دے، هرڅه په هغے کښې مندرج دی۔

لَدَیْنَا : ۱-اَیْ فِیْ اِخْتِیَارِنَا۔ یعنی دا زموږ په اختیار کښې دے، شیطان وغیره پکښې گوتے نشی وهلے۔ ۲- یا د لَعَلِیٌّ سره لګیږی۔ اَیْ لَعَلِیٌّ لَدَیْنَا۔ یعنی دا کتاب زموږ په نیز ډیر اُوچتے مرتبے والا دے۔ څکه چه دا عالَمی کتاب دے، پدے باندے د الله دوستان او دشمنان معلومیږی، پدے باندے د جنت او جهنم معامله بناء ده۔

| اَفَنَضْرِبُ عَنْكُمُ الذِّكْرَ صَفْحًا اَنْ كُنْتُمْ قَوْمًا مُّسْرِفِیْنَ ﴿۵﴾ |
|---|
| آیا نو اړوبه موږ تاسو نه نصیحت په اړولو سره چه یئ تاسو قوم زیاتے کونکی۔ |

**تفسیر** : د مکے مشرکانو رسول الله ﷺ ته وئیلی وو چه ستا په نیز خو موږ هسے هم ناکاره او مجرمان خلق یو او جهنمیان یو، نو بس کړه دومره بیان ډِے وکړو او موږ له هسے هم فائده نۀ راکوی، بیا څه له بیان کوے؟، نو دلته ورته د هغے جواب کوی، چه د الله تعالیٰ اصول دا دی چه که یو قوم مُسرف او مشرکان هم شی بیا به هم ورته بیان کوی اِعْذَارًا وَاِنْذَارًا۔ یوه وجه دا ده چه الله په خپلو بندګانو باندے رحم کوی، بار بار ورته بیان کوی، چه کیدے شی چه ایمان راوړی او بنه ژوند اختیار کړی۔ او دویم غرض : دے دپاره چه الله د خلقو عذر ختم کړی، چه بندګان ونۀ وائی چه اے الله ! تا یو کرت بیان کړے وو هغه موږ نه هیر شو او موږ نه خطاء شو، رانه تیر شو۔ تا به موږ ته به بار بار او

تاكيد سره بيان كړے وے مونږ به منلے وے۔ نو سره د كفر او شرك نه الله تعالىٰ بندګانو ته اُوږد بيان كوى، الله تعالىٰ ته پته وه چه د نوح ﷺ قوم ايمان نۀ راوړى، ليكن بيا ئے هم ورته د نوح ﷺ په واسطه نهه نيم سوه كاله دعوت وركولو۔

أَفَنَضْرِبُ: اَىْ أَنُهْمِلُكُمْ وَنَضْرِبُ عَنْكُمُ الذِّكْرَ صَفْحًا ۔ يعنى آيا تاسو مهمل (بيكاره) پريدو او قرآن تاسو نه په بل طرف واړه وو، پدے وجه چه تاسو يو قوم ئے زياتے كونكى۔ نو آيا ستاسو د اِسراف د وجه نه كنے مونږ ستاسو نه بيان بند كړو، نۀ بلكه دا د الله د قانون خلاف ده، الله به بيا هم بيان كوى دپاره د عذر زائله كولو او دپاره د رحم كولو۔ او ددے نه دا معلومه شوه چه كه يو قوم انكار هم كولو بيا به هم داعى ورته حق بيانوى، او تول ژوند كښ به د دعوت كار نۀ بندوى۔

صَفْحًا: دا مفعول مطلق مِنْ غَيْرِ لَفْظِهٖ دے۔ او اِضراب په معنىٰ د اړولو او لرے كولو سره دے۔

أَنْ كُنْتُمْ: دے كښ لام تعليلى مُقدر دے، او دا علت دے د أَفَنَضْرِبُ دپاره۔ يا علت دے د انكار دپاره، او معنىٰ دا ده: لَا نَضْرِبُ عَنْكُمْ ۔ مونږ به قرآن ستاسو نه څكه نۀ اړه وو چه تاسو مشركان ورته محتاج يئ دے دپاره چه ستاسو شرك ختم شى۔ كيدے شى چه يوه ورځ ستاسو په زړونو كښ حق خبره كوزه شى، تاسو اسلام قبول كړئ، او ستاسو د زړونو دنيا بدله شى۔

| وَكَمْ أَرْسَلْنَا مِنْ نَّبِيٍّ فِي الْأَوَّلِيْنَ ﴿٦﴾ وَمَا يَأْتِيْهِمْ |
|---|
| او ډير مونږ رالېږلى دى د پيغمبرانو نه په پخوانو خلقو كښ۔ او نۀ به راتلو هغوى |
| مِّنْ نَّبِيٍّ إِلَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿٧﴾ فَأَهْلَكْنَا أَشَدَّ |
| ته هيڅ پيغمبر مګر هغوى به پدۀ پورے توقے كولے۔ نو هلاك كړل مونږ ډير سخت |
| مِنْهُمْ بَطْشًا وَّمَضٰى مَثَلُ الْأَوَّلِيْنَ ﴿٨﴾ |
| د دوى نه په حمله (رانيولو) كښ او تير شويدى نمونے (واقعے) د پخوانو۔ |

**تفسير**: او ستاسو د طرفه زمونږ د نبى او د قرآن نه انكار څۀ نوے خبره نۀ ده، مونږ تاسو نه مخكښ هم ډير انبياء رالېږلى وو، او د هغوئ قومونو هغوئ پورے توقے كړے وے، د هغوئ د نبوتونو او د الله د كتابونو نه ئے انكار كړے وو، نو په هغوئ كښ چه كوم

د تهولو نه زیات طاقتور قومونه وو په هغوئ باندے مونږ عذاب را اولیږهٔ او هلاك مو کړل، او ددے قومونو واقعات او د دوئ د هلاکت داستانونه د قرآن کریم په کنړو ځایونو کښ ذکر شوی، چه ددے په آوریدو سره تاسو له عبرت حاصلول پکار دی۔

نو پدے آیت کښ تسلی ده رسول الله ﷺ ته، او منکرینو ته دنیاوی یره ورکول دی۔

يَسۡتَهۡزِءُونَ: یعنی دوی به استهزاء کوله د وجه د إسراف د دوی نه۔

مِنۡهُمۡ: دا ضمیر هغه مشرکانو ته راجع دے کوم چه په مخکنی آیت کښ مخاطب وو۔ یعنی موجوده مشرکان۔

بَطۡشًا: ددے نه مراد طاقت په سبب د ډیرو مالونو او غټو بدنونو او د کنړو لښکرو سره دے۔

وَّمَضَىٰ: یعنی پدے کتاب کښ تیر شویدی حالات او واقعات او عبرتونه او سزاګانے د پخوانو چه په هغے کښ ستاسو دپاره پوره عبرت او نصیحت او د تکذیب او انکار نه منع کونکے شے شته۔ (سعدی)

مَثَلُ الۡأَوَّلِينَ: مثل : صفت او حالاتو او خبر ته وئیلے کیږی۔ (قرطبی)

قتادهٓ وائی :عُقُوبَةُ الۡأَوَّلِينَ۔ سزاګانے د پخوانو۔ (تفسیر عبد الرزاق والطبری)

مجاهدٓ وائی : سُنَّتُهُمۡ۔ طریقے د پخوانو۔ (طبری)

بعض وائی : عِبۡرَتُهُمۡ۔ یعنی عبرت د پخوانو۔ (ابن کثیرٓ)

| وَلَئِن سَأَلۡتَهُم مَّنۡ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالۡأَرۡضَ لَيَقُولُنَّ |
|---|
| او که تپوس وکړے ته د دوی نه چه چا پیدا کړیدی آسمانونه او زمکه خامخا وائی دوی |
| خَلَقَهُنَّ الۡعَزِيزُ الۡعَلِيمُ ﴿٩﴾ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الۡأَرۡضَ |
| پیدا کړیدی دا زورور پوهه ذات۔ هغه ذات دے چه ګرځولے ئے ده تاسو لره زمکه |
| مَهۡدًا وَّجَعَلَ لَكُمۡ فِيهَا سُبُلًا لَّعَلَّكُمۡ تَهۡتَدُونَ ﴿١٠﴾ |
| آرام والا او ګرځولی ئے دی تاسو لره په هغے کښ لارے دے دپاره چه تاسو مقصد ته |
| وَالَّذِي نَزَّلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً بِقَدَرٍ فَأَنشَرۡنَا |
| اُورسیږئ۔ او هغه ذات دے چه راورولے ئے دی بره نه اُوبهٔ په اندازه، نو ژوندئ کړو |

بِهٖ بَلۡدَةً مَّیۡتًا ۚ كَذٰلِكَ تُخۡرَجُوۡنَ ﴿۱۱﴾ وَالَّذِیۡ خَلَقَ

پدے سره ښار مړ، دغسے به تاسو وېستلے شئ۔ او هغه ذات دے چه پیدا کړي ئے دي

الۡاَزۡوَاجَ كُلَّهَا وَجَعَلَ لَكُمۡ مِّنَ الۡفُلۡكِ وَالۡاَنۡعَامِ مَا

جوړئ تولے او ګرځولي ئے دي تاسو لره د کشتئ او چارپیانو نه هغه څه

تَرۡكَبُوۡنَ ﴿۱۲﴾ لِتَسۡتَوٗا عَلٰى ظُهُوۡرِهٖ ثُمَّ

چه تاسو پرے سورلي کوئ۔ دے دپاره چه برابر کینئ تاسو په شاګانو ددے باندے بیا

تَذۡكُرُوۡا نِعۡمَةَ رَبِّكُمۡ اِذَا اسۡتَوَیۡتُمۡ عَلَیۡهِ وَتَقُوۡلُوۡا سُبۡحٰنَ

رایاد کړئ نعمت د رب خپل کله چه برابر کینئ په هغے باندے او اُووایئ پاکي ده

الَّذِیۡ سَخَّرَ لَنَا هٰذَا وَمَا كُنَّا لَهٗ

هغه ذات لره چه تابع کړي ئے دي مونږ دپاره دا څیزونه او نۀ یو مونږ دے لره

مُقۡرِنِیۡنَ ﴿۱۳﴾ وَاِنَّاۤ اِلٰى رَبِّنَا لَمُنۡقَلِبُوۡنَ ﴿۱۴﴾

راتېنګونکي۔ او یقیناً مونږ خپل رب ته خامخا ورګرځېدونکي یو۔

**تفسیر**: ددے خاي نه تر رکوع پورے عقلي دلیلونه راوړي،

۱- یو غرض پکښ عَظۡمَةُ الرَّبِّ لِاِثۡبَاتِ عَظۡمَةِ الرَّسُوۡلِ دے۔ یعني د الله عظمت بیانیږي دے دپاره چه د رسول الله ﷺ عظمت او لوی شان بیان کړي۔ یعني داسے عظیم صفتونو والا رب دا کامل رسول رالیږلے دے نو ددۀ پورے استهزاء کول هلاکت دے۔

۲- دویم غرض: اِظۡهَارُ الۡقُدۡرَةِ عَلٰی هَلَاكِهِمۡ۔ الله قادر دے چه دوی هلاك کړي۔ لکه مشرکان هم د هغۀ د قدرت اقرار کوي۔

۳- ذِکۡرُ النِّعَمِ لِدَفۡعِ الۡاِسۡتِهۡزَاءِ۔ الله په تاسو مُنۡعِم دے، قسماقسم نعمتونه ئے درکړیدي، نو آیا ددے نعمتونو باوجود به تاسو د هغۀ د رسولانو پورے توقے کوئ۔ د نعمت په مقابله کښ خو خبره منل پکار دي، نۀ توقے کول۔

٤- او پدے باندے تفریع د رد د شرك هم کوي چه هر کله الله تعالیٰ داسے ښکلے صفات لري، نو بیا د هغۀ سره ولے شریکان جوړوئ۔

٥- دارنګه پدې کښې د مکې مشرکانو ته د توحید دعوت دوباره ورکړې کیږي، او ونیلې کیږي چه اې زما نبي! که چرې ته دوئ نه پوښتنه وکړې چه آسمانونه او زمکه چا پیدا کړې دي نو په غیر د څهٔ شك او ایسارېدو نه به همدا جواب درکوي چه دا هغه یو ذات پیدا کړي کوم چه لوئې مقام او عزت والا دې چه د هغهٔ علم هر یو شئ لره راګیرونکې دې. او د دوئ دا اقرار د دوئ جرم نور هم زیاتوي، او دوئ د سخت ترینې سزا حقدار جوړوي چه ددې اقرار باوجود د هغهٔ نه سوئ د نورو عبادت کوي، بلکه د کاڼو نه د جوړو بتانو عبادت کوي کوم چه د غوږ او سترګې نه خالي او د نفع او ضرر هیڅ اختیار نهٔ لري.

الَّذِیْ: دې ته ادخال اِلٰهي وائي. یعني د مشرکانو د جواب په مینځ کښې الله خپله خبره د زیاتې تشریح دپاره ورداخله کړه، او مشرکان هم ددې نه انکار نکوي. چه اې خلقو! ددې پوهه او عزتمن ذات یو صفت دا هم دې چه هغهٔ زمکه تاسو له د ماشوم د ځانګو پشان هواره او آرام ده جوړه کړې چه په دې باندې تاسو ځئ، اوده کیږئ، او د خپلې زندګئ تمام ضروریات پوره کوئ، او هغهٔ تاسو له په زمکه باندې د غرونو او میدانونو ترمینځ لارې جوړې کړي، دې دپاره چه تاسو په دې باندې لاړ شئ او د یو ځی نه بل ځی ته منتقل شئ، او د خپل معیشت (ژوند تیرولو) لپاره تجارتي کارو بارونه اُوکړئ.

خَلَقَهُنَّ: دلته ئې په جواب کښې خَلَقَهُنَّ د تاکید د اقرار دپاره ذکر کړیدې.

او د هغهٔ صفت دا هم دې چه هغه د آسمان نه د خپل حکمت او مصلحت د تقاضې مطابق په مناسب مقدار کښې باران نازلوي چه دې سره مړو ښارونو له ژوند ورکوي.

مَهْدًا: یعني د ځانګو په شان آرام والا. لکه څنګه چه د مور غیږه او ځانګو د بچي د آرام ځاي وي نو دغه شان زمکه کښې د اُوسیدو دپاره بیشماره نعمتونه او د آرام اسباب او سامانونه شته.

بِقَدَرٍ: کوم باران چه د اندازې نه زیات شي نو هغه عذاب جوړ شي لکه د نوح ﷺ طوفان.

کَذٰلِكَ تُخْرَجُوْنَ: پدې کښې اشاره ده چه دا دلیلونه لکه څرنګ چه د الله تعالیٰ توحید ثابتوي نو دغه شان د بعث بعد الموت اثبات هم کوي. او پدې کښې د دنیا د نعمتونو ذکر کولو نه روستو آخرت طرفته متوجه کول مقصد وي دې دپاره چه بنده د دنیا د نعمتونو په وجه د آخرت نه غافل نشي.

خَلَقَ الۡاَزۡوَاجَ: ددے نه مراد د هر شی جوړه ده چه ډیر عموم پکښې دے، حیواناتو او نباتاتو او اوصافو او اطرافو او زمانیاتو او مکاناتو ټولو ته شامل دے مذکر او مؤنث، خوږ تریخ، سپین تور، بره خکته، خے طرف کس طرف، آسمان زمکه، ماضی او مستقبل، اوړے او ژمے، سپرلے او خزان، شپه او ورځ، رنړا او تیاره، جنت او دوزخ، خیر او شر، فقر او غنیٰ، ایمان او کفر وغیره۔

زوج په اصل کښې هغه شے دے چه د بل سره په یوه وجه سره مناسبت لري، او د هغه سره یو ځای ذکر کیږي دپاره د تکمیل نو ددے وجه نه الله تعالیٰ د زوجیت نه مُنَزَّه دے۔

مِّنَ الۡفُلۡكِ وَالۡاَنۡعَامِ: مِنۡ بعضیه دے ځکه چه بعضے کشتئ او ځاروی د سورلئ دپاره لائق نه وي۔ یا د روستو دپاره مِنۡ بیانیه دے۔

لِتَسۡتَوٗا: په عربی ژبه کښې چه د اِستواء په صله کښې کله علیٰ کلمه راشی نو برابریدو او برابر کیناستو ته وئیلے شي۔

عَلٰى ظُهُوۡرِهٖ: ضمیر (مَا تَرۡكَبُوۡنَ) ته راجع دے چه هغه عبارت دے د اَنعام او فلك نه۔

ثُمَّ تَذۡكُرُوۡا: دے کښې هر عقلمند او مومن دپاره دا سبق پروت دے چه کله بنده په سورلئ یا ګاړی باندے کینی نو سمدست الله او د هغه نعمت ډیے رایاد کړي۔ په زړهٔ کښې به هم رایاد کړي چه زهٔ خو مره ضعیف انسان یم، او الله تعالیٰ ما ته دا نعمتونه راکړل او ما ته ئے دا حیوانات او جهازونه او ګاړی تابع کړل۔ او په خوله باندے به د الله ذکر داسے وکړي چه کله په سورلئ سوریږی نو بسم الله به ووائی او چه کله برابر کینی نو یو کرت به الحمد لله ووائی، بیا به (سُبۡحَانَ الَّذِىۡ سَخَّرَ لَنَا) نه تر ﴿مُنۡقَلِبُوۡنَ﴾ پورے ووائی، بیا به درے کرته الحمد لله او درے کرته الله اکبر ووائی۔ بیا به "سُبۡحَانَكَ اِنِّىۡ ظَلَمۡتُ نَفۡسِىۡ فَاغۡفِرۡ لِىۡ فَاِنَّهٗ لَا یَغۡفِرُ الذُّنُوۡبَ اِلَّا اَنۡتَ" ووائی۔ (ترمذی: ٣٤٤٦، وابوداود: ٢٦٠٤، باسناد صحیح)

مُقۡرِنِیۡنَ: راتینګونکی۔ / رابندونکی/ قابو کونکی۔/ طاقت لرونکی۔ که سورلی الله اُلټه کړي نو څوك به ئے راتینګه کړي۔ په سَخَّرَ لَنَا کښې د الله عظمت ته اشاره ده، او په (وَمَا كُنَّا لَهٗ) کښې د انسان عجز ته۔ بیا کله چه انسان په سورلئ کیني خاصکر چه کله قیمتی ګاړے وي نو زړه کښې ئے تکبر پیدا شي نو زر به ووائی وَاِنَّـا اِلٰى رَبِّنَا لَمُنۡقَلِبُوۡنَ ۔ مونږ خپل رب ته واپس کیدونکی یو، دا هر څه به الله ته پاتے وي، نو د آخرت ورځ به رایاده کړي، چه اُوس خو زه په سورلئ باندے سوریم، او یو طرفته روان یم، نو دغه شان به یو وخت د خلقو په اُوګو باندے سوریم او مقبرے طرف ته به روان یم۔

وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ: كښې توحيد ته هم اشاره ده چه دا دعا به رسول الله ﷺ او هر بزرگ او ولي كوله چه مونږ دا حيوانات نشو راتينګولے، نو دوی هم عاجز مخلوق وو، نو پس د مرګ نه به د چا څۀ حاجتونه پوره كړي.

| |
|---|
| وَجَعَلُوا لَهُ مِنْ عِبَادِهِ جُزْءًا ؕ إِنَّ الْإِنسَانَ لَكَفُورٌ |
| او كړځولي دي دوی الله لره د بندګانو د هغه نه ټكړے، يقيناً انسان خامخا كافر |
| مُّبِينٌ ﴿١٥﴾ أَمِ اتَّخَذَ مِمَّا يَخْلُقُ بَنَاتٍ وَأَصْفَاكُم |
| ښكاره دے۔ آيا نيولي دي الله تعالىٰ د هغے نه چه پيدا كړے ئے دي لونړه او غوره كړي |
| بِالْبَنِينَ ﴿١٦﴾ وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم بِمَا |
| ئے يئ تاسو په ځامنو۔ او كله چه زيرے وركړے شي يو تن د دوی ته په هغه څه |
| ضَرَبَ لِلرَّحْمَٰنِ مَثَلًا ظَلَّ وَجْهُهُ مُسْوَدًّا وَهُوَ |
| چه بيانوی ئے دپارهِ د رحمٰن ذات په مثال كښې (نو) اوګرځي مخ د هغۀ تك تور او دے |
| كَظِيمٌ ﴿١٧﴾ أَوَمَن يُنَشَّأُ |
| د غم نه ډك وی۔ آيا (دوی نسبت كوی الله ته) هغه څوك چه پاللے شي (پالنه ئے |
| فِي الْحِلْيَةِ وَهُوَ فِي الْخِصَامِ غَيْرُ مُبِينٍ ﴿١٨﴾ |
| كيديشي) په ګاڼه كښې او هغه په جګړه كښې وضاحت نشي كولے۔ |

**تفسير** : ربط : مخكښې د الله نعمتونه ذكر شو نو اُوس فرمائي چه دغه نعمتونه مشركانو ته الله وركړيدي او دوی ورله شريكان او برخه داران جوړوی دا څومره لوی ظلم كوی۔

پدے آيت كښې د مكے مشركانو ته د هغوی په شرك باندے زورنه وركړے كيږی چه دا هغه نا اهله خلق دي چه د الله دپاره ئے د هغه ځيني بندګان د هغه برخه جوړه كړيده لكه مشركانو وئيلي وو چه ملائك د الله لونړه دي، (لكه لور د پلار جزء وی)، يهودو عزير ته او نصاراؤ عيسىٰ عليه السلام ته د الله د بچي نسبت كړے وو، زمونږ د امت نا اهله خلق وائي: احمد د اَحد نه جدا نۀ دے۔ او يو منكرت دروغجن حديث ئے جوړ كړيدے: [اَنَا عَرَبٌ بِلَا

عَيْنٍ وَالْحَمْدُ بِلَا مِيْمٍ] ـ يعنى زۀ رب اَحَد يم. دا کافرانه عقيده ده۔ دے نه لوئے کفر او دروغ بل څۀ کيدے شي۔ دویٔ ته څۀ پته اولګيده چه ملائک د الله لونړه دی، او الله سره هغه د عبادت مستحق دی۔

حقيقت دادے چه ددے نه لويه ناشکري کومه کيدے شي چه يو طرفته خو اقرار کوی چه همدغه يو ذات د زمکے او آسمان خالق دے، د هغۀ څۀ مثال نشته، او بيا هغۀ له جسم او اولاد ثابتوی، او وائی چه د هغۀ دغه اولاد د هغۀ سره يو شان او مشابه دی۔ او پدے آيت کښې په مشبهۀ باندے هم رد دے چه الله دپاره داسے اجزاء وائی لکه څنګه چه د انسان دپاره دی۔ البته دا خبره ذهن کينول ضروری دی چه کوم صفتونه الله تعالیٰ خپل ځان دپاره يا د هغه رسونٔ د هغه دپاره ثابت کړيدی نو هغه به بغير د تشبيه نه د الله دپاره منلے شي۔ په هغے کښې تاويلات کول د سلفو صالحينو نه خلاف عقيده ده۔

او دا آيت متعلق دے د (وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ) سره، يعنى هرکله چه دا منی چه الله تعالیٰ خالق او قادر دے نو بيا د هغه اولاد او شريکانو ته څۀ حاجت دے چه مشرکان عقيده ساتی چه فلانے بزرګ د الله تعالیٰ نازولے او د برخے خاوند دے۔ او اولاد هم يوه تکړه وی، او شريك هم يو قسم تکړه وی ددے وجه نه قتاده رحمه الله نه نقل دی چه جزء هر معبود من دون الله ته شامل دے، او اکثرو مفسرينو دلته بنات (لونړه) مراد کړيدی۔

اَمِ اتَّخَذَ: دا تشريح ده د مخکښې ﴿وَجَعَلُوْا لَهٗ مِنْ عِبَادِهٖ جُزْءًا﴾ دپاره۔ په عربو کښې بنو المليح يوه قبيله وه چه د هغوی خصوصی طور سره دا عقيده وه چه ملائک د الله لونړه دی، او دا د مکے د مشرکانو هم عقيده وه نو الله په دوی باندے رد کوی چه دا خبره د عقل او عرف دواړو نه ډيره عجيبه ده چه هغه الله چه په اولادو ورکولو قادر دے هغه ډے تاسو ته خامن درکوی، او خپل ځان له ډے ئے لونړه نيولی وی چه کمزورے مخلوق دے۔

او بيا تاسو د دغه مخلوق عبادت هم کویٔ، نو عظيم ذات ته د داسے کمزوری بنده ګانو نسبت څنګه کویٔ۔ بيا پدے کښې د زنانو بدی بيانول مقصود نۀ دی بلکه الله چه زنانه پدے طريقه د ضُعف پيدا کړيدے په همدے کښې حکمت دے ځکه چه که زنانه ته الله تعالیٰ مِنْ كُلِّ الْوُجُوْه کمال ورکړے وے، نو بيا به هغه په سړی باندے حاکمه وے، او سړے به ترے خکته وے، نو بيا به نظام نۀ چليدے، نو هغه په خدمتونو او زينتونو باندے مکلفه ده او په هغے کښې بيا نورے فائدے او احکام دی۔

وَإِذَا بُشِّرَ: پدے کښې په بله طريقه باندے رد او رټنه ده چه هغه مخلوق چه تاسو ئے

طبعاً د ځانونو دپاره بد ګنړئ نو د هغې نسبت الله تعالىٰ ته څنګه کوئ، دا خو د الله تعالىٰ ډيره بے عزتي ده چه هغه ته کمزورے او ستاسو په نظر کښې سپك مخلوق منسوب کوئ. دا د دوی د الله تعالىٰ د شان د بے نيازئ په خلاف انتهائی زړه ورتيا ده.

مَثَلاً: د مثل نه مراد صفت دے يعنی د الله دپاره ئے بيانوی په صفت کښې چه هغه لور کيدل دی، يا مثل په معنیٰ د مشابه دے څکه چه ولد د والد مشابه وی.

ظَلَّ: دا د ورځے دپاره استعماليږی، يعنی توله ورځ دده مخ تور وی، او تخصيص د ورځے ئے پدے وجه وکړو چه د شپے خو تور رنګ نهٔ ښکاره کيږی.

كَظِيمٌ: يعنی د غم او غصے نه ډك وی چه ددے په وجه ئے د خولے نه خبرے هم نهٔ راوځی.

اَوَمَنْ يُّنَشَّأُ: دا په بله طريقه رد دے چه د زنانو جنس ضعيف دے په نسبت د نارينه ؤ نو دوی څرنګ د ضعيف جنس نسبت عليم او قدير ذات ته کوی، او د زنانو ضعف په دوه طريقو سره دے، يو دا چه په زنانو کښې پيدائشی نيمګړتيا موجوده ده چه د هغے پوره والے په ډول او ګاڼړه او سينګار سره کيږی، زنانه بغير د کالو او زينت نه بے ډوله ښکاره کيږی، او د نارينه زينت کالو ته محتاج نهٔ دے. او دويم دا چه زنانه د عقل د کم والی او د رائے د ضعف په وجه په خپل زړه کښې پرته خبره په پوره طور سره نشی ادا کولے. دارنګه د حياء د وجه نه خپل مقصد او دليل په وخت د مقابله او جګړه کښې پوره نشی ښکاره کولے. قتاده رحمه الله فرمائی: زنانه ډير کرته د خپل ځان دپاره دليل وائی نو هغه دليل د خپل ځان په خلاف باندے ووائی.

اَوَمَنْ: تقدير د عبارت داسے دے: اَىْ يَجْعَلُوْنَ لِلّٰهِ مَنْ يُّنَشَّأُ فِي الْحِلْيَةِ. (آيا دوئ ګرځوی الله لره هغه څوك چه د هغے پرورش کيدے شی په ګاڼړه کښې).

**فوائد:** ١ – نُشْأَة او نُشُوْء تربيت او پالنه او پرورش ته وئيلے شی.

٢ – اَوَمَنْ يُّنَشَّأُ: نه معلومه شوه چه په زنانه باندے خپل خاوند ته ډول کول واجب دی. دا د خاوند حق دے، ډيرے ښځے ددے په باره کښې نافرمانی کوی.

٣ – سرِی دپاره دا قسم ډولونه ناروا دی چه لاسونه او خپے او شونډے سرے کړی، بنګړی او والئ واچوی، البته سترګے توره ولے شی څکه چه دا علاج او دوائی ده. رسول الله ﷺ يو تن د کلی نه شړلے وو پدے وجه چه هغهٔ لاسونه سرهٔ کړی وو. بعض سړی غاړے ته اميلونه اچوی، دا هم غلطه ده.

٤ - زنانه دپاره حِلیه (گانړه د سرو او سپینو) اغوستل جائز دی، بعض علماء لکه شیخ البانی رحمه الله وئیلی دی چه زنانه دپاره سرهٔ زر استعمالول حرام دی، دا د هغوی صحیح قول نهٔ دے، او پدے باندے اته دلیلونه موجود دی۔
او دا زمونږ عدل دے چه دیو عالِم نه فائده هم اخلو لیکن د هغهٔ کمزورے خبرے د دلیل په وجه پریدو، سَره د اکرام او احترام د هغهٔ نه۔ د هیچا تقلید نهٔ کوو، بلکه د حق تابعداری کوو که د هر چا سره وی، او همدا حق پرستی ده۔

| |
|---|
| وَجَعَلُوا الْمَلَائِكَةَ الَّذِينَ هُمْ عِبَادُ الرَّحْمَٰنِ إِنَاثًا |
| او دوی گرځولی دی ملائک هغه چه هغوی بندگان د رحمٰن دی زنانه، |
| أَشَهِدُوا خَلْقَهُمْ سَتُكْتَبُ شَهَادَتُهُمْ |
| آیا دوی حاضر شویدی پیدائش د هغوی ته، زردے چه ویه لیکلے شي بیان د دوی |
| وَيُسْأَلُونَ ﴿١٩﴾ وَقَالُوا لَوْ شَاءَ الرَّحْمَٰنُ مَا عَبَدْنَاهُمْ |
| او د دوی نه به تپوس وکړے شي۔ او وائی دوی که چرته غوختلے رحمٰن عبادت به نهٔ |
| مَّا لَهُمْ بِذَٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ إِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ﴿٢٠﴾ |
| وے کړے مونږ د دوی، نشته دوی لره پدے باندے هیڅ علم، نهٔ دی دوی مگر په اټکل |
| أَمْ آتَيْنَاهُمْ كِتَابًا مِّنْ قَبْلِهِ فَهُمْ بِهِ |
| خبرے کوی۔ آیا ورکړیدے مونږ دوی ته کتاب مخکښې ددے نه نو دوی په هغے باندے |
| مُسْتَمْسِكُونَ ﴿٢١﴾ بَلْ قَالُوا إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا |
| دلیل نیونکی دی۔ بلکه وائی دوی یقیناً مونږ موندلی دی پلاران خپل |
| عَلَىٰ أُمَّةٍ وَإِنَّا عَلَىٰ آثَارِهِمْ مُّهْتَدُونَ ﴿٢٢﴾ |
| په یوه طریقه باندے او یقیناً مونږ په قدمونو د دوی باندے لاره موندونکی یو۔ |

**تفسیر**: په مخکښې آیت کښې پدے خبره رتنه وه چه دوی ملائکو ته د الله لونړه وائی او دلته پدے خبره رتنه بیانیږی چه دوی ملائکو ته مؤنث (زنانه) وائی۔ یعنی کوم ملائك چه شپه او ورځ د خپل خالق او مالك په تسبیح کښې لگیا وی، دوئ هغوئ ته د

خپلې انتهائي درجې جهالت او ناپوهۍ د وجې نه بنځې وائي. آيا کله چه ما دوى پيدا کول دغه وخت دوئ حاضر وو؟، او دوئ ته پته اولګيده چه الله دا مؤنث پيدا کړى دى، او دوئ کښې د زنانه صفتونه دى. نو الله فرمائي چه زر دے چه د دوئ دا غلط بيان به وليکلے شي، او د قيامت په ورځ به ددے په باره کښې د دوئ نه تپوس کيږي، او وئيلے کيږي به چه د خپلے دعوے په رشتين والى باندے دليل پيش کړئ، ليکن دوئ به عاجزه پاتے شي، او بيا به دوئ د ذلت او رسوائي سره مخامخ شي.

وَجَعَلُوا: دلته جعل په معنىٰ د حکم او تسميه (نوم ورکولو) سره دے.

مفسرين ليکى دلته دوئ درے کفرونه راجمع کړل، يو دا چه الله ته ئے د اولادو نسبت وکړو، دويم هغهٔ ته ئے د دواړو اولادو نه کمزورے منسوب کړو، او دريم دا چه عزتمند ملائکو ته ئے مؤنث ووئيل نو د هغوى سپکاوے ئے وکړو.

إِنَاثًا: ملائکو ته زنانه الفاظ استعمالول صحيح نهٔ دى.

أَشَهِدُوا خَلۡقَهُمۡ: يعنى نارينه، زنانه صفت خو په ليدلو سره معلوميږي، نو دوى خو ملائك نهٔ دى ليدلى. نو د ملائکو په باره کښې صحيح عقيده دا ده چه دوى ته به مذکر هم نشي وئيلے، او مؤنث هم نشي بلکه دوى ته به عباد الرحمن (د الله بندګان) وئيلے شي، اګرکه په قرآن او په حديث کښې د مذکر الفاظ ورله ذکر کيږي، او ضميرونه د مذکر ورته راجع کيږي. نو دا هم په اعتبار د عباد الرحمٰن سره.

شَهَادَتُهُمۡ: د شهادت نه مراد دروغجن بيان دے. د کافرانو او مجرمانو هميشه دپاره دغه شان وهمى او غلط بيان وى چه "داسے وئيلے شويدى" او "خلك داسے وائى"، او مونږ د فلانى پسے روان يو او هغه کيدے شي په يو دليل پسے روان وى، تول د "کيدے شى" دين پسے روان دى.

صاحب د فتح البيان د سليمان الجمل نه نقل کړيدى (او خطيب شربينىؒ هم وئيلى دى) چه دا دليل دے چه بے دليله قول (وينا) کول منکر (ناروا) کار دے، او تقليد کول حرام دى چه سبب د ډيرے بدئ دے.

وَقَالُوا: اُوس د مشرکانو په غلط دليل باندے رټنه او رد کيږي. د مشرکانو په دے قبيح کار باندے چه کله رد اوکړے شي او دوئ نه پوښتنه اوکړے شي چه آخر د کوم دليل په بنياد باندے تاسو د ملائکو او بتانو عبادت کوئ؟ نو دوئ وائي چه الله ته بنه پته ده چه مونږ د دوئ عبادت کوو، که چرے زمونږ ددے عمل نه هغه راضى نهٔ وے، نو مونږ به ئے

د خپل قدرت په ذریعه ددې نه په زوره منع کړی وې. لکه داسې دلیل په سورة الانعام (١٤٨) آیت او سورة النحل (٣٥) آیت کښې تفصیلاً ذکر شویدې. چه الله د کوم شی اراده وکړی نو هغه پرې رضا وی، که رضا نهٔ وې نو مونږ له به ئې سزا راکړې وې، هرکله چه سزا نهٔ راکوی دا دلیل دې چه الله زمونږ نه پدې شرکونو رضا دې.

نو دا د دوی دهوکه وه، هره اراده او مشیت دلیل د رضا نهٔ وی. الله تعالیٰ د دویٔ رد وکړو چه دویٔ ته څنګه معلومه شوه چه الله د دویٔ ددې کار نه راضی دې، دا خالص د دویٔ بې دلیله او بې بنیاده خبرې دی، چه ددې تائید نهٔ کوم آسمانی کتاب سره کیږی، او نهٔ د یو رالیږلې شوی نبی د قول په ذریعه. دې وجې نه په روستو (٢١) آیت کښې الله وفرمایل چه آیا مونږ ددې نه مخکښې دویٔ له څهٔ کتاب ورکړې دې چه د هغې په وجه د دویٔ ددې مشرکانه خبرو تائید کیږی ؟.

پدې آیت کښې د مشرکانو ځلورمه او پنځمه کفری عقیده ذکر ده چه دوی د ملائکو عبادت کوی او د الله سره شرك کوی. او بیا ددې نسبت د الله تعالیٰ مشیت ته کوی چه الله پدې باندې راضی دې. کار غلط کوی او وائی چه مونږ خو ډیر ښه کار کوو.

**لَوْ شَاءَ الرَّحْمٰنُ** : یعنی که غوښتې هغه الله چه ستاسو په ګمان رحمٰن دې، او تاسو ورته رحمن وایئ، (ځکه چه مشرکانو د الله دپاره رحمٰن نوم نهٔ ثابتولو)

**مَّا لَهُم بِذٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ** : یعنی نشته دوی لره د الله په اراده او رضا باندې څهٔ علم. په کوم ځای کښې دوی الله تعالیٰ لیدلې دې چه هغه د دوی په کار راضی دې، یا ئې ورته آواز کړیدې.

**إِلَّا يَخْرُصُونَ** : خرص اټکل ته وئیلې شی، دلته ئې خرص ذکر کړو او روستو سورة الجاثیه (٢٤) آیت کښې (يَظُنُّونَ) ځکه چه دلته سو چه دروغ ذکر وو، نو ددې سره خرص (اټکل) لفظ مناسب دې، او هلته رشتیا ذکر وو چه د دروغو سره مخلوط وو، نو ظن لفظ ورسره مناسب وو. ځکه چه هلته د دهریه ؤ خبره ذکر ده چه مونږ زمانه وژنی نو دا خبره په ظاهره کښې رشتیا وه ځکه چه په ظاهره کښې انسانان په زمانه کښې مری. لیکن په حقیقت کښې دروغ وه. (فتح البیان)

**أَمْ آتَيْنَاهُمْ** : اُوس په دوی باندې الله تعالیٰ بل رد کوی چه د الله تعالیٰ رضا خو پدې طریقه معلومیږی چه الله تعالیٰ په یو کتاب کښې لیکلې وې، او دوی ته ئې ورکړې وې چه زهٔ پدې فلانی کار باندې راضی یم، او په هغې باندې ئې امر کړې وی چه دا شرکونه کوئ، نو مطلب ددې دلیل دا دې چه الله تعالیٰ په کوم شی باندې امر کړې وی په هغې

راضي وي، او په کوم شي ئې چه امر نهٔ وي کړے نو د هغے سره رضا لازم نهٔ ده۔ او هر کار د الله په اراده کیږي مګر د بعضو کارونو سره ئې رضا شته، او د بعضو سره نشته۔ بلکه په قرآن کښې خو د شرك رد شویدے۔ نو دلته اَمۡ د (اَشَهِدُوۡا) معادل واقع شویدے۔ یعنی آیا دوي حاضر شویدي یا دوي ته ما کتاب ورکړیدے؟۔ دا هیڅ خبره نشته۔

مِّنۡ قَبۡلِهٖ: ۱- یعني مخکښې ددے قرآن نه۔ ۲- یا مخکښې د دعوے د دوي نه۔

د آیتـنـا نـه مـعـلـومـه شـوه چه دلیل به هغه کتاب وي چه د طرف د الله تعالیٰ نه وي۔ یعني وحي جلي یا وحي خفي وي۔

بَلۡ قَالُوۡا: د بَـلۡ مـعـنـیٰ دا ده چه دلیل او کتاب نشته بلکه د خپلو پلارانو او مشرانو د تـقـلـیـد پسے روان دي چه دے تقلید دوي د هلاکت کندے ته وغورزول۔ او پدے کښې بله رتنه او رد دے په دویم دلیل د مشرکانو چه هغه خالص تقلید د پلارانو دے۔

عَلٰۤی اُمَّةٍ: د اُمت نـه مـراد دلتـه طـریـقـه او دین دے او دا د اَمّ نه دے په معنیٰ د قصد او ارادے سره، او د دین او طریقے (لارے) هم خلق اراده کوي او په هغے روان وي۔

مُّهۡتَدُوۡنَ: مـطـلـب دا چه زمونږ پلار نیکه په یوه لاره تلي وو او هغه لاره د هدایت والا وه، نـو مونږ چه د هغوي پسے روان یو، نو مونږ هم په هدایت روان یو۔ یعنی پدے تقلید کښې نهٔ مونږ خطاء شوي یو، او نهٔ زمونږ مشران غلط شویدي۔

| وَكَذٰلِكَ مَاۤ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِكَ فِیۡ قَرۡیَةٍ مِّنۡ نَّذِیۡرٍ اِلَّا |
| --- |
| او دارنګه نهٔ دے لیږلے مونږ مخکښې ستا نه په یو کلي کښې هیڅ یره ورکونکے مګر |
| قَالَ مُتۡرَفُوۡهَاۤ اِنَّا وَجَدۡنَاۤ اٰبَآءَنَا عَلٰۤی اُمَّةٍ |
| وئیلي دي مستانو د هغے یقیناً مونږ موندلي دي پلاران خپل په یوه طریقه |
| وَّاِنَّا عَلٰۤی اٰثٰرِهِمۡ مُّقۡتَدُوۡنَ ﴿۲۳﴾ قٰلَ |
| او یقیناً مونږ به په قدمونو د هغوي باندے اقتداء کونکي یو۔ ویه وئیل پیغمبر |
| اَوَلَوۡ جِئۡتُكُمۡ بِاَهۡدٰی مِمَّا وَجَدۡتُّمۡ |
| آیا اګرکه زهٔ راغلے یم تاسو ته په ډیر هدایت د هغے نه چه موندلي دي تاسو |
| عَلَیۡهِ اٰبَآءَكُمۡ قَالُوۡۤا اِنَّا بِمَاۤ اُرۡسِلۡتُمۡ |
| په هغے باندے پلاران خپل، دوي به اُووئیل یقیناً مونږ په هغه شي چه رالیږلے شوي |

| بِهٖ كَافِرُوْنَ ﴿٢٤﴾ فَانْتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَانْظُرْ |
|---|
| یئ تاسو په هغې باندې کفر کوونکي یو۔ نو بدله واخسته مونږ د دوی نه نو اُوګوره |
| كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ ﴿٢٥﴾ |
| چه څنګه شو انجام د تکذیب کوونکو۔ |

**تفسیر**: اُوس الله فرمائی چه د قریشو کافرانو دا څۀ نوے خبره نۀ ده کړے، بلکه د هر دور کافرانو په خپل کفر او شرك باندے د ټینګ پاتے کیدو همدا سبب بیان کړے، یعنی د پلار نیکۀ روند تقلید کول ګمراهی ده، چه په دے کښې د هرے زمانے کافران مبتلا دی۔ دے وجے نه اے زما نبی! تۀ د قریشو په کفر او شرك باندے زړۀ مۀ تنګوه۔ کرخیؒ لیکی چه په (۲۳) آیت کښې د پلار نیکۀ په تقلید باندے د ټینګ پاتے کیدو قول، ناز او نعمت والو طرفته ددے خبرے د وضاحت کولو دپاره منسوب شوے دے چه همدے ناز او نعمت دویٔ د غور او فکر کولو په ځائے د تقلید په لاره باندے اچولی دی۔

امام رازیؒ په خپل تفسیر کښې لیکی: [لَوْ لَمْ يَكُنْ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ اِلَّا هٰذِهِ الْآيَاتُ لَكَفَتْ فِيْ اِبْطَالِ الْقَوْلِ بِالتَّقْلِيْدِ] که د الله په کتاب کښې ددے نه سوئ نور آیتونه د تقلید په رد کښې نۀ وے، نو همدا هم د تقلید د باطلولو دپاره کافی وو، ځکه چه دلته الله تعالیٰ بیان کړل چه کافرانو د خپل مذهب د ثابتولو دپاره نۀ څۀ عقلی دلیل پیش کړو، او نۀ نقلی بلکه صرف تقلید د مشرانو او الله تعالیٰ دا کار د دوی په بدیٔ کښې ذکر کړیدے، نو دا دلیل دے چه تقلید کول باطل کار دے۔

په اسلام کښې تقلید په هیڅ نشته، نۀ په عالِم شته او نۀ په امی، بلکه په ټولو باندے د قرآن او حدیث تابعداری لازم ده، عالمان به مسئله د قرآن او حدیث نه راخلی، او عوام خلك به د ژوندو علماؤ نه تپوس کوی، او هغوی به ورته آیت او حدیث ښائی نو یو هم پکښې مقلد نشو۔ تقلیدونه ټول وَهم دے۔

**مُتْرَفُوْهَا**: مُتْرَفُوْنَ لفظ ئے راوړو، پدے کښې اشاره ده چه مست او نعمتونو والا مالداره خلق د حق په طلب کښې د عقل او فکر کولو مشقت نۀ برداشت کوی، هغوی صرف د خپلو شهواتو پسے روان وی، نو پدے وجه په آسان کار پسے روان دی چه هغه تقلید دے۔ (الرازی) یعنی د تقلید دپاره سبب تَرَفُهٗ او سستی ده۔ تقلید خلق ولے کوی؟ ځکه چه

تحقیق نشی کولے، وائی چه اُوس به څه روایتونو پسے ګرځو، اول خو مسئله نشی پیدا کولے، بیا چه مسئله پیدا کړی، بیا به ورله دلیل پیدا کوی، بیا به د هغه دلیل صحیح او ضعیف والے معلوموے بیا به د هغے نه استدلال کوے او دا مشقت غواړی نو لنډ په تقلید باندے ورمنډه کړی چه بس هدایه او شامی بنه ده چه هغه راواخله او فتوئ ترے ورکوه۔ او داسے مفتی توب په یوه میاشت کښ حاصلیدے شی، او تحقیقی علم ته رسیدل ډیر ګران کار دے۔

**مُّقْتَدُوْنَ**: په اقتداء کښ معنیٰ د لزوم او دوام ده، او اقرار د خپلے ناپوهئ دے۔ د دوی قیاس داسے وو چه زمونږ پلارانو به شرک کولو او هغوی په هدایت وو، او مونږ د هغوی پسے روان یو، نو مونږ هم په هدایت یو۔ او همیشه د مقلدینو همدا خبرے وی چه ولے مشران ګنے نهٔ پو هیدل؟، ولے هغوی ګنے د جهنم لاره خوښوله؟، ولے قرآن او حدیث د هغوی مخے ته نهٔ وو؟۔ پدے خبرو سره د حق نه اوړی۔

**قَالَ اَوَلَوْ جِئْتُكُمْ**: قال : کښ ضمیر هر رسول ته راجع دے، او دا ئے په شکل د قُلْ سره لیکلے دے، پدے کښ اشاره ده چه اے رسوله! تهٔ هم خپل قوم ته داسے ووایه.

**اَوَلَوْ جِئْتُكُمْ** : اَیْ اَتَتَّبِعُوْنَ آبَاءَ کُمْ وَتُقَلِّدُوْنَهُمْ ؟ وَلَوْ جِئْتُكُمْ بِدِيْنٍ اَهْدٰى مِنْ دِيْنِ آبَائِكُمْ؟۔ یعنی آیا تاسو به د خپلو مشرانو اتباع او تقلید کوئ اګرکه ما تاسو ته ستاسو د پلارانو د دین نه ډیر هدایت والا دین راوړیدے؟۔ او تاسو خو په ګمراهئ روان یئ۔ دلته په (اَهْدٰی) تفضیل صیغه کښ د هغوی دین ته هم د هدایت نسبت شویدے د هغوی د ګمان مطابق، اګرکه په واقع کښ ګمراهی ده۔

یعنی بالفرض که ستاسو په لار کښ هدایت شته نو ما چه کوم څیز د الله د طرف نه راوړیدے هغه ډیر هدایت والا دے، نو که د دنیا په کارونو کښ تاسو ته معلومه شی چه زمونږ په طریقه کښ د مشرانو د طریقے په نسبت ډیره فائده وه، نو بیا خو تاسو د مشرانو طریقه پریدئ، نو د دین په باره کښ هم داسے وکړئ۔

**فَانْتَقَمْنَا**: فاء ئے راوړه، پدے کښ اشاره ده چه د دوئ هیڅ عذر او دلیل پاتے نشو سوئ د ضد او عناد نه، نو دا ئے د دنیا د عذاب سبب شو۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکی : د آیت په آخری برخه کښ الله تعالیٰ خبر ورکړو چه که د کافرانو یقین هم راشی چه د دوئ د زمانے د نبی دعوت صحیح دے، بیا هم د خپلے بد نیتئ او د حق او اهلِ حقو سره د دشمنئ او د تکبر په وجه دوئ ایمان نهٔ راوړی۔

| وَاِذۡ قَالَ اِبۡرَاهِیۡمُ لِاَبِیۡهِ وَقَوۡمِهٖۤ اِنَّنِیۡ بَرَآءٌ |
|---|
| او کله چه وویل ابراهیم (علیه السلام) پلار خپل ته او قوم خپل ته یقیناً زهٔ جدا یم |
| مِّمَّا تَعۡبُدُوۡنَ ﴿۲۶﴾ اِلَّا الَّذِیۡ فَطَرَنِیۡ |
| د هغې نه چه تاسو ئې بندګي کوئ. سوئ د هغه ذات نه چه پیدا کړې ئې یم زهٔ |
| فَاِنَّهٗ سَیَهۡدِیۡنِ ﴿۲۷﴾ وَجَعَلَهَا کَلِمَةًۢ بَاقِیَةً فِیۡ عَقِبِهٖ |
| نو یقیناً هغه به ما ته لاره ښائي. او وې ګرځوله دا کلمه باقي په اولاد د هغهٔ کښې |
| لَعَلَّهُمۡ یَرۡجِعُوۡنَ ﴿۲۸﴾ بَلۡ مَتَّعۡتُ هٰۤؤُلَآءِ |
| دې دپاره چه دوی اُوګرځي (د ګمراهۍ نه). بلکه ما فائدې ورکړیدی دې کسانو ته |
| وَاٰبَآءَهُمۡ حَتّٰی جَآءَهُمُ الۡحَقُّ وَرَسُوۡلٌ مُّبِیۡنٌ ﴿۲۹﴾ وَلَمَّا |
| او پلارانو د دوی ته تردې چه راغلو دوی ته حق او رسول ښکاره. او هرکله چه |
| جَآءَهُمُ الۡحَقُّ قَالُوۡا هٰذَا سِحۡرٌ وَّاِنَّا بِهٖ کٰفِرُوۡنَ ﴿۳۰﴾ |
| راغې دوی ته حق اُوئیل دوی دا جادو دې او یقیناً مونږ پدې باندې کفر کونکي یو. |

**تفسیر**: اُوس د ابراهیم (علیه السلام) واقعه راوړي (۱) یو غرض پکښې رد د شرك دې چه تاسو د ابراهیم (علیه السلام) د تابعدارۍ دعوه لرئ، او حال دا چه هغه خو د شرك نه برائت کړیدې او تاسو شرك کوئ. نو پدې کښې په مشرکانو رد دې په ذکر کولو د دلیل د ابراهیم (علیه السلام) سره چه دا ستاسو مشر دې او ستاسو مخالف دې. بیا په دوه طریقو نور رد دې

(۲) یو په (اِنَّا وَجَدۡنَآ اٰبَآءَنَا عَلٰۤی اُمَّةٍ) رد دې. یعنی ستاسو په پلارانو کښې خو ابراهیم (علیه السلام) هم دې نو هغه پسې ولې نهٔ ځئ،

(۳) او ددې برعکس دلیل دا چه پلار نیکه چه کله ګمراه وي نو د هغه پسې تلل نشته، اُوګوره ابراهیم (علیه السلام) د خپل پلار نیکه پسې نهٔ دې تللې بلکه د هغه په رد کښې ئې خبرې وکړې او د هغوی نه ئې برائت اعلان کړو.

**بَرَآءٌ**: حمل د بَرَآءٌ په یاء ضمیر باندې د مبالغې په طور دې لکه د زَیۡدٌ عَدۡلٌ په شان. یعنی زما برائت دومره زیات دې ګویا که زهٔ عین براءت یم. بیا براء لفظ د واحد، تثنیه

او جمع، مذکر او مؤنث تولو دپاره يو شان استعماليږي ځکه چه مصدر دے۔ او په تاويل سره پدے کښ (ذُوۡ بَرَاءٍ) وئيلے شي يعنی بيزاري والا يم۔

**اِلَّا الَّذِيۡ:** دا اِستثناء متصله ده ځکه چه دوی به د نورو معبودانو سره د الله تعالیٰ عبادت هم کاوهٔ، او دا به ئے وئيل چه خالق او رب زمونږ الله دے او نور معبودان زمونږ سفارشيان دی۔ يا اِلَّا صفتی دے په معنیٰ د غَيۡرُ سره۔

**سَيَهۡدِيۡنِ:** دلته هم مفسرينو اشکال کړيدے چه ولے ابراهيم عليه السلام ته هدايت ندے شوے چه هغه نور هدايت غواړي؟ نو دوه جوابونه کوی (۱) يُثَبِّتُنِیۡ عَلٰی اِعۡلَانِ الۡبَرَاءَةِ يعنی د برائت په اعلان به مے کلك او مضبوط کړي او پدے به استقامت راکړي، ځکه چه په سبب د اعلان د براء ت او په توحيد باندے ودريدو کښ ډير مصيبتونه راځي۔

(۲) هدايت په معنیٰ د وُصُوۡلَ اِلَی الۡجَنَّة سره دے، يعنی ما به جنت ته ورسوی۔ ليکن حقه دا ده چه بنده هر وخت هدايت ته محتاج دے، ځکه چه هدايت دے ته وائی چه د الله حکم په هره مسئله او موقعه کښ معلوم ول، او په هغے باندے د عمل توفيق ورکول، او دے ته هر وخت ضرورت دے۔

**وَجَعَلَهَا :** پدے کښ وضاحت دے چه دا کلمه په ابراهيم عليه السلام پورے خاص نهٔ ده، دے دپاره چه د مکے مشرکان ونهٔ وائی چه دا کلمه زمونږ دپاره نهٔ ده۔

يعنی ابراهيم عليه السلام دغه کلمه د برائت او کلمه د توحيد د خپلو بچو دپاره هم باقی پريخوده۔ هر بچے به د هغهٔ په شان د شرك نه برائت کوی، او په توحيد به کلك ودريږي۔ او دا گرځول پدے طريقه وو چه ابراهيم عليه السلام پدے کلمے سره خپلو بچو ته وصيت وکړو او د هغهٔ بچو به نورو بچو ته وصيت کولو، نو همدغسے دا سلسله روانه وه، نو موحدين خلك هميشه د هغهٔ په اولاد کښ موجود وو۔ په عربو کښ تر رسول الله صلی الله عليه وسلم زمانے پورے لږ لږ وو۔

**فِیۡ عَقِبِهٖ :** د عَقِب نه مراد نسل او اولاد دے چه ددے نه مراد بنی اسرائيل او بنی اسماعيل (عرب) دی۔

**لَعَلَّهُمۡ يَرۡجِعُوۡنَ :** يعنی الله تعالیٰ ولے دغه وصيت د توحيد د هغهٔ په بچو کښ راروان پريخودو؟ دا ددے دپاره چه نور مشرکان راواپس شي چه د ابراهيم عليه السلام اصل وصيت خو په توحيد دے، او مونږ چه په کومه لاره روان يو دا صحيح دين نهٔ دے، نو د هغوی دپاره به عبرت جوړ شي، ولے که د هغهٔ په اولادو کښ يو موحد هم نهٔ وے، نو بيا به د هغوی

صحیح دین ته د واپسئ هیڅ لاره نهٔ وي، او په هغوی به حجت قائم نهٔ وي.

بَلۡ مَتَّعۡتُ: اُوس پدې کښې د مشرکانو د شرک نه توحید ته د نهٔ راګرځیدو سبب بیانوي چه دوی ته د دنیا نعمتونه او فائدې او مزې ورکړې شویدي چه د هغې په وجه د حق او توحید نه انکار کوي، او رسول مبین نه مخ اړوي.

که ما دوی ته یوه څپیره ورکړې وې، نو دوی به راګرځیدلی وې نو دا د ﴿ اَفَاَمِنُوۡۤا اَنۡ تَاۡتِيَهُمۡ غَاشِيَةٌ مِّنۡ عَذَابِ اللّٰهِ﴾ (یوسف: ۱۰۷) په شان دې. نو مشرك د الله تعالیٰ د حِلم او صبر نه غلطه فائده اخستې ده، او په شرك باندې همیشه پاتې شوې دې.

او دلته مطلب دا دې چه د ابراهیم ﷺ په هر امت کښې تابعدار موحدین وو، او هرچه د مکې مشرکان وو نو هغوی ته ما مزې ورکړې وې نو پدې وجه توحید ته نهٔ راواپس کیدل تر د محمد رسول الله ﷺ راتللو پورې ورته الله تعالیٰ څه نهٔ وئیل دې دپاره چه دوی ته تنبیه ملاوه شي، او کله چه دوی ته ددې رسول په واسطه تنبیه ملاوه شي، او بیا هم خبره نهٔ مني، نو عذابونه به پرې راځي، او پدې کښې اشاره ده چه د رسول الله ﷺ د راتګ نه روستو دوی د دنیا نورې فائدې نشي اخستې بلکه هلاکیږي به ځکه چه په دوی باندې حجت قائم شو نو پدې وجه الله تعالیٰ دغه د کفر کتې لړه زمانه روستو تباه او هلاك کړل.

اُلۡحَقُّ: د حق نه مراد قرآن او رسول مبین نه مراد رسول الله ﷺ دې.

وَلَمَّا جَآءَهُمُ الۡحَقُّ: اُوس د مکې مشرکانو د قرآن کریم او د توحید نه انکار بیانیږي.

هٰذَا سِحۡرٌ: نو قرآن ته ئې جادو وویل او د هغې نه ئې انکار وکړو، او د رسول الله ﷺ سپکاوې ئې بیان کړو. ربط دا دې چه هرکله دوی د پلارانو او مشرانو په تقلید اعتماد وکړو، نو په دلیل کښې ئې فکر ونکړو، او د اُوږد مهلت په وجه په دهوکه کښې پریوتل او د دنیا نعمتونه ئې د خپل حقانیت نخه وګرزوله نو د حق نه ئې مخ واړولو.

| وَقَالُوۡا لَوۡلَا نُزِّلَ هٰذَا الۡقُرۡاٰنُ عَلٰی رَجُلٍ مِّنَ الۡقَرۡيَتَيۡنِ عَظِيۡمٍ ﴿۳۱﴾ |
|---|
| او وائي دوی ولې نشي نازلولې دا قرآن په یو سړي باندې د دواړو کلونه چه لوئي دې. |
| اَهُمۡ يَقۡسِمُوۡنَ رَحۡمَتَ رَبِّكَ نَحۡنُ قَسَمۡنَا بَيۡنَهُمۡ |
| آیا دوی تقسیموي رحمت د رب ستا، مونږ تقسیم کړیدې په مینځ د دوی کښې |

| مَّعِيشَتَهُمۡ فِي ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَاۚ وَرَفَعۡنَا بَعۡضَهُمۡ فَوۡقَ |
|---|
| سامان د ژوند د دوی په ژوند دنیوی کښې او پورته کړیدی مونږ بعض د دوی دپاسه |
| بَعۡضٖ دَرَجَٰتٖ لِّيَتَّخِذَ بَعۡضُهُم بَعۡضٗا سُخۡرِيّٗاۗ |
| د بعضو نه په درجو کښې دے دپاره چه اُونیسی بعض د دوی بعضو لره خدمتگاران |
| وَرَحۡمَتُ رَبِّكَ خَيۡرٞ مِّمَّا يَجۡمَعُونَ ﴿٣٢﴾ |
| او رحمت د رب ستا غوره دے د هغې نه چه دوی ئې جمع کوی۔ |

**تفسیر** : پدے کښې بل زجر دے او د انکار دویم سبب ذکر دے چه د دوئ په نیز د عظمت سبب مالداری ده، او نبوت ئې حق د مالدار کنړلو لکه چه دا عقیده د سرمایه دارو وی۔

قریش په غرور او تکبر کښې راغلل او وئیل به ئې چه د پیغمبرئ منصب د مکې د ولید بن مغیره یا د طائف عُروه بن مسعود ثقفی غونته سړی ته ملاویدل پکار وو چه دا د دنیوی مال او جاه مالك دے۔ او محمد (رسول الله ﷺ) خو یو یتیم او غریب سړے دے۔ دا هم د دوئ کور مغزی او انتهائی درجه ماده پرستی وه چه د رسالت غونته د لوی منصب حقدار ئې یو مالدار گنړلو، حالانکه دا خو د روحانیت هغه عظیم ترینه مرتبه ده چه ددے مستحق هغه انسان کیدے شی چه هغه د زړهٔ په صفائی، د نفس په پاکوالی، د اخلاقو او فضائلو او د قُدسی کمالاتو په اعلیٰ ترین مقام باندے کامیاب وی۔ او الله تعالیٰ دا ټول صفتونه په نبی کریم ﷺ کښې جمع کړی وو، دے وجې نه همدا د رسالت ددے عظیم منصب حقدار شو۔

دا خبره د دوی صحیح وه چه قرآن نازلیدل یو شریف منصب دے، په شریف سړی نازلیدل پکار دی، لیکن پدے خبره کښې خطاء وو چه شریف سړے ئې مالداره او دنیاوی منصب دار ته وئیلو، او محمد ﷺ په دغه حال نهٔ وو نو ځکه ترے دوی انکار وکړو۔ باطل پرست همیشه نیمه خبره صحیح کوی خو آخر ئې خرابوی۔

الله تعالیٰ ته د انسانانو احوال معلوم وو چه کوم شخص د نبوت لائق دے، نو هغه صرف محمد رسول الله ﷺ وو، ولید بن مغیره نا اهله وو، د ایمان توفیق هم ورته ملاؤ نشو، او عروه بن مسعود صرف د ایمان لائق وو نو ځکه ورته الله تعالیٰ د ایمان توفیق ورکړو، شام ته د وسلے چل زده کولو دپاره تلے وو دے دپاره چه د رسول الله ﷺ مقابله

وکړي خو کله چه په مدینه راتیریدو نو الله تعالیٰ ئې په زړهٔ کښې ایمان واچولو او په ایمان مشرف شو او بیا خپل قوم ته لاړو نو هغوی په حالت د اذان کښې شهید کړو۔
(دا د دوی هغه مشرو وو چه دوی به وئیل چه نبوت دهٔ ته ورکول پکار وو لیکن کله چه هغه صحیح عقیده او ایمان اختیار کړو نو بیا ئې په هغه باندې ایمان هم پیرزو نشو، لکه دا همیشه د باطل پرستو طریقه راروانه ده چه په باطل کښې یو تن د دوی مشر او دوست وی خو کله چه هغه حق پرست جوړ شي بیا ورته لیونے وائی او بدنامے پرے لګوی او د هغه د ختمولو کوشش کوی) افسوس په داسے عقلونو!!!۔
مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ: دلته عبارت کښې تقدیر دے۔ اَیْ مِنْ اِحْدَی الْقَرْیَتَیْنِ۔ خکه چه یو سړے په یو وخت کښې د دوه کلو نشي کیدے۔
اَهُمْ يَقْسِمُوْنَ: پدے کښې د دوئ په دے باطله نظریه باندے رد کوی چه دوئ به نبوت په خپل اختیار تقسیمولو، او د خپلے رائے موافق به ئې ګرځولو، لیکن کله چه د دوئ د رائے خلاف وشو، نو دوی انکار شروع کړو۔ بلکه نبوت خو د الله تعالیٰ رحمت دے او د رحمت تقسیم د الله تعالیٰ په واك او اختیار کښې دے، د هغهٔ خوښه ده چه چا له نبوت ورکوی، او چا له نهٔ۔ نبوت خو لا غټه خبره ده، الله فرمائی: مونږ د دنیا مالونه او فائدے تقسیم کړیدی چا له ډیرے او چا له کمے ورکوم، دا هم الله تعالیٰ مخلوق ته نهٔ دے سپارلے نو د نبوت واك به دوئ څنګه ولری؟!۔
مَّعِيْشَتَهُمْ: معیشت د دنیا مال او کاروکسب دے چه په هغے باندے د انسان ژوند روان وی۔
فَوْقَ بَعْضٍ: یعنی الله تعالیٰ د دوی ترمینځ جدا والے راوستے نو بعض ئې په دنیا کښې په بعضو باندے غوره کړیدی په رزق، مشرئ قوت، حریت (آزادئ)، عقل او علم کښې۔
لِّيَتَّخِذَ: د خبرے نه خبره پیدا شوه، اُوس ددے درجاتو پورته کولو، د انسانانو ترمینځ په معیشت کښې د فرق پیدا کولو وجه بیانوی۔ چه الله انسانان په مختلفو طبقو او درجو کښې ویشلی دی، څوك ئې مالدار جوړ کړے نو څوك ئې فقیر، او فقیر ئې مالدار دپاره تابع کړے، دے دپاره چه د هغهٔ خدمت اُوکړی او کومه مزدوری چه ملاؤ شي هغے سره خپل ضرورت پوره کړی۔ نهٔ د مالدار مالداری ددے خبرے دلیل دے چه دا د الله تعالیٰ په نیز محبوب دے، او نهٔ د فقیر محتاجی ددے خبرے دلیل دے چه دا د الله تعالیٰ په نیز مبغوض دے۔ د درجاتو دا اختلاف د الله تعالیٰ د حکمت او مصلحت مطابق دے، هم هغه دا رازونه پیژنی۔

او پدے کښې په دوارو طرفونو باندے امتحان دے۔ هیڅوك د هغهٔ د خوښے خِلاف نهٔ څوك مالداره کولے شي او نهٔ فقیر کولے۔ د پیغمبرئ مرتبه هم د الله نعمت او د هغهٔ لو یه ورکړه ده، هغه چه چاله غواړي ددے پیرزو پرے کوي۔

که ټول خلق مالداره وے نو د دنیا نظام نهٔ چلیدو، خدمت او آبادیانے به ئے په چا جوړولے، نو غریب ته خرچه ملاؤ شي او د مالداره کار سر ته ورسیږي۔

سُخۡرِيًّا: اَیۡ خَوَلًا وَخَدَمًا : یعنی مزدوران او خادمان۔ او سخري کښې معنیٰ د مسخرے او ټوقو هم پرته ده۔ یعنی انجام او حکمت دا دے چه مالداره به د غریبانو پورے مسخرے وکړي، نو پدے سره به ئے الله تعالیٰ راونیسي، او په امتحان کښې به پیل شي۔

لکه د سورة الانعام په آخر کښې ئے فرمایلي وو : ﴿لِيَبۡلُوَكُمۡ فِيمَا آتَاكُمۡ﴾ (١٦٥) دے دپاره چه الله په تاسو امتحان وکړي په هغه نعمتونو کښې چه تاسو ته ئے درکړیدي۔ اوله معنیٰ ظاهره ده او دویمه معنیٰ په اوله کښې داخله ده۔

وَرَحۡمَتُ رَبِّكَ خَيۡرٌ : یعنی د نبوت مرتبه او وحي د الله تعالیٰ د دنیا د مال او جاه نه ډیره زیاته بهتره ده، او ددے لازمي نتیجه دا ده چه چاله دا نبوت ورکړے شوے، یعنی نبي کریم ﷺ، د هغه خلقو نه ډیر زیات بهتر دے چه هغوئ اګرکه مال او دولت لري، لیکن د الله په نظر کښې ادنیٰ ترین او حقیر ترین خلق دي، لیکن د چا زړهٔ چه د نفس د خواهش د محبت په وجه مریض شوے دے، هغوئ د نبي کریم ﷺ په مقابله کښې دنیا دار خلق د نبوت زیات حقدار ګڼړي۔

**فائده** : دا آیت رد کوي په نظریه د مساوات (سوشلزم) باندے چه بعض خلق وائي چه ټول خلق دِے په مال کښې برابر وي، د غني او فقیر مرتبے دِے پکښې نهٔ وي، او دا ښه نظام دے۔ او بعض وائي چه مالداري او غریبي د ظالمانو نظام دے، او دا تقسیم الله نهٔ دے کړے نو الله واضحه کړه چه دا زما تقسیم دے او په همدے کښې حکمت دے۔

| وَلَوۡلَا أَنۡ يَكُونَ النَّاسُ أُمَّةً وَّاحِدَةً لَجَعَلۡنَا |
|---|
| او که چرته نهٔ کیدلے خلق یوه ډله (په کفر باندے) خامخا ګرځولی به وے مونږ |
| لِمَنۡ يَّكۡفُرُ بِالرَّحۡمٰنِ لِبُيُوتِهِمۡ سُقُفًا مِّنۡ فِضَّةٍ |
| هغه چا لره چه کفر کوي په رحمٰن باندے د کورونو د دوی دپاره چتونه د سپینو نه |

| وَّمَعَارِجَ عَلَيْهَا يَظْهَرُوْنَ ﴿٣٣﴾ وَلِبُيُوْتِهِمْ |
|---|
| او پوړۍ (پارسنگونه) چه په هغې باندې دوی خیژی۔ او د کورونو د دوی دپاره |
| اَبْوَابًا وَّسُرُرًا عَلَيْهَا يَتَّكِئُوْنَ ﴿٣٤﴾ وَزُخْرُفًا ؕ وَاِنْ |
| دروازې او کټونه چه په هغې باندې تکیه وهي۔ او سرۀ زر، او نۀ دی |
| كُلُّ ذٰلِكَ لَمَّا مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةُ عِنْدَ رَبِّكَ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿٣٥﴾ |
| دا ټول مګر سامان د ژوند دنیوی دې، او آخرت په نیز د رب ستا دپاره د متقیانو دې۔ |

**تفسیر** : پدې آیتونو کښې ظاهر تفسیر دا دې چه دې کښې الله تعالیٰ د د نیا زهد او سپکاوې بیانوی، مشرکانو وئیلی وو چه نبوت به ئې یو مالداره ته ورکړې وې، نو الله د دنیا سپك والې بیانوی چه دنیا د الله تعالیٰ په نیز ډیره حقیره او سپکه ده، او هیڅ شې نۀ دې، الله فرمائی چه که مؤمنان نۀ خفه کیدې نو ما دوی ته دا دنیا نۀ ورکوله، ټوله مې کافرانو ته ورکوله، پریده چه دوی خوړلې څکلې، او صبا له اُور ته تللې، او مؤمنانو ته مې جنت ورکولو۔ څکه چه چرته دنیا او چرته آخرت!!، دا دواړه هیڅکله برابریدو ته نژدې کیدې هم نشی۔ دنیا خو یوه څکه ده، او بل طرفته د مؤمن دپاره ابدی ابدی نعمتونه او خوشحالیانې دی۔ لیکن چونکه د مؤمنانو زړونه هم کمزوری دی، دوی به خفه شی او کیدې شی چه دوی هم کفر ته مائل شی، نو الله تعالیٰ د دوئ د زړونو لحاظ هم وساتلو او څه نا څه دنیا ئې دوی ته هم ورکړه۔

او دا آیت دلیل دې چه کله یو شی فِیْ نَفْسِهٖ قبیح وی، خو د یو سبب په وجه سره هغه حسن لِغَیْرِهٖ وګرځی۔ او په حدیث کښې دی :

[لَوْ كَانَتِ الدُّنْيَا تَزِنُ عِنْدَ اللّٰهِ جَنَاحَ بَعُوْضَةٍ مَا سَقٰى كَافِرًا مِنْهَا شَرْبَةَ مَاءٍ]

که دنیا د الله په نیز د ماشی د وزر برابره وې نو هیڅ کافر ته به ئې د دنیا یو ګوټ اُوبه نۀ وې ورکړې۔ (ترمذی فی الزهد باب ۱۳، رقم (۲۳۲۰) وابن ماجه فی الزهد باب ۳) رقم (۴۱۱۰) صحیح)

**وَلَوْلَا اَنْ يَّكُوْنَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً**: یعنی که چرې ټول انسانان په الله باندې د کفر غونته مبغوض ترین عمل باندې د جمع کیدو خبره نۀ وې، نو دنیا خو هغه سپك شې دې چه مونږ به د تمامو کافرانو د کورونو چتونه او پوړۍ د چاندئ نه جوړ کړی وې، او

د دوئ د کورونو دروازے، کټونه او کرسئ به مو هم د سپینو زرو نه جوړ کړے وے، او مونږ به دوئ له د سرو زرو او جواهراتو نه جوړ د ډول ډول سامانونه هم ورکړی وے، دے دپاره چه دوئ په کفر او سرکشئ کښې نور هم زیات مخکښې لاړ شي او د سخت ترین عذاب حقدار جوړ شي، ځکه چه د دنیا ددے عارضي نعمتونو د الله په نیز هیڅ حیثیت نشته۔ اصل کامیابي خو د آخرت کامیابي ده، او حقیقي او ابدي نعمت خو جنت دے کوم چه مونږ د الله تعالیٰ نه یریدونکو دپاره مخصوص ساتلے دے۔

**سوال :** هرکله چه ډیر مالونه کافرانو ته ورکول سبب ګرزیدے شي دپاره د کفر د عامو خلقو، نو مؤمنانو له به ئے ډیر مالونه ورکړی وے، نو ټول خلق به مؤمنان ګرزیدلی وے ؟ **جواب** دا دے چه دغه ایمان چه د دنیا دپاره وي په شریعت هغے له هیڅ اعتبار نۀ وي ددے وجه نه ئے دغه جانب ذکر نکړو۔

**وَلَوۡلَا:** اَیۡ وَلَوۡلَا کَرَاهَةَ : یعني دا خبره مونږ بده نۀ ګنړلے الخ۔

**اُمَّةً وَّاحِدَةً:** اَیۡ عَلَی الۡکُفۡرِ۔ یعني په کفر باندے به یوه ډله شي۔

**لِبُیُوۡتِهِمۡ:** دا بدل اِشتمال دے د (لِمَنۡ یَّکۡفُرُ) دپاره۔

**وَّمَعَارِجَ:** جمع د مِعراج ده، پوړئ او پارسنګ۔ او دا عطف دے په سُقُفًا باندے یعني پوړئ هم د سپینو زرو۔

**یَتَّکِـُٔوۡنَ:** کښې اشاره ده چه دومره دولتونه مے ورکول چه هیڅ کارو کسب ته به ئے ضرورت نۀ وے، بلکه تکیه ګانے به ئے وهلے او خوبونه به ئے کولے۔

**وَزُخۡرُفًا :** دا عطف دے په محل د مِنۡ فِضَّةٍ نو معنیٰ دا ده: اَیۡ جَعَلۡنَا لِبُیُوۡتِهِمۡ سُقُفًا مِنۡ فِضَّةٍ وَمِنۡ زُخۡرُفٍ: یعني مونږ به ګرزول د دوی دپاره چهتونه د سپینو او د سرو زرو۔

**وَاِنۡ کُلُّ ذٰلِكَ:** اِنۡ مُخَفَّفُ مِنَ الۡمُثَقَّلِ دے، د تاکید دپاره دے۔ یا اِنۡ نافیه او لَمَّا په معنیٰ د اِلَّا سره دے۔

**لِلۡمُتَّقِیۡنَ:** کښې اشاره ده چه د آخرت نعمتونه په تقویٰ سره ملاویږي۔

| وَمَنۡ یَّعۡشُ عَنۡ ذِکۡرِ الرَّحۡمٰنِ |
|---|
| او څوك چه سترګے پټے کړي (او هغه څوك چه خان ئے روند کړي) د ذکر د رحمن نه |
| نُقَیِّضۡ لَهٗ شَیۡطٰنًا فَهُوَ لَهٗ قَرِیۡنٌ ﴿۳۶﴾ وَاِنَّهُمۡ |
| (نو) مقرر به کړو مونږ هغۀ لره شیطان نو هغه به دۀ لره ملګرے وي۔ او یقیناً دوی |

| لَیَصُدُّوۡنَهُمۡ عَنِ السَّبِیۡلِ وَیَحۡسَبُوۡنَ اَنَّهُمۡ مُّهۡتَدُوۡنَ ﴿۳۷﴾ |
|---|
| خامخا اړوی هغوی لره د لارے (حقے) نه او دوی گمان کوی چه یقیناً دوی هدایت والا |
| حَتّٰۤی اِذَا جَآءَنَا قَالَ یٰلَیۡتَ بَیۡنِیۡ |
| دی۔ تردے چه کله راشی مونږ ته، وائی به اے ارمان دے چه وے په مینځ زما |
| وَبَیۡنَكَ بُعۡدَ الۡمَشۡرِقَیۡنِ فَبِئۡسَ الۡقَرِیۡنُ ﴿۳۸﴾ |
| او په مینځ ستا کښې وړاندے والے د مشرق او مغرب نو بد ملگرے وے ته۔ |

**تفسیر** : په دے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ د قرآن کریم اَهمیت بیان کړے چه کوم خلق د قرآن او په دے کښې د پرتو احکامو نه اعراض کوی، او دا پریدی او نورے گمراهئ خپلوی، الله تعالیٰ د عذاب په توگه دهٔ پسے یو شیطان لگوی، چه هغه هر وخت دا گمراه کوی دے دپاره چه حق قبول نهٔ کړی۔ نو دا د اُوم آیت سره متعلق دے چه دوی ددے نبی پسے څکه تهوقے کوی چه د دوی سترگے د الله د یاداشت نه ړندے دی۔ او شیطانورپسے لگیدلے دے۔ دویم دا متعلق دے د نزدے مخکښې (۳۱) آیت سره چه دا کافران چه وائی چه (لَوۡلَا نُزِّلَ) دا قرآن په مالدار ولے نهٔ نازلیږی نو دوی چه په پیغمبر اعتراض کوی نو دوی باندے شیطان ناست دے۔ نو ددے وجه نه ئے د نبی کریم ﷺ د تابعداری نه واړول۔

وَمَنۡ یَّعۡشُ: عَشَا یَعۡشُوۡ عَشًا او عشواً د شپے نظر نهٔ لگیدو ته وئیلے شی، اعشیٰ هغه شخص ته وائی چه د شپے ئے نظر نهٔ لگی او د ورځے ئے لگی۔

دارنگه عشو او عشا کله په معنیٰ د مطلق ړندیدو سره استعمالیږی۔ او دا د باب د رَضِیَ او دَعَا دواړو نه استعمالیږی۔یعني عَشِیَ یَعۡشٰی عَشۡوًا وَعَشًا او دلته همدا معنیٰ مراد ده۔ چه حاصل معنیٰ ئے ده :(وَمَنۡ یُّعۡرِضۡ وَیَتَعَامَی وَیَتَجَاهَلُ وَیَتَغَافَلُ] ۔ یعنی څوك چه مخ واړوی، او ځان ړوند او جاهل او غافل کړی۔

قرطبی لیکلی دی چه که د عشا یعشو نه شی نو بیا په معنیٰ د شب کوریدو سره دے او که د عَشِیَ یَعۡشیٰ نه شی (د باب د سمع) نه نو بیا ړندیدو ته وائی۔ نو پدے وخت کښې به یعش په فتحه (زبر) د شین سره وی۔

علامه قاسمیؒ د قاشانیؒ نه نقل کوی چه پدے آیت کښې (یعش) په شین باندے ضمه او فتحه دواړه جائز دی۔ د دواړو فرق دا دے چه عَشَا هغه نظر کولو ته وائی چه د څه عارض (مقصد) د وجه نه، یا قصداً خپل نظر کم ښکاره کړی او په سترگو باندے ئے څه

آفت او مصيبت نهٔ وي، او عَشِيَ هغه ځاى کښې استعماليږي چه نظرئے ختم شي، څه آفت ورته رسيدلے وي. په اول صورت کښې به معنىٰ دا وي:

چه د چا صفا استعداد، او سليم عقل وي دپاره د پوهے او حاصلولو د ذکر د رحمٰن، يعنى په قرآن پوهه شو او ددے په معنىٰ او مقصد باندے پوهه شو او دا ورته معلومه شوه چه دا حق دے، او بيا ځان د هغے نه ړنده وي د دنياوي غرض د وجه نه، يا د ضد او حسد د وجه نه، يا د هغے په معنىٰ او مقصد پوهه نشو او د هغے حقيقت ئے معلوم نکړو ځکه چه طبعي پردو کښې پټ دے او د دنيا په خوندونو کښې اخته دے،

يا په خپل باطل دين او غلطه عقيده او باطل مذهب باندے دهوکه دے. نو مونږ به دهٔ لره شيطان مقرر کړو چه دهٔ ته به دغه خوندونه نور هم ښائسته ښکاره کړي، يا به ورته شبهات واچوي، او په باطلو کارونو کښې به ئے اخته کړي چه د هغے په وجه به ئے د حق نه نور هم واړه وي.

او په دويم صورت کښې به معنىٰ دا وي: د چا چه بيخي استعداد د اصل نه ختم شوے وي او په ازل کښې بد بخته شوے وي پدے طريقه چه زړه ئے د الله تعالىٰ د ذکر د حقائقو د معلومولو نه ړوند وي او د هغے په مطلب نهٔ پوهيږي، نو مونږ به دهٔ لره شيطان مقرر کړ، ددهٔ د نفس نه يا ددهٔ د جنس نه چه دهٔ سره به په گمراهئ او سرکشئ کښې ملگرے وي. انتهىٰ.

عَنۡ ذِكۡرِ الرَّحۡمٰنِ: ١- يعنى د رحمٰن د ذکر نه مخ واړوي (فَلَمۡ يَخَفۡ عِقَابَهٗ وَلَمۡ يُرِدۡ ثَوَابَهٗ). د هغه د عذاب نه نهٔ يريږي او نهٔ د هغه د ثواب اراده لري.

٢- يا د ذکر نه مراد وحي ده يعنى قرآن کريم. نو دا به د ﴿وَمَنۡ اَعۡرَضَ عَنۡ ذِكۡرِيۡ فَاِنَّ لَهٗ مَعِيۡشَةً ضَنۡكًا﴾ په شان وي. (بدائع التفسير)

نُقَيِّضۡ لَهٗ شَيۡطَانًا: يعنى ددهٔ د کفر سزا دا ده چه الله تعالىٰ دهٔ پسے شيطان ولگوي چه دهٔ ته د شر وسوسے اچوي او د خير نه ئے منع کوي. او دے کښې انسي شيطان هم داخل دے، غلط ملا او گمراه پير به ورته الله مقرر کړي چه عقيده به ورله نوره هم خرابه کړي.

﴿فَهُوَ لَهٗ قَرِيۡنٌ﴾ يعنى شيطان په دنيا کښې هم ددهٔ سره انختے ملگرے وي چه د حلالو نه به ئے منع کوي، او په حرامو به ئے وراچوي، يا کله چه د قبر نه پاځيږي نو شيطان به ورسره تړلے شوے وي، او جهنم ته به روان وي. ظاهر دا ده چه دواړو ځايونو کښې به ورسره ملگرے وي. ٢- ددے يوه بله معنىٰ دا هم بيان شوے ده چه دغه انسان به د دغه شيطان تابعدار جوړيږي، او په ټولو کارونو کښې به ددهٔ تابعداري کوي، دا ددهٔ دپاره سزا

ده چه دهٔ باطل لره په ښکاره حق باندے غوره کړو۔

دا آیت دلیل دے چه انسان څومره د الله نه غافله کیږي شیطان به پرے زیات مسلط کیږي، که په سفر کښې وي او که په حضر کښې، په هره ګناه کښې به اخته کیږي۔ ذکر شیطان لره تختوي او غفلت شیطان ته دعوت ورکوي، شیطان وائي چه زهٔ په درے وختونو کښې انسان ګمراه کوم، یو د غصے په وخت، بل د غفلت په وخت، بل د شهوت په وخت۔ او شیطان د ذکر کونکي نه زیات یریږي۔

وَإِنَّهُمۡ لَيَصُدُّونَهُمۡ: یعنی شیطانان اړوي غافلان انسانان او کافران د نیغے لارے د حق نه او د هغے نه ئے منع کوي او هغوي ته دا وسوسه اچوي چه دوئ په هدایت دي۔

وَيَحۡسَبُونَ أَنَّهُم مُّهۡتَدُونَ: ۱- یعنی کافران ګمان کوي چه شیطانان په هدایت دي، نو دوي ئے پیروي کوي۔ ۲- یا کافران پدغه وسوسے سره ګمان کوي چه دوي خپله هدایت موندونکي دي۔ کوي شرك او کفر او وائي چه مونږ خو د خپل پلار نیکه لاره راتینګه کړیده۔

مهتدون نه معلومه شوه چه ګمراهي په دوه قسمه ده، یوه هغه ده چه ګناه ورته ګناه ښکاري، لیکن دے پرواهئ د وجه نه ئے کوي۔ نو دا مرتبه د فسق ده، او دویم قسم دا چه ګناه ورته ثواب ښکاري، او په هغے کښې فائدے ګڼري او په هغے باندے فخر کوي نو دا مرتبه د بدعت ده، که په عقیده کښې وي، او که په عمل کښې وي، او دا درجه ډیره خطرناکه ده ځکه چه انسان ددے نه توبه نهٔ اُوباسي ځکه چه ښه ئے ګڼري، او دلته همدا مرتبه مراد ده۔ او دا دلیل دے چه د ښه او بد تمیز په قرآن سره کیږي، او دے انسان خو د هغے نه اعراض کړیدے، ددے وجه نه بد کار ته ښه وائي۔

حَتَّىٰٓ إِذَا: دا د (فَهُوَ لَهُۥ قَرِينٞ) سره متعلق دے، یعني دا شیطانان به په دهٔ باندے مسلط او ناست وي تردے چه د آخرت ورځے ته راشي، نو بیا به هم ورسره ملګرے وي نو هلته به د شیطان نه بیزاري کوي، او آرمان به کوي چه کاش ! زما او ستا ترمینځه د مشرق او مغرب لرے والے وے، تهٔ خو ډیر زیات خراب ثابت شوے، (بد بوئي به ترے روان وي) هم تا زهٔ د حقے لارے نه واړولم، او کفر او شرك او ګمراهي ډے راته ښائسته کولو سره پیش کړه کوم چه نن زما د عذاب سبب جوړ شو۔ او جیل یو مصیبت، او چه کله د غلط ملګري سره جیل ته ننوزي نو دا بل عذاب او مصیبت دے۔

ٱلۡمَشۡرِقَيۡنِ: تثنیه تغلیبي ده، یعني د مشرق او مغرب۔

| وَلَنْ يَّنفَعَكُمُ الْيَوْمَ إِذْ ظَّلَمْتُمْ أَنَّكُمْ |
|---|
| او هيڅرې به فائده درنکړي تاسو ته نن کله چه ظلم کړيدې تاسو دا خبره چه تاسو |
| فِي الْعَذَابِ مُشْتَرِكُوْنَ ﴿٣٩﴾ أَفَأَنْتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ أَوْ تَهْدِي الْعُمْيَ |
| په عذاب کښې شريك يئ. آيا نو ته اوروَل کولې شې کنړو ته يا هدايت کولې شې ړندو |
| وَمَنْ كَانَ فِي ضَلَالٍ مُّبِيْنٍ ﴿٤٠﴾ فَإِمَّا نَذْهَبَنَّ بِكَ |
| ته او هغه څوك چه په ګمراهئ ښکاره کښې دی. پس که بوځو مونږ تا لره |
| فَإِنَّا مِنْهُمْ مُّنْتَقِمُوْنَ ﴿٤١﴾ أَوْ نُرِيَنَّكَ الَّذِيْ |
| نو يقيناً مونږ د دوی نه بدله اخستونکي يو. يا به اوښايو تا ته هغه عذاب چه |
| وَعَدْنَاهُمْ فَإِنَّا عَلَيْهِمْ مُّقْتَدِرُوْنَ ﴿٤٢﴾ |
| وعده ئې کړو مونږ د دوی سره، نو يقيناً مونږ په دوی باندې پوره قدرت لرونکي يو. |

**تفسير** : په دنيا کښې ډير خلق دا خبره کوی چه بلاء کله عامه شي نو آسانه شي، نو آيا چه په عذاب کښې ډير خلق شريك وي، آسان به وي؟ نو دلته جواب کوی چه عذاب د جهنم د خلقو په ډيروالي سره نهٔ آسانيږي، دنيا کښې کله دا خبره صحيح وي، ليکن په جهنم کښې د خلقو ډير والے لا لوی مصيبت دے.

**أَنَّكُمْ فِي الْعَذَابِ** : دا فاعل دے د (يَنْفَعَكُمْ) دپاره، يعنى په عذاب کښې شريك کيدل ستاسو د نورو کافرانو سره تاسو ته هيڅ فائده نهٔ درکوی.

٢- دے کښې دويم تفسير دا هم صحيح کيږي چه لَنْ يَّنْفَعَكُمْ کښې ضمير مخکښې قول (يَا لَيْتَ بَيْنِيْ وَبَيْنَكَ) ته راجع دے، يعنى أَنَّكُمْ کښې لام اجليه پټ دے. او ظلم نه مراد شرك او کفر دے. يعنى چه په دنيا کښې د الله تعالىٰ سره بل څوك شريك جوړولو په وجه په تاسو باندې چه نن ورځ کوم عذاب واجب شو، اوس به هيڅ آرزو او افسوسونه ستاسو پکار رانشي، ځکه چه تاسو تول يعنى تاسو او ستاسو شيطانان ملګری د جهنم په عذاب کښې يوشان شريك يئ لکه څنګه چه تاسو په دنيا کښې ددے عذاب په سبب کښې (يعنى شرك کښې) شريك وئ. اوله معنىٰ ظاهره معلوميږي او دويمه معنىٰ د بل قرائت سره زياته مناسبه ده چه هغے کښې (إِنَّ) لفظ دے په زير د همزه سره.

**أَفَأَنْتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ** : اُوس فرمائى چه هغه چا ته دعوت او وعظ او نصيحت فائده

نۀ ورکوی چه هغوی د الله په نیز بد بخته شوی وی.

نو پدے کښې د مشرکانو توقو کونکو حال بیانوی چه دا ړانده کاڼړه خلق دی.

نبی کریم ﷺ به د قریشو د کافرانو د رُشد او هدایت ډیر زیات خواهش لرلو، دے وجے نه ئے هغوی ته د حق دعوت پیش کولو هر ممکن کوشش کولو، او د دوئ دے پرواهئ لیدو سره به ئے زړۀ خفه کیدۀ، نو الله تعالیٰ به هغۀ له تسلی ورکوله، او ورته به ئے وئیلے چه ستا کار خو د اسلام دعوت پیش کول دی، هدایت ورکول خو صرف زما کار دے. او د قریشو کافران خو کاڼړۀ دی، دوئ نه خو د آوریدو طاقت اخستے شوے، دوئ کله د الله آیتونه او دلیلونه آوریدے شی، دوی خو ړاندۀ دی، د لیدو د طاقت نه محروم دی، د الله نښے وینی او بیا هم ددے نه عبرت نۀ حاصلوی، او لاره ترے خطاء شوے ده، د نیغے لارے نه ډیر زیات لرے وتلی دی، اُوس په نیغه لاره نشی راوړے دے.

اَوْ نُرِيَنَّكَ: یعنی هرکله چه دے مشرکانو سره د عقل او نظر نه ځانونه ړانده کاڼړه کړیدی، نو دوی د سزا لائق دی، الله تعالیٰ به خامخا سزا ورکوی، ترے خلاصیدے نشی، نو یا خو به تۀ په دوئ باندے د غالب کیدو نه مخکښې د دنیا نه رخصت شے، نو مونږ به د دوئ د کفر او شرك بدله د جهنم د عذاب په ذریعه دوئ نه اخلو، یا به د خپلے وعدے مطابق تاته د خپل قدرت کرشمه په دنیا کښې اُوښایو. لکه تاریخ شاهد دے چه د قریشو کافرانو چه څومره لوی سرداران وو، یا خو هغوئ کلمه د توحید اُووئیله او خپل ځان ئے بچ کړو، یا د صحابه کرامؓ په لاس د جنګ په میدانونو کښې اُووژلے شول.

| فَاسْتَمْسِكْ بِالَّذِيْٓ اُوْحِيَ اِلَيْكَ اِنَّكَ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٤٣﴾ |
|---|
| نو کلك اُونیسه هغه شے چه وحی کړے شویده تا ته یقیناً تۀ په لاره نیغه باندے ئے. |
| وَاِنَّهٗ لَذِكْرٌ لَّكَ وَلِقَوْمِكَ وَسَوْفَ |
| او یقیناً دا قرآن خامخا یاداشت (شرافت) دے ستا او د قوم ستا او زر دے |
| تُسْـَٔلُوْنَ ﴿٤٤﴾ وَسْـَٔلْ مَنْ اَرْسَلْنَا |
| چه تپوس به وکړے شی ستاسو نه. او تپوس وکړه د هغه چا نه چه لیږلی دی مونږ |
| مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رُّسُلِنَآ اَجَعَلْنَا مِنْ دُوْنِ الرَّحْمٰنِ |
| مخکښې ستا نه د رسولانو زمونږ نه آیا گرځولی دی مونږ سوئ د رحمٰن نه |

آلِهَةً يُعۡبَدُوۡنَ ﴿٤٥﴾

نور معبودان چه د هغوی بندګی کیدیشی۔

**تفسیر**: یعنی د کافرانو هلاکولو اختیار خو د الله تعالیٰ په لاس کښې دے، که خلق منی او که نهٔ، خو ستا کار دا دے چه تهٔ د الله تعالیٰ وحی او قرآن مضبوط راونیسه، په هغے باندے عمل کوه، او د هغے بیان جاری ساته، او دا په دلیل کښې پیش کوه، هم تهٔ په نیغه لاره روان ئے۔

نو پدے آیت کښې نبی کریم ﷺ له تسلی ورکړے کیږی چه هر کله د قریشو حال هغه دے کوم چه پورته بیان شو چه د حق دعوت نه د فائدے حاصلولو هر صلاحیت د دوئ نه اخستے شوے، نو تهٔ د دوئ په کفر او شرك باندے غمژن کیږه مهٔ، بلکه کوم قرآن چه په تا نازل شوے، او کوم حق دین چه تاته درکړے شوے، په دے باندے روان اوسه، او د الله شکر اداء کوه۔ اَلَّذِیۡۤ اُوۡحِیَ کښې قرآن کریم او عَلٰی صِرَاطٍ مُّسۡتَقِیۡمٍ کښې سنت ته اشاره ده۔ د رسول الله ﷺ هره خبره نیغه لاره ده۔

**وَاِنَّهٗ لَذِکۡرٌ لَّكَ**: پدے کښې قرآن کریم ته ترغیب ورکوی، او دا د (فَاسۡتَمۡسِكۡ) دپاره علت دے۔ یعنی کوم قرآن چه په تا نازل شوے، هغه ستا او ستا د قوم او امت دپاره د بیحده عزت او شرافت باعث دے، او د عبرت او نصیحت، د علومو او حِکمتونو او اسلامی شریعتونو خزانه ده۔ د قیامت په ورځ به ستا د امت نه پوښتنه کیږی چه دوئ څومره حده پورے په دے کښې د ذکر شوو اوامرو او منع شوو څیزونو پابندی کړے ده۔

ذکر دلته په معنیٰ د شرافت سره دے، دا لوی شرافت دے چه په یو قوم کښې الله تعالیٰ نبی راولیږی او هغه ته خپل عظیم کتاب ورکړی، لیکن دا خلق په خپل شرافت هم نهٔ پوهیږی، او هغے سره دشمنی کوی۔ او بیا لا دا هم وائی چه د قریشو نه بهر دے یو تن نبی شوے وے۔ د خپل کلی سړے نهٔ منی او وائی چه د بل قوم سړے منم، هغه دِے په ما مشر شی، د بعض خلقو په کلی کښې الله تعالیٰ یو عالِم پیدا کړی، پکار دا ده چه دغه کلی والا ئے صفت وکړی، او د الله شکر ادا کړی چه ښه ده چه الله تعالیٰ مونږ ته خپل کلی کښې دا سے ښکلے حق پرست عالِم راکړو۔

**وَلِقَوۡمِكَ**: او دا کتاب د قریشو شرافت هم دے، چه د هغوی په لغت ئے راولیږلو، او د هغوی لغت ئے په ټول عالَم باندے غالب کړو، او هغه ئے مشهور کړو، او نور خلق ئے هغے ته محتاج کړل، او په هغوی کښې ئے مشران پیدا کړل او نبی ﷺ وفرمایل: اَلۡاَئِمَّةُ مِنۡ

قُرَیۡش۔ (خلفاء به د قریشو نه وی) نو دوی ته ئے د تولے دنیا مشری ورکره۔

۲- او ذکر کښې معنیٰ د نصیحت او عبرت او یاداشت هم پرته ده چه ددے کتاب نه تهٔ هم عبرت اخله او ستا قوم دے هم اخلی۔ او دا کتاب سری ته هیرے شوے خبرے یادوی۔ او عِلمونه او حکمتونه رایادوی۔

۳- دارنګه ذکر په معنیٰ د بیان سره دے، یعنی دا قرآن ستا او ستا د امت د ضروری څیزونو بیان کونکے دے۔

وَسَوۡفَ تُسۡأَلُوۡنَ: یعنی زر دے چه تاسو نه به ددے نعمت د شکر په باره کښې تپوس کیږی۔

وَاسۡأَلۡ مَنۡ أَرۡسَلۡنَا: ربط او مناسبت:

۱- په قرآن کریم کښې لویه د یاداشت خبره دا ده چه صرف د یو الله بندګی وکړے شی، او د نورو معبودانو نه انکار وکړے شی۔

۲- د رسول الله ﷺ پورے خلقو توقے ولے کولے؟ نو وجه دا وه چه هغه به وئیل الله واحد لا شریك دے۔ نو دوی به وئیل ﴿أَجَعَلَ الۡآلِهَةَ إِلَٰهًا وَاحِدًا﴾ آیا دهٔ ډیر معبودان یو معبود جوړ کړو) نو الله فرمائی چه ټول انبیاء د الله تعالیٰ په توحید راغلی دی، او هغوی خپلو قومونو ته د توحید دعوت ورکړے هیڅ نبی خلقو لره د بتانو عبادت طرفته نهٔ دی رابللی، یعنی تا د قریشو خلقو ته څهٔ نوے دعوت نهٔ دے پیش کړے چه دوئ تا دروغژن ګنړی، او ستا تنګولو پسے لګیدلی دی۔ دا خو هغه دعوت دے کوم چه تمامو انبیاؤ خپلو قومونو ته پیش کړے وو۔ نو ستاسو د توقو مقصد خو دا جوړیږی چه (العیاذ بالله) دا ټول پیغمبران په غلطه وو۔

او نبی کریم ﷺ ته چه دا وئیلے شوی دی چه تهٔ د مخکنو انبیاؤ نه پوښتنه وکړه، نو دے نه مقصد د تورات او انجیل علم لرونکو مومنانو نه پوښتنه ده ځکه چه دوئ نه پوښتنه کول ګویا که هغه انبیاؤ نه پوښتنه کول دی په کومو باندے چه دا کتابونه نازل شوی وو۔

سوال دا دے چه انبیاء خو ژوندی نهٔ دی چه رسول الله ﷺ د هغوی نه تپوس وکړی؟ مفسرینو ددے یو بعید جواب ورکړیدے چه دلته تپوس کول د معراج په شپه مراد دی، یعنی معراج ته چه کله لاړ شے نو دغه تپوس وکړه۔

او بعض وائی چه دا خبره جبریل علیه السلام د معراج په وخت کښې رسول الله ﷺ ته کړے

وه. ۲- قفالؒ وئیلي دي چه دلته د سوال نه مراد (اَلنَّظَرُ فِيۡ اَدۡيَانِهِمۡ) دے، يعني د هغوی په دينونو کښې سوچ وکړه چه آيا د هغوی په دين کښې شرك شته؟. دا قرينه خبره ده.
او دا قرآن کافي دے په نظر کښې چه دے کوم خبر ورکړيدے چه دا مشرکان د هغه چا عبادت کوی چه الله په هغے باندے هيڅ سلطان او دليل نۀ دے راليږلے. نو دا آيت پخپله کافي دے، بل څه ته ضرورت نشته.
۳- يا دلته مضاف پټ دے. [وَاسۡئَلۡ اُمَمَ مَنۡ قَدۡ اَرۡسَلۡنَا] . يعني د پخوانو پيغمبرانو د امتونو نه تپوس وکړه. چه آيا هغوی خپلو امتونو ته شرك خودلے دے؟. (ابن عباس ﷺ، مجاهدؒ، سدیؒ، ضحاكؒ، قتادةؒ، عطاءؒ والحسنؒ)
او دلته ئے د رسولانو نه سوال ذکر کړو سَره ددے نه چه مراد ددے نه د هغوی علماء دی، پدے کښې پدے خبره تنبيه ده چه دغه خبره چه کومه د دوی علماء کوی نو دا بعينه د رسولانو په ژبه جاري شويده، او علماؤ د خپل ځان نه نۀ ده وئيلے.
نو پدے کښې رټنه ده د مکے مشرکانو ته چه دوی په کوم دين روان دی نو هيڅ نبي پداسے دين باندے نۀ دے تير شوے نو دوی د ټولو انبياؤ د دينونو مخالفين دی.
(فتح البيان)
٤- پدے کښې ظاهر دا ده چه داسے خبره په محاوره باندے بناء ده، ځکه چه تپوس خو هغه څوك کوی چه شك ئے وی، او د رسول الله ﷺ خو په توحيد کښې شك نۀ وو، او الله هغه ته وائی چه ته د پخوانو پيغمبرانو نه تپوس وکړه، نو ددے نه مراد دا دے چه د پخوانو پيغمبرانو په دين کښې اے انسانه! سوچ وکړه چه کوم يو پيغمبر شرك ته دعوت ورکړيدے. نو پدے (وَاسۡئَلۡ) کښې هر مخاطب ته حکم دے. او دا آيت داسے دے لکه (سَلۡ بَنِيۡۤ اِسۡرَآئِيۡلَ کَمۡ اٰتَيۡنَاهُمۡ مِنۡ اٰيَةٍ بَيِّنَةٍ) نو هلته سوال مقصد نۀ وی، بلکه د هغوی په حال باندے سوچ کول مراد وی.

| وَلَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا مُوۡسٰی بِاٰيَاتِنَاۤ اِلٰی فِرۡعَوۡنَ وَمَلَئِهٖ |
|---|
| او يقيناً ليږلے دے مونږ موسیٰ (عليه السلام) په معجزاتو زمونږ فرعون ته او غټانو |
| فَقَالَ اِنِّيۡ رَسُوۡلُ رَبِّ الۡعَالَمِيۡنَ ﴿۴٦﴾ فَلَمَّا |
| د قوم د هغۀ ته نو ووئيل هغۀ، يقيناً زۀ رسول يم د رب العالمين. نو هرکله چه |

جَاءَهُمْ بِآيَاتِنَا إِذَا هُمْ مِنْهَا يَضْحَكُونَ ﴿٤٧﴾

هغه راغے دوی ته په معجزاتو زمونږ نو دغه وخت دوی د هغه نه خندا کوله۔

وَمَا نُرِيهِمْ مِنْ آيَةٍ إِلَّا هِيَ أَكْبَرُ مِنْ أُخْتِهَا

او نهٔ خودله مونږ دوی ته یوه نخه (د عذاب) مګر هغه به ډیره لویه وه د ملګرے

وَأَخَذْنَاهُمْ بِالْعَذَابِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿٤٨﴾

(مشابے) د هغے نه او راولیږل مونږ دوی لره په عذاب دے دپاره چه اُوګرځی (الله تعالیٰ

وَقَالُوا يَا أَيُّهَ السَّاحِرُ ادْعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا

ته)۔ او وئیل به دوی، اے جادوګره! دعا اُوغواړه مونږ لره د رب خپل نه پدے وجه

عَهِدَ عِنْدَكَ إِنَّنَا لَمُهْتَدُونَ ﴿٤٩﴾ فَلَمَّا

چه لوظ ئے کړیدے تا سره، یقیناً مونږ به خامخا هدایت والا شو۔ نو هرکله

كَشَفْنَا عَنْهُمُ الْعَذَابَ إِذَا هُمْ يَنْكُثُونَ ﴿٥٠﴾

چه لرے کړو مونږ د دوی نه عذاب دغه وخت دوی به وعده ماتوله۔

**تفسیر:** د موسیٰ علیه السلام واقعه راوړی، دا د (٤١) آیت ﴿فَإِنَّا مِنْهُمْ مُنْتَقِمُونَ﴾ سره متعلق دے، او غرض پدے کښ تخویف دے، یعنی داسے انتقام ترے اخلم لکه فرعون نه مے چه اخستے دے۔ ٢- دویم دا متعلق دے د اُوم (٧) آیت سره چه دا مشرکان تا پسے استهزاء کوی داسے استهزاء لکه فرعون چه د موسیٰ علیه السلام پسے کړے وه نو فرعون هلاک شو نو دغه شان به دا خلق هم هلاکیږی، نو د استهزاء نتیجه هلاکت دے۔ او غالباً په قرآن کریم کښ د مشرکانو حال د فرعونیانو سره او د رسول الله ﷺ حال د موسیٰ علیه السلام سره مشابه کیږی۔ ❁ او پدے کښ بل د دنیا سپکوالے دے، او په مشرکانو رد دے چه فرعون هم په دنیا باندے غرور او فخر کولو چه ما سره سرهٔ او سپین دی، او مشرکان هم دغه خبرے کوی نو الله ورته اول صبر وکړو بیا ئے دریاب ته وسپارل۔

❁ او لکه څنګه چه موسیٰ علیه السلام د صبر او ضبط نه کار واخستهٔ، تهٔ هم همت مه بایله، اُو خلقو ته د الله پیغام رسوه۔

الله تعالیٰ وفرمایل چه مونږ موسیٰ علیه السلام له معجزے ورکړے او فرعون او فرعونیانو ته

مو اُوليږلو. هغهٔ ورته ووېل چه زهٔ د هغه الله پيغمبريم چه هغه د تمام جهان پالونکے دے، هغهٔ نه سوئ بل هيڅوك د بندګئ حقدار نشته دے، نهٔ د هغهٔ نه سوئ د چا دا حق شته چه هغه د رب العالمين بندګان خپل بندګان جوړ کړي.

کله چه موسیٰ ﷺ د خپل رب د توحيد او د خپل رسالت د رشتين والي دلائل پيش کړل، نو فرعون او فرعونيانو هغے پورے توقے شروع کړے، بالکل د قريشو د خلقو غونته چه ستا او ستا دعوتي تقريرونو او قرآن کريم پورے توقے کوي. نو تهٔ د دوئ ددے غير مناسبو حرکتونو نه زړهٔ ماتے کيږه مهٔ، او د دعوت په کارونو کښې درله سستي نهٔ ده پکار، لکه موسیٰ ﷺ د فرعون له اړخه قِسم قِسم تکليفونه برداشت کړل او خپل دعوت ئے د هغهٔ په مخ کښې په مختلفو طريقو سره پيش کړو.

**وَمَا نُرِيهِمۡ مِّنۡ اٰيَةٍ:** په دے آيتِ کريمه کښې الله تعالیٰ دے طرفته اشاره کړے چه د فرعون او فرعونيانو توقے څهٔ په دے وجه نهٔ وے چه ګنے دغه نښے ددے قابلے نهٔ وے چه په دوئ باندے ئے اثر کړے وے، بلکه دوئ دا کار خالص د کبر او عناد په وجه کولو.

الله تعالیٰ وفرمايل چه اولنئ نښه به د دويمے نښے نه لويه وه، او مونږ دوئ په دنيوی عذاب کښې هم مبتلا کړل چه شايد په دے طريقه دوئ الله تعالیٰ ته رجوع اوکړي. او کله چه د عذاب د سختئ په وجه تنګ شو نو موسیٰ ته ئے ووېل اے جادوګره! تهٔ وائے چه ستا رب په تا باندے د ايمان راوړونکو نه عذاب لرے کوي، نو دعاء اُوکړه چه هغه مونږ نه عذاب لرے کړي، که داسے اُوشول نو مونږ به په تا ايمان راوړو، او څهٔ ته چه تهٔ د هدايت لاره وائے هغه به اختيار کړو، نو کله چه مونږ د دوئ نه عذاب لرے کړو، نو دوئ فوراً په لوظي وکړه او په ضلالت او ګمراهئ کښې نور وړاندے لاړل.

**بِالۡعَذَابِ:** د عذاب نه مراد تکليف دے، او استيصالي عذاب نهٔ دے مراد، او داسے کار الله تعالیٰ په هره زمانه کښې د رسول د راليږلو نه پس کړيدے لکه سورة الاعراف (۹٤) آيت کښې ذکر شويدی ﴿وَمَآ اَرۡسَلۡنَا فِىۡ قَرۡيَةٍ مِّنۡ نَّبِىٍّ اِلَّاۤ اَخَذۡنَاۤ اَهۡلَهَا بِالۡبَاۡسَآءِ وَالضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمۡ يَضَّرَّعُوۡنَ﴾. (او مونږ نهٔ دے راليږلے په يو کلي کښې يو نبي مګر د هغے اُوسيدونکی مو په تکليف د مال او تکليف د بدنونو رانيولي دي دے دپاره چه دوی راوګرځي).

**يَاۤ اَيُّهَ السّٰحِرُ:** يعنی دوی ښکاره معجزات او دليلونه وليدل، ليکن دا ګمان ئے وکړو چه دا د جادو د قبيلے نه دی. علماؤ دلته سوال ليکلے دے چه هرکله دوی هغهٔ ته ساحر (جادوګر) وئيلو، نو بيا ورله هغهٔ دعاء ولے کوله؟ جواب دا دے چه هغوی به ساحر عالِم

ته وئیلو او د ساحرانو توقیر (عزت) او تعظیم به ئې کولو، او سحر د هغوی په نیز بد صفت نه وو. اګر که پدې خبره کښې يو قسم بې عزتي هم وه چه اے هغه شخصه! چه تا د سحر علم زده کړیدے. یا دوی ورته ساحر د لوی بیوقوفتیا د وجه نه وئیلې دے.

صاحب د فتح البیان لیکي چه اصل کښې آواز په خپل نوم سره وو لکه اعراف (۲۲) ﴿قَالُوْا یَا مُوْسٰی﴾ لیکن دلته الله تعالیٰ د هغوی کلام د هغوی په الفاظو سره نقل نکړو بلکه د هغوی د زړونو د آواز مطابق ئې نقل کړو چه د هغوی عقیده په موسیٰ ؑ باندې دا وه چه دا ساحر دے. او دلته مقصود رسول الله ﷺ ته تسلي ده چه قریش تا ته جادوګر وائي، نو دغه شان فرعونیانو موسیٰ ؑ ته جادوګر وئیلې دے. (افاده الکرخيؒ)

بِمَا عَهِدَ: یعني پدې وجه چه الله تا سره دا وعده کړیده چه که مونږ ایمان راوړو نو مونږ نه به عذاب لرې کوي.

يَنْكُثُوْنَ: دوی به ناڅاپه وعده ماته کړه. الله تعالیٰ پرې طوفان، ملخان، او سپږې او وینه د يو بل نه پس راوستل، په هر ځل به دوی وعده کوله او بیا به ئې ماتوله.

| |
|---|
| وَنَادٰی فِرْعَوْنُ فِیْ قَوْمِهٖ قَالَ یَا قَوْمِ اَلَیْسَ لِیْ |
| او آواز وکړو فرعون په قوم خپل کښې وے وئیل اے قومه زما! آیا نهٔ ده ما لره |
| مُلْكُ مِصْرَ وَهٰذِهِ الْاَنْهٰرُ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِیْ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ﴿۵۱﴾ اَمْ اَنَا |
| بادشاهي د مصر، او دا نهرونه بهیږي لاندې زما نه آیا نو نهٔ ګورئ تاسو. آیا زهٔ |
| خَیْرٌ مِّنْ هٰذَا الَّذِیْ هُوَ مَهِیْنٌ وَّلَا یَكَادُ یُبِیْنُ ﴿۵۲﴾ فَلَوْلَا |
| غوره یم ددې سړي نه چه دے ذلیل دے او نزدې نهٔ دے چه بیان وکړي. پس ولې نهٔ شي |
| اُلْقِیَ عَلَیْهِ اَسْوِرَةٌ مِّنْ ذَهَبٍ اَوْ جَآءَ مَعَهُ الْمَلٰٓئِكَةُ |
| راګوزار ولې په دهٔ باندې بنګړي د سرو زرو نه یا ولې نهٔ راغلي ددهٔ سره ملائك |
| مُقْتَرِنِیْنَ ﴿۵۳﴾ فَاسْتَخَفَّ قَوْمَهٗ فَاَطَاعُوْهُ اِنَّهُمْ كَانُوْا |
| ترلې شوي. نو بې عقله ئې کړو قوم خپل نو هغوی ددهٔ تابعداري اوکړه یقیناً وو دوی |
| قَوْمًا فٰسِقِیْنَ ﴿۵۴﴾ فَلَمَّآ اٰسَفُوْنَا انْتَقَمْنَا مِنْهُمْ |
| قوم نافرمان. نو هرکله چه دوی غصه کړو مونږه (نو) بدله واخسته مونږ د دوی نه |

| فَأَغۡرَقۡنَاهُمۡ أَجۡمَعِينَ ﴿٥٥﴾ فَجَعَلۡنَاهُمۡ سَلَفًا |
|---|
| نو غرق کړل مونږ دوی ټول. نو اُوګرځول مونږ دوی تیرے شوے نمونے (مشران د |
| وَمَثَلاً لِّلۡآخِرِينَ ﴿٥٦﴾ |
| ګمراهانو) او عبرت دپاره د روستنو. |

**تفسیر** : کله چه د موسیٰ علیه السلام په دعاء سره اِلهی عذاب لرے شو، نو فرعون په خپل زړهٔ کښې اوېریدهٔ چه هسے نهٔ خلق واقعی په موسیٰ باندے ایمان راوړی، دے وجے نه دهٔ انداز بدلولو سره خلقو ته اُووئیل او خپله لوئی ئے د هغوی په زړونو کښې کینوله چه آیا زهٔ د مصر د حکومت مالك نهٔ یم، آیا د دریائے نیل څلور واړه شاخونه زما د محل خواته نهٔ دی تیر شوی، آیا تاسو زما ددے تمامو نعمتونو او قدرتونو مشاهده نهٔ کوئ، نو بیا زهٔ غوره یم او که دا سپك انسان (یعنی موسیٰ (العیاذ بالله) چه خپل خدمت په خپله کوی، او د خپل زړهٔ د خبرو د وضاحت کولو نه عاجز او کوتاه دے.

که چرے دا واقعی د چا پیغمبر دے او لوئے سړے دے، نو ددهٔ رالیږونکی دهٔ ته د سرو زرو بنګړی ولے نهٔ دی اچولی؟، دے دپاره چه لیدونکو ته معلومیدلے چه واقعی دا څوك لوئے انسان دے، یا داسے ولے اُونشو چه هغهٔ سره څهٔ ملائك رالیږلے شوی وے چه هر وخت هغهٔ سره وے، او د هغهٔ د نبوت ګواهی ئے ورکولے؟.

فرعون د خپل قوم په زړهٔ کښې دا خبره اچول غوښتل چه رسول لوی شان او شوکت والا او ملائك ورنه ګیر چاپیره کیدل پکار دی. چنانچه ددهٔ شیطانی چال کار اُوکړو، خلقو ددهٔ خبره اُومنله او موسیٰ علیه السلام ئے دروغژن اُوګڼړلو. الله تعالیٰ وفرمایل چه دا خلق د مخکښې نه د الله د بندګئ نه آوښتی وو، نو څکه پدے چال کښې راګیر شول.

**أَلَيۡسَ لِي مُلۡكُ مِصۡرَ** : یعنی د مصر بادشاهی کښې ما سره څوك مقابله کونکے نشته او نهٔ څوك مخالفت کونکے شته.

**وَهَٰذِهِ الۡأَنۡهَارُ تَجۡرِي مِن تَحۡتِيٓ**: یعنی نهرونه زما د بنګلے لاندے روان دی،

قتادهٔ وائی چه دا نهرونه زما مخے ته او زما په باغونو کښې روان دی.

مفسرین لیکی چه په دغه زمانه کښې فرعون درے سوه شپیته نهرونه د سمندر نه راتیر کړی وو چه هغه به په مصر کښې په مختلفو علاقو کښې بهیدل، نو پدے سره د مصر زمکه آباده او ډیره تروتازه شوے وه. او لوی نهرونه پکښې څلور وو.

اَفَـلَا تُبۡصِرُوۡنَ: یعنی تاسو دے ته نهٔ گورئ چه زما د بادشاهئ قوت او زما قدر او مرتبه او زما د مقابلے نه د موسیٰ (علیه السلام) کمزورتیا وپیژنئ۔

مفسرین لیکی: کله چه هارون رشید بادشاه دا آیت ولوستو نو وفرمایل: [لَاُوَلِّیَنَّهَا اَخَسَّ عَبِیۡدِیۡ فَوَلَّاهَا الۡخَصِیۡبَ] زهٔ به خامخا په مصر باندے د خپلو غلامانو نه ډیر کمے مرتبے والا گورنر مقرروم نو خصیب ئے پرے گورنر کړو چه دا د هارون رشید خادم وو، د هغه دپاره به ئے د اوداسه اُوبه راوړلے۔ او عبد الله بن طاهر په مصر باندے گورنر شو کله چه مصر ته راروان شو، او مصر ته رانوتو نو وے وئیل: آیا دا هغه کلے دے چه فرعون پدے باندے فخر کولو چه (اَلَیۡسَ لِیۡ مُلۡكُ مِصۡرَ) آیا زما دپاره د مصر بادشاهی نهٔ ده؟ قسم په الله دا زما په نیز ددے نه هم کم دے چه زهٔ دے ته داخل شم، نو د خپل اس واگے ئے بیرته ستنے کړے او ترے ووتو۔ (فتح البیان)

هُوَ مَهِیۡنٌ: دا بے انصافه داسے نهٔ وائی چه زهٔ غوره یم که موسیٰ، بلکه خپل طرفنه د مخکښې نه فتوے کوی چه دا سپك انسان دے، د خلقو په زړونو کښې د هغه سپکوالے کینوی، دا فرعونی خوئی دے چه د مال د کموالی په وجه لوی متقی انسان ته سپك وائی۔

وَلَا یَکَادُ یُبِیۡنُ: ۱- لِلُکۡنَتِهٖ. یعنی نزدے نهٔ ده چه وضاحت د خبرے وکړی ځکه چه ژبه کښې ئے لُکنت دے، د موسیٰ (علیه السلام) ژبه به معمولی شان انبښتله، په وړوکوالی کښې ئے سکروټه خولے ته وړښتلے وه۔

۲- دویم غرض ئے تکبر کول وو یعنی وَلَا یَکَادُ یُبِیۡنُ اَمَامِیۡ. یعنی زما مخے ته نزدے نهٔ ده چه د خبرے وضاحت وکړی او د خپلے دعوے رښتینوالے ښکاره کړی۔ زما رعب دے په دهٔ باندے، او دا بعینه زمونږه د زمانے د بعض بدعتیانو خبره هم ده چه موحد ته وائی چه دے زما په مخامخ عبارت هم نشی وئیلے۔

فَلَوۡلَا اُلۡقِیَ: دا هم دهٔ د موسیٰ (علیه السلام) تحقیر او سپکوالے وو چه گوره د بادشاهانو قاصدان خو هغوی ته ډیر مقرّب وی، د هغوی په لاسونو کښې د سرو زرو بنگړی اچوی، او د هغهٔ په ملگرتیا کښې ډیر خدمتگاران روانوی نو که موسیٰ د الله د رسولانو نه وی نو دهٔ سره هم دغسے کار پکار وو۔ نو پدے سره ددهٔ غرض دا وو چه دا د الله تعالیٰ رسول نهٔ دے۔ جواب دا دے چه الله تعالیٰ د رسولانو سره په غیبی قوتونو سره امداد کوی، او دنیاوی زیب او زینت ته د هغوی حاجت نهٔ وی۔

فَاسۡتَخَفَّ قَوۡمَهٗ: هر کله چه فرعون دعوے وکړے او د موسیٰ علیه السلام سپکاوے ئے

بیان کړو، نو خلك د بادشاهانو خبره منی نو پدے وجه د هغه چل کامیاب شو، نو هغه خپل قوم جاهلان کړل، هغوی ددهٔ پسے روان شو۔
١ - اَیۡ اِسۡتَجۡهَلَهُمۡ۔وَاسۡتَفَزَّهُمۡ بِالۡقَوۡلِ وَاسۡتَزَلَّهُمۡ وَعَمِلَ فِیۡهِمۡ کَلَامُهٗ ۔ یعنی جاهلان ئے کړل قوم خپل، او هغوی ئے په خپلو خبرو سره خوئے او دهوکه کړل، او د هغه خبرے پرے اثر وکړو۔ همیشه دپاره د حق په خلاف خلق د متکبرانو خبرے ته مائل کیږی، او هغه پکښ اثر کوی او حق پرے اثر نکوی۔ دا دلیل دے چه ټول فرعونیان لوی جاهلان او بے عقله وو۔ ٢ - اَیۡ وَجَدَهُمۡ خِفَافَ الۡعُقُوۡلِ۔ یعنی مونده ئے کړل سپکو عقلونو والا۔
د باطل پرستو پیرانو او ملیانو طریقه هم د فرعون په شان ده چه دوئ خپل مریدان او شاګردان، د قرآن او سنت د تحقیق نه منع کوی، او د اهل حقو د کتابونو نه ئے جدا کوی دے دپاره چه جاهلان پاتے شی نو د دوئ اطاعت به کوی۔
فَلَمَّا آسَفُوۡنَا: الله تعالیٰ وفرمایل چه کله فرعون او فرعونیانو زمونږ غصه او غضب را اُوپارولو، د موسیٰ او د هغهٔ معجزات ئے دروغژن اُوګنړل، جادوګر ئے ورته اُووئیلو، او د ایمان راوړو وعده ئے اُوکړه، او بیا ئے بے لوظی اوکړه، نو مونږ د دوئ نه بدله واخسته او ټول مو په سمندر کښ ډوب کړل۔ او دوئ مو راتلونکو خلقو دپاره د عبرت نښه اوګرځوله۔
اسف په معنیٰ د غضب او غصے سره دے۔ بعض وائی : سختے غصے ته وائی۔ غضب د الله تعالیٰ صفت دے، بغیر د تاویل نه به منلے شی۔
فَاَغۡرَقۡنٰهُمۡ : الله تعالیٰ په اُوبو باندے غرق کړل، مفسرین لیکی : دهٔ ځان په نهرونو او اُوبو باندے عزتمند ګنړلو نو الله په هغے هلاك کړو، ځکه چه دا قانون دے [مَنۡ تَعَزَّزَ بِشَیۡءٍ دُوۡنَ اللّٰهِ اَهۡلَکَهُ اللّٰهُ بِهٖ] ځوك چه د الله نه سوئ په یو شی باندے ځان عزتمند ګنړی او تکبر کوی نو الله به ئے په همغه شی سره هلاکوی۔
امام احمدؒ او طبرانیؒ او بیهقیؒ په شعب الایمان کښ د عقبه بن عامر رضی الله عنه نه روایت راوړیدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل : کله چه تهٔ الله وینے چه بنده ته د هغهٔ د خوښے څیزونه ورکوی، او هغه په ګناهونو باندے همیشه وی، نو دا د الله د طرفنه د هغهٔ استدراج (یعنی په آرام آرام رانیول) دی، بیا ئے دا آیت ولوستلو ﴿ فَلَمَّا نَسُوۡا مَا ذُکِّرُوۡا بِهٖ فَتَحۡنَا عَلَیۡهِمۡ اَبۡوَابَ کُلِّ شَیۡءٍ حَتّٰی اِذَا فَرِحُوۡا بِمَا اُوۡتُوۡا اَخَذۡنٰهُمۡ بَغۡتَةً فَاِذَا هُمۡ مُبۡلِسُوۡنَ ﴾
(مسند احمد ٤/١٤٥) رقم (١٧٣٤٩) حدیث حسن- شعیب)

سَلَفًا: اَیْ قُدْوَةً لِمَنْ عَمِلَ بِعَمَلِهِمْ مِنَ الْكُفَّارِ۔ يعنى مونږ دوى مشران كړل د روستنو كافرانو دپاره په استحقاق د عذاب كښې كوم چه د دوى په شان عمل كوى۔
وَمَثَلًا: اَیْ عِبْرَةً وَمَوْعِظَةً لِمَنْ يَّأْتِیْ بَعْدَهُمْ۔ يعنى عبرت او نصيحت د هغه چا دپاره چه د دوئ نه روستو راځى۔ يا مثل په معنىٰ د عجيبه قصے سره دے۔ يعنى د دوئ قصه د خلكو دپاره متل او عجيب بيان وګرځيدو۔
عمر بن عبد العزيز رحمه الله پدے آيتونو كښې وئيل: [وَجَدْتُ النِّقْمَةَ مَعَ الْغَفْلَةِ]۔ ما د غفلت سره عذابونه موندلى دى۔ دے خلكو كښې غفلت وو نو الله په عذابونو اخته كړل۔

| وَلَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ مَثَلًا إِذَا قَوْمُكَ مِنْهُ |
|---|
| او هر كله چه بيان كړے شى ځوى د مريم په مثال كښې دغه وخت قوم ستا ددے نه |
| يَصِدُّوْنَ ﴿٥٧﴾ وَقَالُوْا أَآلِهَتُنَا خَيْرٌ أَمْ هُوَ، مَا ضَرَبُوْهُ لَكَ |
| شور كوى۔ او وائى دوى آيا معبودان زمونږ غوره دى يا دے، نۀ بيانوى دوى تا ته |
| إِلَّا جَدَلًا، بَلْ هُمْ قَوْمٌ خَصِمُوْنَ ﴿٥٨﴾ إِنْ هُوَ إِلَّا عَبْدٌ |
| دا خبره مګر دپاره د جګړے (ضد) بلكه دوى قوم دے جګړه مار۔ نۀ دے هغه مګر بنده |
| أَنْعَمْنَا عَلَيْهِ وَجَعَلْنَاهُ مَثَلًا لِبَنِیْ إِسْرَائِيْلَ ﴿٥٩﴾ |
| دے چه احسان كړيدے مونږ په هغه باندے او ګرځولے وو مونږ هغۀ لره نمونه دپاره د بنى اسرائيلو۔ |

**تفسير:** دا آيت متعلق دے د ﴿وَاسْأَلْ مَنْ أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رُسُلِنَا﴾ (الزخرف: ٤٥) سره، پخوانى پيغمبران په شرك باندے نۀ دى راغلى لكه عيسىٰ عليه السلام ته وګوره۔
او دارنګه د ﴿إِذَا هُمْ مِنْهَا يَضْحَكُوْنَ﴾ او د مشركانو د استهزاء سره هم لګى، چه هغوى د رسول الله ﷺ پسے يو پدے طريقه هم كړيده، چه روستو ذكر كيږى۔
نو دے آيت كښې د مشركانو استهزاء بيانيږى۔ دے آيت ته بعض مفسرينو (أَغْمَضُ آيَةٍ فِی الْقُرْآنِ مَعْنًى مُرَادًا) وئيلے دے، يعنى دا په قرآن كريم كښې د معنىٰ مرادے په اعتبار سره ژور او پټ آيت دے۔ ليكن الحمد لله آيت ډير آسان دے، آيت كښې ډير تفسيرونه شويدى ليكن دوه تفسيرونه پكښې آسان او واضح دى۔

(۱) ادنیٰ تفسیر دا دے: ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ نه مراد په قرآن کښې د عیسیٰ ﷺ بیانیدل مراد دی۔ یعنی هر کله چه په قرآن کریم کښې د عیسیٰ ابن مریم ﷺ قصه بیان شوه۔ مَثَلًا یعنی د قصے په شکل۔ نو دغه وخت ستا قوم د هغے په وجه چغے وهی، يَصِدُّوْنَ په کسره د صاد سره چغو ته وئیلے شی۔

معنیٰ ئے ده: يَضْحَكُوْنَ فَرِحِيْنَ ۔ خاندی خوشحالیږی۔ او واه واه آوازونه کوی۔ یعنی په قرآن کریم کښې دا خبره بیان شوه چه نصاراؤ د عیسیٰ ﷺ عبادت کړیدے، او د هغهٔ نه ئے إِلٰه او ابن الله جوړ کړیدے، نو دوی چه دا خبره واوریده نو دوی وویل چه آیا زمونږ معبودان چه ملائك دی غوره دی او که عیسیٰ؟ زمونږ معبودان خو غوره دی څکه چه ملائك پاك مخلوق دے، نو چه د انسان عبادت شویدے، او هغه خلکو د الله ځوی جوړ کړیدے نو که مونږ ملائك د الله لونړه جوړ کړو نو څه ګناه ده، نو دا خو زمونږ دپاره ښکلے دلیل پیدا شو۔

نو پدے دلیل باندے دوی خوشحالی وکړه۔ دوی ته دا خبره نهٔ وه معلومه چه د عیسیٰ ﷺ عبادت شویدے بلکه دا ئے د قرآن نه معلومه کړه، نو څکه پرے ناشنا ولګیده او پدے ئے دلیل ونیولو۔

مَا ضَرَبُوْهُ لَكَ: (ه) ضمیر دغه قول ته راجع دے، یعنی دوی نهٔ بیانوی ستا دپاره دغه وینا لره مګر دپاره د جګړے کولو۔ یعنی حق پرستی ئے غرض نهٔ ده بلکه ستا پر کول ئے غرض دے، لکه پدے زمانه کښې د مناظره کونکو طریقه دا وی چه حق پرستی ئے غرض نهٔ وی، بلکه د مخالف پړ کول ئے مقصد وی۔ نو الله فرمائی: دا جګړه مار خلق دے، صرف اعتراضونه کوی، بیا الله وفرمایل: چه د عیسیٰ ﷺ په باره کښې دا عقیده مهٔ ساتئ بلکه (إِنْ هُوَ إِلَّا عَبْدٌ) هغه خو د الله بنده وو چه الله پرے د نبوت احسان کړے وو، او د بنی اسرائیلو دپاره نخه او عبرت ګرځیدلے وو، د بنی اسرائیلو ایمانونه پرے قوی شول۔ دا تفسیر مرجوح دے، څکه چه د جدل او خصم الفاظ ورسره ښه نهٔ لګی۔

(۲) دویم تفسیر: د اکثرو مفسرینو رائے داده چه دا آیتِ کریمه د نبی کریم ﷺ سره د ابن الزبعریٰ د یوے جګړے نه پس نازل شوے وو۔ ددے اجمال تفصیل دادے چه کله د سورتِ انبیاء (۹۸) آیت ﴿ إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ ﴾ (تاسو او ستاسو باطل معبودان به د جهنم خشاك جوړیږئ) نازل شو، نو ابن الزبعریٰ نبی کریم ﷺ ته وویل [خَصَمْتُكَ وَرَبِّ الْكَعْبَةِ] چه د کعبے په رب مے دے قسم وی! اُوس زهٔ په تا غالب شوم، آیا نصاریٰ د عیسیٰ، یهود د عزیر او بنو ملیح د ملائکو عبادت نهٔ کوی؟۔ که چرے دا خلق

جهنم ته ځي نو مونږ هم خپلو معبودانو سره جهنم ته تللو ته تيار يو. مشركان ددۀ دے خبرے سره ډير خوشحاله شو، او شور ئے جوړ كړو، نو د سورتِ انبياء (۱۰۱) آيت: ﴿إِنَّ الَّذِيْنَ سَبَقَتْ لَهُمْ مِّنَّا الْحُسْنٰى أُولٰئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُوْنَ﴾ (چا دپاره چه زمونږ له اړخه د مخكښ نه د جنت فيصله شوے، هغه خلق به د جهنم نه لرے ساتلے شى) نازل شو، او ددے سورت دا آيت كريمه نازل شو، چه ددے معنىٰ داده چه كله ابن الزبعرىٰ عيسىٰ ؑ د بتانو سره مشابه كړو، نو د قريشو كافران ډير خوشحاله شو، او د ډيرے خندا نه واؤښتل راواؤښتل، او وے وئيل چه زمونږ معبودان غوره دى او كه عيسىٰ، يعنى كله چه د عيسىٰ عبادت كولے شى، نو ملائك - چه ددے عبادت مونږ كوو - په طريقه اولىٰ سره د عبادت كيدلو حقدار دى.

مگر ابن الزبعرىٰ پوره فهم ونكړو، روستو آيت ته ئے ونۀ كتل. دويم جواب دا دے چه ابن الزبعرىٰ دے كښى هم سوچ ونكړو چه الله (وَمَا تَعْبُدُوْنَ) لفظ وئيلے دے، (وَمَنْ تَعْبُدُوْنَ) ئے نۀ دے وئيلے، يعنى بتان مراد دى، او ذوى العقول نۀ دى مراد.

شهابؒ ليكى چه د ابن الزبعرىٰ نوم عبد الله بن الزبعرىٰ دے، او دا په روستو زمانه كښى مسلمان شويدے او مشهور صحابى گرزيدلے او دا واقعه ئے د اسلام نه مخكښى وه.

نو معنىٰ د آيت به داسے وى چه هركله عيسىٰ ابن مريم په مثال كښى بيان كړے شو او ابن الزبعرىٰ هغه په مثال كښى ذكر كړو چه ددۀ هم عبادت شويدے، آيا دا به هم جهنم ته ځى. نو دغه وخت ستا قوم ددے بيانولو د مثال نه چغے وهى او خوشحالى كوى. او دا ئے ووئيل چه آيا زمونږ معبودان غوره دى او كه عيسىٰ ؑ؟ يعنى عيسىٰ ؑ خو زمونږ د بتانو نه غوره وو نو هركله چه عيسىٰ جهنم ته ځى نو مونږ هم سره د خپلو معبودانو نه جهنم ته تللو باندے راضى يو. او دوى اگر كه جهنم نۀ منلو مگر دا خبره ئے د اعتراض په طريقه وئيله لكه د اعتراض والو طريقه همدغه وى.

**مَا ضَرَبُوْهُ لَكَ إِلَّا جَدَلًا:** آيت په آخر كښى الله تعالىٰ وفرمايل چه اے زما نبى ! د ابن الزبعرىٰ مقصد حق تالاش كول نۀ دى، بلكه صرف جگړه كول وو، او ټول قريشى قوم په دے مرض كښى مبتلا دے، چه دا خلق د باطل غالب كولو دپاره د بحثونو او جگړو لاره اختياروى.

ترمذى، ابن ماجه او حاكم وغيره د ابو امامه ؓ نه په صحيح سند سره روايت كړى دى، رسول الله ﷺ اوفرمايل (كله چه هم يو قوم گمراه شوے دے نو هغۀ د جگړو لاره اختيار كړے، بيا هغوىٔ دا آيت تلاوت وفرمايهٔ). (الترمذى فى سورة ٤٣ رقم: ٣٢٥٣) وابن

ماجه في المقدمه باب ۷، واحمد (۲۵۶،۲۵۲/۵) حدیث حسن)

جعفر بن محمدؒ به فرمایل: [اِيَّاكُمْ وَالْخُصُوْمَةَ فِي الدِّيْنِ فَاِنَّهَا تُشْغِلُ الْقَلْبَ وَتُوْرِثُ النِّفَاقَ] په دین کښې د جګړو نه ځان وساتئ ځکه چه دا زړهٔ مشغول کوی، او په زړهٔ کښې منافقت پیدا کوی۔

اِنْ هُوَ اِلَّا عَبْدٌ: په دے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ د عیسیٰ علیه السلام صحیح مقام بیان کړے چه دا معبود نهٔ دے، بلکه د الله د بے شماره بندګانو نه یو بنده دے، الله د خپل رسالت د منصب دپاره غوره کړے وو، او ددهٔ پیدائش ئے د بنی اسرائیلو دپاره د عبرت او نصیحت سبب جوړ کړے وو، یعنی هغه ئے په غیر د پلار ه پیدا کړے وو، او هغهٔ به د معجزے په توګه مړی ژوندی کول، او ګنجیان او برګی مرض والا به ئے د الله په حکم سره رغول، دے دپاره چه خلق د الله په قدرت او لوئے شان باندے ایمان راوړی۔

| وَلَوْ نَشَآءُ لَجَعَلْنَا مِنْكُمْ مَّلٰٓئِكَةً فِي |
| --- |
| او که چرته اُوغواړو مونږ خامخا ویه ګرځوو مونږ ستاسو په بدله کښې ملائک په |
| الْاَرْضِ يَخْلُفُوْنَ ﴿۶۰﴾ وَاِنَّهٗ |
| زمکه کښې چه دوی به اُوسیږی ستاسو په ځائے۔ او یقیناً دا (عیسی علیه السلام) |
| لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُوْنِ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ﴿۶۱﴾ |
| پوهه ده دپاره د قیامت نو شك مهٔ کوئ پدے کښې او تابعداری کوئ زما، دا لاره نیغه |
| وَلَا يَصُدَّنَّكُمُ الشَّيْطٰنُ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۶۲﴾ |
| ده۔ او وادِے نهٔ روی تاسو لره شیطان یقیناً دے تاسو لره دشمن ښکاره دے۔ |

**تفسیر**: دا آیت د مخکښې سره په دوه طریقو لګی یو د وړاندے سره چه مشرکانو وئیلی وو چه دا رسول انسان ولے دے؟ الله تعالیٰ ملائك ولے نهٔ رالیږل، او دا د هغوی د استهزاء یو صورت وو، نو پدے آیت کښې ورته جواب کیږی چه په زمکه کښې انسانان وسیږی نو الله به دوی ته انسان رالیږی، که د الله اراده وشی نو تاسو به لری کړی او ملائك به مقرر کړی نو هغوی ته به بیا رسولان ملائك رالیږی،

نو دا د سورة بنی اسرائیل آیت (۹۵) ﴿لَوْ كَانَ فِي الْاَرْضِ مَلٰٓئِكَةٌ يَّمْشُوْنَ مُطْمَئِنِّيْنَ لَنَزَّلْنَا عَلَيْهِمْ مِّنَ السَّمَآءِ مَلَكًا رَّسُوْلًا﴾ نو معنیٰ به دا وی چه که مونږ وغواړو مونږ به ستاسو په

بدل کښې ملائك په زمکه کښې وګرځوو چه د يو بل نه به جانشين وي، يو بل نه به روستو راځي، او هغوی ته به پيغمبران د ملائکو نه رالیږی. او ته خو انسان ئې نو تا ته به انسان رسول راځي نو بيا ولې استهزاء کوئ؟

(۲) بعض مفسرينو د نزدے آيت سره لګولے دے چه عيسیٰ ﷺ بغير د پلار نه پيدا دے، او ملائك بے پلاره او موره پيدا دي، نو الله داسے هم کولے شي، پدے قادر دے چه د انسان نه ملائك پيدا کړي، نو دا د الُوهيت دپاره دليل نهٔ دے چه يو تن بے پلاره يا بے موره اوبے پلاره پيدا شو نو هغه به ګنے اله او معبود وي، دا خو د الله د قدرت نخے دي.

ليکن دا معنیٰ بعيده ده ځکه چه په قرآن کريم کښې ددے بل ځاى تائيد نشته، او د اولے معنے تائيد شته.

(۳) او ددے ظاهري مطلب دا هم دے چه پدے کښې زور نه پرته ده. يعنی الله تعالیٰ خو په هر شيئ قادر دے، که چرے هغه غوښتلے نو انسانان به ئے تباه کړی وے، او په زمکه کښې به ئے د دوئ په ځائے ملائك راوستی وے، او هغوئ به ئے اُوسولی وے، چه هغوئ به دا په خپلو سجدو سره آباده کړے وے، او الله سره به ئے هيڅوك نهٔ شريکولے.

شوکانيؒ ليکي چه د ملائکو ځائے چه آسمان شو نو ددے دا مطلب نشو چه ګنے دوئ د الُوهيت مرتبے ته رسيدلی دي چه د دوئ عبادت دِے اُوکړے شي.

**وَإِنَّهُ لَعِلْمٌ:** ۱- يو تفسير دا دے چه (ه) ضمير عيسی ﷺ او د هغهٔ معجزاتو ته راجع دے، (مجاهدؒ، ضحاكؒ او قتادهؒ) يعنی عيسیٰ ﷺ د قيامت علم (يعنی معلومات) دے، او هغه پدے طريقه چه الله د قيامت په راوستو قادر دے ځکه چه الله تعالیٰ عيسیٰ ﷺ بغير د پلار نه پيدا کړيدے.

دارنګه عيسیٰ ﷺ ته الله تعالیٰ داسے معجزات ورکړی وو چه هغه به مړی راژوندی کول، او برګی مرض والا او مورزادی ړوند به ئے رغول، نو دغه معجزات د قيامت دپاره لويه نښه ده چه په دنيا کښې يو انسان دے، د هغه په لاس الله مړی راژوندی کړيدی، نو د قيامت ورځ به هم دغه شان راولی، او د انسانانو بدنونه به راپورته کوی. چونکه د قيامت مسئله ډيره مهمه ده نو ځکه ئے الله تعالیٰ په مختلفو طريقو سره ثابتوی.

يا مطلب دا دے چه د دجال د راوتو پشان د عيسیٰ ﷺ راوتل هم د قيامت نښه ده.

(۲) حسن بصريؒ او سعيد بن جبيرؒ وائي چه (ه) ضمير نه قرآن کريم مراد دے، يعنی قرآن کريم نازليدل د قيامت نزدے کيدو نښه ده، او په دے کښې د هغے احوال او کيفيات

بیان شوی دی۔ یعنی قرآن تاسو ته د قیامت معلومات درکوی، نو دے کښې شکونه مهٔ کوی۔

(۳) او ځینو نبی کریم ﷺ مراد کړے، یعنی د نبی ﷺ راليږل د قیامت د نزدے کیدو نښه ده۔

لیکن اوله معنیٰ د سیاق سره زیاته مناسبه ده۔

**فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا** : الله تعالیٰ د رسول اکرم ﷺ په ژبه فرمائی چه اے خلقو! د قیامت په باره کښې لږ شك او شبهه هم مهٔ کوئ، ددے راتلل یقینی دی، او د الله له اړخه چه زهٔ تاسو ته د کومو خبرو حکم کوم په هغې عمل کوئ، الله یو ګڼړئ، هغهٔ سره نور څوك مهٔ شریکوئ، او هغهٔ چه کوم احکام فرض کړی هغه په ځائے راوړئ، همدا نیغه لاره ده۔

ګورئ! شیطان ستاسو په زړونو کښې د اسلام، قرآن او زما په باره کښې شکوك او شبهات پیدا کولو سره تاسو په دهوکه کښې وانهٔ چوی، او زما پیروی کول مهٔ پریدئ، ځکه چه زهٔ تاسو ته د هغهٔ دین دعوت درکوم چه هغه د تمامو انبیاءِ کرامو دین وو، او ددے د بیانولو دپاره تمام آسمانی کتابونه نازل شوی دی۔

ګورئ! شیطان ستاسو ښکاره دشمن دے، هغهٔ ستاسو سره خپله دشمنی د رب العالمین مخامخ ښکاره اعلان کړے ده۔ دے وجے نه ددے نه به لویه کومه بے عقلی وی چه تاسو د خپل ښکاره دشمن پیروی کوئ۔

| وَلَمَّا جَاءَ عِيسَىٰ بِالْبَيِّنَاتِ قَالَ قَدْ جِئْتُكُم |
|---|
| او هرکله چه راغے عیسیٰ علیه السلام په ښکاره دلیلونو اُووئیل دهٔ یقیناً زهٔ راغلے یم تاسو |
| بِالْحِكْمَةِ وَلِأُبَيِّنَ لَكُم بَعْضَ الَّذِي تَخْتَلِفُونَ |
| ته د پوهے په خبرو او خامخا بیانوم تاسو ته بعض هغه خبرے چه تاسو اختلاف کوئ |
| فِيهِ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿٦٣﴾ إِنَّ اللَّهَ هُوَ رَبِّي |
| په هغې کښې نو اُویریږئ د الله تعالیٰ نه او تابعداری اُوکړئ زما۔ یقیناً الله رب دے زما |
| وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ ﴿٦٤﴾ فَاخْتَلَفَ |
| او رب دے ستاسو نو بندګی خاص کړئ هغهٔ لره دا لاره نیغه ده۔ نو اختلاف اُوکړو |

| الۡاَحۡزَابُ مِنۡۢ بَیۡنِهِمۡ فَوَیۡلٌ لِّلَّذِیۡنَ ظَلَمُوۡا مِنۡ |
|---|
| ډلو په مینځ خپل کښې نو هلاکت دے دپاره د هغه کسانو چه ظلم ئے کړیدے د |
| عَذَابِ یَوۡمٍ اَلِیۡمٍ ﴿٦٥﴾ هَلۡ یَنۡظُرُوۡنَ اِلَّا السَّاعَةَ |
| عذاب د ورځې دردناکې نه. انتظار نهٔ کوی دوی (په ایمان راوړو کښې) مګر د قیامت |
| اَنۡ تَاۡتِیَهُمۡ بَغۡتَةً وَّهُمۡ لَا یَشۡعُرُوۡنَ ﴿٦٦﴾ |
| چه رابه شی دوی ته ناڅاپه او دوی به نهٔ پو هیږی. |

**تفسیر** : پدے آیت کښې د (مَثَلًا لِّبَنِیۡۤ اِسۡرَآءِیۡلَ) تشریح بیانیږی. یعنی هغه د بنی اسرائیلو دپاره څنګه عبرت وو؟ نو په پورتنو آیتونو کښې د عیسیٰ علیه السلام صحیح مقام بیان شو، دلته د هغے تکمیل کوی، فرمائی چه کله هغه بنی اسرائیلو خواته انجیل او نورو معجزاتو سره راغے، نو هغوئ له ئے خبر ورکړو چه زهٔ تاسو لپاره نبی جوړ شوے یم او د حکمت خزانے راکولو سره رالیږلے شوے یم، (هغه به تولے خبرے د حکمت کولے چه انسان ته به پرے پوره نصیحت ملاویدو) دے دپاره چه تاسو ته د حکمت دغه خبرے اوښایم، او د موسیٰ علیه السلام د وفات نه پس د دین په کومو احکامو کښې چه ستاسو تر مینځه اختلاف شو، په هغے کښې حق واضح کړم. دے وجے نه اے بنی اسرائیلو! د الله د نافرمانئ نه ویریږئ، او د الله د توحید او د شریعت د احکامو سره چه کومے خبرے زهٔ تاسو ته ښایم هغه قبولے کړئ. بیشکه زما او ستاسو رب الله دے، هغهٔ نه سوئ هیڅوك د عبادت لائق نشته، دے وجے نه تاسو صرف د هغهٔ عبادت کوئ، همدا نیغه لاره ده.

بِالۡحِکۡمَةِ : د حکمت نه مراد هر هغه خبره ده چه انسان په ښکلے صفت باندے آماده کوی او د بدئ نه ئے منع کوی.

بَعۡضَ الَّذِیۡ: ابن جریرؒ او ابن کثیرؒ لیکی چه ددے بعض احکامو د تورات او انجیل نه مراد دینی کارونه او احکام دی، نهٔ دنیاوی. یعنی احبارو او رهبانو چه چه کومو مسائلو کښې اختلاف پیدا کړے وو د هغے وضاحت عیسیٰ علیه السلام وکړو.

یا ددے نه مراد په تورات کښې شوی تحریفات دی، نو بیا به بعض په معنیٰ د کُلُّ سره وی. یا ددے نه مراد هغه بعض احکام او بعض محرمات دی چه په تورات کښې ذکر وو، نود انجیل په راتللو سره هغه منسوخ شول، او په هغے کښې په بنی اسرائیلو تخفیف او

آسانتیا وه.
د عیسیٰ علیه السلام همدا صحیح مقام وو، چه هغه د الله بنده او رسول وو، او بنی اسرائیلو ته ئې د توحید دعوت راوړے وو، هغه خلقو ته د خپلې بندگۍ هرگز دعوت نهٔ وو ورکړے. نو هغهٔ نه إِلٰه او معبود مهٔ جوړوئ، او نصاراؤ که جوړ کړے نو هغوی غلط کار کړیدے، تاسو په استدلال کښ هغوی مهٔ پیش کوئ اے مشرکانو!.
او دا داسے ده لکه یو تن د یو ولی او بزرگ په اقوالو د شرك او بدعت دپاره استدلال وکړی، نو داعی د هغهٔ صحیح اقوال په رد د شرك او بدعت کښ ذکر کړی، او د هغهٔ صفات ذکر کړی چه هغه خپله د الله بنده، او صحیح سړے وو.
فَاخْتَلَفَ الْأَحْزَابُ: د عیسیٰ علیه السلام د دنیا نه د ژوندی اُوچتیدو نه پس یهود او نصاریٰ ددهٔ په باره کښ په مختلفو فرقو کښ تقسیم شول. یهودو وویل چه ددهٔ مور زناکاره، او دے ولد الزنا وو. او نصاراؤ کښ نسطوریه فرقے وویل چه هغه د الله خوئے وو، یعقوبیه فرقے وویل: هغه الله وو، او ملکیه (یا ملکانیه) فرقے وویل: هغه د الله، د ابن الله او روح القدس درے واړو معبودانو نه یو وو.
دے ټولو ظالمانو له الله تعالیٰ د قیامت په ورځ د دردناك عذاب دهمکی ورکړے، ځکه چه دوئ تمام عقلی او نقلی دلائل د مخے نه لرے کړل، او د عیسیٰ علیه السلام په باره کښ ئې مجرمانه او مشرکانه عقائد رواج کړل. دا مجرمان او مشرکان اُوس گویاکه صرف د قیامت انتظار کوی، چه ناساپه به راځی، په دے وخت کښ به دوئ په ماده پرستۍ، دنیا دارۍ او د شهوتونو په غلامۍ کښ داسے ډوب وی چه قیامت به ئې د هر طرفه را گیر کړی، او دوئ ته به پته هم نهٔ وی. په هغه وخت به دوی د صحیح ایمان اعلانونه کوی لیکن هیڅ فائده به نهٔ ورکوی.
او پدے کښ اشاره ده چه د عیسیٰ علیه السلام نه روستو شرکونه ظالمانو راپیدا کړل، هغهٔ شرك ته هیڅکله دعوت نهٔ دے ورکړے بلکه صرف د الله توحید ته ئې دعوت ورکړے.
نن چه په ټول عالَم کښ په عامه توگه او په مغربی دنیا کښ په خاصه توگه څهٔ فسادونه او ظلمونه کیږی، او یهود او هندوان او نصاریٰ د الله نه بیخی غافله، د دوئ په سر زمین چه څهٔ کیږی، دا آیتِ کریمه ددے ټولو خبرو پوره تصویر پیش کوی.
**حکمة**: دلته ئې فَوَيۡلٌ لِّلَّذِينَ ظَلَمُوا لفظ راوړو او په سورة مریم آیت (۳۷) کښ (فَوَيۡلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا) وئیلے وو، وجه دا ده چه دلته د شبهاتو ازاله وشوه لیکن سرهٔ ددے نه خلقو اختلاف جوړ کړو نو دا ظلم دے، او په سورت مریم کښ صرف د عیسی علیه السلام دعوت

ذکر وو او مخالفینو د هغې نه انکار کړے وو، نو هغه کفر دے، نو هلته د کفر لفظ مناسب وو.

هَلْ يَنظُرُونَ: اختلاف کونکو ته تخویف اُخروی بیانیږی.

بَغْتَةً: یعنی وخت او تاریخ به ئې معلوم نهٔ وی. او انسانانو به په مختلفو کارونو کښې مشغول وی چه قیامت به پرېے راشي. او مطلب دا دے چه د قیامت د راتللو نه مخکښې ایمان راوړئ او نیك عمل شروع کړئ، ځکه چه قیامت به ناڅاپی راځی، چه انسان ته به هیڅ مهلت نهٔ ورکړے کیږی.

| اَلْأَخِلَّاءُ يَوْمَئِذٍ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ إِلَّا الْمُتَّقِينَ ﴿٦٧﴾ |
|---|
| دوستان به په دغه ورځ بعض د دوی نه د بعضو دپاره دشمنان وی سوئ د متقیانو |
| يَا عِبَادِ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ وَلَا أَنتُمْ تَحْزَنُونَ ﴿٦٨﴾ |
| نه. اے بندګانو زما! نهٔ به یره وی په تاسو نن ورځ او نهٔ به تاسو غمژن شئ. |
| الَّذِينَ آمَنُوا بِآيَاتِنَا وَكَانُوا مُسْلِمِينَ ﴿٦٩﴾ |
| هغه کسان دی چه ایمان ئې راوړیدے په آیتونو زمونږ او وو دوی تابعدار (د الله تعالیٰ |
| ادْخُلُوا الْجَنَّةَ أَنتُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ تُحْبَرُونَ ﴿٧٠﴾ |
| د حکمونو). داخل شئ جنت ته تاسو او بیبیانو ستاسو ته به نعمتونه درکولے شی. |
| يُطَافُ عَلَيْهِم بِصِحَافٍ مِّن ذَهَبٍ وَأَكْوَابٍ وَفِيهَا |
| ګرځولے به شی په دوی باندے کاسے د سرو زرو او ګلاسونه (د سرو) او پدے کښې به |
| مَا تَشْتَهِيهِ الْأَنفُسُ وَتَلَذُّ الْأَعْيُنُ |
| هغه څه وی چه خوښوی ئې نفسونه او خوند اخلی (په هغې باندے) سترګے |
| وَأَنتُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٧١﴾ وَتِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي أُورِثْتُمُوهَا |
| او تاسو به په هغې کښې همیشه یئ. او دغه جنت دے چه په میراث کښې درے کړے |
| بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٧٢﴾ لَكُمْ فِيهَا فَاكِهَةٌ |
| شو تاسو ته په وجه د هغه عملونو چه تاسو به کول. تاسو لره پدے کښې میوے دی |

كَثِيرَةٌ مِنۡهَا تَأۡكُلُونَ ﴿٧٣﴾

ډیرې، بعض د هغې نه تاسو خورئ.

**تفسیر** : اُوس د قیامت حالات راوړي. او پدې کښې تفصیلي بشارت او بیا تفصیلي تخویف سره د عذاب نه بیانیږي، بیا زجرونه دي، او اثبات د توحید دے په دلیلونو سره. او رد د شرکونو دے، او په آخر کښې رسول الله ﷺ ته تسلي ده او د مشرکانو نه د براءت اعلان دے.

په دنیا کښې چه د چا د دوستۍ بنیاد په ګناه، فساد اچولو، حق سره دشمنۍ او په نورو مادي او شهواني اغراضو او مقاصدو باندے وي، د قیامت په ورځ به یو د بل دشمن جوړ شي، او خپلو کښې به د یو بل نه د نفرت اظهار کوي، ځکه چه دا تولے خبرے به د دوئ د عذاب سبب جوړیدونکے په نظر راځي، نو د دوئ دوستي به په دشمنۍ کښې بدله شي. اشاره ده چه دا مشرکان د یو بل سره په فساد او استهزاء کښې ملګري شویدي، هلته به د یو بل نه براءت کوي، او په یو بل به لعنتونه وائي. البته کوم خلق چه دلته د الله تعالیٰ نه یریږي، او خپلو کښې د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسول ﷺ دپاره د یو بل سره محبت کوي، دوئ به د قیامت په ورځ هم یو بل سره مینه محبت کوي، ځکه چه په دنیا کښې چه په کومو دیني اغراضو او مقاصدو باندے د دوئ د خپل مینځي محبت بنیاد وو، په دے ورځ به دا تولے خبرے د دوئ د ثواب او نجات سبب جوړیږي، د دے وجے نه د دوئ خپل مینځي محبت به نور هم زیات شي. او د دوئ د خوشحالۍ څهٔ انتهاء به پاتے نهٔ شي کله چه الله دوئ ته آواز کولو سره اُووائي چه اے زما بندګانو ! نن نه پس به تاسو ته هیڅ ویره او هیڅ غم او خفګان ونهٔ رسیږي.

اَلۡاَخِلَّاءُ: جمع د خلیل ده، دوست ته وائي.

إِلَّا الۡمُتَّقِينَ: دے نه چا (اَلۡمُتَحَابِّيۡنَ فِي اللهِ) مراد کړیدي یعنی هغه خلك چه د یو بل سره د الله دپاره مینه کوي. لیکن دا یو خاص تفسیر دے، او متقین عام لفظ دے چه دے ته هم شاملیږي. بلکه هر متقي به د بل متقي دوست جوړیږي اګرکه یو بل ئے لیدلي نهٔ وي.

او ددے ځای نه دا زیرے په لسو طریقو دے، اول زیرے دے په همیشوالي د محبت د متقیانو خپل مینځ کښې، چه لکه څنګه چه دنیا کښې د دوي محبت وو نو دا به همیشه

باقي پاتے وي۔
يَا عِبَادِ : ددے نه مخکښ يَقُوۡلُ اللّٰهُ لفظ پټ دے۔ يعنی الله به ووائی : اے زما بندګانو! چه زما بندګي مو کړيده۔
اَلَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا: اَیۡ قَلۡبًا يعنی زړه کښې ئے ايمان راوړيدے۔
(وَكَانُوۡا مُسۡلِمِيۡنَ ) : اَیۡ عَمَلًا يعنی دوی مسلمانان دی په اعتبار د عمل سره۔ په صحيح دين ابراهيمي باندے ئے عمل کړے، او د يهوديت او نصرانيت او بت پرستئ نه ئے ځان ساتلے دے۔ يعنی متقی هغه دے چه نۀ منافق دے او نۀ فاسق۔
نو پدے آيت کښې د زيری دوه سببونه بيان شول، يو ايمان بالآيات او دويم اسلام، يعنی پوره انقياد ظاهری او باطنی۔
اُدۡخُلُوا الۡجَنَّةَ: دا جواب د نداء (يا عباد) دے۔ او پدے کښې نور زيری دی يو دا چه جنت ته داخليدل سره د بيبيانو نه او دويم تحبير۔
وَاَزۡوَاجُكُمۡ: ددے نه هغه بيبيانے مراد دی چه د خاوندانو سره ئے په توحيد او سنت کښې موافقت کړيدے۔
تُحۡبَرُوۡنَ: حبرة په اصل کښې مبالغه ده په اکرام کولو کښې په ډيره ښائسته طريقے سره نو تُحۡبَرُوۡنَ ډيرو معانو ته شامل دے، کرامت، خوشحالی، ډير نعمتونه او مزے اخستل۔ لکه مفسرينو داسے تعبيرات کړيدی :
۱ – اَیۡ تُسَرُّوۡنَ۔يعنی تاسو به خوشحاله ولے شئ۔ (مجاهدؒ)
۲ – وَتَنۡعَمُوۡنَ۔ يعنی تاسو ته به نعمتونه او مزے درکولے شي۔ (قتادةؒ)
۳– تُكۡرَمُوۡنَ۔ ستاسو اکرام به کولے شي۔ (ابن عباسؓ) په انتهائی زيات اکرام سره۔
٤– تُفۡرَحُوۡنَ۔ تاسو به خوشحاله ولے شئ۔ (الحسنؒ)
٥– اَلتَّلَذُّذُ بِالسَّمَاعِ ۔ (يحيی بن ابی كثيرؒ) په جنت کښې به په ښائسته آوازونو سره د الله ذکر وغيره آوری او د هغے نه به خوند حاصلوی۔
قرطبیؒ ليکی چه سرور د سترګو خوشحالی ده، او فرح د زړه خوشحالی ده، او کرامة د مرتبے په اعتبار سره دے او نعيم په بدن کښې وی، او سماع په غوږ کښې وی نو په هر اعتبار سره به ورته ټولے خوشحاليانے راجمع وی۔ ډير جامع لفظ دے۔
ابوحيانؒ او قاسمیؒ ليکی چه حبرة او حبور هغه خوشحالی ده چه د هغے اثر به ستاسو په مخونو راښکاره کړے شي۔ زجاجؒ وائی : تُكۡرَمُوۡنَ اِكۡرَامًا يُبَالَغُ فِيۡهِ ۔ ستاسو به دومره

اکرام کیږی چه په هغې کښې به مبالغه (زیادت) کولے شی۔ (البحر المحیط)

**يُطَافُ**: په دے کښې اشاره ده چه خادمان به ورله راځی، او د دوی خدمت به کوی او دوی به ئے په تیاره خوری۔

**بِصِحَافٍ**: جمع د صَحفة ده، دا هغه کاسه ده چه پنځه کسان مړه وی، یعنی په جنت کښې به دوی دپاره قسماقسم خوراکونه وی چه هغه به د سرو زرو په کاسو کښې راوړلے شی، او نور مشروبات به وی چه په جګونو او ګلاسونو کښې به راوړے شی، او هغه به هم د سرو زرونه وی۔ او د جنتیانو اقسام زیات دی نو د چا لوښی به د سرو زرو وی او د چا د سپینو، یا مختلف قسم لوښی به وی۔

په صحیحینو کښې د حذیفه ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ وفرمایل (تاسو غټ او واړۀ ریښم مۀ آغوندئ، او د سرو او سپینو په لوښو کښې خوراك څښاك مۀ کوئ، دا څیزونه په دنیا کښې د کافرانو دپاره دی او په جنت کښې به تاسو دپاره وی)۔

(بخاری:٥٤٢٦، مسلم : ٥٥٢١)

**مَا تَشۡتَهِيهِ الۡأَنفُسُ** : جزاء د جنس د عمل نه ده، دوی په دنیا کښې خپل نفسونه د شهواتو نه منع کړی وو نو د هغې مطابق جزاء ورکړے شوه۔

**وَتَلَذُّ الۡأَعۡيُنُ**: په دے دواړو الفاظو کښې تول اقسام د نعمتونو راګیر دی ځکه چه څه شوقونه او مزے د زړه سره تعلق ساتی او څه د سترګو سره۔ (البحر المحیط)

عبد الرحمن بن سابط ﷺ فرمائی : یو تن وویل اے د الله رسوله ! آیا په جنت کښې اسونه شته ؟ ځکه چه زما اسونه ډیر خوښ دی، وے فرمایل : که الله تا جنت ته داخل کړی نو که ته غواړے چه په یو اس باندے سور شے چه د سور یاقوت نه جوړ وی، او تا په جنت کښې والوزوی نو هم کولے به شے، او بل یو تن تپوس وکړو چه اے د الله رسوله ! آیا په جنت کښې اُوښان شته ؟ ځکه چه زما اُوښان خوښ دی، نو رسول الله ﷺ هغه ته د مخکنی شخص په شان خبره ونکړه۔ (بلکه) وے فرمایل : که الله تا جنت ته داخل کړی نو ستا دپاره به هر هغه څه ملاویږی چه ستا نفس ئے خواهش لری او ستا سترګه پرے یخیږی۔ (مسلم فی الایمان حدیث ٣١٢، ترمذی واحمد فی المسند ٣٥٢/٥)

**أُورِثۡتُمُوهَا**: یعنی لکه څنګه چه یو انسان د دنیا نه رخصتیږی نو د هغۀ وارثان د هغۀ د مال او جائیداد حقدار جوړیږی، دغه شان تاسو د خپلو نیکو اعمالو په بدله کښې ددے جنت وارثان جوړ شوی یئ۔

ددے آیت او دغه شان نورو آیتونو نه معلومیږی چه جنت په عمل سره ملاویږی او حدیث کښې د جنت د استحقاق د الله په رحم سره خودلے شویدے. نو بعض اهل علمو وئیلی دی چه استحقاق د جنت د الله په رحم سره دے او درجات د جنت په عمل سره ملاویږی نو دواړه خبرے صحیح دی، یا دا چه لوی عمل ایمان او توحیدے دے او حدیث کښې رحمت ذکر دے نو د هغے نه هم مراد ایمان او په توحید باندے استقامت دے.

**لَكُمْ فِيهَا**: او جنت کښې به تاسو ته بے شماره تازه او اُوچے میوے ملاویږی چه هغه به هیڅ کله هم نهٔ ختمیږی، اونهٔ به تاسو هیڅ کله ددے د خوراك نه بندولے شئ.

**فَاكِهَةٌ كَثِيرَةٌ**: یعنی ډیرو اقسامو والا میوه جات به وی سوئی د خوراك څکاك نه. لکه چه عام طور سره د خوراك نه روستو میوه جات خوړلے کیږی.

| إِنَّ الْمُجْرِمِينَ فِي عَذَابِ جَهَنَّمَ خَالِدُونَ ﴿٧٤﴾ لَا يُفَتَّرُ |
|---|
| یقیناً نافرمان به په عذاب د جهنم کښې همیشه وی. نهٔ به شی کمیدے (سپك به |
| عَنْهُمْ وَهُمْ فِيهِ مُبْلِسُونَ ﴿٧٥﴾ وَمَا ظَلَمْنَاهُمْ |
| نکړے شی) د دوی نه او دوی به په هغے کښې نا اُمیده وی. او ظلم نهٔ دے کړے مونږ په |
| وَلَٰكِنْ كَانُوا هُمُ الظَّالِمِينَ ﴿٧٦﴾ وَنَادَوْا يَا مَالِكُ لِيَقْضِ |
| دوی باندے لیکن وو دوی ظالمان. او آواز به اُوکړی دوی اے مالکه، فیصله دِے |
| عَلَيْنَا رَبُّكَ قَالَ إِنَّكُمْ مَاكِثُونَ ﴿٧٧﴾ |
| اُوکړی په مونږ باندے رب ستاسو، هغه به ووائی یقیناً تاسو به (پدے کښې) ایسار یئ. |
| لَقَدْ جِئْنَاكُمْ بِالْحَقِّ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَكُمْ لِلْحَقِّ كَارِهُونَ ﴿٧٨﴾ |
| یقیناً راوړے وو مونږ تاسو ته حق لره لیکن ډیر ستاسو نه حق لره بد ګنړی. |

**تفسیر**: قرآن کریم عام طور سره د ترغیب ورکولو نه پس د ترهیب (ویرولو) او د ترهیب نه پس د ترغیب اسلوب اختیاروی، دے وجے نه د جنت او ددے د نعمتونو ذکر کولو نه پس اُوس د جهنم او ددے د عذاب تذکره کوی. مګر ترهیب ئے د بشارت په نیمائی ذکر کړیدے یعنی په شپږو طریقو سره.

الله تعالیٰ وفرمایل: کوم مجرمان چه په دنیا کښې کفر او شرك اونور ګناهونه کوی، او

په دے حال کښې دوئ له مرګ راشي، دوئ به همیشه لپاره جهنم ته ګذارلے شي، د دوئ عذاب به هیڅ کله سپکېږي نهٔ، او د دوئ په زړونو باندے به همیشه لپاره د مایوسئ او نا امیدئ ژوره وریخ را خوره شوے وي۔

لَا يُفَتَّرُ: اَیْ لَا یُخَفَّفُ ۔ نهٔ به شي سپك کیدلے۔ تَفَتُّر دے ته وائي چه د کمزورے کولو اراده وکړے شي۔ او فتور عامے کمزورئ ته وائي یعنی کمزورے عذاب خو نهٔ دے لیکن الله تعالیٰ به اراده هم نهٔ کوي د هغے د کمزوري کولو۔ او بیضاويؒ لیکي چه تفتر او فتور لږ ضعف ته وئیلے شي یعنی دا عذاب به لږ هم نهٔ کمزورے کیږي۔

مُبْلِسُوْنَ: ۱- آيِسُوْنَ مِنَ النَّجَاةِ۔ نا امیده به وي د نجات او خلاصي نه۔

۲- سَاكِتُوْنَ سُكُوْتَ يَأْسٍ ۔ په هغے کښې به غلي وي لکه یو نا امیده انسان چه غلے او چپ وي۔

وَمَا ظَلَمْنَاهُمْ: الله فرمائي چه مونږ په دوئ ظلم نهٔ دے کړے، دوئ د کفر او شرك په کولو سره خپله په خپل ځان باندے ظلم کړے دے۔

وَنَادَوْا: جهنمیان به د جهنم داروغه (سینتري) ته آواز اوکړي، چه د هغه نوم مالك دے، او وبه وائي چه اے مالکه! ته د خپل رب نه زمونږ دپاره سوال اوکړه چه هغه مونږ مړهٔ کړي دے دپاره چه ددے عذاب نه نجات ملاؤ شي، دوي خپله الله ته آواز نشي کولے، ځکه چه الله د دوي آواز آوریدل نهٔ غواړي۔ دارنګه دوي مشرکان دي پدے وجه دوي غیر الله ته په آواز کولو د دنیا نه اموخته راغلي دي۔

لِيَقْضِ: د قضاء نه مراد فیصله د مرګ ده۔

نو دیوے اُوږدے مودے نه پس (چه ددے په باره کښې ګڼړ اقوال دي، وئیلے شوي دي چه دابه د اتیا (۸۰) کالو موده وي۔ بعضو وئیلي دي چه دابه د زرو کالو موده وي، (ابن عباسؓ) (فتح البیان) ترمذی کښې دي چه اَعْمَش وائي: ما ته رارسیدلي دي چه مالك به ورته زر کاله پس دغه جواب ورکړي۔ (ترمذي: ۲۵۸۶)

یو قول دادے چه دابه د (۱۰۰) سلو کالو موده وي)

مالك به دوئ له جواب ورکړي: زما د رب وینا ده چه تاسو به اُوس په همدے کښې همیشه اُوسیږئ، ځکه چه مونږ تاسو ته کتابونه درلیږلي وو، او انبیاء مو درلیږلي وو چه هغوئ ستاسو مخے ته د حق دعوت پیش کړو، نو تاسو نفرت ښرګند کړو، او ایمان مو رانهٔ وړو۔

مّٰاکِثُوۡنَ : اَیۡ مُقِیۡمُوۡنَ فِی الۡعَذَابِ ۔ یعنی اُوسیدونکی به یئ په عذاب کښې۔ د دوی خبرې په مالك او په رب د مالك باندې انتهائي سپکې دي۔

وَلٰکِنَّ اَکۡثَرَکُمۡ لِلۡحَقِّ کَارِهُوۡنَ : دا خطاب عامو انسانو ته دې ځکه چه انسانانو کښې اکثر خلقو باندې حق بد لګیږي ځکه چه د باطل سره راحت دې، او د حق سره ستړې والې، او د خواهش خلاف دې۔

| |
|---|
| اَمۡ اَبۡرَمُوۡۤا اَمۡرًا فَاِنَّا |
| آیا دوی مضبوط کړیدې یو کار (په دفعه کولو د حق کښې) نو یقیناً مونږ هم |
| مُبۡرِمُوۡنَ ﴿۷۹﴾ اَمۡ یَحۡسَبُوۡنَ اَنَّا لَا نَسۡمَعُ سِرَّهُمۡ |
| مضبوطونکی یو۔ آیا دوی ګمان کوي چه یقیناً مونږ نهٔ آورو پټې خبرې د دوی |
| وَنَجۡوٰىهُمۡ بَلٰی وَرُسُلُنَا لَدَیۡهِمۡ یَکۡتُبُوۡنَ ﴿۸۰﴾ |
| اوجرګې د دوی، ولې نهٔ، او استازي (ملائك) زمونږ د دوی سره دي، چه لیکل کوي۔ |
| قُلۡ اِنۡ کَانَ لِلرَّحۡمٰنِ وَلَدٌ فَاَنَا اَوَّلُ الۡعٰبِدِیۡنَ ﴿۸۱﴾ |
| اُووایه ! که چرته وې د رحمٰن دپاره ولد نو زهٔ به وې اول د بندګی کونکو نه (د هغهٔ)۔ |
| سُبۡحٰنَ رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ رَبِّ الۡعَرۡشِ عَمَّا یَصِفُوۡنَ ﴿۸۲﴾ |
| پاکی ده رب د آسمانونو او د زمکې، چه رب د عرش دې د هغې نه چه دوی ئې بیانوی |
| فَذَرۡهُمۡ یَخُوۡضُوۡا وَیَلۡعَبُوۡا حَتّٰی یُلٰقُوۡا |
| (الله لره)۔ نو پریده دوی چه بکواس وکړي او لوبې وکړي تردې چه ملاؤ به شي |
| یَوۡمَهُمُ الَّذِیۡ یُوۡعَدُوۡنَ ﴿۸۳﴾ |
| د ورځې د دوی هغې سره چه دوی سره ئې وعده کیدې شي۔ |

**تفسیر :** ربط :

اُوس د مشرکانو د حق بد ګنړلو یو مثال راوړي چه دوی به د حق مقابله کوله۔ یعنی مخکښې د جهنمیانو د تکلیفونو بیان وشو نو اُوس خبره بیرته د قریشو د کافرانو او د دوئ د هغه سازشونو خواته اړولې شویده کوم چه دوئ د نبی کریم ﷺ په خِلاف کول، په

دي کښې اشاره ده چه د دوئ همدا جرمونه به دوئ جهنم ته اُورسوي۔

أَمْ أَبْرَمُوا : الله تعالیٰ وفرمایل چه دې کافرانو زما د نبي او د هغهٔ د دعوت خِلاف زبردست سازش کړې دې، نو مونږ هم فیصله کړې ده چه د دوئ سازشونه به ناکامووو، او دوئ به په عذاب کښې اخته کوو۔ د سورتِ طور په (٤٢) آیت کښې دا خبره داسې بیان شوې : ﴿ أَمْ يُرِيدُونَ كَيْدًا فَالَّذِينَ كَفَرُوا هُمُ الْمَكِيدُونَ ﴾ (آیا د مکې کافران څهٔ سازش کول غواړي، نو یاد لرئ چه په حقیقت کښې به د همدې خلقو خِلاف تدبیر کیږي)۔

أَبْرَمُوا أَمْرًا فِيْ مُدَافَعَةِ الْحَقِّ۔ آیا دوی یو کار مضبوط کړیدې په مدافعت او مقابله د حق کښې او چلونه ئې تیز کړیدي۔ ابرام د یو شي کلکه او مضبوطه فیصله کول دي او هغه په ګنړه سره کیږي۔

فَإِنَّا مُبْرِمُونَ : ١- یعني مونږ به د حق د ثابتولو او عام کولو دپاره خپل کار مضبوطونکي یو۔ (مجاهدؒ، قتادهؒ، ابن زیدؒ)

٢- یا د اِبرام نه مراد فیصله کول دي یعني دوی د حق د ختمولو فیصلې کوي، نو یقیناً مونږ په دوی باندې د عذاب فیصله کوو۔ (کلبيؒ) (فتح البیان)

أَمْ يَحْسَبُونَ : د مکې کافرانو دا ګمان کولو چه مونږ د دوئ د زړونو رازونه او په پټو ځایونو کښې د اسلام او د رسول الله ﷺ خِلاف د دوئ سرګوشیانې نهٔ آورو، دا د دوئ خام خیالي او کم عقلي ده، مونږ د دوئ د زړونو رازونه پیژنو، او د دوئ سرګوشیانې (پټې خبرې) آورو، او زمونږ ملائك د دوئ تمام اقوال او افعال لیکي۔ چونکه دوی د حق سره دشمني په زړه کښې ساتلې وه او بیا به ئې په پټه د خپلو ملګرو سره جرګې کولې نو په هغې باندې دلته رټنه ورکوي۔

ابن جریرؒ د محمد بن کعب قُرَظِيؒ روایت نقل کړیدې چه د کعبې د غلاف په خوا کښې دوه قریشیان او یو ثقفي ناست وو یا دوه ثقفیان او یو قریشي ناست وو نو یو تن ووېل : آیا ستاسو دا عقیده شته چه الله به زمونږ خبرې آوري؟ نو یو تن ووېل : کله چه تاسو په زوره خبرې کوئ نو هغه آوري او کله چه پټې کوئ نو نهٔ آوري، نو دا آیت نازل شو۔

یحیی بن معاذؒ فرمائي : "څوك چه د خلقو نه ګناهونه پټ ساتي او هغه ذات ته ئې ښکاره کوي چه د هغه نه هیڅ څیز په آسمانونو کښې پټ نهٔ دې نو دائې د الله تعالیٰ ډیره بې عزتي وکړه او دا د علاماتو د منافقت نه ده"۔

سِرَّهُمْ : دا هغه خبره ده چه انسان ئې ځان سره کوي، یا ئې بل چا سره کوي۔ او نجوئ

هغه ده چه ډیر کسان ئې خپل مینځ کښې کوی په پته سره۔
قُلۡ إِن كَانَ لِلرَّحۡمَٰنِ : دا د شپاړسم آیت سره متعلق دے، تاسو وایئ: چه ملائك د الله اولاد دی، نو دا خبره ستاسو غلطه ده۔
دارنګه پدے کښې د مشرکانو د دلیل او شبهے جواب دے چه هغوی وئیلی وو چه تیك ده چه د الله نه سوئ بل إِلٰه نشته لیکن ملائك د الله اولاد دی، دوی ته ئې واك ورکړے، نو د هغوی عبادت جائز شو نو دلته الله تعالیٰ ددے رد کوی۔
د نبی کریم ﷺ په ژبه وئیلے شوی چه فرض کړه که د الله څۀ اولاد وے، نو د تولو نه مخکښې به ما د هغۀ عبادت کولے، لیکن چونکه د هغۀ هیڅ اولاد نشته، دے وجے نه زۀ د هغۀ نه سوئ د بل هیڅا عبادت نۀ کوم۔

## اشکال او جواب

دلته بعض مفسرینو ته دا اشکال راغلے دے چه رسول الله ﷺ څنګه دا خبره وکړی چه که د الله اولاد وے نو ما به ئې اول عبادت کولے، نو آیا رسول الله ﷺ شرك ته دعوت ورکوی؟ نو بیا ئې یو جواب دا کړیدے چه دلته (إِنۡ) په معنیٰ د نفی سره دے، یعنی د الله اولاد نشته نو څکه ئې زۀ اول عبادت کوم۔ (۲) دویم جواب ئې دا کړیدے چه عبادت کله په معنیٰ د نفرت سره راځی، یعنی که د الله اولاد وے نو ما به ترے اول نفرت کولے۔ لیکن دا تفسیر بیخی د آیت خلاف او بر ضد دے۔
(۳) صحیح تفسیر دغه دے چه إِنۡ په خپله معنیٰ دے، او دا کلام په فرض محال بناء دے، یعنی د الله اولاد نشی کیدے، خو فرض کړه که اولاد وے، نو ما به ئې اول عبادت کولے څکه چه الله به پرے رضا وے، او د هغه محبوب به وے، څکه چه د تولو نه اول تابعدار د الله تعالیٰ زۀ یم، او زۀ د هغۀ سره زیاته مینه لرم، نو هرکله چه زۀ د الله نه سوئ د هیڅا عبادت نکوم، دا دلیل دے چه د الله اولاد نشته۔
یعنی تاسو اے مشرکانو! زما نه زیات د الله تعالیٰ سره محبت نۀ لرئ چه تاسو الله ته زما نه زیات ځان نزدے کوئ۔ هرکله چه زۀ د دغه اولادو عبادت نۀ کوم نو تاسو ئې څنګه کوئ۔ که د الله اولاد وے، نو ستاسو نه مخکښې به ما الله ته ځان نزدے کړے وے۔
لکه مشرکانو ته یو موحد ووائی چه که قبرونو ته سجدے کولو باندے الله راضی کیدے، او د هغۀ امر وے، نو ستاسو تولو نه به اول مونږ تولو قبرونو ته سجدے کولے

ځکه چه تاسو زمونږ نه د الله سره زیاته مینه نهٔ لرئ۔ نو پدے کښ نفی د اولاد ده په ډیره کامله طریقه سره او دا تفسیر ابن جریرؒ وغیره راجح کړیدے۔

**سُبْحَانَ رَبِّ السَّمَاوَاتِ** : پدے کښ الله تعالیٰ د مشرکانو د خبرو نه خپله پاکی بیان کړے ده، او په عقیده د اتخاذ الولد باندے مضبوط رد دے چه د صفت د ربوبیت او د اولادو نیولو ترمینځ تضاد دے ځکه چه الله لره اولاد راتلل احتیاج لره مستلزم دی او رب العالمین محتاج نشی کیدے، هغه خو د ټول عالَم مُربیّ دے، د بره طرف او د خکته طرف او د مینځ (چه آسمانونه) دی، هر شے د هغهٔ په قبضه او قدرت کښ دے، نو معلومه شوه چه الله تعالیٰ په هیڅ جزء د دنیا کښ ولد او نائب ته محتاج نهٔ دے۔

او که چرے دا آیت د نبی کریم ﷺ د مخکنی قول یوه برخه اومنلے شی، نو مطلب به دا وی چه زما رب د مشرکانو ددے تهمت نه بیخی پاك دے چه څوك د هغهٔ اولاد شی۔ هغه خو د آسمانونو او زمکے او د عرشِ مُعلیٰ رب او مالك دے، هیڅ شے د هغهٔ د قبضے او قدرت نه بهر نهٔ دے۔

**فَذَرْهُمْ**: نبی کریم ﷺ ته وئیلے شوی دی چه د مکے مشرکان که ستا د توحید دعوت نهٔ قبلوی، او په خپل شرك باندے ټینګ پاتے کیږی، نو تهٔ دوئ په خپله باطل پرستئ باندے سرګردانه پریده، او په لوبو تماشو کښ ئے مشغول پریده، تردے چه د قیامت هغه ورځ راشی، کله چه الله تعالیٰ دوئ لره د دوئ دروغو ترلو په وجه جهنم ته ګذار کړی۔

دا آیت دلیل دے چه مشرکان د الله تعالیٰ په باره کښ کومے خبرے کوی نو دا سراسر جهالت، بکواس او لوبے دی۔

په خوض کښ اشاره ده چه مشرکان په باطلو شبهاتو کښ مشغول دی، او په (يَلْعَبُوا) کښ اشاره ده چه مشرکان په شهواتو کښ مشغول دی۔

| وَهُوَ الَّذِي فِي السَّمَاءِ إِلَٰهٌ وَفِي الْأَرْضِ إِلَٰهٌ وَهُوَ |
|---|
| او الله هغه ذات دے چه په آسمان کښ معبود دے او په زمکه کښ معبود دے او هغه |
| الْحَكِيمُ الْعَلِيمُ ﴿٨٤﴾ وَتَبَارَكَ الَّذِي لَهُ مُلْكُ |
| حکمتونو والا، پوهه دے۔ او برکت اچونکے دے هغه ذات چه هغهٔ لره بادشاهی |
| السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَعِندَهُ عِلْمُ |
| د آسمانونو او د زمکے ده، او د هغه څه په مینځ د دواړو کښ دی او د هغهٔ سره علم |

| |
|---|
| السَّاعَةِ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٨٥﴾ وَلَا يَمْلِكُ الَّذِيْنَ |
| د قيامت دے، او خاص هغهٔ ته به ورکرځولے شئ۔ او اختيار نهٔ لري هغه کسان |
| يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهِ الشَّفَاعَةَ إِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ |
| چه رابلي دوي سوئ د الله نه د سفارش مګر هغه څوك چه ګواهي ورکوي په حق |
| وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿٨٦﴾ وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ |
| او دوي پو هيږي (په حقيقت ددے حق او توحيد)۔ او که تپوس اُوکړے تهٔ د دوي نه |
| مَّنْ خَلَقَهُمْ لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ فَأَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ﴿٨٧﴾ |
| چا پيدا کړيدي دوي لره خامخا وائي به دوي، الله، نو کوم طرف ته ګرځولے شي دوي۔ |
| وَقِيْلِهٖ يٰرَبِّ إِنَّ هٰؤُلَاءِ قَوْمٌ |
| او قسم دے په وينا ددهٔ (نبي) چه اے ربه زما! يقيناً دا کسان قوم دے |
| لَّا يُؤْمِنُوْنَ ﴿٨٨﴾ فَاصْفَحْ عَنْهُمْ وَقُلْ سَلٰمٌ |
| چه ايمان نهٔ راوړي۔ نو مخ واړوه د دوي نه او وايه! سلامتيا ده (زمونږ او ستاسو |
| فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ﴿٨٩﴾ |
| ترمينځ) نو زر دے چه دوي به پو هه شي۔ |

**تفسير:** اُوس الله بيا خپل عظمت بيانوي، او پدے کښې رد د شرك دے، او جواب د يو وَهم دے چه الله تعالىٰ اګرکه د عالَم رب دے ليکن امکان شته چه په اُلوهيت کښې ئے بل چا لره برخه ورکړي وي؟ نو جواب وشو چه لکه څنګه چه د الله په ربوبيت کښې شريك نشته، نو دغه شان په اُلوهيت (عبادت) کښې هم شريك نهٔ لري۔

يعنې دغه الله په زمکه او آسمانونو کښې د عبادت کولو لائق دے، د هر تعظيم او محبت هم هغه مستحق دے، او د هر يو بنده ذلت او انکساري صرف هغهٔ لپاره جائز ده، د هغهٔ هر يو کار په حکمت باندے مَبْنِي دے او د هغهٔ علم د مخلوق په تمامو احوالو او کيفياتو باندے راګير دے، د هغهٔ ذات بښځې او اولاد ته محتاج نهٔ دے، هغه ددے عيب نه ډير زيات بلند او بالا دے، د آسمانونو او زمکے او ددے دواړو ترمينځه د هر يو شئ

مالك يـوائې هغـه دے، د هغهٔ نه سوئ هیچاته پته نشته چه قیامت به کله راځي۔ او ټول به هغهٔ طرفته ورګرځولے شي، چه هلته به هغه هر چاله د هغهٔ د کړو بدله ورکوي۔

فِي السَّمَاءِ إِلٰهٌ : إِلٰـه پـه معنئ د معبود او مستحق د عبادت سره۔ یعني د الله تعالیٰ عبادت په آسمانونو کښې هم کیږي او په زمکه کښې هم، نو صرف بندګي د هغهٔ کوئ، د هغهٔ نه سوئ نهٔ په آسمان کښې څوك د عبادت مستحق شته، او نهٔ په زمکه کښې۔

نـو دلتـه اله په معنئ د مألوه (معبود) سره دے، او ددے نه د باطل پرستو استدلال کول غـلـط دی چـه وائـي الله پـه هـر ځای کښې دے، ځکه چه دا د الله تعالیٰ بے عزتي ده چه په ورو کـي مـخلوق کښې د الله وجود وګڼړلے شي۔ آسمانونه او زمکه بلکه ټول کائنات د الله پـه نسبت بیخي واړه دي۔ او دے استدلال سره صریح محکم آیت رد کول دي چه هغه (الرحمن علی العرش استویٰ) رحمن ذات په عرش برابر دے۔ نو الله تعالیٰ په اعتبار د ذات سره هر ځای ګڼړل د قرآن او حدیث خلاف عقیده ده۔

وَتَبَارَكَ الَّذِيْ : دا پـه بـلـے طـریقے سره رد دے او دفع د وَهم ده، وهم دا دے چه واقعي الله تـعـالـیٰ رب دے او اِلـٰـه دے لیـکـن کیـدے شـي چـه د بعض برکاتو او منافعو پیدا کولو اختیار او قدرت ئے بل چاته سپارلے وي، نو هغه به ولد یا شریك شي؟

حاصـل د جواب دا دے چه بادشاهي د آسمانونو او د زمکے او ددے د مابین او د قیامت عـلـم صرف الله تعالیٰ سره دے، او هغهٔ ته ټول کارونه ورګرځي هغه ددے اختیار هیچا ته نهٔ دے ورکړے۔

وَإِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ : مـفـسـرین لیکي چه په دے جملہ کښې د کفر او شرك او نورو ګناهونو کونکو لپاره زبردسته دهمکي ده۔

وَلَا يَمْلِكُ الَّذِيْنَ : د عـربـو مـشـرکان په دے باطل ګمان کښې مبتلا وو چه ملائك او د دوئ نـور دروغـژن مـعـبـودان به د قیامت په ورځ دوئ لپاره سفارشي جوړیږي، ځکه ئے د دوئ عبادت کـولـو۔ نـو الله تـعـالـیٰ پـه دے آیتِ کـریـمـه کښې د دوئ د همدے مشرکانه عـقیـدے رد وکـړو چـه دا بـاطـل مـعـبـودان د هیـچـا لپاره د سفارش کولو اختیار نهٔ لري، شـفـاعـت خـو بـه د الله په اجازت سره صرف د هغهٔ هغه بندګان چا دپاره کوي چه هغه د زړهٔ پـه صـدق سره د الله د وحـدانیت اقـرار کـړے وي، او هیڅوك د هغـهٔ سره شریك نـهٔ جوړوي۔

پـه بـل تـعـبیـر سره دا جـواب د مشهـورے شبهے دے چـه مشرکان وائي : مونږ خپلو

معبودانو ته آلهه نهٔ وایو، رب او خالقان ورته نهٔ وایو صرف دا چه زمونږ د دنیا حاجتونه په الله تعالیٰ باندے پوره کوی او آخرت کښ به هم مونږه د الله تعالیٰ د عذاب نه بچ کوی ځکه چه دوی د الله تعالیٰ محبوبان او مخوریز خلق دی نو الله تعالیٰ به مجبوراً د دوی خبر منی نو جواب وشو په رد ددے عقیدے سره۔

يَدْعُوْنَ: ددے مفعول پټ دے یعنی يَدْعُوْنَ آلِهَةً۔ دوی رابلی نور معبودان سویٰ د الله نه۔ نو پدے به رد وی د شفاعت د مشرکانو په آخرت کښ۔ چه دوی به د ځان دپاره د شفاعت اختیار نهٔ لری چه چا ته ووائی چه مونږ لره سفارش وکړئ لکه څنګه به ئے چه دنیا کښ باباګانو ته وسیلے پیش کولے او هغوی ته به ئے آوازونه کول چه اے بابا مونږ سره مدد وکړه او مال کښ مو برکت واچوه۔ آخرت کښ ئے دا سفارشونه ختم۔

یا یدعون کښ ضمیر مشرکانو ته راجع دے او (هم) ضمیر پټ دے هغه معبودانو ته راجع دے۔ اَیْ لَا يَمْلِكُ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَهُمْ مِنْ دُوْنِهِ الشَّفَاعَةَ)

یعنی اختیار نهٔ لری هغه معبودان چه مشرکان ئے رابلی سویٰ د الله تعالیٰ نه، د سفارش کولو۔ مشرکانو لره۔ یعنی مشرکانو نه به خپل معبودان براءت وکړی او د هغوی دپاره د هیڅ سفارش اختیار نهٔ لری۔

اِلَّا مَنْ شَهِدَ: پدے کښ هم استثناء د شفیع او مشفوع له دواړه کیدے شی۔

(۱) اول استثناء متصله ده د شفعاؤ نه یعنی مشرکان یا د هغوی معبودان د سفارش اختیار نهٔ لری مګر هغه سفارش کونکے به ئے لری چه هغه بیان د حق کړے وی، او ګواهی د حق ئے کړی وی په دنیا کښ یعنی لا اله الا الله اقرار ئے کړے وی،

(وهم یعلمون) اَیْ مَا يَشْهَدُوْنَ بِهٖ ۔او دوی پو هیږی په هغه خبره چه په کومه ګواهی ورکوی یعنی بیرته په خپله خبره پوهه شویدے یعنی د لا اله الا الله په حقیقت پوهه شویدے، هسے تقلیدی طریقے سره ئے نهٔ ده ونیلے۔

نو د يَدْعُوْنَ نه که د مشرکانو معبودان مراد شی پدے کښ ملائك او عیسیٰ او عزیر علیهم السلام او نور اولیاء هم داخل وو نو بیا په الا من شهد سره ترے خارج شو۔

یا يَعْلَمُوْنَ: اَیْ بِحَالِ الْمَشْفُوْعِ لَهٗ۔ یعنی چا دپاره چه سفارش کوی د هغوی په حال هم پوهیږی چه هغه د سفارش لائق دے چه هغه به مشرك نهٔ وی۔

(۲) یا استثناء د مشفوع له ده یعنی د هغه چا دپاره به شفاعت کولے شی چه هغه دنیا کښ د حق ګواهی ورکړیده، او دوی پدے کلمه او ددے په مقصد پوهه شوی دی، لیکن

بيا ترے گناهونه شويدي. كه چا كلمه ووئيله او په مطلب ئے نهٔ پو هيږي نو هغه مسلمان نهٔ دے، هغه دپاره به شفاعت نهٔ كوي.

وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ : الله تعالىٰ نبي كريم ﷺ ته وئيلي دي : كه تهٔ د مشركانو نه پوښتنه اوكړے چه دوئ چا پيدا كړي دي، نو دوئ به جواب وركوي چه مونږ الله پيدا كړي يو، يعني دا خبره دومره ښكاره ده چه دوئ په هيڅ حال كښې هم ددے نه انكار نشي كولے. نو بيا دا د دوئ څومره كم عقلي ده چه عبادت د هغهٔ نه سوئ د بل چا كوي، او بل څوك مخلوق په الله باندے په زور سره شفاعت كونكي مني. نو بيا دوي د الله نه سوئ د نورو عبادت څنګه كوي.

مَّنْ خَلَقَهُمْ: دا ضمير مشركانو يا معبودانو يا دواړو ته راجع دے.

وَقِيْلِهٖ : پدے آيت كښې زجر دے ١- او واو عاطفه دے، عطف دے په الساعة باندے اَیْ وَعِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ وَعِلْمُ قِيْلِهٖ. يعني الله ته د قيامت علم هم دے او هغه ته د خپل نبي شكايت هم معلوم دے چه الله ته ئے په تاسو باندے كړيدے.

يعني الله ته د خپل رسول (ﷺ) د درد نه ډكے دے خبرے پته ده چه هغه الله ته ووئيل : اے زما ربه ! د مكے دے مشركانو ايمان رانهٔ وړو، د دوئ عناد او د دوئ د زړونو سختي د حد نه تيروتے ده. نو اے زما رسول ! تهٔ دوئ په خپل حال باندے پريده، او دوئ نه جدا شه، دوئ ته به ډير زر خپل انجام معلوم شي.

٢- يا واو قسميه دے او قيل مصدر دے په معنىٰ د قول سره او (يَارَبِّ) مقوله د قول ده تر آخره پورے او جواب د قسم پټ دے (اِنَّ هٰٓؤُلَاءِ لَمُعَانِدُوْنَ) يعني پدے قول باندے قسم دے چه دا خلق خامخا عناديان او ضديان دي څكه ايمان نهٔ راوړي.

فَاصْفَحْ : دا د الله د طرفنه خپل نبي ته تسلي ده، كله چه هغه د خپل قوم شكايت الله ته وكړو نو الله جواب وركړو چه اُوس د دوي په ايمان نهٔ راوړو خفګان مهٔ كوه، هيڅ باك پرے مهٔ لره او دوي په خپل حال پريده.

وَقُلْ سَلَامٌ : دا سلام د متاركة او توديع (رخصتئ) دے. او دا د تحيه سلام نهٔ دے. يعني داسے ورته ووايه چه زما د طرفنه به تاسو ته هيڅ ضرر نهٔ وئ، الله به درسره ګوري، انتظار كوئ.

فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ : اَیْ عَاقِبَةَ التَّكْذِيْبِ . يعني زر دے چه دوي ته به د تكذيب انجام معلوم شي.

## امتیازات د سورت

۱- پدې سورت کښې د استهزاء مسئله زياته وه۔
۲- د ملائکو متعلق خبره وه چه دوی زنانه نهٔ دی۔
۳- رد د تقلید پکښې تفصیلاً ذکر وو۔
٤- د دنیا زهد پکښې په ناشنا انداز کښې وو۔
٥- د قریتین (طائف او مکې) ذکر پکښې خصوصي وو۔
٦- انا اول العابدین پکښې ناشنا وو۔ یعنی رسول الله ﷺ وائی که شرك جائز وے نو ما به کولے۔

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ○

| آیاتها (٥٩) | (٤٤) سورة الدخان مکیة (٦٤) | رکوعاتها (٣) |
|---|---|---|

سورتِ دخان مکی دے، په دے کښې نهه پنځوس آیتونه او درے رکوع دی

## تفسیر سورة الدخان

نوم: د (١٠) آیت: ﴿ فَارۡتَقِبۡ یَوۡمَ تَاۡتِی السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِیۡنٍ ﴾ نه اخستے شوے۔ د لوړی تذکره پکښې راغلے ده څکه ورته دخان وائی۔

د نازلیدو زمانه: قرطبیؒ لیکلی دی چه دا سورت په اتفاق سره مکی دے۔ صرف د (١٥) آیت ﴿ اِنَّا کَاشِفُوا الۡعَذَابِ قَلِیۡلًا ﴾ په باره کښې وئیلے شویدی چه دا مدنی دے۔ ابن مردویهؒ د ابن عباس ابن الزبیر رضی الله عنهم نه روایت کړی دی چه سورتِ الدخان په مکه کښې نازل شوے وو۔ ددے د مضامینو نه هم ددے تائید کیږی۔

### فضیلت:

دا سورت به کله نا کله رسول الله ﷺ د ماښام په مانځه کښې لوستلو۔ او د جُمعے په شپه لوستلو په باره کښې ئے فضیلت دا راغلے دے چه بخښنه به ورته وشی لیکن هغه مرسل ضعیف روایت دے۔

### مناسبت

١- مخکښې سورت کښې استهزاء ذکر وه، نو پدے سورت کښې د رسول الله ﷺ د رسالت اثبات دے۔ (اِنَّا کُنَّا مُرۡسِلِیۡنَ)

٢- بله مناسبت دا دے چه هلته استهزاء وه، او دلته انذار ذکر دے۔ یعنی څوك چه توقے کوی د الله عذاب ته دے تینګ شی، هغه پرے راروان دے۔

### د سورت مقصد

١- بَیَانُ صِدۡقِ الرَّسُوۡلِ۔ د رسول الله ﷺ رشتینوالے۔

۲- بعض وائي : د توحيد اثبات پکښې مقصود دی دے (لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ).
۳- ليکن ظاهر دا ده چه پدے سورت کښې اَلۡاِنۡذَارُ بِالۡعَذَابِ الدُّنۡيَوِيِّ وَالۡاُخۡرَوِيِّ لِمُخَالِفِ الرَّسُوۡلِ دے، يعني الله يره ورکوی د دنيا په عذاب لکه د فرعونيانو او د دخان واقعه راوړی، او د آخرت عذاب بيانوی هغه چا لره چه د رسول الله ﷺ په مخالفت کښې ودريږی.
د رسول الله ﷺ دعوت څه ته دے؟ نو پدے کښې به د الله عظمت او لوی والے هم بيان شی۔ نو سورت پدے طريقه روان دے چه د دنيا او د آخرت عذابونه او واقعه د فرعونيانو او په آخره کښې بشارت ذکر دے د رسول الله ﷺ تابعدارو دپاره.

| حٰمٓ ﴿۱﴾ وَالۡكِتٰبِ الۡمُبِيۡنِ ﴿۲﴾ |
|---|
| ددے حروفو په مطلب الله خبر دے. قسم دے په کتاب ښکاره مضمون والا. |
| اِنَّاۤ اَنۡزَلۡنٰهُ فِیۡ لَيۡلَةٍ مُّبٰرَكَةٍ اِنَّا كُنَّا مُنۡذِرِيۡنَ ﴿۳﴾ |
| يقيناً مونږ نازل کړيدے دا قرآن په شپه برکتونو والا کښې يقيناً مونږ يره ورکونکی يو. |

**تفسير** : پدے کښې د قرآن کريم عظمت بيانيږی. د سورتِ زخرف د (۲) آيت پشان دلته هم الله تعالیٰ په قرآن کريم باندے قسم خوړلے، او ددے خبرے يقين ئے ورکړے چه دا قرآن د محمد (ﷺ) کلام نهٔ دے، بلکه دا مونږ نازل کړے دے.
دارنګه هلته ئے هم ووئيل چه دا مُبِيۡن (يعنی وضاحت کونکے) کتاب دے، دلته بيا وائی، هلته وضاحت وو په دليلونو او په جواب د شبهاتو سره، او دلته وضاحت دے په عذابونو بيانولو سره دپاره د منکرينو.
او ددے قسم جواب (اِنَّاۤ اَنۡزَلۡنٰهُ) دے، يا (اِنَّا كُنَّا مُنۡذِرِيۡنَ) دے، دواړه صحيح کيږی. په اول صورت کښې به د قرآن کريم عظمت او صدق ته اشاره وی، او په دويم صورت کښې به د قرآن د رالیږلو مقصد ته اشاره وی.
او مـنـذرين کښې بَرَاعَةُ الۡاِسۡتِهۡلَالِ ذکر دے چه اول کښې انذار ذکر شو نو روستو به هم د انذار متعلق خبره بيانيږی.
لَيۡلَةٍ مُّبٰرَكَةٍ: ددے نه مراد بعض وائی د شعبان نيمائی شپه ده (پنځلسے) ليکن د هغے

د فضیلت په باره کښې روایت ضعیف دے، نو صحیح دا ده چه ددے نه مراد لیلة القدر ده لکه په سورة البقره (۱۸۵) آیت او سورة القدر کښې د هغې بیان راغلے دے۔

قتادة وائی چه ټول قرآن کریم د قدر په شپه د لوح محفوظ نه د دنیا آسمان بیت العزت ته نازل کړے شو، بیا هلته نه الله تعالیٰ د دریشت کالو په موده کښې په مختلفو اوقاتو کښې نازل کړو۔ بعضِ مفسرین وائی: چونکه د قرآن د نازلیدو شروع د رمضان په میاشت کښې اوشوه، دے وجے نه علیٰ سبیل التغلیب دلته وئیلے شوی دی چه قرآن د رمضان په میاشت کښې نازل شوے۔ یعنی شروع د نزول ئے په مبارکه شپه کښې وشوه۔

مُبٰرَكَةٍ: الله تعالیٰ دے شپے ته د برکتونو والا شپه ځکه وئیلے چه په دے کښې قرآن کریم نازل شو، چه په دے کښې د دنیا او د دنیا د هرے بنیګړے طرفته د انسانانو رهنمائی شوے، او ددے په ذریعه د الله رحمت او برکت او عدل او هدایت په تمام عالَم کښې خور شوے، او ددے شپے د وجے نه نبی کریم ﷺ ته ډیره زیاته اوچته مرتبه ملاؤ شوه، او دا هغه شپه ده چه په دے کښې ملائك او روح الامین زمکے ته راکوزیږی،

او په دے کښې الله تعالیٰ په راتلونکے ټول کال کښې واقع کیدونکی مرګ او ژوند، خیر او شر او په روزئ کښې فراخی اوتنګی او نور ټول تقدیرونه لیکی۔

او ددے قرآن کریم د نازلیدو مقصد پیریانو او انسانانو لره د قیامت د ورځے د عذاب نه یرول وو، دے دپاره چه دوئ د ایمان او عملِ صالح ژوند اختیار کړی او د اُور د عذاب نه بچ شی، او د جنت حقدار جوړ شی۔

فِيهَا يُفۡرَقُ كُلُّ أَمۡرٍ

پدے شپه کښې فیصله کولے شی (جدا کولے شی) (په کتاب د ملائکو کښې) د هر کار

حَكِيمٍ ﴿٤﴾ أَمۡرًا مِّنۡ عِندِنَا

حکمت والا۔ په حکم کولو سره د طرف زمونږ نه (چه حکم وی زمونږ د طرف نه)

إِنَّا كُنَّا مُرۡسِلِينَ ﴿٥﴾ رَحۡمَةً مِّن رَّبِّكَ إِنَّهُ

یقیناً مونږ لیږونکی د رسول یو۔ د وجے د رحمت نه د طرف د رب ستا نه یقیناً

هُوَ السَّمِيعُ الۡعَلِيمُ ﴿٦﴾ رَبِّ السَّمَاوَاتِ وَالۡأَرۡضِ وَمَا بَيۡنَهُمَا

هغه آوریدونکے، پوهه دے۔ رب د آسمانونو او د زمکے دے او هغه چه په مینځ د

إِنْ كُنتُمْ مُّوقِنِينَ ﴿٧﴾ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ

دواړو کښې دی که یئ تاسو یقین کونکی۔ نشته حقدار د بندګئ سوئ د هغهٔ نه،

يُحْيِي وَيُمِيتُ رَبُّكُمْ وَرَبُّ آبَائِكُمُ الْأَوَّلِينَ ﴿٨﴾

ژوندی کول کوی او مړهٔ کول کوی، رب ستاسو دے او رب د پلارانو ستاسو مخکنو دے۔

**تفسیر** : فِيهَا يُفْرَقُ : دا د دغـه شپے دویـم صفـت دے۔ یعنی پدے شپـه کـښې هر د حـکـمـت والا کار فـیـصله کولے شی او د لوح محفوظ نه جدا د ملائکو په صحیفو کښې لیـکلے شـی مثلًا فـلانے به داسے کار کوی، نو ددے نه به داسے نتیجه پیدا کیږی چه په هغے کښې ډیر زیات حـکـمـتونه او رازونه او کمالات وی، چه ملائك د هغے نه تعجب کـوی، او د هغـوی ایمان پرے زیاتیږی۔ او حـکـیم معنیٰ دا هم ده چه داسے مُحکم او مـضبوط وی چه په هغے کښې به هیڅ تغییر او نقصان نهٔ راځی، نو د ټول کال تقدیر الله تـعالیٰ د لوح مـحـفـوظ نه پدے شپه راجدا کوی چه پدے سره د ملائکو ایمان نور هم زیات شی۔ (ابن عباسؓ، مجاهدؒ، قتادهؒ والحسنؒ)

نو د حکیم اولے معنے سره دویمه معنیٰ لازمه ده۔ حکمة هر شے په خپله موقعه باندے استعمالولو ته وئیلے شی۔

نو د (یُفْرَقُ) یوه معنیٰ د فیصلے او بل د راجدا کولو ده۔

او د (فِيهَا يُفْرَقُ) مـناسبت : د لوح محفوظ نه الله تعالیٰ د کار پروګرامونه راجدا کوی نو دارنګـه قـرآن ئے هم پدے شپـه راواخستو او امت ته ئے ورکړو، نو په دغه شپه کښې یو عـظیم کار دا وشو۔ دویم مناسبت : د (كُنَّا مُنْذِرِينَ) سره لګی۔ الله بندګان یره وی نو ددے نـه هم ویـریږئ چه روژه تیره شوه، پدے کښې کیدے شی اے انسانه! چه د لوح محفوظ نـه ستا اجل راجدا شوے وی، او د ملائکو په کتابونو کښې لیکلے شوے وی، نو دے دپاره تیارے وکړه په تابعدارئ د قرآن او د رسول سره۔ نو دا هم ډیرے خبره شوه۔

او پدے حـکـمـت نو باندے بندګان سوچ نهٔ کوی ګنے ډیر خیرونه به ورته حاصـل شی او پدے باندے بنده الله تعالیٰ لره پیژنی۔

اَمْرًا مِّنْ عِنْدِنَا : امراً مـنصوب دے مفعول مطلق دے دپاره د (نَأْمُرُ) یـعنی مونږ حکم

کوو په حکم کولو سره د خپل طرفنه. یا یَکُوۡنُ لفظ پټ دے.
لکه حافظ ابن کثیرؒ ورته اشاره کړیده یعنی دا کار زما په حکم سره کیږی. او مطلب ئے دا دے چه د ملائکو په اختیار کښ دا کارونه نهٔ وی بلکه د الله تعالیٰ فیصله وی او د هغه په اجازه باندے دا کارونه راخستلے کیږی.
یا قرآن کریم مونږ په خپل حکم سره آسمان د دنیا ته نازل کړیدے نو پدے کښ د قرآن کریم نور اهمیت ذکر دے.
دے کښ بعید تفسیرونه دا دی : ۲- چا وئیلی دی چه اَمۡرًا حال دے د ضمیر متکلم د اَنۡزَلۡنَا نه په معنیٰ د فاعل سره. اَیۡ اَنۡزَلۡنَاهُ حَالَ کَوۡنِنَا آمِرِیۡنَ بِهٖ. یعنی په داسے حال کښ مونږ نازل کړیدے چه مونږ پدے سره حکم کونکی یو بندګانو ته. (اخفشؒ)
۳- زجاجؒ او فراءؒ (اَمۡرًا) په معنیٰ د (فَرۡقًا) سره اخستے دے، او دا ئے مفعول مطلق من غیر لفظه جوړ کړیدے د (یُفۡرَقُ) نه، دا د مصداق په اعتبار سره صحیح دے، لیکن په لغت کښ امر په معنیٰ د فرق سره راتلل بعید دی.
٤- چا وئیلی دی چه امر مصدر په معنیٰ د مفعول دے. او د (ه) ضمیر نه حال دے اَیۡ اَنۡزَلۡنَاهُ حَالَ کَوۡنِهٖ مَاۡمُوۡرًا بِهٖ. یعنی مونږ دا قرآن راولیږلو په داسے حال کښ چه په دے باندے تاسو ته امر شویدے.
اِنَّا کُنَّا مُرۡسِلِیۡنَ : دا متعلق دے د (اِنَّا اَنۡزَلۡنَاهُ) پورے، یعنی مونږ په تا باندے قرآن نازل کړو ځکه چه تا خپل رسول جوړوم او انسانانو دپاره دے لیږم او دا په تا هم رحم دے، او په انسانانو باندے هم رحم دے چه ته دوئ ته د الله آیتونه آوروے، د دوئ د نفسونو تزکیه کوے، او دوئ ته د کتاب او سنت ښودنه کوے، لکه د سورتِ انبیاء په (۱۰۷) آیت کښ راغلی: ﴿ وَمَاۤ اَرۡسَلۡنَاكَ اِلَّا رَحۡمَةً لِّلۡعَالَمِیۡنَ ﴾ (اے زمونږ نبی ! مونږ تهٔ د تمام جهان والو دپاره رحمت جوړولو سره را اولیږلے). ځکه الله د خپلو بندګانو خبرے او آوازونه ښهٔ پیژنی، او د دوئ د ضرورتونو نه ډیر ښهٔ خبر دے، دے وجے نه د هغهٔ د علم اوحکمت تقاضا اُوشوه چه هغه په دوئ رحم وکړی او د دین او دنیا د ښیګړو طرفته د دوئ د رهنمایئ لپاره خپل رسول را اولیږی.
مُرۡسِلِیۡنَ : دا جمله معترضه ده، او مطلب ئے دا دے چه مونږ رسولانو لره رالیږونکی یو، یا تا لره رالیږونکے یم. نو دا د (اِنَّا اَنۡزَلۡنَاهُ) سره متعلق دے چه الله قرآن ولے راولیږلو؟ ځکه چه د الله تعالیٰ عادت دا دے چه هغه رسولان رالیږی.

رَحۡمَةً: ۱- دا مفعول لَهٗ دے د (اَنۡزَلۡنَاهُ) دپاره۔ اَیۡ اَنۡزَلۡنَاهُ لِلرَّحۡمَةِ ۔ یعنی مونږ دا نازل کړیدے دپاره د رحمت د طرف د رب ستا نه۔ (زجاجؒ)

۲- مبردؒ وائی : دا د مُرۡسِلِیۡنَ دپاره مفعول به دے۔ (یعنی مونږ رحمت لره لیږونکی یو چه هغه دا قرآن او دا رسول دے)۔

۳- یا حال دے۔ اَیۡ رَاحِمِیۡنَ۔ (اخفشؒ) یعنی په داسے حال کښ چه مونږ رحم کونکی یو په خلقو۔

۱- نو ددے لفظ فائده دا شوه چه د رسول الله ﷺ رالیږل د الله رحم او مهربانی ده، دا مصیبت او عذاب مه گنړئ، رسول الله ﷺ پدے وجه د الله تعالیٰ رحمت دے چه تاسو ته ئے د عذابونو ځایونه وخودل چه دلته ستاسو هلاکت دے، او څوك چه د چا په وجه د هلاکت نه بچ کیږی نو هغه هغهٔ لره رحمت وی۔ نو دارنگه دے قرآن باندے اعتراضونه مهٔ کوئ ځکه چه دا هم د الله مهربانی ده، پدے سره تاسو جنت ته داخلول غواړی۔

۲- او ددے نه دا هم معلومیږی چه نبوت امر کسبی نهٔ دے لکه چه فلاسفه وائی چه ډیر عبادتونه وکړه نو نبوت به درته ملاؤ شی بلکه دا د الله تعالیٰ د طرف نه رحمت دے او وهبی امر دے۔

۳- دارنگه دے نبی مونږ ته ایمان وخودو، او امت ته ئے د پخوانو او راتلونکے زمانے علم وخودو، که نبی نهٔ وے، نو امت به داسے جاهلان وے لکه د جاهلیت والو په شان چه د هیڅ نه خبر نهٔ وو، امت ته ئے د کامیابئ آسانے آسانے طریقے خودلی دی، د دنیاوی څیزونو په باره کښ ئے د استعمال طریقے خودلی دی چه دے کښ ستاسو فائده او دے کښ ضرر دے۔ په دنیا کښ ئے امت دپاره د عذاب نه د بچاؤ دعاگانے کړیدی، په آخرت کښ به ورله شفاعتونه کوی، دوی له به منډے تړرے وهی، چه اُور ته لاړ نشی۔

هُوَ السَّمِیۡعُ الۡعَلِیۡمُ: ددے جملے راوړو فائده ۱- یو د الله تعارف دے۔

۲- دویم : مخکښ د قرآن عظمت وو نو دلته د الله چه مُوۡحِیۡ (وحی نازلونکے) دے- د هغهٔ عظمت بیانیږی، دے دپاره چه ددے کتاب عظمت په زړونو کښ راشی۔

۳- دریمه فائده په اعتبار د ماضی سره ده، یعنی الله د مخکښ نه د مشرکانو شرکی آوازونه آوریدل او د هغوی په حال عالِم وو نو پدے وجه ئے ورته دا کتاب راولیږلو چه بندگان د شرکی آوازونو نه منع شی، او په دوی رحم وشی۔ ځکه ئے وروسته (لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ) وئیلے دے۔ لکه ابن عاشورؒ دے ته اشاره کړیده۔

٤- فائده: الله همیشه آوري او همیشه پوهه دے، نو پخوائے هم آوریدل کول او اے نبی ستا په مقابله کښې چه کوم مشرکین څه وائي او څه کارونه کوي، هغه هم آوري او په هغې پوهه دے، د هغې جزاء او سزا به ورکولے شي. نو پدے کښې مومنانو ته ترغیب او کافرانو ته ترهیب هم دے.

رَبِّ السَّمَاوَاتِ: دا بدل دے د (مِنۡ رَّبِّكَ) نه. دلته درے قسمه مضاف الیه ذکر ده د رب دپاره. یعنی رب ستا دے، رب د آسمانونو دے او رب د انسانانو دے. نو ددے تولو رب دے. رسول ئے مخکښې ذکر کړو د هغه د شرافت د وجه نه. دویم نمبر کائنات لوی دی نو د هغوی پالونکے هم الله دے، دریمه درجه کښې انسانان دی چه ستاسو پالونکے هم الله دے، نو بندګي هم یواځے د هغه پکار ده.

اِنۡ کُنۡتُمۡ مُّوۡقِنِیۡنَ: اَیۡ بِخَالِقِیَّتِهٖ وَرُبُوۡبِیَّتِهٖ فَلَا تَعۡبُدُوۡا اِلَّا اِیَّاهُ. یعنی که ستاسو یقین وی د الله په خالق کیدو او رب کیدو باندے، نو بیا د هغهٔ نه سویٰ د بل هیچا بندګی مهٔ کویٔ ځکه چه لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ. د هغهٔ نه سویٰ بل حق معبود نشته. اِنۡ د شك دپاره ئے ځکه راوړو چه مشرکانو الله تعالیٰ خپل رب ګنړلو لیکن د هغهٔ عبادت ئے یواځے نهٔ کولو، نو دوی داسے شو لکه چه د الله تعالیٰ خالقیت نهٔ مني. یا که الله خپل رب منئ نو بیا د هغه رسول هم ومنئ او د هغه تابعداری وکړئ.

لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ: پدے کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ دا قرآن ددے دپاره رالیږلے دے چه بندګان د هغهٔ یواځے بندګی وکړي او د هغهٔ سره هیڅ شے شریك نکړي.

رَبُّکُمۡ وَرَبُّ اٰبَآئِکُمُ: پدے کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ لکه څنګه چه ظاهری پالنه کوی نو دغه شان ستاسو دیني پالنه په خپل کتاب او د رسول په رالیږلو سره کوي، نو ددے نه ولے انکار کوئ، ستاسو پلارانو نیکونو ته ئے هم رسولان او کتابونه رالیږلي دي.

| بَلۡ هُمۡ فِیۡ شَكٍّ یَّلۡعَبُوۡنَ ﴿٩﴾ فَارۡتَقِبۡ یَوۡمَ تَاۡتِی |
| --- |
| بلکه دوی په شك کښې دي لوبے کوي. نو انتظار اُوکړه د هغه ورځے چه رابه ولي |
| السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِیۡنٍ ﴿١٠﴾ یَّغۡشَی النَّاسَ هٰذَا عَذَابٌ اَلِیۡمٌ ﴿١١﴾ رَبَّنَا اکۡشِفۡ |
| آسمان لوګے ښکاره. پټوی به خلقو لره دا عذاب دردناك دے. اے ربه زمونږ لرے کړه |

| عَنَّا الۡعَذَابَ اِنَّا مُؤۡمِنُوۡنَ ﴿۱۲﴾ اَنّٰی لَهُمُ الذِّكۡرٰی |
|---|
| زمونږ نه عذاب یقیناً مونږ ایمان راوړونکی یو ۔ څرنګ به وی دوی لره نصیحت |
| وَقَدۡ جَآءَهُمۡ رَسُوۡلٌ مُّبِيۡنٌ ﴿۱۳﴾ ثُمَّ تَوَلَّوۡا عَنۡهُ |
| قبلول او حال دا چه راغلے دے دوی ته رسول ښکاره ۔ بیا واوړیدل دوی د هغهٔ نه |
| وَقَالُوۡا مُعَلَّمٌ مَّجۡنُوۡنٌ ﴿۱۴﴾ |
| او وے وئیل چه دهٔ ته خودنه کړے شویده، (تعلیم ورکړے شویدے) لیونے دے۔ |
| اِنَّا كَاشِفُوا الۡعَذَابِ قَلِيۡلًا اِنَّكُمۡ عَآئِدُوۡنَ ﴿۱۵﴾ |
| مونږ لرے کونکی د عذاب یو لږه زمانه یقیناً تاسو راواپس کیدونکے یئ۔ |
| يَوۡمَ نَبۡطِشُ الۡبَطۡشَةَ الۡكُبۡرٰی اِنَّا مُنۡتَقِمُوۡنَ ﴿۱۶﴾ |
| هغه ورځ چه نیول به وکړو مونږ په نیولو غټ سره یقیناً مونږ بدله اخستونکی یو |

**تفسیر**: دا بَلۡ د اِضراب دے، او پدے کښې ئے د مکے د مشرکانو حقیقتِ حال بیان کړو چه دویٔ د الله تعالیٰ د توحید او د مرګ نه پس د دوباره ژوند په باره کښې په ژور شك کښې مبتلا دی، او د دویٔ دا اقرار چه الله د تمام جهان والو رب دے، د یقین او ایمان نه بیخی خالی دے، ځکه خو په عبادت کښې د هغهٔ سره نور خوك شریکان جوړوی، ګویا که د دویٔ زبانی اقرار صرف د لوبو تهوقو په توګه دے، او د مشرانو د تقلید په طریقه دے۔ یعنی یو طرفته د هغهٔ د ربوبیت اقرار کوی، او بل طرفته د هغهٔ د توحید او بعث بعد الموت نه شك کښې دی۔

يَّلۡعَبُوۡنَ: ۱- یو مطلب دا چه دوی چه کوم افعال شرکیه او کفریه ؤ کښې مشغول دی نو هغه ټول لعب دی چه د هغے هیڅ فائده نشته، او د عمر ضائع کیدل پکښې شته۔

۲- یا د لوبو معنیٰ دا ده چه د دنیا په مزو او سامانو کښې داسے مشغول دی چه د آخرت په باره کښې ئے هیڅ فکر نشته۔

فَارۡتَقِبۡ يَوۡمَ تَاۡتِی السَّمَآءُ: دا آیتونه دوه طریقو سره لګیږی، او دواړه مراد دی۔

(۱) یو دا چه بخاریؒ، مسلمؒ، امام احمدؒ، ترمذیؒ، نسائیؒ، ابن ابی حاتمؒ او ابن جریرؒ په مختلفو سندونو سره د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت کړے چه کله د رسول الله ﷺ په

خِلاف د قریشو کبر او عناد زیات شو، نو نبی ﷺ دعاء وکړه چه اے الله! دوئ د یوسف علیه السلام د قوم غونته د اُوو کالو په قحط سالئ کښې مبتلا کولو سره د دوئ په خِلاف زما مدد وکړه۔ چنانچه داسے قحط راغے چه خلقو هډوکی، څرمنے او مردار څناور اُوخوړل او د ډیرے لوږے نه به ئے چه آسمان طرفته کتل نو د دوئ د سترګو مخامخ به لوګے شان راتلو۔ نو الله تعالیٰ ﴿فَارۡتَقِبۡ يَوۡمَ تَاۡتِى السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِيۡنٍ﴾ نازل کړو۔ او کله چه حالات نور هم سخت شو،

نو ابو سفیان ووئیل: اے محمده! ته مونږ طاعت او صله رحمئ طرفته رابلے، او ستا قوم تباه کیږی، الله نه دعاء اوغواړه چه دا قحط سالی ختمه کړی۔ نو الله تعالیٰ ﴿اِنَّا كَاشِفُوا الۡعَذَابِ قَلِيۡلًا اِنَّكُمۡ عَآئِدُوۡنَ﴾ نازل کړو، لیکن قحط سالی ختمه شوه او د دوئ کبر او عناد د مخکښې نه نور هم زیات شو، نو الله تعالیٰ ﴿يَوۡمَ نَبۡطِشُ الۡبَطۡشَةَ الۡكُبۡرٰى اِنَّا مُنۡتَقِمُوۡنَ﴾ نازل کړو، او د بدر په میدان کښې ئے د دوئ نه بدله واخسته۔

او مطلب د آیت به دا وی چه دوی خو اُوس شکونه کوی او ستا نه غفلت کوی، نو دوی ته به زهٔ د دنیا عذاب ورکوم، هغه دا چه آسمان به لوګے ښکاره راولی لکه په مکه کښې ښکاره لوګے راغے، سو کړه شوه، چه مکے والا ئے پټول، او دا دردناک عذاب وو، (د لوګی نه مراد ظاهری لوګے او قحط دے) دوی به دا وئیل چه اے ربه! زمونږ نه دا عذاب لرے کړه مونږ به ایمان راوړو (لکه فرعونیانو هم داسے خبره کړے وه مخکښې سورت کښې تیره شوه) الله فرمائی: اَنّٰى لَهُمُ الذِّكۡرٰى : اَیۡ بَعۡدَ كَشۡفِ الۡعَذَابِ ۔ یعنی د عذاب د لرے کیدو نه روستو به دوی څرنګه نصیحت واخلی حال دا چه دوی ته ښکاره رسول راغلے دے او ښکاره معجزات ئے ورته وړاندے کړیدی (فَلَمۡ يَذۡكُرُوۡا مِنۡهُ) نو د هغه نه ئے نصیحت نهٔ دے اخستے۔ نو د عذاب د لرے کیدو نه روستو به کله دوی نصیحت واخلی؟۔ او حال دا چه دوی د دغه ښکاره رسول نه اوړیدلی دی او د هغه په باره کښې ئے وئیلی دی چه دهٔ ته بل چا تعلیم ورکړیدے او لیونے دے۔ (یعنی الله ته دوی معلوم دی چه دوی هسے خبره کوی او ایمان نهٔ راوړی، دوی د فرعونیانو په شان دی چه هغوی وئیلی وو: ﴿لَئِنۡ كَشَفۡتَ عَنَّا الرِّجۡزَ لَنُؤۡمِنَنَّ لَكَ وَلَنُرۡسِلَنَّ مَعَكَ بَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ﴾ (اعراف: ۱۳۴)

(که تا زمونږ نه دا بد عذاب لرے کړو خامخا به په تا ایمان راوړو او ضرور به تا سره بنی اسرائیلو پریږدو)

مُعَلَّمٌ: یعنی انسان ورته تعلیم ورکړیدے، او وحی ورته نهٔ ده شوے لکه په سورة النحل

(۱۹۳) آیت کښې ذکر ده.

(اِنَّا كَاشِفُوا الْعَذَابِ) عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي: دلته د دنیا عذاب څکه مراد دے چه الله تعالیٰ دوی سره وعده وکړه چه مونږ به دا عذاب د دوی نه لرې زمانه لرے کړو، او تاسو واپس کیدونکي یئ نقض عهد (وعدے ماتولو) ته، یعني ایمان نهٔ راوړئ. او د آخرت عذاب خو نهٔ لرے کیږي. نو دوی دغه وعده ماته کړه نو الله په بطشه کبریٰ چه هغه د بدر حمله وه په هغې سره دوی راونیول او بدله ئے ترے واخسته، او د دوی مشران ئے مرداران کړل، جهنم ته ورسیدل او ژوندی ئے ذلیله شول.

او پدے کښې د روستو امت دپاره هم دغسے سبق پروت دے چه څوك د نبي په خلاف ودریږي هغوی سره به الله تعالیٰ دغه شان کار کوی چه الله به ئے په دنیا کښې په قسماقسم عذابونو هلاکوی.

(۲) دوېم تفسیر دادے چه ددے نه مراد هغه لوګے دے چه د قیامت د لسو نښو نه یوه نښه ده، او څلویښتو ورځو پورے به باقي وی. لکه دا په مرفوع احادیثو کښې راغلي دی. ددے قول مطابق دا ورځ لا اوسه پورے نهٔ ده راغلے. علی، ابن عباس، حذیفه رضی الله عنهم اجمعین او د تابعینو یو جماعت همدا رائے لری. په حدیث کښې دی چه دا لوګے به د آسمان نه راخکته شي، ټول انسانان به ئے راګیر کړے وی، په کافرانو به ډیر سخت عذاب وی، او په مؤمنانو باندے به كَهَيْئَةِ الزُّكَامِ (د زکام په شان) وی، مسلمانانو باندے به صرف زکام راشي، او په کافرو به سخت عذاب وی لکه د بني اسرائیلو او د فرعونیانو په مابین کښې چه د طوفان او ملخانو وغیره په باره کښې فرق شوے وو. (عبد الله بن مسعود ﷺ چه په نوفل بکالي باندے پدے تفسیر اعتراض کړے وو نو هغه ته دا صحیح روایت نهٔ وو رسیدلے څکه ئے اول تفسیر غوره کړے وو)

او د قیامت په ورځ به ټول کافران دا وائي چه اے ربه! زمونږ نه دا عذاب لرے کړه مونږ به ایمان راوړو او د مکے ټولو کافرانو دا خبره نهٔ وه کړے.

اَنّٰى لَهُمُ الذِّكْرٰى: یعني دوی مخکښې نه رسول نهٔ دے منلے نو اوس به ئے څه ومني، نو دا د ﴿وَلَوْ رُدُّوْا لَعَادُوْا لِمَا نُهُوْا عَنْهُ﴾ (انعام: ۲۸) په شان دے.

نو په (انا کاشفوا العذاب) کښې دوه مطلبه دی، (۱) بعض علماء دا په تعلیق باندے حمل کوی اَیْ لَوْ كَشَفْنَا مَا بِهِمْ مِنَ الْعَذَابِ. یعني که زهٔ چرته د دوی نه دغه عذاب لرے کړم. لیکن دا تاویل دے،

(۲) ظاهر دا ده چه کشف دلته لرې کولو ته نۀ وائي بلکه تاخير ترې مراد دې، د دخان نه روستو به لږه زمانه الله تعالىٰ فضاء بيرته برابره کړي، نارمل حالت به جوړ شي، خلق به پکښ روغ ژوند تيروي، د ياجوج ماجوج نه روستو به هم خلق ژوند تيروي، بيا به قيامت راځي نو په دغه زمانه کښ به تاسو بيرته شرک ته راواپس کيږئ، يعني خلق چه دا لوګې وينې او بيرته لرې شي، نو وائي به چه دا د قيامت نخه نۀ وه بلکه نورو ظاهري اسبابو ته به ئې نسبت وکړي، نو بيرته به شرک شروع کړي، نو يوم نبطش البطشة الكبرىٰ نه مراد د قيامت حمله ده، نو بيا به پرې سمدست قيامت راشي نو سمه بدله به ترې واخلي۔

نو ګويا که رسول الله ﷺ ددې آيتونو تفسير کړيدې۔ او بِدُخَانٍ مُّبِيۡنٍ نه معلوميږي چه ددې نه يواځې قحط نۀ دې مراد بلکه ښکاره لوګې به وي، او د الناس نه هم معلوميږي چه ټول خلق به ئې پټ کړي وي۔ او که صرف مکې والا ترې مراد شي نو دا تخصيص بلا موجب دې۔ او د آخرت لوګې په ټولو خلقو راځي۔

(عذاب اليم) نه هم معلوميږي چه قحط يواځې نۀ دې مراد ځکه چه دا لوګې به داسې وي چه د خلقو به په سر هم درد وي، او پوزه به ئې هم بهيږي او بدن ته به سخت درد ورکوي۔ او (انا مؤمنون) نه هم معلوميږي چه مکې والو داسې نۀ وو وئيلي چه مونږ به ايمان راوړو بلکه صرف ابوسفيان مدينې ته راغې او وې وئيل چه تۀ په صله رحمئ حکم کوې او ستا قوم تباه شو، خير دې په مونږ شفقت وکړه، مونږ له دعا وغواړه چه دا عذاب لرې کړې شي، دوی د فرعونيانو نه هم سخت کبر والا وو چه هغوی لا د ايمان چغه او وعده کړې وه او دوی دا هم نۀ وه کړې۔ ابوجهل د مرګ په وخت هم ايمان نۀ راوړو او فرعون د مرګ په وخت د ايمان آوازونه وکړل۔

شوکانیؒ د دواړو قولونو نقل کولو نه پس ليکلي دي چه د صحيحينو د روايت له مخه راجح اولنې قول دې، او دا خبره ددې منافي نۀ ده چه د قيامت د نښو نه يوه نښه لوګې دې، ځکه چه د احاديثو نه ثابته ده، مفسر ابو السعودؒ هم اولنې قول غوره کړې۔

مګر غوره دا ده چه د قيامتؒ والا دخان حقيقي تفسير د آيت دې، او مکې والو باندې چه کوم قحط راغلې وو هغه به هم پدې آيت کښ داخل وي او پدې کښ به هغې ته هم اشاره وي۔

يَوۡمَ نَبۡطِشُ: دا منصوب دې په (اُذۡكُرۡ) سره (راياد کړه يا د (مُنۡتَقِمُوۡنَ) دپاره ظرف دې۔

| وَلَقَدۡ فَتَنَّا قَبۡلَهُمۡ قَوۡمَ فِرۡعَوۡنَ |
|---|
| او يقيناً مونږ ازميښت کړے دے مخکښې د دوی نه په قوم د فرعون باندے |
| وَجَآءَهُمۡ رَسُولٌ كَرِيمٌ ﴿۱۷﴾ أَنۡ أَدُّوٓا۟ إِلَيَّ عِبَادَ ٱللَّهِ |
| او راغلے وو هغوی ته رسول عزتمند. (وئيلے ئے وو) چه راکړئ ما ته بندګان د الله |
| إِنِّي لَكُمۡ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿۱۸﴾ وَأَن لَّا تَعۡلُوا۟ عَلَى ٱللَّهِ |
| تعالىٰ يقيناً زهٔ تاسو لره رسول امانتګريم. او دا چه لوئي مهٔ کوئ په الله باندے |
| إِنِّيٓ ءَاتِيكُم بِسُلۡطَٰنٍ مُّبِينٍ ﴿۱۹﴾ وَإِنِّي عُذۡتُ بِرَبِّي |
| يقيناً زهٔ راغلے يم تاسو ته په دليل ښکاره. او يقيناً زهٔ پناهي طلب کوم په رب خپل |
| وَرَبِّكُمۡ أَن تَرۡجُمُونِ ﴿۲۰﴾ |
| سره او په رب ستاسو سره ددے نه چه تاسو ما په کانړو اُوولئ. |
| وَإِن لَّمۡ تُؤۡمِنُوا۟ لِي فَٱعۡتَزِلُونِ ﴿۲۱﴾ |
| او که تاسو خبره نهٔ منئ زما نو جدا شئ زما نه. |

**تفسير:** چونکه د قريشو سردارانو او د فرعون او فرعونيانو حالات ډير زيات سَره يو شان دی، دے وجے نه الله تعالىٰ نبی کريم ﷺ له د تسلئ ورکولو او د ذهنی تکليف کمولو دپاره د فرعون او موسىٰ علیه السلام واقعه بيان کړے، چه که د قريشو کافرانو له ارخه تاته تکليف رسيږی، نو موسىٰ علیه السلام ته هم د فرعون او فرعونيانو نه تکليف رسيدلے وو، او هغهٔ د صبر او استقامت نه کار اخستے وو.

دلته د موسىٰ علیه السلام واقعے راوړو نه دويم مقصد اَلۡاِنۡذَار بِالۡعَذَابِ الدُّنۡيَوِيِّ وَالۡقَسَامِهٖ دے يعنی دنياوی سزا ذکر کوی په نهٔ منونکو باندے او د هغے اقسام لکه فرعونيانو ته ئے درے قسمه سزاګانے ورکړے، يو دا چه په درياب کښې ئے غرق کړل، او دويمه دا چه د دنياوی نعمتونو نه ئے محرومه کړل، په مزو کښې وو نو سمدست په عذابونو او مصيبتونو ور واوريدل. دريمه سزا معنوی وه چه چا پرے خفګان ونکړو بلکه ټول کائنات پرے خوشحاله شو. او کله ئے چه وخت پوره شو نو الله ورله مهلت هم ورنکړو.

نو پدې کښې ددې اُمت يره ول دی چه الله تعالیٰ تاسو ته هم دغه شان سزاګانې درکولې شي بيا به دربانديې څوك خفګان هم نۀ کوی۔

الله تعالیٰ وفرمايل چه مونږ د قريشو د کافرانو نه مخکښې فرعون ته هم په الله بانديې د ايمان او طاعت او بندګئ حکم ورکولو سره آزمائش کړيې وو نو هغوئ کفر خوښ کړو۔ او مونږ هغوئ ته خپل يو رسول ليږلې وو چه د الله او مومنانو په نيز د هغهٔ لوئې مقام وو او پـه حَسَب (ذاتي شرافت) او نسب کښې اُوچت او د انتهائي اُوچتو اخلاقو مالك وو۔ هغه موسیٰ بن عمران عليه السلام وو۔

هـغـهٔ فرعون ته وويل چه تهٔ د الله بندګان (بني اسرائيل) آزاد کړه، او دوئ ما سره د دوئ آبائي وطـن تـه پـريـده ځکه چه دا آزاد خلق دی، او د ظلم او زياتی په وجه ددې ملك نه بهر وتل غواړی، ګوره! زهٔ ستا دپاره د الله رشتينې او امانتدار رسول جوړيدو سره راليږلې شوې يم، دې دپاره چه تاسو د نافرمانئ په صورت کښې د الله د عذاب نه اويروم۔

هـغـهٔ فرعون ته دا هم وويل چه د الله د ربوبيت نه په انکار کولو او خپله د رب کيدو په دعوې کولو، او د هغهٔ د نبی په دروغژن ګنړلو او د هغهٔ په بندګانو بانديې د ظلم او زياتی کـولـو سره د الله پـه خِـلاف د بغاوت اعلان مهٔ کوه۔ او زهٔ د خپلې دعوې په رشتين والی بـانـدې واضـح او ډاګـيـز دلـيـل پـيـش کـوم۔ او تـا چـه مـاتـه په کاڼړو بانديې د ويشتلو او هـلاکـولـو کـوم ګـواښ کـړې دې، نو ما د هغه حق ذات په دربار کښې پناه اخستې ده چه هغه زما او ستاسو د ټولو رب دې، دې وجې نه اُوس به ماته ستاسو د طرفه هيڅ تکليف نشي رسيدې۔ او د الله له خوا زما دا حفاظت ددې خبرې دليل دې چه زهٔ دروغژن او دروغ تړونکې نۀ يم، ځکه هغه دروغ تړونکو له پناه نۀ ورکوی۔

صاحب د محاسن التنزيل ليکی چه ددې خبرې نه د هغهٔ مقصد په دې سنګين ترينو حالاتو کښې د بهادرئ او ثابت قدمئ څرګندونه وه، دې دپاره چه دشمن هغه کمزورې ونۀ ګنړی۔

**فائده** : پدې آيتـونـو کـښې د فـرعـونيانو درې قسمه مرضونه بيان شويدی، چه دا د دوی د عـذاب سبب وګـرزيدو، يو ئې په بني اسرائيلو مظلومانو بانديې ظلمونه کول چه په هـغـوی بـه ئې خدمتونه د وَس نه بهر کول، او وهل ټکول به ئې ورکول، او هغوی ئې آزادئ تـه نـۀ پـريـخـودل۔ دويم مرض پکښې عُلُوّ وه چه ځانونه ئې په ناحقه لوی ګنړل، او ځان د اُوچتو صفاتو مستحق ګنړل، او حق ته نۀ تسليميدل۔

دریم: صَدٌ عَنۡ سَبِیۡلِ اللّٰهِ۔ (خلك د الله د لارے نـه منـع کـول) یعنی موسیٰ ﷺ تـه دهمکی ورکـول پـه قتل او رجم سره۔ دا درے واړه بیماریانے د مکے په مشرکانو او ددے امت په مجرمانو کښ موجود دی۔

بیا موسیٰ ﷺ هغوی ته ښیرے کړیدی ځکه چه په دغه زمانه کښ جهاد فرض نۀ وو، خبره به ښیرو ته سپارلے کیده۔ نو پدے کښ نبی ﷺ او نور امت ته دا تعلیم ورکوی چه تـاسـو مـجرمانو ته ښیرے کولے شئ، نو دا یره هم پکښ پرته ده چه اے کافرانو مشرکانو ظالمانو! ویریږئ دا نیکان به درته ښیرے وکړی نو د فرعون په شان به هلاك شئ۔

پدے کښ د هغوی د عذاب وخت پوره شو نو الله تعالیٰ د هجرت حکم وکړو۔

نـو پـدے کښ فائده دا ده چه د رسول الله ﷺ اصحابو ته اشاره ورکوی چه تاسو هم هـجرت وکـړئ، د مـکے نـه ووځـئ او نورو ښارونو ته لاړ شئ۔ او کله چه هجرت وکړے شي نو بیا پـه کـافـرانـو بـانـدے عـذاب راځي۔ او مسلمانانو چه حبشو ته بیا مدینے ته هـجرت وکـړو نـو پـه قـریشـو بـانـدے عـذاب شروع شو، په مختلفو غزواتو کښ د دوی هلاکت مقرر شو۔

وَلَقَدۡ فَتَنَّا: یعنی ددے مشرکانو نه مخکښ په فرعونیانو ما امتحان کړے وو۔

۱ - فـتـنـے نـه مـراد دلته امتحان کول دی په رالیږلو د رسول او دوی ته د هغۀ په طاعت حـکم کول دی۔ ۲ - کله امتحان په دوه طریقو وی، کله په تکلیفونو او مصیبتونو کښ اچول او کـلـه پـه دوی بـانـدے رزقـونـه فـراخـول نو فرعونیـانو بـانـدے دا دواړه قسمـه امتحانات شوی وو، لکه سورة الاعراف (۹۴/۹۵) او (۱۳۰) آیت کښ راغلی دی۔

او کـله دینی امتحان وی چه الله تعالیٰ په کمزورو بنی اسرائیلو کښ رسول راولیږلو، او دا لـوی امتحان وی چه الله تعالیٰ په یو کمزوری قوم کښ یو عالِم پیدا کړی، او هغه تا ته رهـنـمـائـی کـوی نو دے وخت کښ ستا نفس وائی چه زۀ څنګه دے کمزوری شخص ته غاړه کیږدم، دے به راځي او زما مشری به کوی۔ نو فرعونیانؔ هم دغه شان امتحان کښ نـاکـام شـو چـه دوئ خپـل تـکبر او خواهشات مخکښ کړل، او دا امتحان الله تعالیٰ ډیر کـرتـه پـه انسانانو بانـدے کـوی، رسول الله ﷺ ئے هم په یوه غریبه کورنئ کښ راولیږلو، یتیم وو۔ لـکـه دے وخـت کـښ لوی کسبونو او تعلیمونو والا خلق د علماؤ نه ماړۀ وی، هغوی ورتـه سپك ښکاری، پدے امتحان کښ ناکام وی۔

فرعونیانو وئیلی وو ﴿أَنُؤۡمِنُ لِبَشَرَيۡنِ مِثۡلِنَا وَقَوۡمُهُمَا لَنَا عَابِدُوۡنَ﴾ آیا مونږ به د دوه زمونږ

په شان انسانانو خبره وومنو حال دا چه د دوئ قوم زمونږ غلامان دی)۔ (المؤمنون:٤٧)
رسول کریم: ١- عزتمند وو په الله باندے۔ ٢- په خپل قوم کښې عزتمند وو۔
٣- کریم مُسْتَجَاب الدَّعْوَة ته هم وائی۔ (چه الله ئے دعاګانے قبلوی)
٤- مقاتل وائی: کریم: حَسَنُ الْخُلُقِ بِالتَّجَاوُزِ وَالصَّفْحِ ۔ خوش اخلاقه وو چه خلقو نه به ئے تجاوز او هغوی ته معافی کوله۔
دلته ئے کریم لفظ راوړو پدے کښې یو حکمة دا معلومیږی چه مخکښې سورة زخرف کښې تیر شو چه فرعون موسیٰ ؑ ته مَهِین (سپك) وئیلے وو، نو الله وفرمایل چه دا زما په نیز عزتمند دے۔ دے نه معلومه شوه چه داعی له پکار ده چه هغه دے کریم وی، ځکه چه داعی اسلام بیانوی، او اسلام اُوچت او عزتمند دین دے، نو پکار دا ده چه دا په طریقه د کرامت (عزت) سره بیان کړے شی، نۀ په طریقه د بے وقارئ او کنځلو سره۔ د تو قو په طریقه به هم د الله تعالیٰ دین نۀ بیانوی، او فاحش الفاظ به هم نۀ استعمالوی۔
اَنْ اَدُّوْا: د موسیٰ ؑ فرعونیانو ته دوه دعوتونه وو، یو توحید ته یعنی په صحیح ایمان کښې داخلیدل او دویم مظلومان آزادول۔ نو اَنْ اَدُّوْا کښې د مظلومانو آزادول وو، او (اَنْ لَا تَعْلُوْا) کښې ایمان او دین ته دعوت دے۔ او دا دواړه دعوتونه زمونږ د نبی هم وو۔
د ایمان نه مخکښې ئے د مظلومانو راخلاصولو خبره وکړه لکه قرآن کښې دا خبره د موسیٰ ؑ په بیان کښې مخکښې ذکر ده، وجه دا ده چه چا کښې د ظلم ماده ری، نو الله ورته د ایمان توفیق نۀ ورکوی، دے ته إزاله د موانعو د ایمان وائی۔
اَدُّوْا: اداء کولو نه مراد حواله کول دی، یعنی تاسو تړے غلامان مۀ جوړوئ، ما ته ئے راپریدئ چه زۀ ورله په دین باندے تربیت وکړم۔ او دے کښې دا تفسیر صحیح نۀ دے چه بعض وائی: [اَنْ اَدُّوْا اِلَيَّ سَمْعَكُمْ يَا عِبَادَ اللّٰهِ] چه ما ته غوږ کیږدئ اے د الله بندګانو!۔ دا د ظاهر د قرآن خلاف دے۔ لکه اول مقصد د نورو آیتونو د قرآن سره موافق دے۔
رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ: امین دے ته وائی چه کومه خبره ورته ملاو شویده هغے کښې نۀ زیادت کوی او نۀ نقصان، نو معلومه شوه چه په دعوت کښې امانت شرط دے، که چا په دعوت کښې افراط او تفریط کولو نو دا به اسلامی دعوت نۀ وی۔ نو داعی باندے لازمه ده چه خلقو ته د خپل اخلاص إظهار وکړی۔
وَاَنْ لَّا تَعْلُوْا عَلَى اللّٰهِ: علو حق ته دیکه ورکولو ته وئیلے شی، او حق د اسلام هرے مسئلے ته وئیلے شی، نو څوك چه د قرآن او حدیث یو حکم او مسئلے ته نۀ تیاریږی، دۀ

کښې علـو او تکبر دے، پدے معنیٰ باندے متکبران په دنیا کښې بیشماره دی، او چا کښې چـه د ذرے برابر تـکبـر وی، الله تـعالیٰ ئے جنت ته نهٔ پریدی، عبد الله بن عمر ﷺ چا نه دا حدیث واوریدو نو وے ژړل او وے فرمایل چه ددے نه خو انسانان نهٔ خالی کیږی۔
په الله بـانـدے عـلـو دا ده چـه د هـغـه د طاعت نه او د هغه د رسولانو د تابعداریٔ نه ځان پـورته گـنـړی، او د هـغـه وحـی سپـکـه گـنـړی۔ او په الله باندے علو دا هم ده چه په هغه باندے افتراء وکړی۔ (دروغ ووائی) (ابن عباسؓ)
په کوم نفس کښې چه علوّ او تکبر او دَنَاءَةُ النفس (یعنی همت کمزورے کیدل/رذالت) راغلـو هـغـه کښې بـه هر شر راجمع کیږی، او چا کښې چه د خشوع او علو الهمة صفت راغلو نو هغه کښې به هر خیر راځی۔
بِسُلۡطَانٍ مُّبِیۡنٍ : ددے نـه مـراد ښـکـاره مـعـجـزے دی چه هر عقلمند د هغے په صحت باندے اقرار کوی، او د انکار هیڅ گنجائش پکښې نهٔ وی۔
اَنۡ تَرۡجُمُوۡنِ : د رجـم یوه معنیٰ ده رَجۡـم بِاللِّسَان۔ یـعـنـی کنځل او رد بد وئیـل، دا ادنیٰ معنیٰ ده، او دویم رجم بِالۡحِجَارَة (په کاڼو ویشتـل) او قـتـلـول دی (ابن عباسؓ)
او مـطـلـب د جـمـلے دا دے چه که تاسو زما د وژلو اراده کویٔ نو زما الله شته، هغه به ما ستاسو نه محفوظ ساتی۔
وَاِنۡ لَّمۡ تُؤۡمِنُوۡا لِیۡ: ددے څه مطلب دے چه که په ما ایمان نهٔ راوړیٔ نو ما نه جدا شیٔ؟ بیا بـه دعـوت چـا ته کوی چه قوم جدا کوی؟ جواب دا دے چه فَاعۡتَزِلُوۡنِ مطلب دا دے : (فَـاتۡـرُکُـوۡنِیۡ وَلَاتَتَعَرَّضُوۡا لِیۡ بِاَذًی وَّلَا بِسُخۡرِیَةٍ) یـعـنـی مـا نـه جدا شیٔ او ما ته ضرر مهٔ راکویٔ، او ما پورے مسخرے مهٔ کویٔ۔ یعنی که ایمان نهٔ راوړیٔ نو ضرر مهٔ راکویٔ بلکه انتظار کویٔ چه الله رب العزت به تاسو سره څهٔ کوی،
او دا هـم د دعـوت یـوه طـریـقه ده چه کله حق بیان شی، نو خلقو ته ووائی چه که تاسو خبره نهٔ منیٔ ما خپل کار ته پریدیٔ، هوښیار خلق پدے خبره سوچ وکړی چه مونږ سره کوم شے دے چه د الله د عذاب نه مو بچ کړی نو ایمان ته راشی۔
او قرآن کښې دا خبره زیاته ذکر ده چه مخالفینو ته حق بیانول او بیا ئے الله ته سپارل دی، ډیر خـلـق پـدے خبره نـهٔ پـو هیـږی نـو هغوی خلق په زوره مسلمانول غواړی، او داسے سخت ردونه پرے کوی گویا که دے الله رالیږلے دے چه خلقو ته په زوره هدایت وکړی۔ دا د انبیاؑ طـریـقـه نـهٔ وه۔ لـکـه دا خبره ددے سورت په آخر کښې هم راځی۔ (فَارۡتَقِبۡ اِنَّهُمۡ

مُرْتَقِبُوْنَ)

| فَدَعَا رَبَّهٗٓ اَنَّ هٰٓؤُلَآءِ قَوْمٌ مُّجْرِمُوْنَ ﴿۲۲﴾ فَاَسْرِ |
| --- |
| نو دعا ئے اوغوختہ د رب خپل نه یقیناً دا خلق قوم مجرمان دی۔ نو بوځه |
| بِعِبَادِیْ لَیْلًا اِنَّكُمْ مُّتَّبَعُوْنَ ﴿۲۳﴾ وَاتْرُكِ الْبَحْرَ رَهْوًا |
| بندګان زما د شپے یقیناً تاسو پسے درتلل کیدے شی۔ او پریده دریاب ولاړ (په خپل |
| اِنَّهُمْ جُنْدٌ مُّغْرَقُوْنَ ﴿۲۴﴾ كَمْ تَرَكُوْا مِنْ جَنّٰتٍ وَّعُیُوْنٍ ﴿۲۵﴾ |
| حال) یقیناً دوی لښکر دے غرق کړے شوی۔ ډیر پریخودل دوی د باغونو او د چینو نه |
| وَّزُرُوْعٍ وَّمَقَامٍ كَرِیْمٍ ﴿۲۶﴾ وَّنَعْمَةٍ |
| ۔ او فصلونه او ځایونه عزتمند۔ او د خوشحالئ سامان (یعنی خوش عیشی) |
| كَانُوْا فِیْهَا فٰكِهِیْنَ ﴿۲۷﴾ كَذٰلِكَ وَاَوْرَثْنٰهَا |
| چه دوی په هغے کښں مزے اخستونکی وو۔ دغسے اوشو، او په میراث کښں ورکړل |
| قَوْمًا اٰخَرِیْنَ ﴿۲۸﴾ فَمَا بَكَتْ عَلَیْهِمُ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ |
| مونږ هغه (باغونه) قوم نوروته۔ نو ونهٔ ژړل په دوی باندے آسمان او زمکے |
| وَمَا كَانُوْا مُنْظَرِیْنَ ﴿۲۹﴾ |
| او نهٔ وو دوی مهلت ورکړے شوی۔ |

**تفسیر:** موسیٰ علیه السلام پدے حالت باندے وو چه د فرعونیانو سرکشی نوره هم زیاتیدله او ایمان ته نهٔ راتلل، او د هغهٔ د وژلو پخه فیصله ئے وکړه، نو هغهٔ د خپل رب نه دعاء اوغوښته او وے ویل : اے زما ربه ! دا مجرمان او فسادی خلق دی۔ نو الله تعالیٰ د هغهٔ دعاء قبوله کړه، او هغهٔ ته ئے د وحی په ذریعه حکم وکړو چه بنی اسرائیل واخلی او د شپے د شپے اووځی، او هغهٔ له ئے دا خبر هم ورکړو چه فرعون او نور قبطیان به د دوئ د ګیرولو او واپس راوستلو دپاره دوئ پسے روستو ورځی۔

**فَدَعَا:** د موسیٰ علیه السلام د زمانے نه روستو ترتیب داسے وو چه اول به نبی دعوت وکړو، بیا به ئے هجرت او بیا جهاد۔ او د هغهٔ او د هغهٔ نه مخکښں زمانو کښں به مجرمانو ته

بنیرے کیدلے او هغوی به هلاکیدل۔ اُوس هم که د یو انسان وس نهٔ کیږی نو غه ترتیب به اختیاروی۔

قَوْمٌ مُّجْرِمُوْنَ: یعنی مجرمان دی، توبه نهٔ وباسی نو هلاك ئے کړه۔ او ددے دعاء تفصیل په سورة یونس (۸۷/۸۸) کښ راغلے دے۔ چه هغهٔ ورته د ایمان نهٔ راړو بنیرے وکړے، دا د الله په امر سره وو، او دا دوی ته د دوی د کفر سزا وه چه دوی ته به د ایمان توفیق نهٔ ورکوی نو نبی ته وائی چه تهٔ پرے خپله سینه یخه کړه، زهٔ ئے هسے هم هلاکوم نو دا د نورو دپاره عبرت شی او د نبی یو اکرام وشی۔

فَأَسْرِ بِعِبَادِیْ: الله تعالیٰ د موسیٰ علیه السلام دعاء ځلوبښت کاله روستو قبوله کړه، نو الله د فرعونیانو د هلاکت اسباب برابر کړل، موسیٰ علیه السلام ته ئے د هجرت حکم وکړو، ټول بنی اسرائیل ئے خبر کړل، او ځان سره ئے د شپے روان کړل تردے چه دریاب غاړے ته ورسیدل چه تفصیلات ئے مخکښ سورتونو کښ تیر شویدی۔

بِعِبَادِیْ: دا اضافت تشریفی دے، یعنی زما هغه بندګان چه زما بندګی کوی۔

مُّتَّبَعُوْنَ: یعنی ستاسو تابعداری کولے شی یعنی فرعون تاسو پسے روستو روان دے۔

فَأَسْرِ : د شپے مزل کول او عبادتونه کول او طلب د علم دپاره سفرے کولو دپاره الله تعالیٰ شپه مقرر کریده، بندګانو ته پدے کښ نجات ورکوی۔ او ددے نه دا هم معلومه شوه چه الله تعالیٰ د بندګانو په حال پوهه دے، کوم خبرئے چه ورکړو نو همغسے وشوه چه فرعون ورپسے ورروان شو۔

وَاتْرُكِ الْبَحْرَ رَهْوًا: الله موسیٰ علیه السلام ته حکم وکړو چه کله تهٔ بحرِ قلزم نه پورے وځے نو په خپله همسا وهلو سره سمندر خپل اصل حالت ته د واپس کولو کوشش مهٔ کوه، هغه دغسے پرانستے پریده، دے دپاره چه په دے کښ فرعون او فرعونیان داخل شی او ډوب کړے شی۔ او د دویٔ د انجام خبر الله تعالیٰ موسیٰ علیه السلام ته د مخکښ نه ځکه ورکړو چه د دویٔ ویره ختمه شی۔ نو همدغسے اوشوه چه الله موسیٰ علیه السلام او بنی اسرائیلو له نجات ورکړو، او فرعون او د هغهٔ لښکرئے ډوب کړل۔

رَهْوًا: اَیْ سَاكِنًا عَلٰی صِفَتِهٖ وَهَیْئَتِهٖ ۔ یعنی په خپل حالت ئے په آرام پریده او حکم ورته مهٔ کوه چه بیرته بند شی، ځکه چه موسیٰ علیه السلام غوښتل چه بیرته دریاب بند کړی دے دپاره چه فرعون ددوی خوا ته راونهٔ رسی نو الله وفرمایل چه دغسے کولاؤ ئے پریده۔

ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی: رهو دے ته وائی: (اَنْ یُّتْرَكَ كَمَا كَانَ) چه

پریخودے شی په خپل زور حالت باندے۔

۲- رَهْوًا: بـل مـعـنـیٰ د کولاووالی ده۔ رَهَا بَيْنَ رِجْلَيْهِ يَرْهُوْ رَهْوًا اَیْ فَتَحَ۔ د دوه خپو مینـځ کښې کولاو والی دپاره رهو لفظ استعمالیږی۔ بیا د الله قدرت ته وګوره چه د بنی اسرائیلو نه یو تن په اُوبو کښې پاتے نشو او د فرعونیانو نه یو تن د اُوبو نه بهر پاتے نشو، ورنـه داسے غټ جماعت کښې ضرور افراتفری جوړیږی، څهٔ اخوا لاړ شی او څه کسان بهر پاتے شی۔

دا هـم لوی مصیبت دے چه هیڅ مخلوق په فرعونیانو خفه نشو څکه چه څوك په چا خفـه شی نـو هـغـه تـه دعـاګانـے کـوی وخت پـه وخت ئے یادوی نو هغه داسے وی لکه ژوندے۔

**فائده** : موسیٰ علیه السلام چه خپل قوم دریاب باندے وروا چولو نو دا الله تعالیٰ خبر ورکړے وو، ورنـه دا جائـز نـهٔ ده چـه یـو تـن خپـل قـوم پـه داسے شی ورواچوی چه په هغے کښې ښکاره هلاکت وی، کـه یـو ځـای کښې وحی نهٔ وی، نو د ظاهری اسبابو لحاظ به کولے شی۔ نو هـجـرت او جهاد د توکل شے نهٔ دے چه تا سره هیڅ نهٔ وی او مخالف سره جهاز وی او تـهٔ ووائے چـه تـوکـل پـه الله ورځـم پرے۔ توکل به د اسبابو د تیاریٔ نه روستو کولے شی۔

كَمْ تَرَكُوْا: کَمْ خبری دے په معنیٰ د تکثیر سره۔

جَنّٰتٍ: مـصـر ډیره سرسبز او شنه علاقه ده چه په هغے کښې درے سوه شپیته نهرونه تیر شویدی د هغے نه دا زمکے تازه پرتے دی۔

وَّمَقَامٍ: یـعـنـی ځـای د وسیـدو چـه عـزتـمـنـد وو ځکه بادشاهی وه، ډیر ښکلی کورونه، ښکلی مجلسونه او محفلونه او ډولی چمنونه وغیره۔

وَنَعْمَةٍ: خـوش عیشـی۔ نـعـمـة پـه زبـر دِ نون سره د نعمتونو فراخیٔ او د ژوند مزیدار کیـدو تـه وئـیـلے شـی۔ د نعمومة نه دے، د نعمتونو د استعمالولو نه چه کوم پیروالے او نازك والے او تازه والے او خوند بدن ته حاصل شی۔

مـحلیؒ وائی : نعمة نه مراد : (مُتْعَةٌ اَیْ اُمُوْرٌ يَتَمَتَّعُوْنَ وَيَنْتَفِعُوْنَ بِهَا) یـعـنـی سامانونه او څیزونه چه دوی به د هغے نه فائدے اخستلے لکه جامے کپړے، سورلیٔ وغیره۔

فٰكِهِيْنَ: مزے اخستـونـکـی پـه قسماقسم مزو سره لکه څنګه چه سړے په مختلفو فواکهو سره مزه اخلی۔

كَذٰلِكَ: ۱-اَیۡ كَذٰلِكَ اَفۡعَلُ بِمَنۡ عَصَانِیۡ۔ یعنی زهٔ دغه شان كار د هر هغه چا سره كوم چه زما نافرمانی كوی۔ (معالم التنزیل)
۲-اَلۡاَمۡرُ كَذٰلِكَ۔ خبره دغسے وشوه چه د دوی د نعمتونو نه ووتل او هلاكت ته ورسیدل۔ ۳- یا دا د (تَرَكُوۡا) دپاره مفعول مطلق دے په اعتبار د موصوف محذوف سره۔ اَیۡ تَرۡكًا كَذٰلِكَ۔ یعنی دوی پریخودل دغسے پریخودل۔
وَاَوۡرَثۡنٰهَا: ضمیر جنات (باغونو) ته راجع دے۔
قَوۡمًا آخَرِیۡنَ: دے قوم كښ دوه قوله دی (۱) یو دا چه ددے نه بنی اسرائیل مراد دی لكه سورة الشعراء (۵۹) آیت كښ ﴿وَاَوۡرَثۡنٰهَا بَنِیۡۤ اِسۡرَآءِیۡلَ﴾ ذكر وو۔ لیكن په تاریخ او قرآن او حدیث سره ثابته ده چه بنی اسرائیل په دغه زمانه كښ بیرته مصر ته نهٔ دی واپس شوی بلكه په میدان تیه كښ وو، او بیا پرے روستو زمانه كښ یوشع علیه السلام جهاد وكړو نو شام ته ئے بوتلل، او بیا د داود علیه السلام په زمانه كښ د رومیانو د جنګونو د وجه نه مصر او حجاز ته راغلی دی۔
او د مذكوره آیت مطلب دا دے چه د دغه باغونو په شان باغونه ما بنی اسرائیلو ته وركړل په فلسطین علاقه كښ۔ لكه هلته ئے تفصیل وګوره۔
(۲) ظاهر دا ده چه د فرعون لور چه په چا واده وه نو هغه قوم راغے او د مصر پروګرامونه ئے سنبال كړل، او بادشاهی ئے د هغه لور ته وركړه، او بیا روستو هغه سخرګنیٔ ته پاتے شوه۔ او دا هم یو عذاب دے چه بادشاهی د دوی بل قوم ته نقل شوه او زنانه او ماشومان ئے هم بل چا واخستل۔
فَمَا بَكَتۡ عَلَیۡهِمُ السَّمَآءُ: ۱- معتزلی مزاج والا مفسرین وائی چه دا مجاز مرسل دے څكه چه آسمان او زمكه خو نهٔ ژاړی نو دا تمثیل دے او استعاره بالكنایه ده، مراد ترے نه اهل السماء واهل الارض دی۔
۲- ظاهره دا ده چه آسمان او زمكه هم ژاړی، الله تعالیٰ په مخلوقاتو كښ هم شعور پیدا كړیدی، آسمان او زمكه خبرے هم كوی او پو هیږی هم۔ ﴿فَقَالَ لَهَا وَلِلۡاَرۡضِ ائۡتِیَا طَوۡعًا اَوۡ كَرۡهًا﴾ ﴿تُسَبِّحُ لَهُ السَّمٰوٰتُ السَّبۡعُ وَالۡاَرۡضُ﴾ [هٰذَا جَبَلٌ یُحِبُّنَا وَنُحِبُّهٗ]۔
او دلیل پدے باندے حدیث د ترمذی دے:
[مَا مِنۡ عَبۡدٍ اِلَّا وَلَهٗ بَابَانِ بَابٌ یَصۡعَدُ مِنۡهُ عَمَلُهٗ وَبَابٌ یَنۡزِلُ مِنۡهُ رِزۡقُهٗ، فَاِذَا مَاتَ فَقَدَاهُ وَبَكَیَا عَلَیۡهِ وَتَلَا هٰذِهِ الۡآیَةَ فَمَا بَكَتۡ الخ) (الترمذی سورة ٤٤ باب ۲) واسناده ضعیف)

هر یو بنده دپاره دوه دروازے وی، یو یے نه ددهٔ عمل خیژی او بل باندے د هغهٔ رزق راکوزیږی نو کله چه دے مړ شی نو دواړه په هغه باندے ژړا کوی، او رسول الله ﷺ دا آیت ولوستلو۔ (د ابن جریرؒ او ابن ابی الدنیاؒ په روایت کښ دی چه دا دواړه دروازے په کافر باندے نهٔ ژاړی)۔

او علی ﷜ فرمائی چه په مؤمن باندے د هغه د مانځه ځای هم ژاړی۔ (فتح البیان)

او مؤذن چه کله اذان وکړی نو تهول کانړی او بوټی چه آواز واوری هغه به ورله په قیامت کښ ګواهی ورکوی۔ (الحدیث)

نو پدے جمله کښ مقصد د فرعونیانو د حال تحقیر (سپکاوے) بیانول دی چه دوی ډیر سپك مخلوق وو۔ دویم د عربو د عادت مطابق چه هغوی به د یو تن د مرګ نه روستو وئیل چه پدے مړی باندے مضبوط غرونه ژاړی، او آسمان ددهٔ په وجه سور شو۔ او په ددهٔ باندے د سهار ماښام وریځے ژاړی، پدے سره به ئے د مړی تعظیم کولو۔

**مُنظَرِیْنَ:** یعنی دویٰ له مهلت ورنهٔ کړے شو، بلکه فورًا را اونیولے شول، ځکه چه الله د دویٰ د فطرت نه ښهٔ خبر وو چه که دویٰ له مهلت هم ورکړے شی، بیا هم دویٰ د خپلو ګناهونو نه توبه نهٔ اُوکاږی او ایمان نهٔ راوړی، سخت عنادګر او ضدیان وو۔

| وَلَقَدْ نَجَّيْنَا بَنِيْ إِسْرَائِيلَ مِنَ الْعَذَابِ الْمُهِيْنِ ﴿۳۰﴾ مِنْ فِرْعَوْنَ |
|---|
| او یقیناً بچ کړل مونږ بنی اسرائیل د عذاب سپکونکی نه۔ د فرعون نه |
| إِنَّهُ كَانَ عَالِيًا مِّنَ الْمُسْرِفِيْنَ ﴿۳۱﴾ وَلَقَدِ اخْتَرْنَاهُمْ |
| یقیناً هغه لوئی کونکے وو، د حد نه زیاتی کونکو نه وو۔ او یقیناً مونږ غوره کړی وو |
| عَلٰى عِلْمٍ عَلَى الْعَالَمِيْنَ ﴿۳۲﴾ وَآتَيْنَاهُمْ مِّنَ الْاٰيَاتِ |
| دوی سرهٔ د علم نه په مخلوقاتو باندے۔ او ورکړی وو مونږ دوی ته د نعمتونو نه |
| مَا فِيْهِ بَلَاءٌ مُّبِيْنٌ ﴿۳۳﴾ |
| هغه چه په هغے کښ ازمیښت ښکاره وو۔ |

**تفسیر:** اُوس د بنی اسرائیلو حال بیانیږی۔ الله تعالیٰ بنی اسرائیلو باندے ډیر زیات انعامونه کړی وو، دلته د هغے نه ځینے ذکر شوی دی۔ فرعون بنی اسرائیل غلامان جوړ

کړې وو، د هغوئ هلکان به ئې وژل، د هغوئ ښځې به ئې ذليله او رسوا کولو دپاره ژوندئ پريښودلے، او د هغوئ نه به ئې سخت ترين کارونه اخستل۔ الله تعالىٰ هغه هلاك کړو او بني اسرائيل ئې د دے رسواکُن عذاب نه خلاص کړل۔

پدے کښې اشاره ده چه ابوجهل به د فرعون په شان هلاکيږي او مؤمنان به د بني اسرائيلو په شان بچ کيږي۔

**وَلَقَدْ:** يعني پدے خبره يقين وکړئ چه الله به تاسو ته نجات درکوي د بني اسرائيلو په شان۔

**الْعَذَابِ الْمُهِيْنِ:** يو عذاب دا وو چه فرعون غټے بتئ جوړے کړے وے چه په هغے کښې به ئې په بني اسرائيلو خاورے او بوس راوړل او خختے به ئې پخولے او هيڅ راحت ته به ئې نهٔ پريخودل او اُجرت مزدوري به ئې هم نهٔ ورکوله، بلکه ټول عمر به بيګار وو۔ او ورته غصه به ئې هم کوله، شاباسے به ئې نهٔ ورکولو۔

**مِنْ فِرْعَوْنَ:** دا بدل دے د عذاب مهين نه يعني ګويا که فرعون سو چه عذاب وو۔

په قراءت د ابن عباس ﷺ کښې په طريقه د استفهام دے (مَنْ فِرْعَوْنُ؟) يعني فرعون څوك وو؟ نو جواب راغلو چه لوى متكبر وو۔ او داسے تپوس د هغه چا نه کيږي چه هغه په خپل حسب او نسب باندے فخر کوي، نو تهٔ ورته ووائے (مَنْ أَنْتَ ؟) ته لا څوك ئې ؟۔

**عَالِيًا مِّنَ الْمُسْرِفِيْنَ:** فرعون کښې علو او اسراف مرض وو او په سورة القصص کښې ئې علو او فساد ذکر کړے وو، هر سورت سره د هغے مناسب لفظ راوړي۔ علو نه مراد تكبر عنادګري ده۔ عالي دے ته هم وائي: (عَالِيًا فِيْ مُلْكِهٖ) په خپل ملك کښې غالب وو، نو د هغے د وجه نه په کښې تکبر راغلے وو۔ علو په حقوقو د الله کښې دے، او اسراف په حقوقو د بندګانو کښې دے چه ظلمونه به ئې کول۔

**الْمُسْرِفِيْنَ:** بيا د اسراف ډير انواع دي دا ټول په فرعون کښې موجود وو۔ لکه شرك، قتل، ظلم، او هر قسم ګناهونه کول، او ټول ژوند کښې ئې اسراف وو۔ پدے کښې اشاره ده چه الله به په هره زمانه کښې د نيکو صفاتو د وجه نه مؤمنان د اسراف کونکو نه بچ کوي۔

**وَلَقَدِ اخْتَرْنَاهُمْ:** دوى الله تعالىٰ په نجات سره غوره کړل۔ دانګه نبوت ئې په دوى کښې

راوستے وو، المعجزات او خوراق العادات ورله الله ډیر ورکړی وو.

عَلٰی عِلۡمٍ: اَیۡ عَلٰی عِلۡمِ اللّٰہِ تَعَالٰی ۔یعنی الله ته پته وه چه دا خلق د غوره والی لائق دی او هسے اتفاقی طور سره نهٔ وو. دوی مجموعی لحاظ سره ښه خلق وو اګرکه روستو پکښې ډیر ورانکاری هم وو. همدا ظاهر تفسیر دے. (بدائع التفسیر)

۲-عَلٰی عِلۡمِهِمۡ. یعنی دوی علم لرلو په دین باندے پدے وجه الله غوره کړل.

مِّنَ الۡاٰیٰتِ : آیات جمع د آیة ده، نخو ته وائی، دلته آیات نه مراد خوارق العادات (د عادت خلاف کارونه او څیزونه) او معجزات او کرامات، دی چه په هغے سره په الله او په رسول باندے ایمان مضبوطیدو. حدیث کښې دی: ( حَدِّثُوۡا عَنۡ بَنِیۡ اِسۡرَائِیۡلَ فَاِنَّهٗ کَانَتۡ مِنۡهُمۡ عَجَائِبُ الۡاَعَاجِیۡبِ) تاسو د بنی اسرائیلو قصے بیانوئ ځکه چه په هغوی کښې الله ناشنا ناشنا کارونه کړی وو.

(الادب لابن ابی شیبة: ۲۰۶) المنتخب من مسند عبد بن حمید (۱۱۵۶)

لکه په مصر کښې عذاب د طوفان (اُوبو) راغلو، بنی اسرائیلو ته ضرر نهٔ وو او قبطیانو ته وو، چندخان، سپږے، ملخان وینه راغلل چه قبطیانو ته ضرر او بنی اسرائیل په امن کښې وو، د قبطیانو په جام کښې به وینه پیدا کیدله، د بنی اسرائیلو په جامونو کښې به اُوبه وے، نو که یو فرعونی به اُوبه څکلے وینه به ترے جوړیدله نو دهٔ به د اسرائیلی سره شریکے اُوبه څکلے نو په یو جام کښې به نیمے اُوبه او نیمه وینه شوه، دا څو مره ناشنا نخه ده د الله د وجود او د پیغمبر او د بنی اسرائیلو د حقانیت دپاره.

دریاب ورله لاره ورکړه، اُوبه ودریدل او هغے مینځ کښې ناڅاپی لاره وچیدل دا د اُوبو د عادت خلاف دی، دولس لارے پکښې جوړے شوے، ټول بنی اسرائیل بچ شو او ټول فرعونیان هلاک شولو، بیا چه اخوا پورے وتل نو اُوبو ته ضرورت وو موسیٰ علیه السلام په خپلے امسا سره کانړے ووهلو نو دولس چینے راوبهیدلے، وریځے پرے راغلے، من او سلویٰ ورته راغلل، احادیثو کښې نور هم ذکر شویدی، مری ورته الله راژوندی کړیدی لکه سورة البقره (۷۳) آیت کښې ﴿ فَقُلۡنَا اضۡرِبُوۡهُ بِبَعۡضِهَا﴾ کښې تیر شوی وو چه مړے راژوندے شو او حال ئے ووئیلو چه زهٔ فلانی وژلے یم.

او یو لوی جماعت د بنی اسرائیلو د مرګ د ډیرے نه وتلے وو نو الله ټول مړه کړل بیا ئے راژوندی کړل، اویا کسان الله مړه کړل بیا ئے راژوندی کړل.

په یو روایت کښې دی چه د بنی اسرائیلو نیکان خلق په لاره روان وو، مقبرے ته چه

ورسيدل نو وے ونيل چه راځئ چه د الله نه غوارو چه مونږ ته يو مړے راژوندے کړی چه حال ووائی نو په مانځه ودريدل او بيا ئے دعا وکړه نو الله ورته يو مړے راژوندے کړو چه د هغهٔ د مرګ پنځوس کاله شوی وو، نيك سړے وو، د تندی په مينځ کښ ئے د سجدے اثر وو، هغهٔ وويل: په ما باندے څه کوئ؟ پنځوس کاله وشو تر اوُسه پورے د مرګ تريخ والے زما د زړهٔ نه وتلے نهٔ دے. بيرته په دعا سره واپس شو۔ (احياء علوم الدين)

د درے کسانو د غار واقعه په حديث د بخاری کښ راغلے ده، اصحاب کهف هم بنی اسرائيل وو، درے سوه نهه کاله پس رابيدار شويدی۔

او داسے آيات اصحابو د رسول الله ﷺ ته هم ورکړے شوی وو، چه هغوی د رسول الله ﷺ درے زره معجزات ئے ليدلی وو، د دوی ايمان به څومره مضبوط وو۔ د رسول الله ﷺ د ګوتو نه اوُبه روانيدل، طعام ډيريدل، اوُښانو نبی ﷺ ته سجده کړے وه، حيواناتو ورسره خبرے کړيدی، ترخے اوُبه خوږے شويدی، کاڼړی رسول الله ﷺ کوزار کړل د مشرکانو سترګو ته ورسيدل په غزا د حنين وغيره کښ اګرکه ډير لږے وو۔ بيا صحابه کرامو ته الله تعالیٰ ذاتی کرامات هم ورکړی وو، الله تعالیٰ د ايمان د مضبوطولو دپاره په بعض اوقاتو کښ مؤمنانو ته داسے کرامات ورکوی۔

بَلٰٓؤٌا مُّبِيۡنٌ: بلاء امتحان ته هم وائی او امتحان کله د خير وی او کله د شر وی، که د خير وی هغے ته انعام وائی او چه د شر امتحان وی هغے ته فتنه وائی، دلته ئے د انعام معنیٰ ده، دا معجزے او کرامتونه ښکاره کيدل انعام وو چه دوی ته ئے ورکړی وو۔

دے قصے بيانولو کښ دا سبق پروت دے که تاسو کښ دغه شان صفات راغلل چه د کافرانو په مقابله کښ مشکلات برداشت کړئ او د بنی اسرائيلو په شان صبر مو وکړو نو تاسو سره به هم دغسے احسان کوی. او يقيناً دا وَعده الله ددے امت د نيکانو مؤمنانو سره پوره کړيده، او اوُس هم پوره کيږی، مددونه ورسره کوی، دعاګانے ئے قبليږی، دشمنان ورله ذليله کوی، کاميابی او غلبه ورله ورکوی، دا که انفرادی وی او که مجموعی طور سره وی۔

| اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ لَيَقُوۡلُوۡنَ ﴿۳۴﴾ اِنۡ هِىَ اِلَّا مَوۡتَتُنَا الۡاُوۡلٰى |
| --- |
| يقيناً دا کسان خامخا وائی۔ نهٔ دے دا (مرګ) مګر مرګ زمونږ اولنے دے |

وَمَا نَحْنُ بِمُنْشَرِيْنَ ﴿٣٥﴾ فَأْتُوْا بِآبَائِنَا إِنْ كُنْتُمْ

او نهٔ یو مونږ دوباره پورته کړے شوی۔ نو راولئ تاسو پلاران زمونږ که چرے یئ تاسو

صَادِقِيْنَ ﴿٣٦﴾ أَهُمْ خَيْرٌ أَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ وَّالَّذِيْنَ

رشتینی۔ آیا دوی غوره دی که قوم د تبع (حِمۡیَری) او هغه کسان چه

مِنْ قَبْلِهِمْ أَهْلَكْنَاهُمْ إِنَّهُمْ كَانُوْا مُجْرِمِيْنَ ﴿٣٧﴾

مخکښ د دوی نه دی، مونږ هلاك کړی دی دوی، یقیناً دوی وو مجرمان۔

**تفسیر**: اُوس د آخرت منکرینو مشرکانو د آخرت نه انکار نقل کوی او د هغوی دلیل پیش کوی، چه دومره انذارونه بیان شو او پدے کافرانو هیڅ اثر نهٔ کوی ددے وجه دا ده چه دوی د آخرت نه منکر دی، او د آخرت د انکار دپاره ئے یے ځایه دلیل نیولے دے۔ نو روستو آیت کښ به ورته زورنه ورکړی چه دوی به داسے هلاکیږی لکه قوم د تبع حِمۡیَری چه هلاك شو د انکار د آخرت په وجه۔

هٰٓؤُلَاءِ: اول کښ ددے نه مراد مکے والا دی او بیا ددے امت کافران دی۔

إِنْ هِيَ: ١- دا ضمیر قصه دے، یعنی نهٔ ده قصه مگر دا ده چه صرف زمونږ اول مرگ شته او دوباره ژوند نشته۔ د دوی صرف په دنیا نظر لګی نهٔ په بره الله او نهٔ په آخرت۔

٢- یا ضمیر (اَلْمَوْتَةُ الْمَعْرُوْفَةُ) ته راجع دے، یعنی معلوم مرگ د انسانانو۔ الموتة الْأُوْلٰى: اَيِ الَّتِيْ لَا حَيَاةَ بَعْدَهَا وَلَا بَعْثَ۔ اولنے مرگ دا چه ددے نه روستو بیا ژوند نشته او نهٔ راپورته کیدل شته د حساب او عذاب دپاره۔

د مشرکانو یو دلیل دا وو چه دوباره ژوندی کیدو کښ فائده نشته، دویم دا چه د انسان ذره ذره کیدو نه دوباره راپورته کیدل نا ممکن دی، دریم دا چه تر اُوسه پورے څوك راژوندے شوے نهٔ دے، دا څنګه حقیقت دے چه هیڅ کله مونږ ته ښکاره نشو۔

نو پدے وجه الله د قیامت د راتللو ډیر حکمتونه بیان کړیدی، دویم د قیامت په راتللو باندے په قرآن کښ د سلو نه زیات دلیلونه دی، په هغه دلیلونو کښ د کافر دپاره فائده دا ده چه د هغه انکار ختموی، او د مؤمن د آخرت استحضار پیدا کیږی۔ داسے ورته ښکاره شی لکه چه په سترګو ورته ګوری۔ او د آخرت نه انکار دا بنیاد دے د هرے ګندګئ دپاره، انسان چه رسولان نهٔ منی، عبادت نهٔ کوی، شرك کوی، عبادت ورله

خوند نهٔ ورکوی، ګناه چه نشی پریخودے نو د آخرت نه نهٔ یریږی، هر فساد په دنیا کښې پدے وجه کیږی چه یا د آخرت نه منکر دے یا د هغے نه غافل دے، استحضار ئے نشته۔
د الله وعیدونه هغه چا ته فائده ورکوی چه څوك د دغه ورځے نه یریږی، د اقوام مکذبه ؤ د واقعاتو نه د آخرت نه یریدونکی فائده اخلی۔
فَاْتُوْا بِاٰبَآئِنَا: دا ئے دلیل دے، په فَاْتُوْا کښې خطاب رسول الله ﷺ او د هغهٔ ملګرو ته دے چه هغوی د آخرت دراتللو دعوه کوله۔ لکه دوی به قصی بن کلاب یادولو چه هغه راژوندے کړئ او هغه حال ووائی ځکه چه هغه رشتینی سړے وو۔ که تاسو رشتینی یئ نو یو څو مړی خو راژوندی کړئ۔ ددے یو جواب دا دے چه دنیا کښې خو الله ډیر مړی راژوندی کړیدی، عیسیٰ علیه السلام به مړی راژوندی کول، د بنی اسرائیلو اویا کسان راژوندی شو، داسے نور واخله۔ او که پدے نهٔ پو هیږئ نو بیا دے حیواناتو ته وګورئ چه الله ئے د وچ څیزونو نه پیدا کړی، د اَنډے نه حیوان پیدا کړی، د اُوچے زمکے او دانے نه ګیا هګائے پیدا کوی۔ دویم دا چه د مړی راژوندی کولو نه په دنیا کښې مړی راژوندی کول نهٔ دی مراد، دنیا کښې بیرته نهٔ راژوندی کیږی اګر که الله پدے قادر دے ځکه چه دا د حکمت خلاف ده، ددے نه ډیر نقصانات پیدا کیږی۔ که ستا نیکونه راژوندی شی او تا سره په کور او پټی کښې شریك شی نو بیا به تهٔ د کور نه وځے، نو په خپل نیکه به تنګ شے او هغه سره به جنګونه شروع کړے چه تهٔ پکښې لا چا راژوندے کړے بیا به ئے تهٔ وژنے۔
بله دا چه الله تعالیٰ په دنیا کښې امتحان کوی ګوری چه څوك په بصیرت او په غیب سره آخرت منی، او څوك ئے نهٔ منی۔
بله دا چه دنیا دار العمل دے، دار الجزاء نهٔ دے، کله چه د عمل زمانه ختمه شی او آخرت راشی نو بیا د عمل جزاء ته راپورته کیدل پکار دی۔ نو تاسو بے وخته مړی راژوندی کول غواړئ۔ دنیا خو دار الحساب نهٔ دے، بیرته ئے د عمل کور ته څنګه راژوندی کول غواړئ۔ نو تاسو د الله د حکمت سراسر خلاف خبرے کوئ۔
اَهُمْ خَيْرٌ اَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ: نو دلته الله یوه دهمکی بیانوی چه د تبع حمیری د قوم په شان به هلاك شئ۔ خو پدے کښې دننه دلیل هم پروت دے او د هغوی مکمل جواب دے چه د آخرت ورځ حقه ده، مړی به راژوندی کیږی، دلیل ئے دا دے چه چا به په پخوا زمانه کښې آخرت نهٔ منلو نو الله به پرے عذاب راوستو او هلاك به ئے کړل، نو که ورځ د آخرت حقه نهٔ وے نو الله به زوره ور قومونو ته تهنګ نهٔ ورکولے، د آخرت ورځ حقه ده ځکه

اقوام مکذبه هلاك شویدی۔
أَهُمْ خَيْرٌ: د خیریت نه مراد په قوت او منعة کښ دے، یعنی د هغوی طاقت زیات وو، نفری ئے زیاته وه۔
تُبَّعٍ: دا د حمیر قبیلے نه یو تن وو نوم ئے ابو کرب اسعد الحمیری وو، د تبابعه قوم نه وو، په قرآن کریم کښ دوه کرته ذکر دے، د رسول الله ﷺ نه اُوه سوه کاله مخکښ راغلے وو۔ بعض علماء وائی چه ددهٔ دوه سوه شپیته کاله عمر وو او په دنیا کښ د خپلو فوجونو سره گرزیدلے دے، او عام قومونه ئے مغلوب کړیدی، او حِیره او سمرقند علاقے ئے جوړ کړیدی، ددهٔ عادت دا وو چه سفرے به ئے کولے، او د خلقو سره به ئے جنگونه کول، او ځان له ئے رعیت زیاتولو، نو دے مدینے ته راغلو او د هغوی سره ئے جنگ کولو نو د مدینے والو کرم (شرافت) دا وو چه د ورځے به ئے ورسره جنگ کولو او د شپے به ئے میلمستیا ورکوله، په مدینه کښ یهودیان وسیدل، د شام نه دے دپاره راغلی وو چه دلته یو نبی پیدا کیدونکے دے، لیکن د راتللو نه روستو د دوی کشران پرے کافر شول۔ پدے کښ تبع ته دوه یهودیان د تورات عالمان راغلل او دا ئے ورته وویل چه د مدینے والو سره جنگ مهٔ کوه ځکه چه دا د محمد رسول الله ﷺ د هجرت ځای دے، روستو زمانه کښ به نبی راځی او دے ځای ته به هجرت کوی، او دا قوم به ئے خدمت کوی، نو دے متأثره شو او په رسول الله ﷺ باندے ئے غائبانه ایمان راوړو او دا شعرونه ئے وویل:

| | |
|---|---|
| شَهِدْتُ عَلَى أَحْمَدَ أَنَّهُ ❁ | رَسُوْلٌ مِنَ اللّٰهِ بَارِئِ النَّسَمِ |
| فَلَوْ مُدَّ دَهْرِيْ إِلَى دَهْرِهٖ ❁ | لَكُنْتُ لَهٗ وَزِيْرًا وَابْنَ عَمّ |

زهٔ گواهی کوم چه محمد ﷺ د هغه الله د طرفنه رسول دے چه روحونه ئے پیدا کړیدی۔ او که زما زمانه د هغه زمانے ته اُوږده شوه نو زهٔ به د هغه مددگار او د هغه د ترهٔ ځوی جوړیږم۔ اول کښ دهٔ د اُور عبادت کولو۔
نو د مدینے والو سره ئے ښه سلوك شروع کړو، بیا عراق ته لاړو هلته ئے حیره علاقه جوړه کړه، او بیا د هغه ځای نه مکے ته راغلو نو یوے قبیلے ورته شیطانی وکړه چه د کعبے دروازے لاندے سرهٔ زر پراته دی، دے باندے قبضه وکړه، دے چه ورغلو نو دغه یهودو منع کړو (دوی ورسره ملګری وو) چه دا د الله کور دے، داسے ونکړے، او دے ته چه چا بد کتلی دی نو الله هلاك کړیدے، نو دهٔ خبره ومنله او د کعبے د احترام دپاره دهٔ یو

غلاف جوړ کړو او هغې ته ئې واچولو نو اوله جامه چه کعبې ته چا اغوستې ده هغه تبع حِمیری دے۔ د هغه وخت نه دا سنت عمل دے چه کعبې ته غلاف اچولے کیږی۔ دے سره د کعبې احترام او تعظیم راځی، دے بیا ددے یهودی علماؤ سره خپل قوم ته واپس شو او هغوی ته ئې د ایمان دعوت ورکړو، د الله توحید ومنئ او په تورات ایمان راوړئ نو هغوی انکار وکړو چه تۀ خو خراب شوے، نو الله په دوی باندے عذاب راوستو۔

په تاریخی روایاتو کښې راغلی دی چه یو غرو و د هغې نه به اُور راوتو او خلقو به هغې ته فیصلے وروړلے، حق او باطل به ئې په هغې معلو مولو، نو دوی تول د هغې خواته ورغلل نو الله تول وسیزل سوئ د تبع حمیری او د یهودی علماؤ نه چه دوی بچ شو۔

نو تبع حِمیری بچ شوے وو پدے وجه الله تعالیٰ دلته (قوم تُبع) ووئیلو۔ کعبؓ وائی : الله ددۀ د قوم بدی بیان کړیده، او د تبع بدی ئې نۀ ده بیان کړے۔ او حدیث کښې دی چه تاسو تبع ته کنځل مۀ کوئ۔ او کوم روایت کښې چه دی چه ما ته پته نشته چه هغه لعین وو او که نۀ، نو هغه مخکښې وو او روستو ئې رسول الله ﷺ گواهی ورکړیده۔

د تبع ډیر مالداره قوم وو، الله ورله هر قسم باغات او مالونه او علاقے ورکړے وے لیکن دوی کښې شرك وو، نو الله سبحانه تباه کړل۔ تبع ئې قریشو ته په مثال کښې راوړو ځکه چه دوی ته دا واقعه ډیره ښه معلومه وه، شپږ اُوه سوه کاله مخکښې راغلے وه او بل دوی به یمن ته ډیر تلل راتلل نو د هغوی حالاتو نه ښۀ خبر وو۔

مُجْرِمِیْنَ : د دوی غټ جرم انکار د آخرت وو، او دا جرم باعث وو په انکار د توحید او د انکار د انبیاؤ۔

| وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا |
|---|
| او نۀ دی پیدا کړی مونږ آسمانونه او زمکه او هغه چه په مینځ د دواړو کښې دی |
| لَاعِبِيْنَ ﴿٣٨﴾ مَا خَلَقْنَاهُمَا إِلَّا بِالْحَقِّ |
| لوبے کونکی۔ نۀ دی پیدا کړی مونږ دا مګر دپاره د ښکاره کولو د حق |
| وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٣٩﴾ |
| لیکن ډیر د دوی نه نۀ پو هیږی۔ |

**تفسیر** : چونکه د قیامت راتلل ډیر مهمه خبره وه نو الله پدیے وجه دلته د هغے په اثبات باندیے دلیل راوړی۔

اِلَّا بِالْحَقِّ: ۱- مُتَلَبِّسًا بِالْحَقِّ۔ (چه مشتمل دی په حق باندیے)۔ ۲- لِلْحَقِّ۔ د حق دپاره۔ چه هغه حکمتونه او غایات او مقاصد دی چه هغه فائده مند دی۔

۳- حاصل معنیٰ ئے دا هم ده: لِاِظْهَارِ الْحَقِّ۔ چه حق راښکاره شی۔

۴- او حق کله ضد د لَعِب (لوبو) وی یعنی بِالْجِدِّ۔ په رشتیاؤ سره۔

هغه مقاصد دا دی، یو دا چه الله تعالیٰ کائنات ددیے دپاره پیدا کړیدی چه خلق الله وپیژنی، او دا ضروری مسئله ده۔ دویمه فائده دا ده چه الله د بندګانو نه دا غواړی او پدیے خوشحالیږی او د هغه عادت دا دیے چه د بندګانو حمد او طاعت او شکر غواړی۔ حمد ئے دومره خوښ دیے چه کائنات ئے په حمد شروع کړیدی او بیرته ئے په حمد ختم کړیدی لکه د سورة زمر په آخر کښ تیر شویدی او د خپل نوم نه ئے هم حمد مخکښ راوړیدیے (الحمد لله رب العالمین) او حمد ئے دومره خوښ دیے چه ددیے دپاره ئے جنت پیدا کړیدیے چه بندګان د هغهٔ مدح او حمد وکړی او د هغے په بدله کښ جنت ورکړی، او جنت ته به الله اول حمد ویونکی ننباسی۔ الله د بندګانو نه طاعت غواړی، نو دارنګه په شکر ډیر خوشحالیږی، دارنګه الله ډیر صفات لری او د هر صفت دپاره یو اثر دیے، او اثر دپاره یو مُؤَثَّر پکار دیے، یعنی هغه شے چه په هغے کښ اثر راښکاره شی۔نو که دا کائنات پیدا نشی نو د الله د صفاتو اثر به په یو محل کښ مخلوق ته راښکاره نشی، لکه د اَلْعَفُوُّ، اَلْغَفُوْرُ د الله نومونه دی، الله انسانان پیدا کړل دوی نه به ګناهونه کیږی، بیا به بخنه غواړی نو الله به ورته بخنه کوی، نو که کائنات پیدا نشی نو چا ته به عفو او مغفرت وکړی۔ او الله پدیے عفو او مغفرت خوشحالیږی۔ د الله بل صفت دیے رحمت او خیر ورکول۔ نو که کائنات پیدا نشی نو رحمت به په چا راښکاره شی۔

**فائده** : ذوات دریے قسمه دی،یو هغه چه سراسر خیر وی دا د الله ذات دیے۔ دویم هغه چه سراسر شر دیے، دا شیطانان دی، دریم هغه چه خیر او شر دواړه پکښ وی لکه عام انسانان شو۔ نو بنده به د خپل نفس شر په دین او زیاضت باندیے کموی۔

بیا الله د بندګانو نه ولے عبادت غواړی؟، او ولے پدیے رضا کیږی؟ نو د عبادت معنیٰ وپیژنه نو په حقیقت به پو هه شے، عبادت د دریے څیزونو نوم دیے، یو د محبت او بل ادب د مالك او دریم: عاجزی او خشوع۔ او دا دریے واړه داسے څیزونه دی چه هر انسان ئے د یو

بل نه غواړي، نو الله خو ددې ډیر لائق دې.
بل د الله صفت دې چه الله محسن دې او بل ذو انتقام دې، د مخلوق سره احسان کونکې او بدله ورکونکې دې، دې ته شکور هم وائي چه د لږ عمل په مقابله کښې ډیره بدله ورکوي، او چه څوك ورانې کوي نو هغه ته سزا ورکوي. ځکه چه که چا سره احسان ونکړي نو دا صفت د نقصان دې، او مجرم ته سزا نهٔ ورکول هم نیمګړتیا ده. او الله کښې دا دوه صفتونه په کامله درجه کښې دي، نو الله کائنات ددې دپاره پیدا کړل چه نیکانو سره ډیر احسان وکړي او مجرمانو ته سزا ورکړي.
د الله صفت دا هم دې چه هغه خانله دوستان جوړوي او دشمنان ئې هم شته، ﴿اَللّٰهُ وَلِيُّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ ﴿اَلَا اِنَّ اَوْلِيَاۤءَ اللّٰهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ﴾ ﴿وَهُوَ وَلِيُّهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾. او مشرك كافر او فسادي سره د الله دشمني وي، نو کائنات الله ددې دپاره پیدا کړل چه د هغهٔ دوستان او دشمنان پکښې راښکاره شي.
د الله انقلابي ژوند خوښ دې. که کائنات پیدا نشي نو د پیغمبرانو دعوتونه او جهادونه به کوم ځاي وې. الله دا هم غواړي چه مخلوق د هغهٔ نه یره وکړي، لکه کوم بچې چه د پلار نه یریږي نو هغه د پلار خوښ وي نو د الله هم هغه بندګان خوښ وي چه د هغهٔ نه یریږي. نو کائنات ئې پیدا کړل چه بندګان د الله نه یره وکړي.
دارنګه د الله تعالیٰ ابتلاء خوښه ده، نو ددې دپاره ئې داسې ترتیب اختیار کړو چه آسمان او زمکه او کائنات ئې ودرول چه ابتلاء پرې وکړې شي. او کوم کائنات چه مونږ ته نهٔ ښکاري هغه ډیر لوي دي لکه ملائك، پیریان، بره آسمانونه، جنت او جهنم وغیره. دا ددې دپاره چه په بندګانو امتحان وکړې شي چه د انبیاؤ غائبانه خبرې مني او که نهٔ. او که دا امتحان نهٔ وې نو بیا به د خبیث او طیب تمییز نهٔ کیدلې.
نو په آیت کښې آسان تعبیر دا دې چه د حق نه مراد د الله طاعت او د هغهٔ بندګي ده.
وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ: ضمیر انسانانو او پیریانو ته راجع دې ځکه چه اکثر انسانان او پیریان نافرماني کوي او نور کائنات خپل مالك حقیقي پیژني.
لَا يَعْلَمُوْنَ: ١ - بِحَقِيْقَةِ الْكَوْنِ. (د کائناتو په حقیقت نهٔ پوهیږي چه دا الله څه له پیدا کړیدي) ٢ - بِحَقِيْقَةِ الدُّنْيَا. (د دنیا په حقیقت نهٔ پوهیږي).
٣ - رَبَّهُمْ. (خپل رب نهٔ پیژني).

| إِنَّ يَوۡمَ الۡفَصۡلِ مِيقَاتُهُمۡ أَجۡمَعِينَ ﴿٤٠﴾ يَوۡمَ لَا يُغۡنِي |
|---|
| يقيناً ورځ د فيصلے مقرر وخت د دوی ټولو دے۔ داسے ورځ ده چه نۀ به شي دفع کولے |
| مَوۡلًى عَن مَّوۡلًى شَيۡـًٔا وَلَا هُمۡ يُنصَرُونَ ﴿٤١﴾ |
| يو دوست د بل دوست نه هيڅ مصيبت او نۀ به دوی سره مدد کيدے شي۔ |
| إِلَّا مَن رَّحِمَ اللّٰهُ إِنَّهُ |
| مګر هغه څوك چه رحم کړے وی په هغۀ باندے الله تعالیٰ يقيناً هغه |
| هُوَ الۡعَزِيزُ الرَّحِيمُ ﴿٤٢﴾ |
| زورور دے رحم کونکے دے۔ |

**تفسير:** ددے آيت نه روستو د آخرت د ورځے تفصيلات بيانوی، بيا په هغے کښې دوه خبرے بيانيږی، يو تخويف يعنی انذار په اُخروی عذاب باندے۔ دويمه خبره: متقيانو ته زيرے ورکول کومو چه انذار قبول کړے۔ او په آخر د سورت کښې بيا دوه خبرے يو قرآن کريم ته ترغيب دے، او دويم انذار دے (فَارۡتَقِبۡ)۔

**إِنَّ يَوۡمَ الۡفَصۡلِ:** د قيامت په ورځ (چه د حق او باطل ترمينځه د فيصلے ورځ به وی) تمام خلق به د حشر په ميدان کښې راجمع کړے شي۔ په دے ورځ به هيڅ رشته دار يا دوست د خپل بل کوم رشته دار يا دوست په کار رانشی، البته په چا باندے چه الله په دنيا کښې رحم کړے وی، او په الله باندے د ايمان او د توحيد لاره ئے اختيار کړے وی، په دوئ به الله په آخرت کښې هم رحم کوی، يعنی خپل کوم نيك بنده له به هغۀ دپاره د شفاعت اجازت ورکړی۔

**الۡفَصۡلِ:** يعنی دنيا کښې خو آسمانونه او زمکه د انسانانو ترمينځ مشترك دی، ليکن د قيامت په ورځ به د دوی جدائی وکړے شي۔ د فصل يوه معنیٰ جدائی ده، او قيامت کښې به هم مؤمنان د کافرانو نه جدا شي، ښځه د خاوند نه او بچے د پلار نه، او دوست د دوست نه۔ د هر چا به خپل عمل وی۔ او پدے کښې اشاره ده چه د دنيا په عذاب کښې کله نا کله مؤمنان او کافران شريك وی ليکن د قيامت په ورځ به بيخی جدا جدا وی۔

او دويم: فصل په معنیٰ د قضاء (فيصلے) سره دے۔ دلته ئے دا معنیٰ مشهوره ده۔

مَوْلٰى: دولس معاني دي ١- د تره ځوى، ٢- دوست، ٣- مددګار، ٤- خپلوان.
يُنْصَرُوْنَ: دا ئې مجهول صيغه راوړه، اشاره ده چه د هيڅ طرفنه او هيڅ قسم مدد به د دوى سره نشى كيدے، د مددګار طمع به ئې ختمه شي.
اِلَّا مَنْ رَّحِمَ اللّٰهُ: ١- اكثر وائى چه استثناء متصل ده او دا د اول مولىٰ او روستنى او ينصرون درے واړو نه استثناء ده، يعني مګر هغه څوك چه الله پرے رحم كړيدے نو هغه به بل ته فائده وركوى، او چا باندے چه الله رحم كړيدے نو هغه ته به فائده وركړے شي، نو په اول باندے الله رحم وكړو چه سفارشي ئې مقرر كړو، او په دويم ئې رحم وكړو چه د هغه دپاره سفارش وكړے شو. او الله چه په چا رحم كړے وى نو هغوى سره به مددونه كيږى، او هغوى به نورو مؤمنانو له تسلي وركوى.
بل مدد د ملائكو دے چه هغوى به مؤمنانو ته وائى (لَمْ تُرَاعُوْا) تاسو مهٔ يريږئ. د مؤمنانو دپاره به سفارش كوى. او كله به الله بغير د شفاعت د چا نه خپله مدد كوى. بيا د مدد ډير صورتونه دى، كله د عذاب نه د خلاصيدو دپاره سفارش، كله شفاعت د عذاب د كمولو دپاره، كله د درجاتو د پورته كولو دپاره، كله د ميزان تله درنولو دپاره.
بيا شفاعت د الله رحم دے په بندګانو ځكه ئې داسے ترتيب مقرر كړے. په شفاعت كښې درے خيزونه وى. يو غرض عَظَمَةُ الرَّبِّ. (الله لوى ذات دے ځكه بندګان هغه ته د سفارش دپاره ورځى).
دويم: اِكْرَامُ الشَّفِيْعِ. د سفارش كونكي (نيكانو بندګانو) اكرام كول غرض وى. مثلاً الله يو بنده ته وائى چه زهٔ دا فلانے ستا په خبره معاف كوم، ځكه چه ستا زما سره قدر او عزت دے.
او دريم: اَلرَّحْمَةُ عَلَى الْمَشْفُوْعِ لَهٗ. د الله مهرباني ده په مجرم باندے چا دپاره چه سفارش غوختے شي، الله ئې د عذاب نه خلاصوى، ليكن په يوه طريقه سره چه يو بنده ته ووائى چه ما نه وغواړه، زهٔ ئې معاف كوم او دا درے واړه خبرے د الله د طرفنه دى، او په (اِلَّا مَنْ رَّحِمَ اللّٰهُ) كښې داخل دى.
(٢) كسائى او فراء وائى چه دا استثناء منقطع ده، دلته د مخكښې نه يو وَهم پيدا كيږى چه په آخرت كښې به هيڅ قسم مددونه نهٔ وى او سو چه عذابونه به وى نو الله وفرمايل: لٰكِنْ مَنْ رَحِمَ اللّٰهُ فَهُوَ الَّذِىْ لَا يَحْتَاجُ اِلٰى نُصْرَةِ اَحَدٍ/يا فَهُوَ النَّاجِىُ. ليكن هغه څوك چه الله پرے رحم وكړى نو هغه به د چا مدد او د چا سفارش ته ضرورت نهٔ لرى. / يا هغه به

نجات موندونکے وی۔ چاته به ئے ضرورت نهٔ راځی۔ اول تفسیر ظاهر دے، اصل په استثناء کښې اتصال دے۔

**الْعَزِیْزُ**: په مخلوق غالب، بے مثله، عزتمند۔

**هُوَ الْعَزِیْزُ**: یعنی الله تعالیٰ د خپلو دشمنانو نه په بدله اخستلو باندے پوره قادر دے، او په خپلو نیکانو بندګانو باندے ډیر زیات مهربانه دے۔

| |
|---|
| إِنَّ شَجَرَةَ الزَّقُّوْمِ ﴿٤٣﴾ طَعَامُ الْأَثِيْمِ ﴿٤٤﴾ كَالْمُهْلِ |
| یقیناً ونه د زقوم۔ خوراك د ډیر ګناهګار دے۔ پشان د ویلی کړے شوے تانبے |
| يَغْلِيْ فِي الْبُطُوْنِ ﴿٤٥﴾ كَغَلْيِ الْحَمِيْمِ ﴿٤٦﴾ خُذُوْهُ |
| چه خوټ کیږی به په خیټو کښې۔ پشان د خوټ کیدو د ګرمو اُوبو۔ اُونیسئ دهٔ لره |
| فَاعْتِلُوْهُ إِلٰى سَوَاءِ الْجَحِيْمِ ﴿٤٧﴾ ثُمَّ صُبُّوْا فَوْقَ رَأْسِهٖ مِنْ عَذَابِ |
| نو رائے کاږئ مینځ د دوزخ ته۔ بیا راواړوئ دپاسه په سر ددهٔ د عذاب د |
| الْحَمِيْمِ ﴿٤٨﴾ ذُقْ إِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيْزُ الْكَرِيْمُ ﴿٤٩﴾ إِنَّ هٰذَا مَا |
| ایشیدلو اُوبو نه۔ اُوڅکه یقیناً ته زورَور عزتمند وے۔ یقیناً دا هغه شے دے |
| كُنْتُمْ بِهٖ تَمْتَرُوْنَ ﴿٥٠﴾ |
| چه وئ تاسو چه په دے کښې به مو شك کولو۔ |

**تفسیر**: په دے رکوع کښې د عزیز رحیم تشریح ده۔ تر پنځوښ آیت پورے یره ورکوی هغه چاته چه په هغه کښې درے خصلتونه وی چه هغه اثم، جباریت (العزیز الکریم)، او دریم امتراء (د الله په مددونو او عذابونو کښې شکونه کول) او دا د زقوم ونے د خوراك دپاره درے سببونه دی۔

بیا تقویٰ ته ترغیب دے او متقیانو ته زیرے ورکول دی۔

د دنیا زقوم میوه ده چه په صحراوونو کښې پیدا کیږی او ددے پاڼړے ازغیدار دی، لیکن د آخرت زقوم ډیر تریخ بوټے دے، چه په جهنم کښې به پیدا کیږی۔

نو دلته د آخرت د تذکرے په مناسبت سره د جهنم او په دے کښې د ملاویدونکی بدترین عذاب ذکر شوے دے۔ الله تعالیٰ وفرمایل چه هلته به غټو مجرمانو له د زقوم

میوه د خوراك لپاره ورکولے شي۔ ددے میوه یـه بیـحده بدرنگـه او بے خونده وي، د سورتِ اسراء په (۶۰) آیت کښ ددے نوم (ملعونه) کیښودلے شوے دے، یعني هغه ونه چه په دے کښ هیڅ خیر نشته۔ رسول الله ﷺ فرمائي : [لَوۡ اَنَّ قَطۡرَةً مِنَ الزَّقُّوۡمِ قَطَرَتۡ فِيۡ دَارِ الدُّنۡيَا لَاَفۡسَدَتۡ عَلٰى اَهۡلِ الۡاَرۡضِ مَعَايِشَهُمۡ، فَكَيۡفَ بِمَنۡ يَّكُوۡنُ طَعَامَهٗ وَشَرَابَهٗ]

کـه د زقـوم یـو څاڅکے دنیا ته راپریوزي نو په زمکے والو به ژوند خراب کړي۔ دومره ترخه ونه ده۔ نو د هغه انسان به څه حال وي چه دائے خوراك څکاك وي۔

(احمد (۲۷۳۵)، والترمذی (۲۵۸۵) وصحیح الجامع : ۵۲۵۰)

**اَلۡاَثِيۡمِ**: وزن فعیـل دے، غټ گنا هگار ته وائي چه دا د منافقانو او کافرانو صفت وي، څکـه چه مؤمن نه که گناه وشي نو زر توبه وباسي او په گناه خفه وي، او الله ته راواپس شي۔ اثم هـغه گناه ته وائي چه د هغے جنس حرام وي۔ او اثیم دے ته هم وائي چه د الله د یـوے خبرے پرواه هم نهٔ کوي، نهٔ ورسره د عقیدے پرواه شته او نهٔ د عمل، او نهٔ د حلال او حرامو، او نهٔ د دروغو او رشتیاؤ، صرف دنیا راجمع کول د هغوي مقصد وي۔

**كَالۡمُهۡلِ**: ۱- په لغت کښ دُرۡدِيُّ الزَّيۡتِ (د تیـلـو خیرے/تیلچټ) ته وائي۔ دا گرم ډیر وي او بل بدبویه وي۔ ۲- اَلنَّحَاسُ الۡمُذَابُ ۔ (هـغـه تانبه چه ویلی کړے شوي وي، دا درنه او گرمه وي، چه بدن نه پوستکی اړوي۔

۳- اَلۡفِضَّةُ الۡمُذَابَةُ۔ سپین زر چه ویلی کړے شي۔

٤- اَلصَّدِيۡدُ وَالۡقَيۡحُ۔ نوونه او وینے زوے۔

**يَغۡلِيۡ فِي الۡبُطُوۡنِ**: پـه کولمو کښ الله حس کم اچولے دے او په فم معده کښ زیات دے او دارنگـه پـه ژبه کښ هم زیات دے، دا ددے دپاره چه خیتهٔ په گرم خوراك او سخت شي بانـدے خوږه نهٔ شي، هلته زر سرېږي۔ که کولمو کښ حس زیات وے نو هر وخت به په معـمـولي خوراك هم خوږیدلے، نو دا تیلچټ او زقوم به دومره تیز او سخت گرم وي چه پـه خیتـه کـښ بـه دننه خوټ کیږي، او نهٔ به سړیږي۔ او دے سره به د انسان په هر اندام باندے دردونه او تکلیفونه وي، چه د کولمو دا حال دے نو د نور بدن به څه حال وي؟!۔

**خُذُوۡهُ**: اُوس دلتـه الله تعالیٰ ددهٔ بے عزتي هم کوي، کله چه په یو انسان باندے تکلیف وي او بـل خوك شاباسے ورکوي، او رحم ئے پرے راځي نو هغه ته دا تکلیف برداشت کول آسانیږي، او ددے جهـنـمي به نوره بے عزتي هم کیږي۔ ابن مردویهٔ روایت نقل کړیدے چه کله الله دا حکم وکړي نو اویا زره ملائك به ورپسے رامنډه کړي وبه ئے نیسي۔

**فَاعۡتِلُوۡهُ**: عتـل پـه زوره سره راخکلو ته وئیلے شي۔/ یو تن یو ناکاره څیز ته بوتلل او

راخکل۔/ د څټ او غاړې نه راخکل۔
سَوَاءِ: په معنیٰ د مینځ سره دے۔
فَوۡقَ رَاۡسِهٖ : ۱- یا خو په خوله کښې اچول مراد دی۔
۲- ظاهر دا ده چه په سر باندے اچول دی چه د هغے نه څرمنه وځی لکه تفصیل ئے په سورة الصافات (۵۵) آیت کښې ذکر شویدے۔
ذُقۡ: دپاسه به پرے د ذهنی اذیت دپاره وئیلے کیږی چه وڅکه دا عذابونه۔ اَیۡ بَاشِرۡ۔ (دا استعمال کړه)۔ دا د ذَوۡقُ الۡمُبَاشَرَة نه دے، یعنی د بدن سره یو شے لګول۔ نهٔ د ذَوۡقُ الۡفَم نه۔ (یعنی په خوله باندے څکل نهٔ دی مراد)
اَنۡتَ الۡعَزِیۡزُ الۡکَرِیۡمُ : دا په طریقه د استهزاء سره وئیلے شویدی، یعنی ته خو غالبه او عزتمند ئے او مسلمانانو پورے به دے خندا کوله، نو اوس د خپل کبر او غرور خوند اوڅکه۔ (دا روحانی عذاب شو)۔ (التنویر والتحریر)
۲- عبد الله بن عباس رضی الله عنهما فرمائی : چه دے کښې د نفی معنیٰ ده۔ (لَاعَزِیۡزٌ وَلَا کَرِیۡمٌ) یعنی نهٔ زوره ور ئے او نهٔ عزتمند ئے۔ (ابن کثیرؒ)
۳- ظاهر دا ده چه تهٔ په دنیا کښې مخوریز سړے وے، لیکن اوس دلته درله دغه عزتونه فائده نهٔ درکوی ځکه چه کافر وے۔ مثال ئے ابوجهل دے چه هغه د علاقے مشر وو، د هغه خبره چلیدله، جبار او متکبر وو، ځان ئے عزتمند ګڼړلو۔ او دده په شان نورو کفارو ته به داسے وائی۔
اُمَوِیؒ په خپل کتاب (المغازی) کښې د عکرمةؒ نه یو مُرسل روایت نقل کړے چه یوه ورځ رسول الله ﷺ ابوجهل سره ملاؤ شو، نو هغویٔ ورته ووئیل چه ماته الله وئیلی دی چه تا ته دا اووایم : ﴿ اَوۡلٰی لَکَ فَاَوۡلٰی ثُمَّ اَوۡلٰی لَکَ فَاَوۡلٰی ﴾ (افسوس دے په تا باندے، حسرت دے په تا باندے، او خرابی ده تالره)۔ (القیامه : ۳۴، ۱۵)۔ نو هغهٔ خپل لاس د رسول الله ﷺ د لاس نه رابنکلو، او وے وئیل چه تهٔ او ستا رب زما څهٔ خرابولے شئ۔ تاسو ته پته ده چه زهٔ اهلِ بطحاء (خوړ والا، مکے والا) د کوم شئ نه غوارم منع کومه ئے، او زهٔ عزت او شرافت والا یم۔ نو الله تعالیٰ د بدر په میدان کښې د هغهٔ روح واخستهٔ، هغه ئے رسوا کړو، او د قیامت په ورځ به ورته خپله دا خبره وریاده کړی او ورته به اووائی چه هاؤ ! اوس خوند اوڅکه، تهٔ خو ډیر عزت او شرافت والا ئے۔
تَمۡتَرُوۡنَ: اَیۡ تَشُکُّوۡنَ فِیۡ کَوۡنِهٖ ۔ (تاسو به ددے په کیدو کښې شك کولو) امتراء کنایه ده د عدم یقین نه۔ یعنی ستاسو په آخرت یقین نهٔ وو، مګر ظاهر دا ده چه مشرکان اول

کښې د آخرت منکر وو، بیا روستو زمانه کښې چه کله دوی ته د آخرت بار بار تذکرے کیدلے نو د دوی شك پیدا شو۔ چه تاسو وایئ آخرت به راځی کیدے شی چه راشی لکه روستو سورت کښې ئے ﴿اِنۡ نَّظُنُّ اِلَّا ظَنًّا﴾ وئیلے دے۔ او د آخرت په باره کښې شك کول هم کفر دے۔

| |
|---|
| اِنَّ الۡمُتَّقِیۡنَ فِیۡ مَقَامٍ اَمِیۡنٍ ﴿۵۱﴾ فِیۡ جَنّٰتٍ وَّعُیُوۡنٍ ﴿۵۲﴾ |
| یقیناً متقیان به په ځائے امن والا کښې وی۔ په جنتونو او چینو کښې به وی۔ |
| یَّلۡبَسُوۡنَ مِنۡ سُنۡدُسٍ وَّاِسۡتَبۡرَقٍ مُّتَقٰبِلِیۡنَ ﴿۵۳﴾ کَذٰلِكَ |
| اغوندی به د نرو وریښمو او د غټو وریښمو نه یو بل ته به مخامخ وی۔ دغه شان به |
| وَزَوَّجۡنٰهُمۡ بِحُوۡرٍ عِیۡنٍ ﴿۵۴﴾ یَدۡعُوۡنَ فِیۡهَا |
| وی او په نکاح به ورکړو دوی ته حورے ښائسته سترګو والا۔ راغواړی به پدے کښې |
| بِكُلِّ فَاکِهَةٍ اٰمِنِیۡنَ ﴿۵۵﴾ لَا یَذُوۡقُوۡنَ فِیۡهَا |
| د هرے میوے نه، امن والا به وی (د هر مصیبت نه)۔ نۀ به څکی دوی په هغے کښې |
| الۡمَوۡتَ اِلَّا الۡمَوۡتَةَ الۡاُوۡلٰی وَوَقٰهُمۡ عَذَابَ |
| مرګ مګر مرګ اولنے (دوی څکلے دے) او بچ به ساتی الله دوی لره د عذاب |
| الۡجَحِیۡمِ ﴿۵۶﴾ فَضۡلًا مِّنۡ رَّبِّكَ ذٰلِكَ هُوَ الۡفَوۡزُ الۡعَظِیۡمُ ﴿۵۷﴾ |
| د دوزخ نه۔ د وجے د فضل د طرف د رب ستا نه، دا کامیابی لویه ده۔ |

**تفسیر:** اُوس د متقیانو بشارت بیانیږی۔ د دنیا په ژوند کښې د کفر او ګناهونو نه بچ کیدونکی خلق به د قیامت په ورځ په هغه مقام کښې وی چه هلته به دوئ ته هیڅ خوف او خطر نۀ وی، دوئ به د باغونو او بهیدونکو چینو ترمینځه وی۔ هلته به دوئ ته د آغوستلو دپاره باریك او غټ ریښمی لباس ملاویږی، او د دوئ د کمرو او کورونو ترتیب به داسے وی چه هغوئ به هر وخت یو بل وینی ګوری۔ یا په مجلسونو کښې به یو بل ته مخامخ وی، هر وخت به داسے نۀ وی۔

مَقَامٍ اَمِیۡنٍ : مقام ته امین ځکه وائی چه کله یو بنده ورننوزی نو هغه به امانت

(محفوظ) ساتي، د هغې هوّاء به ئې نۀ خرابوي.

كَذٰلِكَ: اَیۡ كَذٰلِكَ يُفۡعَلُ بِهِمۡ. يعني د جنتيانو سره به بيخي داسې سلوك كيږي څنګه چه مونږ پورته بيان كړو، ۲– يا كَذٰلِكَ اَكۡرَمۡنَاهُمۡ. دغسې عزت به ورکوم.

وَزَوَّجۡنَاهُمۡ: او مونږ به د دوئ ودونه د سپينو ښائسته سترګو والا حورو سره اوکړو، دې دپاره چه د دوئ سترګو ته يخوالے او زړونو ته خوشحالي ملاؤ شي.

تزويج دلته په معنیٰ د يو ځای كولو سره دے.

بِحُوۡرٍ: جمع د حوراء ده، دے ته حوراء څکه وائي چه (لِاَنَّ فِيۡهَا يَحَارُ الطَّرۡفُ لِحُسۡنِهَا) پدے کښې نظر حيرانيږي د وجه د زيات حسن د هغې نه.

عِيۡنٍ: جمع د عيناء ده، ۱– عَظِيۡمَةُ الۡعَيۡنِ. غټو سترګو والا. ۲– حِسَانُ الۡاَعۡيُنِ. ښائسته سترګو والا.

يَدۡعُوۡنَ: او د خپلې خوښې قِسما قِسم ميوو حاضرولو دپاره به جنتي غلامانو ته حكم وركوي.

آمِنِيۡنَ: او جنت والا به په دې جنتونو کښې د هر آفت او مصيبت نه په امن کښې وي، دنيا کښې چه څوك ډير خوراك وكړي، نو په خيټه کښې ئې درد شي او هيضه پرې ولګي نو په جنت کښې به ددې نه په امن کښې وي.

اِلَّا الۡمَوۡتَةَ الۡاُوۡلٰى: دا استثناء منقطع ده د تاكيد دپاره، يعني هيڅ قسم مرګ پکښې نشته مګر كه استثناء كوو نو صرف اول مرګ دوى څکلے دے.

د دوه صحيحو كتابونو (بخاري، مسلم) روايت دے، رسول الله ﷺ وفرمايل: (مرګ به د يو ګډ په شكل راوستے شي او د جنت او جهنم ترمينځه به ذبح كړے شي، بيا به ووئيلے شي: اے جنت والو! اوس به تاسو هميشه اوسيږئ، هيڅ كله به درله مرګ نۀ راځي، او اے جهنم والو! اوس به تاسو هميشه په جهنم کښې اوسيږئ، تاسو له به هيڅ كله مرګ نۀ راځي). (بخاري: ٤٧٣٠ ومسلم: ٧٣٦٠)

او مسلم د ابو سعيد او ابو هريره رضي الله عنهما نه روايت كړے، رسول الله ﷺ وفرمايل: (جنتيانو ته به وئيلے كيږي: اوس به تاسو هميشه صحت مند اوسيږئ هيڅ كله به بيماريږئ نۀ، او تاسو به هميشه ژوندي يئ هيڅ كله به نۀ مرئ، او تاسو به هميشه خوشحاله يئ هيڅ كله به خفه كيږئ نۀ، او تاسو به هميشه ځوانان يئ هيڅ كله به بوډاګان كيږئ نۀ). (مسلم: ٧٣٣٦)

وَوَقٰهُمْ: یعنی لویه خبره دا ده چه انسان جنت ته داسے طریقے سره لاړ شی چه د جهنم د عذاب نه بیخی محفوظ وی۔

دا دلیل دے چه کیدے شی چه غیر پرهیزگاره موحدین د څۀ عذاب خوړلو نه پس جنت ته داخل شی، البته پرهیزگاره موحدین به بیخی جهنم ته نۀ داخلیږی۔

سوال: په جهنم کښې هم مرګ نشته نو د جنت په دے کښې څه فضیلت دے؟

جواب: مقصد دا دے چه په جنت کښې کامل ژوند دے، او په جهنم کښې هم ژوند شته لیکن هغه ژوند په ژوند باندے حساب نۀ دے، لکه سورة اعلیٰ کښې ئے فرمایلی دی: ﴿لَا يَمُوْتُ فِيْهَا وَلَا يَحْيٰى﴾ یعنی فائده مند ژوند به ئے نۀ وی۔

فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكَ: دا مفعول لهٗ دے۔ اَیْ لِاَجْلِ الْفَضْلِ مِنْهُ ۔ د وجه د مهربانئ د الله نه۔ دا دلیل دے چه د عملونو ثوابونه ورکول د الله فضل دے او په هغه باندے واجب نۀ دی۔

ذٰلِكَ: یعنی دغه جنت ته داخلیدل او عذاب نه بچ کیدل۔

| فَاِنَّمَا يَسَّرْنٰهُ بِلِسَانِكَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿٥٨﴾ |
|---|
| نو یقیناً آسان کړیدے مونږ دا قرآن په ژبه ستا باندے دے دپاره چه دوی نصیحت |
| فَارْتَقِبْ اِنَّهُمْ مُّرْتَقِبُوْنَ ﴿٥٩﴾ |
| قبول کړی۔ نو انتظار کوه یقیناً دوی انتظار کونکی دی۔ |

**تفسیر:** اُوس قرآن ته ترغیب دے، او رسول الله ﷺ ته ددے په بیانولو باندے بهادری ورکوی دے دپاره چه خلق د قرآن نه په نصیحت اخستو سره د دنیا او د آخرت د عذاب نه بچ شی۔

بِلِسَانِكَ: ١- په عربی لغت هم آسان دے۔ ٢- او په ژبه د رسول الله ﷺ هم آسان شوے وو۔

فَارْتَقِبْ: دا متعلق دے د (اِنَّا كُنَّا مُنْذِرِيْنَ) سره، یعنی که د بیان نه روستو هم کافران ایمان نۀ راوړی او عبرت نۀ حاصلوی، نو بیا د دوی د عذاب انتظار وکړه۔ او دوی به هم انتظار کوی چه څه ورسره کیږی۔ یا د الله د مدد انتظار کوه او دوی انتظار کوی چه په تا باندے به کله تکلیف او مرګ راځی چه دوی ستا نه خلاص شی۔

پدے کښې هم کافرانو ته پوره دعوت دے چه د خپل ځان غم وکړئ، که په تاسو عذاب

راشی نو تاسو ورله کوم تیارے کریدے۔

مفسرین لیکی چه په دے آیت کښ د الله تعالیٰ له اړخه رسول الله ﷺ دپاره د نصرت او د اهلِ مکه باندے د غلبے وعده وه۔ لکه همدغسے اوشوه چه الله خپل رسول غالب کړو او د قریشو کافر سرداران ئے ذلیله کړل۔

## امتیازات:

۱- د انذار خبره پکښ زیاته بیانه شوه۔
۲- د دخان تذکره پکښ وشوه۔
۳- د بدر واقعے ته پکښ اشاره وشوه۔
٤- د دنیا د پیدائش مقصد پکښ بیان شو۔

بِسۡمِ اللهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

| آیاتها (۳۷) | (٤٥) سورة الجاثیة مکیة (٦٥) | رکوعاتها (٤) |
|---|---|---|

سورت جاثیه مکی دے، په دے کښې اُوه دیرش آیتونه او څلور رکوع دی

# تفسیر سورة الجاثیة

نوم: د (۲۸) آیت ﴿وَتَرٰى كُلَّ اُمَّةٍ جَاثِیَةً كُلُّ اُمَّةٍ تُدْعٰى اِلٰى كِتٰبِهَا اَلْیَوْمَ تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ﴾ نه اخستے شوے۔ ۲- دویم نوم ئے اَلشَّرِیْعَةُ۔ ۳- سُوْرَةُ الدَّهْرِ دے۔
په الجاثیه ډیر مشهور دے او دا نوم مقصودی او هیبتی دے پدے وجه ورته کیخودے شو، ځکه چه سرے ته د قیامت دغه حالت بیانوی۔
د نازلیدو زمانه: حسنؒ، جابرؓ او عکرمهؒ په نیز ټول سورت مکی دے۔ ماوردیؒ لیکلی دی چه د ابن عباسؓ او قتادهؒ په نیز د (١٤) آیت اولنئ برخه ﴿قُلْ لِّلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا یَغْفِرُوْا لِلَّذِیْنَ لَا یَرْجُوْنَ اَیَّامَ اللهِ﴾ مدنی دے۔

مناسبت:

۱- مخکښې انذار وو په دنیوی عذاب سره چه ددے نه یره وکړئ۔ نو پدے سورت کښې د انذار نتیجه بیانوی چه د اِنذار (عذابونو) نه انسان په څه بچ کیږی نو دلته وائی چه هغه ایمان دے۔ ۲- مخکښې سورت کښې په بنی اسرائیلو باندے نعمتونه ذکر شو نو دلته د هغوی ناشکری بیانیږی۔
۳- مخکښې سورت کښې عظمت د قرآن وو نو پدے سورت کښې د قرآن مخالفت کونکو ته سخته زورنه او د هغوی قباحتونه بیانیږی۔

## د سورت موضوع او مقصد

۱- زمونږ مشائخ وائی چه ددے سورت موضوع ده اِتِّبَاعُ الشَّرِیْعَةِ۔ (یعنی د شریعت

چه دا د قرآن او سنت نوم دے، ددے په تابعداریٔ باندے حکم ورکوی) په (۱۸) آیت کښې۔

۲- پدے سورت کښې یو مقصد دے چه هغه ایمان دے، خو په مختلفو تعبیراتو سره، یو ایمان په الله باندے او د هغهٔ په عظمت باندے، او د هغهٔ نخے او نشانے پیژندل او بیا د هغهٔ حق ادا کول۔ نو پدے سورت کښې یو ایمان بالله ته دعوت دے، د اول نه تر (٦) آیت پورے ئے بیان کړیدے۔

دویمه خبره دے ته نزدے هغه ایمان بِلِقَاءِ الله دے، چه ددے نه بعض علماء تعبیر په معاد سره کوی، یعنی توحید او معاد پکښې بیانیږی، چه دوباره ژوند حق دے۔

په لقاء کښې بیا دریمه خبره دا ده چه ایمان په جزاء الاعمال او حساب دے، لکه دا خبره د الله د حکمت خلاف ده چه هغه دے انسانانو ته په اعمالو بدله ورنکړی، او دوی سره دے حساب ونکړی، او دا خبره هم پکښې زیاته ذکر ده۔ الله (العزیز الحکیم) دے، حکیم ذات څنګه داسے وکړی چه مخلوق دے پیدا کړی او نظام دے روان کړی، او بیا دے د هغوی سره هیڅ حساب نهٔ کوی۔ دا خو د کافرانو ګمان دے ﴿ اَمۡ حَسِبَ الَّذِیۡنَ اجۡتَرَحُوا السَّیِّاٰتِ﴾ کښې راغلی۔ او په آخر د سورت کښې د جزاء او سزا تفصیلات بیانوی۔ او رد دے په دهریه وْ باندے۔

څلورمه موضوع چه دے ته ورته ده: الایمان بآیات الله۔ د الله په آیتونو ایمان لرل۔

او آیات الله دوه قسمه دی، یو آیات متلوّه (چه لوستلے کیږی) لکه قرآن کریم باندے ایمان او یقین۔ دا خبره په حوامیم سبعه کښې زیاته وه، دلته دولس کرته آیات الله لفظ ذکر دے، (یَسۡمَعُ آیَاتِ اللهِ) (بِآیَاتِ رَبِّهِمۡ) ۔ بنی اسرائیلو ته الله کتاب ورکړو نو هغوی ناشکری وکړه نو د هغوی نه عبرت واخلئ۔ په آخر د سورت کښې فرمائی: ﴿ اَفَلَمۡ تَکُنۡ آیَاتِیۡ تُتۡلٰی﴾ ﴿ ذٰلِکُمۡ بِاَنَّکُمُ اتَّخَذۡتُمۡ آیَاتِ اللهِ﴾ د الله په آیتونو چه څوك ایمان راوړی نو نجات والا او که څوك ایمان نهٔ راوړی نو هغه تباهیٔ سره مخامخ دے۔

دویم آیات کَونیه (تکوینه) یعنی دلائل عقلیه منل، کتاب مفتوح منل، چه هغه د الله کائنات دی چه ددے نه هر څوك فائده اخستلے شی که څوك ورته سوچ وکړی لکه اول د سورت کښې الله تعالیٰ آسمان یوه پانړه او زمکه بله پانړه او مینځ کښې کرخے ذکر کړیدی، په کائناتو کښې ډیر عجائبات پیدا دی، پدے باندے د ایمان راوړو مقصد دا دے چه دا خبره پیژندل چه دا یو مقصد له پیدا دی، دا یو ذات پیدا کړیدی چه ډیر لوی دے،

په هغهٔ باندے ایمان راوړل او د هغهٔ بندګی کول، نو الله چه قرآن څه له پیدا کړے چه بندګان په هغه مقصد باندے راشی۔ لکه ایمان، عمل صالح، د شریعت تابعداری کول، (فَاتَّبِعۡهَا) د الله د آیتونو تعظیم کول۔ نو په آخر د سورت کښې فرمائی:

د الله تعظیم کول او د هغهٔ حمدونه وئیل او د هغهٔ د کبریاء او عظمت نه ځان خبرول دا مقصد د قرآن دے۔

او ددے موضوعاتو د یو بل سره تلازم او ملازمه ده، الله چه ډیر وومنلو نو د هغهٔ کتاب به منے او چه کتاب ډیر ومنو نو الله به منے او کتاب ددے دپاره دے چه د آخرت ملاقات ومنه او هغے له تیارے کوه، او هغه تیارے په اتباع د شریعت دے، ایمان او عمل صالح ئے نوم دے، او دا به هم ووائی چه دا تول اعمال په صحیفو کښې لیکلے کیږی په قیامت کښې به درسره پدے باندے حساب کیږی۔

خلاصه :

شپږم آیت پورے د ایمان دلائل دی او بیا تر رکوع پورے رد دے په منکر د قرآن باندے، پنځه کرته ئے ورله عذاب ذکر کړیدے، بیا ئے دلائل بیان کړیدی، بیا ئے مومنانو ته د کافرانو په مقابله کښې یو ادب بیان کړیدے، بیا ئے د بنی اسرائیلو واقعه راوړیده چه په هغے کښې ایمان مقصودی دے چه د الله په کتاب ایمان راوړئ او د بنی اسرائیلو په شان مهٔ جوړیږئ چه هغوی اختلاف وکړو۔ بیا قرآن ته ترغیب دے، او بیا د مؤمن او د کافر فرق، بیا دلیل ذکر دے، بیا په دهریه و باندے رد دے، بیا د هغوی دلیل راوړی او په هغے رد کوی او په آخری رکوع کښې تفصیلی تخویف د آخرت ذکر کوی۔ او سورت ئے په حمد د الله او کبریاء د هغهٔ باندے ختم کړیدے۔

| حٰمٓ ﴿۱﴾ تَنۡزِیۡلُ الۡکِتَابِ مِنَ اللّٰهِ الۡعَزِیۡزِ الۡحَکِیۡمِ ﴿۲﴾ |
|---|
| حا، میم، نازلول ددے کتاب د طرف د الله نه دی چه زورور دے حکمتونو والا دے۔ |
| اِنَّ فِی السَّمَاوَاتِ وَالۡاَرۡضِ لَاٰیَاتٍ لِّلۡمُؤۡمِنِیۡنَ ﴿۳﴾ وَفِیۡ |
| یقیناً په آسمانونو او زمکه کښې خامخا دلیلونه د توحید دی دپاره د ایمان والو۔ او په |
| خَلۡقِکُمۡ وَمَا یَبُثُّ مِنۡ دَآبَّةٍ آیَاتٌ |
| پیدائش ستاسو کښې او په هغه کښې چه خوارهٔ کړی ئے دی د زنده سرو نه نخے دی |

| لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ ﴿٤﴾ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَمَا |
|---|
| دپاره د هغه قوم چه یقین لری۔ او په بدلولو د شپه او ورځ کښې او په هغه کښې |
| أَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ رِّزْقٍ فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ |
| چه رالیږی ئے الله تعالیٰ د بره نه باران نو ژوندئ کړی پدے سره زمکه روستو د |
| مَوْتِهَا وَتَصْرِيفِ الرِّيَاحِ آيَاتٌ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿٥﴾ |
| اُوچوالی نه او په گرځولو د هواگانو کښې نخے دی دپاره د هغه قوم چه عقل نه کار |
| تِلْكَ آيَاتُ اللّٰهِ نَتْلُوهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ |
| اخلی۔ دا آیتونه د الله تعالیٰ دی چه لولو ئے مونږ تا ته د حق ښکاره کولو دپاره |
| فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَ اللّٰهِ وَآيَاتِهِ يُؤْمِنُونَ ﴿٦﴾ |
| نو په کومه خبره روستو د کتاب د الله او د آیتونو د هغهٔ نه دوی ایمان لری۔ |

**تفسیر**: دا حروف مقطعات دی، او ددے حقیقی معنیٰ او مفهوم الله بهتر پیژنی۔

تَنْزِيلُ: یعنی دا قرآن د محمد (ﷺ) کلام نهٔ دے، بلکه دا هغه الله نازل کړے، چه هغه زورور دے او حکیم هم دے۔ او د هغهٔ زورور کیدل ددے خبرے تقاضا کوی چه هغه دومره ډیر دلائل پیش کړی چه د هغه دشمن چپ او مغلوب شی، او د هغهٔ حکیم کیدل ددے خبرے تقاضا کوی چه هغه د تمامو شکوکو او شبهاتو ازاله اوکړی، او د هغهٔ په کلام کښې هیڅ عیب او نقصان نهٔ وی۔ چنانچه قرآن کریم د الله تعالیٰ د توحید د دلائلو نه ډک دے، او چونکه دا الهی کلام دے دے وجے نه په دے کښې هیڅ عیب او نقص نشته۔

تَنْزِيلُ: مبتداء ده او من الله العزیز الحکیم ئے خبر دے۔ الکتاب نه مراد قرآن کریم دے۔

إِنَّ فِي السَّمَاوَاتِ: اُوس د توحید دلائل ذکر کیږی۔ الله تعالیٰ وفرمایل چه آسمانونو او زمکه کښې، یا د دوئ په پیدائش کښې قِسم قِسم نښے دی، او دلته ئے خلق السموات ونهٔ وئیل ځکه چه په آسمانونو او زمکه کښې دننه ډیر څیزونه دی چه هغه ټول د الله په توحید او عظمت باندے دلیلونه دی، چه هغه د دوی پیدائش دے، نمر او سپوږمئ، د

دوی لوی والے، بره والے خکتـه والے، رنګونه، قوت، وریځے، بارانونه، برکات، کشش۔ دارنګه په زمکه کښې معدنیات، نباتات او نور جمادات او اسباب د معاش دی، که بنده دے کښې سوچ کوی نو الله به وپیژنی۔ او پدے هر یو کښې ډیر دلیلونه دی پدے وجه ئے آیات جمع راوړه۔

لَاٰيٰتٍ: اَیْ عَلٰی عَظَمَتِهٖ وَكَمَالِهٖ وَتَوْحِيْدِهٖ۔ دا ټولے نښے دی د الله په لوی والی او د هغهٔ په کمال او د هغهٔ په توحید باندے۔

لِّلْمُؤْمِنِیْنَ: او چونکه دے نښو نه مومنان فائده پورته کوی، دے وجے نه خاص طور سره ئے د دوئ ذکر وکړو، ګنے د الله نښے خو د عام او خاص دواړو لپاره دی۔ یا مؤمنین نه مراد هغه خلق دی چه د ایمان اراده لری، یا ایمان سبب د عبرت اخستو دے۔

وَفِیْ خَلْقِكُمْ: یعنی بنیادم د ګنړو مراحلو (پړاوونو) نه تیریدو سره پیدا کیدل، زړهٔ، دماغو او عقل غونته نعمتونه ورکیدل، او په آوریدو، لیدو او ګویا کیدو باندے قادریدل، د سترګے او د هغے د رګونو نظام، د معدے او د خولے او غرض د ټول بدن د هر اندام نظام په دے باره کښې چه انسان څو مره غور اوکړی، د الله د عظیم قدرت اقرار به خامخا کوی۔ د انسان ټول بدن ته ئے نرمه څرمن اغوستے ده، او حیواناتو ته سخته څکه چه انسان نورے کپړے د بهر نه استعمالوی او حیوانات داسے نهٔ دی۔ په نرمه څرمن کښې فائده دا ده چه احساسات ئے زیات شی او فائده حاصله کړی، بیا دا یوه څرمنه ده بعض ځای کښې توره او بعض ځای کښې سره او بعض ځای کښې خړه، او بعض ځای کښې سپینه وی، دے کښې نور حکمتونه دی۔ په بعض ځای کښې حس زیات لری او بعضو کښې کم۔ د ګوتو په سرونو کښې حس زیات وی، بیا په مسواکئ کښې زیات وی او په خپو کښې کم وی څکه چه دا د زمکے سره لګیږی۔

بیا ئے په بدن باندے ویښته راخیژولی دی ددے یوه فائده زینت دے او بله فائده ئے دا ده چه انسان دننه بند دے نو دده ګیس او ګنده ماده د ویښتو په مسامتو باندے ووځی۔ ورنه همیشه به ناروغه وے۔ د سړی ګیره وی او د ښځو نهٔ وی۔ بیا ویښته په تندی نهٔ راځی بلکه صرف په جامه راخیژی۔ یو شان ویښته دی، بعض ځای کښې غټیږی او بعض نهٔ لکه د بڼړو او وروځو ویښته۔ د سترګے نظام ته وګوره چه پدے کښې اوه پردے او درے قسمه شیشے لګیدلی دی، عنکبوتیه، زجاجیه، بیضه۔

او په سترګه کښې دننه داسے شیشه لګیدلے ده چه هغه درے نیم سوه بلکه د هغے نه

زيات رنګونه راخلي كه دا نۀ وي نو ټول څيزونه به سپين ښكاره كيدے، په سترګه كښې ديارلس لاكهه رګونه دي۔ بيا په شونډو او ژبه او د غوږونو په عجائباتو كښې سوچ وكړه او داسے پسے راځه۔ غاښونو اختلاف او نۀ غتيدو ته وګوره۔ لاسونو ته وګوره چه دے كښې الله داسے طاقت اچولے دے چه په لكهونو كارونه كولے شي، داسے آله بل څوك نشي جوړولے چه هر كار پرے كيږي۔ خوراك، څكاك، ليكل، اشاره، د سر حفاظت، اُوچتول ځكته كول، دفعه كول، راخكل۔ خوله كښې الله خوند اچولے دے۔

بيا په هر اندام كښې درے صفتونه وي، قوتِ ماسكه (يو شے ځان سره جمعه كوي) قوت دافعه (مدافعه) چه د ځان نه ئے ديكه كوي۔ قوتِ جاذبه (راخكلو والا)۔ په خوله كښې الله د لاړو دپاره چينه پيدا كړيده چه خوله هميشه لمده وي۔ دننه د معدے او د جګر او مثانے او ګردے، او خپو او نورو اندامونو عجائباتو سره به خپل رب ضرور پيژنے۔ زړه كښې هر قسم صفتونه راجمع كيږي، خفګان، خوشحالي، د الله تعلق، يره، محبت وغيره او د ټول بدن نه قوي دے چه زر كاله خوزيږي او نۀ كمزورے كيږي۔ كه د معدے خوله نۀ وے نو د انسان بدن به خوراك څكاك ته محتاج وے او دے به پرے نۀ پو هيدے نو سمدست به مړ كيدے۔

د خوراك نه الله تعالىٰ د هر اندام رزق پيدا كوي۔ مثانه سوريٰ ده ليكن الله پكښې داسے طاقت پيدا كړے چه متيازے ترے نۀ وځي بلكه په اراده سره وځي۔ بيا په انسان كښې الله ګندګي ولے پيدا كوي، پدے كښې ډير رازونه دي، عام بدن ته قوت وركوي، كه خيټه خالي شي نو بيا ملا ماتيږي، انسان چه ډير وږے شي او خيټه خالي شي نو په ملا درد راځي،

او باطني حكمت پكښې دا دے چه د انسان تكبر مات شي چه تا كښې څومره ګندونه دي۔ واړه او غټ بول، مني، مذي، ودي، وينه، لاړے، د غوږونو خيرې، د پوزے او د سينے ګندونه وغيره۔ نو دغه الله شكور دے چه سره ددے دومره ګندونو نه زمونږ اعمال قبلوي۔ بيا په بدن كښې چونه، چيني، مالګه، سوداء، صفراء، بلغم، وينه ده نو ددے دپاره الله په دنيا كښې څيزونه پيدا كړيدي چه دا اخلاط ددے خوراكونو په وجه باقي پاتے شي او انسان زر مړ نشي نو دے انسان دپاره ټوله كارخانه د عالَم لګيا ده او بيا هم دا بنده الله ونۀ پيژني او د هغه بندګي ونكړي نو دا هر څه دۀ ته ضائع ښكاره شول۔ نو آيا دے به د اُور لائق نۀ وي۔

وَمَا يَبُثُّ : دغه شان الله په زمكه كښې قِسما قِسم ځناور؛ چارپايان او حيوانات پيدا كړي، ځوك د خشكئ ځناور دي، نو ځوك د درياب او سمندر اوسيدونكي دي. پدې كښې د انسانانو دپاره فائدې دي، او د الله د قدرت نښه ده، او حيوانات ځو مره لوى لوى دي ليكن صفت د عاجزئ او بزدلى پكښې الله پيدا كړيدې، از مرى كښې د بزدلئ او عاجزئ صفت نشته نو بندګان ترې فائده د خوراك او سوريدو نشي اخستې. دا حيوانات الله تعالىٰ أعجم (چارا) كړيدى ګنې انسانانو به پرې شفقت راتللې، يا به ئې ورله پيغور وركولې نو فائده به ئې ترې نشوې اخستې، كوم حيوانات چه خوړلې كيږى هغه ډير پيدا كيږى او هغه ښكاره كيږى او سپى ډير بچى راوړى ليكن ورك كيږى.

ددې ټولو پالنه او پرورش كوى، قيامت كښې به ددې ذرات راجمعه كوى، په درياب كښې د شپږ سوو نه او په اُوچه كښې د څلورو سوو نه زيات اقسام حيوانات دى او بيا په هره نوع كښې په كروړونو دى. ددې ټولو په باره كښې غور او فكر انسان دې يقين ته رسوى چه الله موجود دې، هغه علام الغيوب دې، عزيز او حكيم دې او په دې باندې قادر دې چه د قيامت په ورځ تمام مرى دوباره ژوندى كړى او هغوئ سره د هغوئ د عملونو حساب اوكړى، او لكه څنګه چه دغه ذات په پيدائش كښې يواځې دې نو هغه په بندګئ كښې هم يواځې كول پكار دى.

يُوْقِنُوْنَ : يعنى ددې دليلونو نه د فائدې اخستو دپاره اراده د يقين ضرورى ده ﴿ لِمَنْ شَاءَ مِنْكُمْ اَنْ يَّسْتَقِيْمَ﴾ ﴿لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يَّذَّكَّرَ اَوْ اَرَادَ شُكُوْرًا﴾ . كه ځوك اراده نۀ لرى نو دا دليلونه به موجود وى ليكن هغه ته به فائده نۀ وركوى.

وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ : د شپې او ورځې يو بل پسې پوره انتظام سره تلل راتلل، د موسم د بدلون مطابق د دوارو وريدلې او غټيدل، اختلاف د فائدو، اختلاف د رنګونو. اختلاف په يخوالى او ګرم والى، چه شپه يخه او ورځ ګرمه وى، د شپې د كربونو ټنو په اندازه د دريابونو نه هواء فضاء ته خيژى دې دپاره چه هواء برابره شى.

كه شپه هميشه شى نو هميشه به يخنى وې، او اسباب د معاش به ګډوډ وې او كه ورځ هميشه شى نو بيا به هميشه ګرمائش وى، او زيات آرام او سكون به ختم وى. او د بندګانو دپاره د ورځې خپلې بندګيانې وى او د شپې خپلې.

وَمَا اَنْزَلَ اللّٰهُ: او آسمان نه د باران وريدل چه دې سره مړه زمكه كښې ساه پيدا شى،

وَتَصْرِيْفِ الرِّيَاحِ : او د هواء ګانو رد ويدل، كله باد صبا د صبا په وخت وى، نو كله د

مابنام په وخت چلیدونکے هواء وی، کله شمالی وی نو کله جنوبی، او کله گرمه هواء وی نو کله سیلئ وی، بعض هواگانے وریځے راپورته کوی او بعض ئے حاملے کوی، او بعض د ارواحو تازه کولو، او بعض د بوټو د تازه کولو دپاره رالیږی، که هوا بنده شی نو هر څه به سخا شی او بد بویانے به پیدا شی۔

په دے ټولو تصرفاتو باندے د الله نه سوئ د چا اختیار دے، هم هغه ذات دے چه ددے ټولو قدرتونو مالك دے، او په دے کښ د عقل او پوهے والو دپاره لوئے نښے دی چه انسانان صرف د همدے یو ذات عبادت طرفته رابلی۔

مِنۡ رِّزۡقٍ: باران بعینه رزق دے ځکه چه د زمکے او د بوټو او خوراکونو او د انسان بدن ورته ضرورت لری۔ او دلته ئے د باران نه په رزق سره تعبیر وکړو ځکه چه پدے سورت کښ د دلیلونو ذکر کولو سره بندګانو ته نعمتونه هم یادول مقصود دے او ښکاره نعمت خو رزق دے نو پدے وجه ئے ددے تصریح وکړه، نو باران سبب د رزق شو۔ او چونکه دا دلیلونه هر عقل والا ته واضح دی پدے وجه ئے په آخر کښ يَعۡقِلُوۡنَ راوړو۔

عقل معنیٰ ده ترل یعنی خپل عقل ددے دلیلونو سره وتړی او دا استعمال کړی، ورنه عقل خو د هر انسان سره شته۔

**فائده** : د آیتونو په آخر کښ ئے ایمان، یقین او عقل ذکر کړو دے ترتیب کښ حکمت دا دے چه که بنده مؤمن وی نو پدے دلیلونو به پوهه شی، او که چرے طلبګار د حق او د یقین وی، نو په دے دلیلونو کښ به فکر وکړی نو یقین به ئے راشی۔ او که نهٔ مؤمن وی او نهٔ یقین والا وی، نو کم از کم عقل خو ورسره شته نو په عقل سره به ددے دلیلونو په پیژندلو کښ کوشش وکړی۔

دویم حکمت دا دے چه په دریم آیت کښ فلکی احوال ذکر دی او هغه لری دی، د هغے دپاره صرف تصدیق کافی دے او په (٤) آیت کښ انفسی دلیلونه دی چه هغه ډیر نزدے دی نو په هغے کښ یقین استعمال کړئ او په (٥) آیت کښ د خکته او بره انقلابات ذکر دی نو د هغے دپاره صرف عقل هم پوره دے۔ (احسن الکلام)

تِلۡكَ آيَاتُ اللهِ: دلته د آیتونو نه مراد آیاتِ متلوّه (یعنی قرآنی آیتونه) دی، یعنی دغه دلیلونو کښ هم سوچ وکړه او بیا د الله کتاب راواخله هغه به دے دغه دلیلونو ته متوجه کړی او توحید به درته وښائی۔

بَعۡدَ اللهِ: ١ ـ اَیۡ بَعۡدَ دَلَائِلِ اللّٰهِ ـ یعنی د الله تعالیٰ ددے نښو نه پس د قریشو کافران د

کوم دلیل انتظار کوی چه د هغې په لیدو سره به دوئ په الله ایمان راوړی.
۲- یا ﴿ بَعۡدَ اللّٰهِ﴾ (الله نه پس) نه مراد [ بَعۡدَ حَدِیۡثِ اللّٰهِ ] دے، یعنی د الله د خبرے (یعنی کتاب) نه پس. مطلب دا چه که چرے دا خلق د قرآن کریم غونته عظیم الشان کتاب باندے ایمان نهٔ راوړی، نو د دوئ د هدایت دپاره به اُوس کوم یو کتاب راځی چه په هغې باندے دا خلق ایمان راوړی؟ یعنی دا مشرکان ایمان نهٔ راوړی.
۳- بَعۡدَ تَوۡحِیۡدِ اللّٰهِ. د الله د توحید نه روستو به په کومه خبره دوی ایمان راوړی.

| وَیۡلٌ لِّکُلِّ اَفَّاکٍ اَثِیۡمٍ ﴿۷﴾ یَّسۡمَعُ اٰیٰتِ اللّٰهِ |
|---|
| هلاکت دے دپاره د هر ډیر دروغژن لوئی گناهگار. آوری آیتونه د الله تعالیٰ |
| تُتۡلٰی عَلَیۡهِ ثُمَّ یُصِرُّ مُسۡتَکۡبِرًا |
| چه لوستلے شی په دهٔ باندے بیا همیشه شی په کفر باندے، لوئی کونکے وی، |
| کَاَنۡ لَّمۡ یَسۡمَعۡهَا فَبَشِّرۡهُ بِعَذَابٍ اَلِیۡمٍ ﴿۸﴾ |
| گویا که نهٔ ئے دی آوریدلی نو زیرے ورکړه دهٔ ته په عذاب دردناك. |

**تفسیر:** اُوس هغه چا دپاره ښخه سزاگانے بیانوی چه آیاتِ آفاقیه او آیاتِ متلوّه ته نظر نهٔ کوی. یعنی پدے آیتونو کښ د داسے کافرانو انجام وَیۡل (د جهنم یوه کنده) ښودلے شویدے، کوم چه د الله او د هغهٔ د صفتونو په باره کښ د دلیل خلاف خبره کوی، او ډیر ډیر گناهونه کوی، او کله چه ددهٔ مخے ته د الله د آیتونو تلاوت کیږی، نو ددهٔ کیفیت داسے شی چه گویاکه دهٔ هغه د سره آوریدلی نهٔ دی، او د کبر او غرور د وجے نه په خپل کفر باندے ټینگ پاتے کیږی، او د حق قبلولو نه انکار کوی. الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته فرمائی چه تهٔ داسے کافرانو له د دردناك عذاب زیرے ورکړه.
اَفَّاكٍ اَثِیۡمٍ : دا دلیل دے چه د الله تعالیٰ د آیتونو نه هغه څوك انکار کوی چه هغه ډیر دروغجن او لوی گناهگار وی چه زړهٔ ورله شیطان په خپله قبضه کښ نیولے وی، هر قسم گناه او فساد په هغهٔ کښ موجود وی.
افاك هغه انسان دے چه د حق نه اوړی او په هغې کښ مبالغه او کوشش کوی، دروغ وائی او دهوکه ورکوی، او تحریف کوی.
یَسۡمَعُ: دا ئے مضارع راوړه اشاره ده چه کله کله ئے واوری، او اشاره ده چه دے ناخبره او

بے علمه نۀ دے بلکه بنه خبر دے بیا هم خلاف کوی۔
ثُمَّ يُصِرُّ: اَیۡ عَلٰی کُفۡرِهٖ۔ اصرار همیشوالی ته وائی یعنی په خپل کفر باندے همیشه او کلك شی۔ او دا کلك والے کله دا وی چه گناه ته گناه نۀ وائی لکه مبتدع۔ دویم ضدی عنادی وی، خپل عمل گناه گنړی لیکن د ضد د وجه نه ئے کوی۔
وَيۡلٌ یو عذاب او عذاب الیم بل شو۔

| |
|---|
| وَإِذَا عَلِمَ مِنۡ آيَاتِنَا شَيۡئًا اتَّخَذَهَا هُزُوًا ۚ أُولَٰئِكَ |
| او کله چه پو هه شی د آیتونو زمونږ نه په څه شی نو نیسی هغه توقه، دا کسان |
| لَهُمۡ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴿٩﴾ مِنۡ وَرَائِهِمۡ جَهَنَّمُ ۖ وَلَا يُغۡنِي عَنۡهُم |
| دوی لره عذاب ذلیله کونکے دے۔ اخوا د دوی نه جهنم دے او دفع به نکړی دوی نه |
| مَّا كَسَبُوا شَيۡئًا وَلَا مَا اتَّخَذُوا مِنۡ دُونِ |
| هغه عملونو چه دوی کړیدی هیڅ مصیبت او نۀ هغه چه نیولی دی دوی سوئ |
| اللَّهِ أَوۡلِيَاءَ ۖ وَلَهُمۡ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿١٠﴾ هَٰذَا هُدًى |
| د الله تعالیٰ نه نور مددگاران او دوی لره عذاب لوئی دے۔ دا هدایت دے، |
| وَالَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمۡ لَهُمۡ عَذَابٌ |
| او هغه کسان چه کفرئے کړیدے په آیتونو د رب دوی، دوی لره عذاب دے |
| مِّنۡ رِّجۡزٍ أَلِيمٌ ﴿١١﴾ |
| د بد عذاب نه دردناك۔ |

**تفسیر:** پدے کښی نورے سزاگانے او شپږم بد صفت ذکر دے۔ یعنی چه کله د دوئ په مخ کښی د قرآن کریم تلاوت کیږی، او ددے احکام بیانیږی، نو هغه دے پورے توقے کوی۔
یو مطلب دا دے چه کله پو هه شی چه دا د قرآن آیت دے نو هغے پورے توقے شروع کړی د ضد او عناد د وجه نه۔ یا کله چه د یو آیت په مقصد پو هه شی چه مثلاً په هغے کښی رد د شرك وی، او د دوئ د رائے خلاف وی، نو هغے پورے خندنی او توقے کوی، او

ځان د هغې نه لوی ګنړي.

اُولٰٓئِكَ: دا ئې جمعه راوړو پدې کښې اشاره ده چه دا یو تن نهٔ دے بلکه ډیر کسان دي.

مِنۡ وَّرَآئِهِمۡ: په دنیا کښې انسان یا په پیسو او مال خلاصیږي، یا په خپلو ملګرو او دوستانو سره. نو الله دلته دواړه نفي کوي. الله تعالیٰ وفرمایل چه جهنم د دوئ انتظار کوي، او په دے ورځ به د دوئ مال او جاه او د دوئ اولاد د دوئ په هیڅ کار هم رانشي، او الله نه سوئ چه د کومو معبودانو دا خلق عبادت کوي هغوئ هم د دوئ نه عذاب نشي لرے کولے، او دوئ له به ډیر زیات سخت عذاب ورکولے شي.

مَّا كَسَبُوۡا: نه مراد اموال او اولاد دي.

**فائده**: پدے آیتونو کښې شپږ بد صفات او شپږ یا اوه عذابونه ذکر دي، او د عذاب په صفت کښې اول الیم ذکر شو ځکه چه دغه سړي په دنیا کښې په اصرار او تکبر کولو سره د قرآن کریم بیانونکی زړه ته درد رسولے وو، او دویم کښې ئې مُهِيۡن ووئیلو ځکه چه دهٔ په استهزاء کولو سره د قرآن کریم او د هغې د بیانونکي اهانت کړیدے، نو ددهٔ سزا به هم اهانت وي، او په دریم کښې عظیم راوړو اشاره ده چه دا عذاب به په دهٔ باندے د هر طرف نه په هره زمانه کښې په هر اندام باندے احاطه کړي وي. (احسن الکلام)

هٰذَا هُدًى: دا قرآن کریم ته ترغیب دے او منکرینو ته یره ده.

هذا کښې قرآن کریم ته اشاره ده چه مشتمل دے په عقلي او وحیي دلیلونو باندے چه دا د رُشد او هدایت چینه ده.

هدی کښې تنوین تنکیر دپاره د تعظیم دے. یعنې عظیم هدایت دے چه څوك طلب د هدایت کوي نو هغوي د ګمراهئ نه وباسي، او د هدایت په لاره ئې روانوي او د کفر او شرك نه نجات ورکوي، او د ایمان او توحید په نعمت سره ئې مالداره کوي، ځکه چه دا سراسر رڼړا او د خیر او برکت سرچینه ده.

| اَللّٰهُ الَّذِىۡ سَخَّرَ لَـكُمُ الۡبَحۡرَ لِتَجۡرِىَ الۡفُلۡكُ |
| --- |
| الله هغه ذات دے چه تابع کړیے ئې دے تاسو لره دریاب دے دپاره چه روانے وي کشتۍ |
| فِيۡهِ بِاَمۡرِهٖ وَلِتَبۡتَغُوۡا مِنۡ فَضۡلِهٖ |
| په هغې کښې په حکم د هغهٔ، او دے دپاره چه تاسو اُولټوئ د فضل د هغهٔ نه |

| وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿١٢﴾ وَسَخَّرَ لَكُم مَّا فِي |
|---|
| او دے دپاره چه تاسو شکر اُوکړئ۔ او تابع کړی ئے دی تاسو لره هغه څه چه په |
| السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعاً مِّنْهُ |
| آسمانونو او هغه څه چه په زمکه کښې دی ټول د هغهٔ د طرف نه دی، |
| إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴿١٣﴾ |
| یقیناً پدے کښې خامخا دلیلونه دی دپاره د هغه قوم چه فکر کوی۔ |

**تفسیر:** اُوس بیا د الله تعالیٰ د تعارف دپاره عقلی دلیلونه ذکر کیږی چه دا نعمتونه هم دی چه ددے نه انسانان استفاده کوی، او دا په الله باندے د ایمان لرلو طرفته دعوت ورکوی، او د هغهٔ په طاعت او بندګئ باندے انسان باعث کوی، او پدے کښې مقصد دا دے چه قریش د الله په قدرت او وحدانیت، او د هغهٔ په احساناتو باندے قائل کړی، دے دپاره چه ایمان راوړی، او د اسلام په دائره کښې داخل شی۔ نو پدے ادله عقلیه ؤ کښې د ایمان فائده هم وی او دنیاوی نعمتونه هم وی۔

سَخَّرَ لَكُمُ الْبَحْرَ : د دریاب تسخیر (تابع کول) دا دی چه بنده د هغے نه فائده حاصلولے شی، په هغے کښې کشتئ چلولے شی لکه نرم والے او هموار والے او درمیانه هواګانے او موجونه په اندازے سره، او د کشتیو او جهازونو ځان ته نهٔ جذب کول وغیره حالات، او دا ټول د الله په قدرت سره دی، د هیڅ مخلوق په هغے کښې هیڅ دخل نشته۔

او دے دپاره ئے تابع کړیدے چه د هغهٔ په حکم سره کشتئ په دے کښې چلیږی، او دے دپاره چه د هغهٔ نعمتونه حاصل کړئ۔ لکه انسانان د کشتو په ذریعه سفر کوی، او نورو ښارونو ته د علم حاصلولو او تجارت کولو دپاره ځی، د الله په لاره کښې جهاد کوی، او په سمندرونو کښې غوپے لګوی، او ملغلرے راوباسی، او قِسم قِسم ماهیان ښکار کوی۔

وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ: یعنی ددے نعمتونو غوښتنه داده چه انسان د خپل هغه خالق او رازق شکر اداء کړی چه هغهٔ دا نعمتونه ورکړی دی، او صرف د هغهٔ عبادت وکړی او د هغهٔ حمد ووائی۔

جَمِيعاً مِّنْهُ: یعنی دا ټول ئے تابع کړیدی او دا ټول د الله د طرف نه دی۔ جَمِيعًا حال دے د

(ما في السموات الخ) نه، يا متعلق دے د سَخَّرَ پورے (يعنى تابع كريدى ئے د خپل طرف نه ټول هغه څه چه په آسمانونو او زمكه كښې دى)۔

يَّتَفَكَّرُوْنَ: يعنى دا فكر به وكړى چه الله تعالىٰ عبث كارونه نهٔ كوى، الله دا دنيا ضرور يو مقصد له پيدا كړيده، زهٔ يو عبث كار نكوم نو الله به ئے څرنګ وكړى؟!۔

| قُلْ لِّلَّذِيْنَ آمَنُوْا يَغْفِرُوْا |
|---|
| تهٔ اُووايه هغه كسانو ته چه ايمان ئے راوړيدے چه بخنه ډے كوى (د خپل حق) |
| لِلَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ أَيَّامَ اللهِ لِيَجْزِيَ قَوْمًا |
| هغه كسانو ته چه اميد نهٔ لرى د ورځو د الله تعالىٰ، دے دپاره چه بدله وركړى قوم ته |
| بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿١٤﴾ مَنْ عَمِلَ صَالِحًا |
| په سبب د هغه عملونو چه دوى كول۔ چا چه عمل اُوكړو برابر د سنت |
| فَلِنَفْسِهٖ وَمَنْ أَسَآءَ فَعَلَيْهَا |
| نو دپاره د فائدے د هغهٔ دے، او چا چه بد عمل اُوكړو نو وبال به ئے په هغهٔ باندے وى |
| ثُمَّ إِلٰى رَبِّكُمْ تُرْجَعُوْنَ ﴿١٥﴾ |
| بيا به تاسو رب خپل ته وركرځولے شئ۔ |

**تفسير:** دا آيت په ډير مناسب مقام كښې راوړے شويدے، او پدے كښې ايمان والو ته يو ادب ذكر شويدے، مقصد دا دے چه دوه ډلے دى، يو د مؤمنانو او بله د كافرانو، مكه كښې دا دواړه جماعتونه وو، اول جماعت الله والا خلق وو چه په الله ئے ايمان راوړے وو، او دويمه ډله په الله باندے كفر كونكى وو، نو د مشركانو به د مؤمنانو سره جګړے راتللے، نو هغوى به د دوئ پورے ټوقے او مسخرے كولے، او په مسجد حرام كښې به ئے وهل هم، ډير كرته به ئے ورسره په مسجد حرام كښې جنګ هم كولو، او كله به ئے قرآن ته كنځل كول، نو كله به مؤمنانو ته غصه ورتلله چه دا كافران مونږ پسے څنګه خبرے كوى، او قرآن ته هم رد بد وائى، او دے صفا دين ته مو نهٔ پريدى، نو الله خپل نبى ته وفرمايل چه مؤمنانو ته ووايه! چه كافرانو سره ګوزاره كوئ، دا هغه خلق دى چه د الله نه نهٔ يريږى، او نهٔ د الله د عذاب نه، او نهٔ د هغهٔ د ثواب اميد لرى، نو تاسو د دوئ په كنځلو او ردو بدو

بانـدے صبر کویٔ، د دویٔ سره د جنګ صورت مهٔ اختیاروئ، او د بدلے اخستو سوچ مهٔ کویٔ، د هر چا د خپل عمل جزاء شته، دویٔ ته به الله د دوی د عمل سزا ورکوی۔ او تاسو ته به اجر درکوی۔ هر بنه مؤمن ته خلق تکلیف ورکوی۔

کـه بالفرض مسلمانانو کښې د انتقام اخستو طاقت هم وی، بیا ډیے هم داسے نهٔ کوی ځکه چه پدیے سره د دعوت لاره بندیږی، او دا د داعی دپاره ډیر ښکلے ادب دیے۔

د ﴿ أَيَّامَ اللهِ ﴾ نـه مـراد په تیر شوو خلقو باندیے د الله عذابونه راتلل دی، یعنی واقعات د مخکنـو۔ بعضـو ددیے نـه مطلقِ د الله عذاب اخستے دیے، او بعضـو ددیے نه (بعث بعد الموت) مراد کړیے۔ یا رجاء په معنیٰ د خوف سره دیے، او د ایام الله نه مراد هغه عذابونه چه پـه پخوانو امتـونـو راغلی وو۔ یا رجاء په خپله معنیٰ ده، او د ایام الله نه مراد هغه وختـونـه دی چـه الله بـه پکښې مؤ منانو ته ثوابونه ورکوی۔ دواړه صحیح دی لیکن اول غوره دیے، د نورو مقاماتو د وجه نه۔

یـا د ایام الله نـه مراد هغه عذابونه د الله تعالیٰ دی چه په منکرینو نازل شویدی، او هغه نعمتـونـه چه موحدینو ته ورکړیے شویدی، او رجاء په معنیٰ د عقیدیے سره دیے۔ یعنی دوی دغه عقیده نهٔ ساتی پدیے وجه داسے بد اخلاقی کوی۔

يَغۡفِرُوۡا: یعنی په خپلو حقوقو کښې ډیے معافی کوی۔

لِیَجۡزِیَ: لام د عـاقبت دیے، یـعـنـی تهٔ بخنه کوه انجام به دا شی چه الله به هر قوم ته د دویٔ د عـمـل بـدلـه ورکړی۔ ۱- قَوۡمًا کښې مؤمنان او کافران دواړه داخل دی۔ یعنی اے مـؤمـنـانـو ! تـاسـو تـه بـه د خپـل صبر اوبدلے نهٔ اخستو بدله درکړی او کافرانو ته به د هغـوی د بـد عـمـل سزا ورکړی۔ ۲- یا تریے صرف کافران مراد دی۔ یعنی اے مومنانو! تـاسو د دویٔ نه د بدلے اخستو سوچ مهٔ کویٔ، د دویٔ د تکلیفونو ورکولو بدله به دویٔ ته مـونږه ورکوو۔ مفسرینو لیکلی دی چه د عفو او درګذر دا حکم د جهاد د حکم په ذریعه منسوخ شویے۔ او دا آیت داسے دیے لکه ﴿ وَإِذَا خَاطَبَهُمُ الۡجَاهِلُوۡنَ قَالُوۡا سَلَامًا ﴾

لیـکـن غوره دا ده چه دا آیت د دعوت د باب سره متعلق دیے، او په باب د دعوت کښې د کـافـرانـو د بـد اخـلاقیـو پـه مـقـابلـه کښې صبر کول په قرآن کریم کښې بار بار ادب خودلے شویدیے، دا آداب به داعی هر وخت استعمالوی۔

مَنۡ عَمِلَ : دا تفصیل دیے د ﴿ لِيَجۡزِيَ قَوۡمًا ﴾ یـعـنـی کوم کس چه په دیے دنیوی ژوندون کښې پـه الله او د هغهٔ په رسول باندیے د ایمان راوړلو نه پس نیک عمل کوی، نو د قیامت پـه ورځ ددیے فائده به صرف دهٔ ته رسیږی چه د اُور د عذاب نه به نجات مومی۔ او څوک

چه بد عمل کوی، نو هغه به خپل ځانته نقصان رسوی چه جهنم ته به ګذارلے شي۔
مفسرین لیکی چه په دے آیت کښې نیك عمل طرفته ترغیب ورکړے شویے، او د الله د نافرمانئ نه یره ورکړے شویده۔

| وَلَقَدۡ آتَیۡنَا بَنِیۡ إِسۡرَائِیۡلَ الۡکِتَابَ وَالۡحُکۡمَ وَالنُّبُوَّةَ |
|---|
| او یقیناً ورکړے وو مونږ بنی اسرائیلو ته کتاب او پوهه د دین او پیغمبری |
| وَرَزَقۡنَاهُمۡ مِّنَ الطَّیِّبَاتِ وَفَضَّلۡنَاهُمۡ عَلَی |
| او ورکړی وو مونږ دوی ته د پاکو خوراکونو نه، او غوره کړی وو مونږ دوی په |
| الۡعَالَمِیۡنَ ﴿۱۶﴾ وَآتَیۡنَاهُم بَیِّنَاتٍ مِّنَ الۡأَمۡرِ |
| مخلوقاتو د خپله زمانه۔ او ورکړی وو مونږ دوی ته ښکاره حکمونه د دین . |
| فَمَا اخۡتَلَفُوۡا إِلَّا مِنۡ بَعۡدِ مَا جَاءَهُمُ الۡعِلۡمُ بَغۡیًا |
| نو اختلاف نهٔ وو کړے دوی مګر روستو د هغے نه چه راغے دوی ته علم د وجے د ضد |
| بَیۡنَهُمۡ إِنَّ رَبَّكَ یَقۡضِیۡ بَیۡنَهُمۡ یَوۡمَ |
| نه په مینځ خپل کښې یقیناً رب ستا به فیصله وکړی په مینځ د دوی کښې په ورځ د |
| الۡقِیَامَةِ فِیۡمَا کَانُوۡا فِیۡهِ یَخۡتَلِفُوۡنَ ﴿۱۷﴾ |
| قیامت په هغه څه کښې چه دوی په هغے کښې اختلاف کوی۔ |

**تفسیر:** اُوس د بنی اسرائیلو نه نقلی دلیل راوړی،
(۱) پدے کښې یو مقصد (بَیَانُ حَقَّانِیَّةِ الۡقُرۡآن) دے، چه قرآن حق کتاب دے لکه څنګه چه بنی اسرائیلو ته تورات ورکړے شوے وو۔ لیکن هغوی مخالفت وکړو نو الله هغوی ته د جرم مناسب سزا ورکړه، نو دارنګه دوئ ته به هم سزا ورکوی کله چه مخالفت کوی۔ نو کتابونه رالیږل د الله عادت دے، او دا څه نوے کار نهٔ دے۔
(۲) بَیَانُ عُقُوۡبَةِ مَنۡ أَنۡکَرَ الۡکِتَابَ ۔ څوك چه د الله د کتاب نه انکار کوی د هغوی سزا ته وګورئ۔
الحکم نه مراد اَلۡفِقۡهُ فِی الدِّیۡن (د دین پوهه) ده۔ یا د خلقو ترمینځ د فیصلو کولو پوهه

او بصیرت مراد دے۔
الطَّیِّبَاتِ: نه مراد خوندور حلال خوراکونه چه په هغے کښې من او سلویٰ هم وو، نو په کتاب او نبوت کښې دینی نعمتونه وو، او طیبات دنیاوی نعمتونه وو۔
عَلَی الْعَالَمِیْنَ: یعنی د دوی په زمانه کښې د دوی نه سوئ نور خلق الله تعالیٰ ته محبوب نهٔ وو۔ نو پدے کښې اشاره ده چه ستاسو غوره والے خو د الله په کتاب سره وو، نو تاسو بیا ولے دا آخری کتاب نهٔ منئ، د خپل فضیلت سبب نه انکار کوئ۔
وَآتَیْنَاهُم بَیِّنَاتٍ مِّنَ الْأَمْرِ: ۱- د امر نه مراد دین دے او بینات نه مراد ښکاره احکام د حلال او حرام دی، دے دپاره چه دوی پدے احکامو عمل وکړی او خپل مینځی اختلاف لرے کړی، لیکن معامله الټه شوه، او د یو بل سره د بغض او حسد په وجه دوئ د شریعت احکام شاته وغورزول او خپل مینځ کښې اختلاف نور زیات شو، او د الله د شریعت پورے ئے توقے شروع کړے۔
۲- یا ددے نه مراد ښکاره معجزات د دین دی۔ او دا ټول نعمتونه وو۔
۳- یا هغه نښے وے چه د دوی په کتاب کښې د رسول الله ﷺ په باره کښې موجودے وے۔
فَمَا اخْتَلَفُوا: لیکن چونکه نبی کریم ﷺ د اسماعیل علیه السلام د اولاد نه وو، دے وجے نه دوئ صرف د بغض او حسد د وجے نه د ایمان راوړلو نه انکار وکړو۔ یا هغوی خپل مینځ کښې بعض پیغمبران ومنل او بعضو سره ئے حسد وکړو۔
إِنَّ رَبَّكَ یَقْضِي بَیْنَهُمْ: یعنی الله به د قیامت په ورځ ددے یهودو ترمینځه فیصله کوی، او دوئ له به د دوئ د کړو بدله ورکوی۔ حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه په دے کښې اُمتِ محمدیه لپاره زبردسته تنبیه ده چه قرآن او سنت سره که دوئ هم داسے سلوك وکړو، څنګه چه یهود او نصاریٰ د تورات او انجیل سره کړے وو، نو بیا دے دوئ هم د بد انجام انتظار کوی۔

| ثُمَّ جَعَلْنَاكَ عَلَىٰ شَرِیعَةٍ مِّنَ الْأَمْرِ فَاتَّبِعْهَا |
|---|
| بیا مونږ اوګرځولے تهٔ په ښکاره لاره د دین (په یو واضح دین) باندے نو تابعداری کوه |
| وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِینَ لَا یَعْلَمُونَ ﴿۱۸﴾ إِنَّهُمْ |
| ددے، او تابعداری مهٔ کوه د خواهشاتو د هغه کسانو چه نهٔ پوهیږی۔ یقیناً دوی |

| لَنْ یُّغْنُوْا عَنْكَ مِنَ اللّٰهِ شَیْـًٔا وَاِنَّ الظّٰلِمِیْنَ بَعْضُهُمْ |
|---|
| نشی دفع کولے ستا نه د الله د عذاب نه هیڅ شے، او یقیناً ظالمان بعض د دوی نه |
| اَوْلِیَآءُ بَعْضٍ وَاللّٰهُ وَلِیُّ الْمُتَّقِیْنَ ﴿۱۹﴾ هٰذَا بَصَآئِرُ |
| دوستان د بعضو دی، او الله دوست د متقیانو دے۔ دا قرآن د عقلمندئ (د رنړا) خبرے |
| لِلنَّاسِ وَهُدًی وَّرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ یُّوْقِنُوْنَ ﴿۲۰﴾ |
| دی دپاره د خلقو او هدایت او رحمت دے دپاره د هغه قوم چه یقین لری۔ |

**تفسیر:** نبی کریم ﷺ ته وئیلے کیږی چه اے زما نبی! مونږ تاله ډیر زیات واضح دین او روښانه شریعت درکړے چه تانه مخکښ دا د تمامو انبیاؤ دین پاتے شوے دے، ته په همدے باندے روان اُوسه، او خپل امت ته ددے حکم ورکوه۔ او کوم خلق چه د الله د توحید او د هغهٔ د دین او شریعت علم نهٔ لری، که هغه د مکے کافران وی یا یهود او نصارئ وی، ذ هغوئ د خواهشاتو پیروی مهٔ کوه۔ که چرے تهٔ د دوئ د خواهشاتو پیروی وکړے، نو دا خلق به تانه د الله عذاب لرے نهٔ کړی۔

**شَرِیْعَةٍ مِّنَ الْاَمْرِ:** شریعت په لغت کښ مذهب او ملت او منهاج (لارے) ته وائی۔ شریعت په عامه اصطلاح کښ هغے لارے ته وائی چه فراخه نیغه او آسانه او مقصد ته رسونکے وی، او په اصطلاح د شرع کښ هغه احکام، اوامر، نواهی، حدود او فرائض وغیره ؤ ته وئیلے شی چه الله تعالیٰ بندګانو ته د رسول الله ﷺ په واسطه رالیږلے وی۔

بیا د شریعت دوه قسمه دی، یو ظاهر دے او بل باطن۔ ظاهرئے ظاهری احکام دی لکه پنځ بناء وغیره۔ او باطن ئے شعب الایمان (د ایمان څانګے) دی۔ لکه خشوع، صبر، یقین بالله، اُنس بالله، محبت، د الله دپاره غیرت، دا دواړه الله تعالیٰ رسول الله ﷺ ته ورکړیدی او ددے دواړو تابعداری لازمه ده۔

**جَعَلْنَاكَ** نه معلومه شوه چه شریعت به هغے ته وائی چه الله مقرر کړے وی، او په وحی سره ثابت وی۔ او دا هم معلومه شوه چه کوم صوفیاء شریعت او طریقت جدا جدا کوی نو دا غلطه خبره ده، ځکه چه کوم شے د شریعت نه بهر وئ هغه دین نهٔ وی، بلکه بے دینی او ګمراهی وی۔ نو د ځان نه طریقت پیدا کول په اسلام کښ نشته کوم چه صوفیاؤ د ځان نه ایجاد کړیدی۔

جَعَلْنَاكَ نه بله فائده دا معلومه دوه چه د نبي كريم ﷺ د نبوت ژوند ټول شريعت ے۔
او دا هم معلومه شوه چه شريعت به هغه وي چه رسول الله ﷺ ته وركړے شويدے، ددے نه سوئ كه چا د ځان نه يوه مسئله ايجاد كړه او په هغے باندے د كتاب او سنت دليل نۀ وي هغه به شريعت نۀ وي۔ نو كه د يو عالم او امام خبره د كتاب او سنت موافق نۀ وي نو هغے ته شريعت او فقه في الدين وئيل به غلط وي۔

الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ: ددے نه مراد اميان جاهلان دي، او كه اهل كتاب دي خو چه په علم باندے ئے عمل پريخے دے۔ او پدے كښې اشاره ده چه د شريعت (وحي) نه مخالف د هيچا قول منل جائز نۀ دي، ځكه چه چا سره دليل نۀ وي هغه په دغه مسئله كښې بے علمه دے۔

حافظ ابن تيميہ په "اقتضاء الصراط المستقيم" كښې فرمايلي دي چه په (لَايَعْلَمُوْنَ) كښې هر هغه څوك داخل دے چه د كتاب او سنت خلاف كوي، كه هرڅوك وي۔

إِنَّهُمْ لَنْ يُغْنُوْا : يعني كه ته د دوي خبره ومنے نو د الله د عذاب مستحق به شے، بيا به دوي ستا نه هيڅ عذاب دفعه نكړي۔ دا داسے دے لكه ﴿ لَقَدْ كِدْتَّ تَرْكَنُ اِلَيْهِمْ شَيْئًا قَلِيْلًا اِذًا لَّاَذَقْنَاكَ ضِعْفَ الْحَيٰوةِ ﴾ (اسراء: ٧٥) نو هر هغه څوك چه په بدعت كښې يا په شرك كښې د چا ملګرتيا كوي، د هغوي د وجه نه دين پريدي، يا په يو بد عمل كښې ورسره ملګرتيا وكړي، نو دوي به د الله تعالىٰ د عذاب مستحق وي۔

وَاِنَّ الظّٰلِمِيْنَ : يعني د اسلام دشمنان، د مومنانو په خلاف يو بل سره مدد كوي، ليكن ددے به هيڅ فائده دوئ ته اونۀ رسي، ځكه چه د الله د نصرت او تائيد نه دوئ محروم دي، په داسے حال كښې چه پرهيزګارو مومنانو ته د هغۀ نصرت او تائيد حاصل دے۔

وَلِيُّ الْمُتَّقِيْنَ: يعني الله مددګار او دوست دے د متقيانو۔

هٰذَا بَصَائِرُ لِلنَّاسِ: پدے آيت كښې الله تعالىٰ د قرآن كريم عظمت بيان كړے چه په دے كښې د شريعت كوم احكام او كوم دلائل چه بيان شوي دي په دے كښې د غور او فكر كولو نه د مومن په زړۀ كښې داسے بصيرت (هوښيارتيا) پيدا كيږي چه هغه د نفعمن او ضرري څيز او د حق او باطل ترمينځه فرق كولے شي۔ دا هغه كتاب دے چه مومنانو لپاره د هدايت او رحمت سرچشمه ده۔ نو دا متعلق دے د (فَاتَّبِعْهَا) سره، يعني د شريعت تابعداري ځكه لازم ده چه پدے كښې دا درے اُوچت صفات موجود دي، (بَصَائِر، هُدًى،

رَحۡمت) بيا په اول کښې قرآني دليلونو ته اشاره ده، او په دويم کښې د قرآن مقاصدو او دعوو ته اشاره ده، او په دريم کښې ددے فائدے او ثمرے ته اشاره ده.

۱- ددے آيت د موضوع د سورت سره مناسبت دا دے چه پدے کښې ايمان بآيات الله ذکر دے. ۲- مخکښې آيتونو سره ئے تعلق داسے دے، د قرآن عادت دا دے چه کله يوه مهمه خبره بيانه کړی، بيا قرآن ته ترغيب ورکوی، پدے کښې اشاره وی چه دغه خبره ډيره مهمه ده، هسے خبره نۀ ده بلکه دا د قرآن بيان دے او د بصيرت خبره ده. نو هذا کښې به اشاره مخکښې بيان ته هم صحيح وی. اول تفسير کښې ډير عموم دے چه قرآن ته اشاره شی.

بَصَائِرُ: جمع د بَصِيۡرَةٌ ده، يعنی دا داسے دليلونه دی چه دوی ته د کاميابۍ لاره ورښائی (يعنی دليلونه د رڼا) بصيرت د زړه سترګو ته وائی، او اُوږده معنیٰ ئے ده: اِدۡرَاكُ الۡعَقۡلِ الۡاُمُوۡرَ عَلٰی حَقَائِقِهَا. چه عقل څيزونه د هغے د حقيقت مطابق رالاندے کړی او پرے پوهه شی. لکه په ظاهری سترګو رڼا او تياره، فائده او ضرری څيز معلوميږی، نو دغه شان دا قرآن هم دے چه پدے سره هدايت او ګمراهی او دنيا او آخرت او فائده او ضرری څيزونه معلوميږی. نو دا قرآن د زړۀ سترګے کولاووی. لکه دنيا کښې چه رڼا ولګی نو سترګے کولاوے شی، بجلی ولګی نو سترګے کار شروع کړی.

نو د بصائر معنیٰ ده: دا قرآن د عقلمندۍ خبرے دی. (د رڼا دليلونه دی).

وَرَحۡمَةٌ: رحمت څکه دے چه زړه ئے پرے جوړيږی، سکون ورته ملاويږی، په دين ئے مضبوطوی، عمل پرے کوی، نو الله به ورله جنت ورکوی. د تسلۍ کتاب دے، د الله تعالیٰ رضا او تعلق پکښې دے، د دنيا او د آخرت ټولے فائدے پکښې دی. کله به ستا يوه فائده منے خبرے ته فکر نۀ وی قرآن راواخله، هغے ته به دے متوجه کړی. په آخرت کښې انسان دپاره سفارش کوی. دا ټول رحمتونه شول.

وَهُدًی: دا قرآن هدايت دے (نيغه لاره ده) الله ته، جنت ته، نجات ته، ټولو خيراتو ته.

دويم فرق: هدايت په دنيا کښې دے، او رحمت په آخرت کښې دے. ليکن دا تخصيص دومره غوره نۀ دے.

| أَمۡ حَسِبَ الَّذِينَ اجۡتَرَحُوا السَّيِّئَاتِ أَنۡ نَّجۡعَلَهُمۡ |
|---|
| آيا ګمان کوی هغه کسان چه کړی ئے دی ګناهونو لره چه وبه ګرځوو مونږ دوی لره |

كَالَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ

پشان د هغه کسانو چه ايمان ئے راوړيدے او عملونه ئے کړيدي د سنت مطابق،

سَوَاءً مَّحْيَاهُمْ وَمَمَاتُهُمْ سَاءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ﴿۲۱﴾

چه برابر وی ژوند د دوی او مرګ د دوی، بد دے هغه شے چه دوی ئے فيصله کوی۔

**تفسير:** مخکښ دوه ډلے بيان شوے، ظالمان او متقيان، نو اُوس د هغوی د احوالو تفصيل بيانيږی، د عامو خلقو مرض دا دے چه دواړه ډلے يو شان ګنړی، دا وائی چه څه وشو چه يو انسان د بابا عبادت وکړی، بت او قبر ته سجده وکړی، او بل ئے الله ته وکړی، دا خو دومره لويه خبره نهٔ ده، يو تن د رسول الله ﷺ پسے روان شو، او بل د بل يو شخص پسے روان شو نو دا خو دومره غټه خبره نهٔ ده، جوړ جاړے راوستل پکار دی، ليکن دا ډيره خطرناکه د دين مخالفه خبره ده۔ او دا خبره الله په مختلفو طريقو سره بار بار بيان کړے چه د نيک او بد او د صالح او طالح انجام هيڅ کله يو شان نهٔ دے۔

همدا خبره الله تعالیٰ دلته هم بيان کړے چه آيا شرك او ګناهونه کونکی په دے خوش فهمئ کښ مبتلا دی چه مونږ به دوئ په دنيا او آخرت کښ د هغه خلقو پشان جوړ کړو چه هغوئ ايمان راوړے او نيك عملونه ئے کړی۔ ايمان والا خو په دنيا کښ د رب بندګی کړے او د زړهٔ د سکون دولت ورته حاصل دے، او په آخرت کښ به د هغهٔ د رحمت او جنت حقدار وی۔ او شرك او ګناهونه کونکی خلق خو په دنيا کښ د خپل رب نافرمان پاتے شوی، او د زړهٔ د سکون نه محرومه پاتے شوی، او په آخرت کښ به د هغهٔ د رحمت او جنت نه محروم کړے شی۔ د سورتِ طٰه په (۱۲٤) آيت کښ الله تعالیٰ فرمائيلی: ﴿ فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِلُّ وَلَا يَشْقٰى وَمَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِيْ فَإِنَّ لَهٗ مَعِيْشَةً ضَنْكًا وَّنَحْشُرُهٗ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمٰى ﴾ (نو څوك چه زما د هدايت پيروی اوکړی، نو هغه به نهٔ بے لارے کيږی، نهٔ به په تکليف کښ پريوزی، او څوك چه زما د ياد نه مخ اړوی، د هغهٔ ژوند به تنګ وی، او مونږ به دا د قيامت په ورځ ړوند را پاسوو)۔

مؤمن ته به الله تعالیٰ حيات طيبه ورکوی، او مرګ ئے دا دے ﴿ يَا أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ ارْجِعِيْ إِلٰى رَبِّكِ رَاضِيَةً مَّرْضِيَّةً ﴾ ﴿ تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلَائِكَةُ أَلَّا تَخَافُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَأَبْشِرُوْا بِالْجَنَّةِ الَّتِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ ﴾ (حم السجده: ۳۰) مرګ ئے د خوشحالئ دے۔ او د آخرت په ورځ به

ورته وئيلې کيږي۔ ﴿ هٰذَا يَوْمُكُمُ الَّذِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ﴾ (انبياء: ۱۰۳) نو مؤمن مزو والا دے۔ او د کافر ژوند تنګ دے، او دنيا کښې هم په عذاب دے ﴿ وَاِنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا عَذَابًا دُوْنَ ذٰلِكَ﴾ (الطور: ۴۷) ﴿ بَلِ الَّذِيْنَ لَايُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ فِي الْعَذَابِ وَالضَّلٰلِ الْبَعِيْدِ﴾ (سبا: ۸)

او په وخت د مرګ کښې به ورته ملائك په ډير بد شکل کښې راورسيږي، او دا به ورته وائي: ﴿ اَخْرِجُوْا اَنْفُسَكُمْ اَلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا كُنْتُمْ تَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنْتُمْ عَنْ اٰيٰتِهٖ تَسْتَكْبِرُوْنَ﴾ (انعام: ۹۳) (راوباسئ روحونه خپل نن به تاسو ته بدله درکولے شي په ذليله کونکي عذاب سره پدے وجه چه تاسو به په الله باندے ناحقه خبرے کولے او تاسو به د هغه د آيتونو نه تکبر کولو) نو په ژوند او مرګ هر څه کښې ډير زيات فرق دے، که څوك د دوی ترمينځ فرق نۀ ثابتوی نو ډيره غلطه فيصله کوی۔

د مفسرينو په نيز دا آيت (مَبْكَاةُ الْعَابِدِيْنَ) دے، يعنی هغه آيت دے چه عابدان به ئے ژړول، تميم داری ﷺ يوه شپه د ماسخوتن نه سهاره پورے دا يو آيت لوستلے وو، او په هر رکعت کښې به ئے لوستلو، او توله شپه به ئے پدے باندے ژړا کوله۔

فضيل بن عياضؒ يوه شپه ولوستلو نو سهاره پورے ئے ژړل، او دا به ئے وئيل: يَا فُضَيْلُ! لَيْتَ شِعْرِيْ مِنْ اَيِّ الْفَرِيْقَيْنِ اَنْتَ؟ - اے فضيله! زۀ نۀ پو هيږم چه تۀ به په دواړو ډلو کښې د کوم يو نه ئے۔ او بيا به ئے وژړل۔

ربيع بن خثيمؒ چه د عبد الله بن مسعود ﷺ شاګرد دے هغه به هم دے آيت کښې ژړل۔

او دا آيت مونږ ته هم لويه تنبيه راکوی، مونږ وايو چه د صحابه کرامو په شان مونږ سره مدد څنګه نۀ کيږی؟ نو الله فرمائی: يو تن دے اُوچتے مرتبے والا عبادت ګزار د الله پوره فرمانبردار وی، او بل دے خواهش پرست وی دواړه چرته برابريدے شی۔

اِجْتَرَحُوا السَّيِّئَاتِ: د سيئات نه مراد کفر او شرك او بدعات او نور ګناهونه او د شريعت خلاف کول دی۔

| وَخَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ |
| --- |
| او پيدا کړيدی الله تعالیٰ آسمانونه او زمکه دپاره د ښکاره کولو د حق |
| وَلِتُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ وَهُمْ |
| او دے دپاره چه بدله ورکړے شي هر نفس ته د هغه عمل چه دۀ کړيدی او دوی باندے |

| لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿٢٢﴾ اَفَرَاَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰـهَهٗ |
| --- |
| به ظلم نشی کیدے۔آیا نو تا لیدلے دے هغه چا لره چه نیولے ئے دے معبود خپل |
| هَوٰىهُ وَاَضَلَّهُ اللّٰهُ عَلٰى عِلْمٍ وَّخَتَمَ |
| خواهش خپل او گمراه کړے دے دهٔ لره الله تعالیٰ سره د پوهے نه او مهر ئے وهلے دے |
| عَلٰى سَمْعِهٖ وَقَلْبِهٖ وَجَعَلَ عَلٰى بَصَرِهٖ غِشٰوَةً ؕ فَمَنْ يَّهْدِيْهِ |
| په غوږ او په زړه ددهٔ او گرځولے ئے ده په سترګو ددهٔ پرده نو څوك به هدایت اُوکړی دهٔ |
| مِنْۢ بَعْدِ اللّٰهِ ؕ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ﴿٢٣﴾ |
| ته روستو د گمراه کولو د الله تعالیٰ نه آیا نو نصیحت نهٔ اخلئ تاسو۔ |

**تفسیر:** اُوس د ایمان یو دلیل بیانوی چه هغه د کائناتو د پیدائش حکمت دے، او بیا په یو کافر باندے رد کوی۔

د آسمان او زمکے تذکره د سورت په ابتداء کښ هم وشوه او دلته ئے بیا کوی، نو هلته ددے مقصد دپاره ذکر وو چه کائنات د الله په وجود باندے دلیل دے، او دلته وائی چه کائنات یو مقصد له پیدا دی، نو دلته بیان د حکمة د پیدائش د کائناتو دے۔ او بیا ورسره د اعمالو جزاء او سزا او بیا عدل او انصاف بیانوی۔

د مخکښ سره ئے مناسبت دا دے چه مخکښ وائی چه نیکان او بدان برابر نهٔ دی، نو دلته د هغے وجه بیانوی چه دواړه ځکه برابر نهٔ دی چه د هر چا عمل جدا جدا دے، نو ددے برابرول به انصاف نهٔ وی، او بیا خو به د کائناتو د پیدائش حکمة ختم شی چه هغه انسانانو ته د هغوی د اعمالو جزاء او سزا ده۔ نو دا آیت دلیل دے د مخکښ آیت دپاره۔

وَلِتُجْزٰى: جزاء نیکے او بدے بدلے دواړو ته شامل دے، دغه شان کسب هم عام دے۔

وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ: ضمیر نفوسو ته راجع دے چه په هغے باندے (كُلُّ نَفْسٍ) دلالت کوی۔

ظلم دا دے چه ثواب ورله کم ورکړی، یا ورله عذاب زیات کړی۔

اَفَرَاَيْتَ: پدے کښ د هغه انسان بدی ذکر ده چه هغه خواهشاتو پسے روان وی سره د پوهے نه، او د هغهٔ سزا ئے بیان کړیده چه الله به پرے مهر وهی او هدایت به ورته نهٔ

کوی۔

او په آخره کښې ترغیب دے عبرت اخستو ته۔

مناسبت :

الله تعالیٰ انسانان د نیك عمل دپاره پیدا کړل ﴿ وَلِتُجۡزٰی کُلُّ نَفۡسٍ ﴾ نو اُوس د هغه چا بدی بیانوی چه هغه ټوله زندګی په خپلو خواهشاتو کښې تیره کړی، او نیك عمل ونکړی، د کائناتو د پیدائش په حکمة نهٔ پو هیږی او دا بربادوی۔ نو دلته دهٔ د حال تعجب ورکوی انسانانو ته چه په دهٔ باندے خو لږ سوچ وکړئ چه دا څومره ناکاره انسان دے۔

شان نزول :

عامو تفاسیرو کښې ددے شان نزول نهٔ دے ذکر شوے، بلکه د یو عام انسان قباحت (او بدی) پکښې ذکر کیږی، چه سره د پو هے نه ژوند د خپلو خواهشاتو مطابق تیروی۔

مګر بعض تفاسیرو کښې دا ذکر شویدے چه دا آیت د ابوجهل په باره کښې نازل وو چه دے یوه ورځ د عُتبه سره ملاؤ شو نو تپوس ئے ترے وکړو چه محمد (ﷺ) تا ته څنګه ښکاره کیږی؟ بیا ئے خپله ورته ووئیل چه ما ته خو دا سړے صادق امین ښکاره کیږی، څکه چه مونږ ورته ورو کوالی کښې رشتینی او امانتګر وئیلو نو کله ئے چه څلویښتو کالو کښې عقل هم کامل شو نو څنګه به دروغ وائی نو زمونږ خبره صحیح نهٔ ده چه دے دروغجن دے، عتبه ورته ووئیل چه دا خبره درنه څوك وانهٔ وری، دا خو تهٔ د خپل دشمن تصدیق کوے، هغه ووئیل چه حقیقت خو همداسے دے لیکن زهٔ ئے تابعداری نهٔ کوم، څکه چه د قریشو زنانه به وائی چه ابوالحکم (ابوجهل) لاړو او د ابو طالب د یو یتیم پسے روان شو۔ [وَاللّٰتِ وَالۡعُزّٰی اِنِ اتَّبَعۡتُهٗ اَبَدًا] قسم دے په لات او عزیٰ چه هیڅکله به ئے تابعداری ونکړم۔ نو دا آیت نازل شو چه (وختم علی سمعه وقلبه)۔ (قرطبی)

یعنی دے سره د پو هے نه الله ګمراه کړو او دهٔ په غوږ او زړه ئے مهر ووهلو۔

لیکن د آیت الفاظ عام دی، هر دغسے مجرم انسان ته شامل دے۔

بیا ددے مصداقات اول ابوجهل او عام مشرکان وو، بیا دهریه، کمیونسټ خلق چه د دین د یوے خبرے تابع نهٔ دی، د الله د ذات نه منکر دی۔ نو دارنګه یهود او نصاریٰ ښه په حق پو هه دی، او محمد رسول الله ﷺ نهٔ منی، بیا هر هغه څوك چه د حق په مقابله کښې د خپل خواهش پسے روان وی لکه اهل بدع۔ او فاسقانو مجرمانو ته هم ددے آیت

نه برخه رسيږي نو هر چا باندې د خپل جرم او د خواهش تابعدارئ مطابق مهر وهلې كيږي.

اتَّخَذَ إِلَـٰهَهُ هَوَاهُ : ١- ددې يو تفسير دا دې چه اِلٰهَهُ مفعول ثاني دې، او هَوَاهُ مفعول اول دې، يعنې خواهش نه ئې اِلٰه جوړ كړيدې، قانون دا وي چه د اِلٰه خلق بندگي او تابعداري كوي او خبره ئې مني، نو دې هم د خپلو خواهشاتو داسې بندگي كوي لكه د الله په شان. چه څه ئې زړه غواړي هغه كوي، لكه څرنگ چه يو مؤمن بنده د الله د امر تابع وي. نو پدې كښې رد دې په اتباع الهوئ او دا د ټولو كافرو حال دې.

٢- يا اِلٰهَهُ مفعول اول او هَوَاهُ مفعول ثاني دې نو پدې كښې به په مشرك باندې رد وي يعنې د معبود نه ئې خواهش جوړ كړيدې، لكه د عربو او د مشركانو طريقه دا وه چه د يو كاڼي عبادت به ئې كولو نو كله چه به ئې بل ښه كاڼې وليدو، نو د اول عبادت به ئې پريخودو، او ددې دويم به ئې عبادت شروع كړو. (سعيد بن جبيرؒ)

اُوس د مشركانو حال ته وگوره چه څوك ورته ووائي چه فلاني بابا له لاړم سمدست ښه شوم نو دې هم هغهٔ ته روان شي، بيا كه څوك ورته بل بابا وښائي نو هغه پسې روان شي. اوله معنیٰ ډيره عامه ده.

هوئ هغه شې دې چه د يو انسان نفس ئې غواړي، او هغه د الله د حكم خلاف وي.

مجاهدؒ وئيلي دي : مَا تَحْتَ اَدِيْمِ السَّمَاءِ مِنْ اِلٰهٍ يُعْبَدُ اَعْظَمَ مِنِ اتِّبَاعِ الْهَوٰى . د آسمان نه لاندې د خواهش د تابعدارئ نه بل لوی اِلٰه نشته چه خلقو جوړ كړې وي.

رسول الله ﷺ فرمائي : [لَا يُؤْمِنُ اَحَدُكُمْ حَتّٰى يَكُوْنَ هَوَاهُ تَبَعًا لِمَا جِئْتُ بِهٖ] په تاسو كښې هيڅ يو تن مؤمن نهٔ دې تردې چه د هغهٔ خواهش زما د راوړې دين تابع شي).

يو شاعر فرمائي:

| اِنَّ الْهَوٰى لَهُوَ الْهَوَانُ قُلِّبَ اسْمُهٗ | ❁ | فَاِذَا هَوِيْتَ فَقَدْ لَقِيْتَ هَوَانَا |
|---|---|---|

هوئ د هَوَان نه دې نوم ئې اُلټه شويدې، نو كله چه تهٔ د خواهش تابع شوې، نو تهٔ به د ذلت سره ملاويږې. د خواهشاتو تابعدار انسان د هر چا غلام وي، ذليله وي، او د حق او د دين تابعدار آزاد وي.

وَاَضَلَّهُ : دلته الله خپل ځان ته ددهٔ د گمراه كولو نسبت وكړو، دا ظلم نهٔ دې ځكه چه مخكښې ددهٔ گناهونه او جرمونه تير شو چه خواهشاتو پسې روان دې، نو د خواهشاتو

پسے روانیدو سزا دا ده چه گمراه کیږی به۔
عَلٰی عِلۡمٍ: یعنی سره د پوهے ددے شخص نه۔ یعنی دے ښه پوهه دے چه دا بت ما ته نفع او نقصان نشی راکولے۔ یا په حق باندے پوهه دے۔
ددے قید فائده دا ده چه که یو تن د خواهش تابعداری وکړی په ناپوهۍ سره لکه ماشومان، نو خلق ئے ډیر نهٔ ملامته کوی۔ ۲- یا علم نه مراد علم د الله دے۔ یعنی الله پرے پوهه دے چه دے مستحق د گمراهۍ دے۔ او دهٔ کښې د حق د قبلولو صلاحیت موجود نهٔ دے، خو اول تفسیر غوره دے۔
وَّخَتَمَ: دا د (اَضَلَّهُ) تشریح ده۔ په سترگو چه پرده راشی نو بیا دلائلو ته گوری او عبرت ترے نهٔ اخلی، غوږ ئے مخکښې راوړو ځکه چه خلق اول خبره آوری بیا زړه ته خکته شی، بیا ئے په سترگو وینی۔ نو نهٔ د دلائل سمعیه نه فائده اخلی، او نهٔ سوچ کولے شی او نهٔ د خیر او شر تمییز کولے شی، او نهٔ کتل کولے شی یعنی په حق باندے د روانیدو توفیق ورته نهٔ ملاویږی۔ اسباب د علم درے دی، غوږ، زړهٔ، سترگه۔
بیا مشهور سوال دا دے چه الله ورله اسباب د علم بند کړل نو بیا سزا ولے ورکوی؟
جواب دا دے چه دا ظلم نهٔ دے بلکه دا د دوی د بد عمل عقوبت (سزا) ده۔
کله الله په گناه باندے دنیاوی سزا ورکوی او کله دینی سزا وی، لکه د گناه د وجه نه عبادت ترے قضاء شی، د عبادت نُور به ئے خراب شی، پدے باندے خاص مؤمنان پوهیږی۔ او کله داسے سخته سزا ورکړی چه د هدایت نه ئے محروم کړی۔
فَمَنۡ یَّهۡدِیۡهِ: یعنی چالره چه الله تعالیٰ گمراه کړی، هغهٔ له څوك د هدایت توفیق ورکولے شی۔ اے خلقو! تاسو دے خبرو آوریدو سره نصیحت ولے نهٔ حاصلوئ، او د ایمان او عمل صالح زندگی اختیارولو سره د خپل رب د رضا او د جنت حقدار ولے نهٔ جوړیږئ؟!
بَعۡدِ اللّٰهِ: اَیۡ بَعۡدَ اِضۡلَالِ اللّٰهِ اِیَّاهُ۔ یعنی روستو د گمراه کولو د الله نه دهٔ لره۔

| وَقَالُوۡا مَا هِیَ اِلَّا حَیَاتُنَا الدُّنۡیَا نَمُوۡتُ وَنَحۡیَا |
| --- |
| او وائی دوی نهٔ دے دا مگر ژوند زمونږ دنیوی دے، مرو بعض او ژوندی کیږو بعض |
| وَمَا یُهۡلِکُنَاۤ اِلَّا الدَّهۡرُ وَمَا لَهُمۡ بِذٰلِكَ مِنۡ عِلۡمٍ |
| او نهٔ مرهٔ کوی مونږ لره مگر زمانه او نشته دوی لره پدے باندے څه پوهه (دلیل) |

| إِنْ هُمْ إِلَّا يَظُنُّونَ ﴿٢٤﴾ وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا |
|---|
| نۀ دي دوی مګر ګمان کوي۔ او کله چه اُولوستلے شي په دوی باندے آیتونه زمونږ |
| بَيِّنَاتٍ مَّا كَانَ حُجَّتَهُمْ إِلَّا أَن قَالُوا ائْتُوا بِآبَائِنَا |
| واضحه، نۀ وي دلیل د دوی مګر دا چه وائي دوی راولئ مونږ ته پلاران زمونږ |
| إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٢٥﴾ قُلِ اللَّهُ يُحْيِيكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ |
| که یئ تاسو رشتیني۔ اُووایه ! الله تعالیٰ به ژوندي کوي تاسو بیا به مړۀ کوي تاسو |
| ثُمَّ يَجْمَعُكُمْ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا رَيْبَ فِيهِ |
| بیا به راجمع کوي تاسو ورځ د قیامت ته هیڅ شك نشته په هغے کښ |
| وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٢٦﴾ |
| لیکن ډیر د خلقو نه نۀ پو هیږي۔ |

**تفسیر:** اُوس د دغه ګمراه خلقو بعض جهالتونه او دوه قسمه ګمراهي بیانوي۔ د مکے مشرکانو به د مرګ نه پس د دوباره ژوندي کیدو نه انکار کولو، او وئیل به ئے چه کوم ژوند مونږ تیروو، ددے نه سوئ بل څۀ ژوند نشته، انسان جسماني زندګي تیروي او د زمانے په تیریدو سره ددۀ بدن ته مرګ اولګی او ختم شي۔ دے ژوند نه پس نۀ بل کوم ژوند شته، او نۀ کوم بل عالَم شته۔ او دویمه ګمراهي ئے دا وه چه وئیل به ئے چه ددے عالَم دپاره څوك تصرف کونکے اِلٰه نشته۔ نو الله په دوی باندے دوه ردونه کوي، یو دا چه دوی دا خبره بے علمه کوي، دوئ سره ددے هیڅ نقلي یا عقلي دلیل نشته، دا خو صرف د دوئ باطل ګمان دے۔

دویم دا چه کله دوی ته د الله تعالیٰ په وجود او د هغۀ په قدرت او عظمت باندے ښکاره دلیلونه پیش کیږي، نو د هغے د قبلولو په ځای هغوی سره هیڅ نۀ وي بلکه صرف جلتي کوي چه که الله تعالیٰ حق وي او د قیامت راتلل حق وي، نو زمونږ پلاران نیکونه راژوندي کړئ او اُوسه پورے خو ژوندي نشو نو بس قیامت راتلل نشته۔ الله جواب کوي چه جلتي مۀ کوئ، دا کار به هم وشي، داسے وخت به راشي چه الله به ستاسو پلاران او ورسره تاسو هم راژوندي کړي، بیا به ستاسو انکار ختم شي۔

نو د انکار هیڅ وجه نشته ځکه چه الله قادر دے، تاسو اول کښې نشت وئ نو وجود ته ئے راوستئ، بیا د الله په اراده باندے تاسو مرئ، ستاسو واك نهٔ وی، نو دا دریمه خبره هم ومنئ چه الله تعالیٰ به مو بیرته د قبرونو نه راوباسی. نو آخر کښې الله فرمائی چه دے خلقو کښې علم نشته، صرف خپله خیټه او شهوات پیژنی.

## مناسبت

خلق د خپلو خواهشاتو پسے ولے روانیږی؟ نو ددے وجه دا ده چه په خپل سر باندے مالكِ حقیقی نهٔ منی، او د قیامت راتللو نه منکر دی، یره ئے ختمه شویده.

**فائده** : پدے سورت کښې الله په دهریه ؤ باندے رد کړیدے، وجه دا ده چه پدے سورت کښې موضوع ده په الله باندے ایمان راوړل، نو د هغه چا بدی بیانوی چه دومره دلائل موجود دی، او بیا هم دوی وائی چه مونږ کښې تصرفات زمانه کوی، او خپل رب ته ئے فکر نشته. نو دا مناسبت بالتضاد دے.

**فائده** : عربو کښې یو څو قسم خلق وو چه په عامه دنیا کښې اُوس هم موجود دی، یو هغه چه د الله ذات او ورځ د آخرت ئے منله، خو دومره وه چه د نبوت نه خبر نهٔ وو، انبیاء علیهم السلام نهٔ وو چه دوی ته ئے بیان کړے وے، او ابراهیم علیه السلام ډیر پخوا تیر شوے وو، دا قسم خلق لږ وو. لکه زید بن عمرو بن نفیل، قُس بن ساعده، ابوذر غفاری، عمرو بن عَبَسَه. دوی ته ئے د جاهلیت موحدین وئیل. په دوی کښې یو تن وو امیه بن ابی الصلت اول کښې د قیامت منونکے او یریدونکے وو، او په خپلو شعرونو کښې به ئے قیامت او د الله قدرتونه بیانول لیکن کله چه رسول الله ﷺ راغے، نو دے په ضد کښې راغلو او کافر د دنیا نه لاړو، د الله رسول به فرمائیل : [آمَنَ لِسَانُهٗ وَكَفَرَ قَلْبُهٗ] ژبه ئے مؤمنه ده، او زړهٔ ئے کافر دے.

دویم قسم خلق هغه وو چه د الله کمال او جمال او قدرت ئے منلو او هغه ئے رب ګڼړلو لیکن د هغهٔ سره ئے شریکان (برخه داران) جوړول، او دے شرك د الله تعالیٰ بے ادبه کړی وو، لکه شرك کښې دا مرض شته. ورسره دویمه عقیده ئے دا وه چه آخرت نشته، او مونږ چه ددے بتانو عبادت کوو نو پدے سره زمونږ په مال او بچو کښې برکت راځی، د دشمن مقابله پرے کوو، آلِهَه ئے صرف د دنیا د حاجتونو پوره کولو دپاره نیولی وو. دا په عربو کښې بلکه په ټوله دنیا کښې ډیر دی ﴿وَمَا یُؤۡمِنُ اَکۡثَرُهُمۡ بِاللّٰهِ اِلَّا وَهُمۡ مُّشۡرِکُوۡنَ﴾.

دريم خلق: چه الله هم مني او آخرت هم مني، ليکن د هغهٔ سره شرك کوي، اولياء د الله سره شريك کوي، حسن حسين، علي رضی الله عنهم او رسول الله ﷺ ته د مددونو آوازونه کوي، نو دا قسم خلق خو بيخي ډير دي. او يهود او نصاراؤ کښې ورسره بل مرض هم راغلو چه د بعض رسولانو نه ئې انکار وکړو.

څلورمه ډله: خالي الذهن وو چه نهٔ ئې په الله پرواه وه، او نهٔ ئې په دين، او نهٔ په آخرت پرواه وه، لادينه (سيکولر) خلق وو، چه هيڅ دين باندې ئې عمل نهٔ کولو. دوی ته علمانيين، عقلانيين، عصرانيين، روشن خيال وائي، چه په اصل کښې دوی سياه خيال دي.

او دا قسم خلق اُوس هم ډير دي.

پنځمه ډله: مستهزئين بالدين وو. چه دينونو پورې به ئې توقې کولې، او دا قسم نظريه زمونږ د زمانې د دهريه ؤ هم ده. لکه په روس کښې د لينن او مارکس دغه نظريه وه. دين ته به ئې د مليانو خيال او وَهُم وئيلو. او دا عقيده د اکثرو چينيانو هم ده.

او شپږم دا قسم خلق هم وو چه الله ئې منلو، ليکن د بعض حوادثو نسبت به ئې زمانې ته کولو او دا به ئې وئيل چه شرونه او فسادونه زمانه راولي لکه شاعران زمانې ته غلط نسبتونه کوي، او هغې ته به ئې د سپيرۀ والي نسبت کولو، او زمانې ته به ئې کنځلې کولې نو رسول الله ﷺ وفرمايل: الله فرمائي:

[يُؤْذِينِي ابْنُ آدَمَ يَسُبُّ الدَّهْرَ وَأَنَا الدَّهْرُ بِيَدِيَ الْأَمْرُ أُقَلِّبُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ]

(بخاري في تفسير سورة ٤٥، باب ١) رقم (٤٨٢٦) مسلم: (٦٠٠٠)

ما ته بنيادم تکليف راکوي، زمانې ته کنځلې کوي او حال دا چه زمانه زما په اختيار کښې ده، شپه او ورځ زهٔ اړوم راړوم.

نو زمانې ته کنځل کول داسې دي لکه الله ته کنځل کول ځکه چه د زمانې پيدا کونکې خو په حقيقت کښې الله تعالیٰ دې.

نو پدې آيت کريمه کښې دغه ټولو غلطو عقيدو والو باندې الله رد کړيدې.

بيا په قرآن کريم کښې په دهريه ؤ باندې رد کم دې، او په مشرکانو زيات دې، ددې وجه دا ده چه اکثر انسانان الله تعالیٰ مني، دا يوه فطري او عقلي خبره ده، ليکن مرض پکښې دا دې چه د انسانانو نه آلِهَه جوړوي، انسان ته د الله تعالیٰ حقوق ورکوي، د انسان مرتبه نهٔ پيژني. په دنيا کښې هر عاقل به ضرور د يو فاعل (کونکي) قائل وي، اگرکه دهري

هم وي، ځکه چه دوی فاعل د مادے او طبیعت او فطرت په نوم باندے مني، او د څیزونو د پیدا کولو نسبت مادے ته کوي۔

او ایمان والا د ټولو نه پدے باندے ممتاز دي چه دوی د الله تعالیٰ ذات هم مني، د هغهٔ خبره هم مني، او د هغه سره محبت او تعلق هم لري۔ نو دوی حقیقت ته ورسیدل او څوك چه دے حقیقت ته نهٔ دے رسیدلے نو هغه ناکام دے۔

بیا په دهریه ؤ باندے هم داسے یو وخت راځي چه د الله تعالیٰ د وجود قائل شي، اُوس ئے حاجات پوره دي، شهواتو کښې اخته دي، الله ته ئے فکر هم نهٔ وي، لیکن کله چه سخت بیمار شي، یا په یو سخت ځاې کښې راګیر شي نو مجبوراً د هغوي ژړه یو ذات ته آواز کوي، او فطرت ئے پورته متوجه شي۔

سلیمان الاشقرؒ لیکلي دي چه د روسیانو دهریه ؤ یوه ډله په جهاز کښې سوارهٔ شو نو جهاز په پریوتو شو، نو پدے وخت کښې د دوی د خولو نه د (لَآ اِلٰهَ اِلَّا الله) آوازونه ووتل۔ او ایمان ئے راوړو، ددے وجه دا وه چه دوی اُوسه پورے په غفلت کښې وو، اُوس ترے د غفلت ځادر پورته شو، زړه ئے صفا شو۔

الله تعالیٰ په خپل ځان باندے دومره دلیلونه ودرولي دي چه انسان د هغه منلو ته مجبوره کوي، او بیا ئے په انسان کښې عقل اچولے دے، چه هغه به ضرور د الله په وجود اقرار کوي، او بیا ئے کائنات ودرولي دي، او ددے په هره ذره ذره کښې د الله د وجود دلیل موجود دے، که آسمانونو ته ګورے او که زمکے، نهرونو، دریابونو، کانړو بوټو ته۔

مګر پدے زمانه کښې بعض خلق خو د الله تعالیٰ د وجود نه پدے وجه انکار کوي چه ځان ته آزادي ورکوي او خپل خواهشات مړه وي، دے دپاره چه هیڅ پابندي پرے نهٔ وي، د الله تعالیٰ د امر او نهي نه ځان ویستل غواړي، لکه دا مرض اکثر په ایجو کیټډ خلکو کښې شته، چه په اصل کښې بے تعلیمه دي، بعض یونیورسټیو او کالجونو کښې د الله په باره کښې خلقو ته شکونه اچوي، د رسول الله ﷺ د حدیثونه ئے منکر کوي۔ لا حول ولا قوة الا بالله، والله المستعان۔

نَمُوۡتُ وَنَحۡيَا: دے کښې تقدیم تاخیر دے، یعني اول ژوندي کیږو بیا به مرو۔ خو موت ئے مخکښې کړو ځکه چه مرګ دوه خله دے، اول نشت وي، بیا دنیا ته راشي بیا د دنیا نه وفات شي۔ یا بعض مري او بعض ژوندي کیږي، او پدے طریقه دنیا روانه ده۔

اِلَّا الدَّهۡرُ: دهر (زمانے) یعني شپے او ورځے ته وائي، او حال دا چه دا خپله مخلوق دي۔

او جاهلیت والو به زمانے ته کنځل کول، نو رسول الله ﷺ وفرمایل:

[لَا تَسُبُّوا الدَّهۡرَ فَإِنَّ اللّٰهَ هُوَ الدَّهۡرُ] (صحیح مسلم: ۶۰۰۳)

یعنی تاسو زمانے ته کنځل مهٔ کوئ ځکه چه الله تعالیٰ د زمانے تصرف کونکے دے۔ دهر د الله نوم نهٔ دے، بلکه دلته ئے وصفی معنیٰ مراد ده، یعنی اَلۡفَاعِلُ وَالۡمُتَصَرِّفُ۔ الله په زمانه کښ کار کونکے او تصرف کونکے دے۔

ددے نه معلومه شوه چه څوك عقیدهٔ د بعض حوادثو یا د ټولو حوادثو نسبت زمانے ته کوی نو دوئ کافر دی۔

وَإِذَا تُتۡلٰی عَلَیۡهِمۡ: یعنی د هغوی سره خپله دلیلونه نشته خو چه کله دوی ته زمونږ آیتونه بیانیږی چه هغه دلالت کوی د الله تعالیٰ په وجود او د هغهٔ په خالقیت او د هغهٔ په قدرت باندے، او په اثبات د آخرت باندے۔ لکه د اثبات د آخرت دپاره بوټی رازرغون کیدل، شپه او ورځ راوستل او انسان د مور د خیټے نه راویستل دلیلونه دی۔

آیَاتُنَا: ددے نه قرآنی آیتونه هم مراد دی، او دارنګه هغه نخے چه لیدلے شی۔

ائۡتُوا بِآبَائِنَا: یعنی د مړو په راژوندی کولو به مونږ ته دوه فائدے حاصلے شی، یو د الله وجود به معلوم شی، او بل به د آخرت وجود ثابت شی، او که پخوانی مړی مو نهٔ وی راژوندی کړی، نو مونږ دواړه خبرے نهٔ منو۔ دا د هغوی دلیل وو۔

قُلِ اللّٰهُ یُحۡیِیۡکُمۡ: دا د دوی د جلت بازئ جواب دے، یعنی د الله د وجود او د آخرت د اثبات نقد دلیل دا دے چه خپل پیدائش ته وګوره، تهٔ وجود ته چا راوستے، آیا انسان خپله پیدا کیږی، ستا دکان خپله نهٔ چلیږی، بچے خپله نهٔ پیدا کیږی، ستا دروازه خپله نهٔ بندیږی، نو دومره بیشماره مخلوقات سره د کمالاتو نه دے خپله پیدا کیږی، دا کوم عقل منی؟!۔

نو کوم ذات چه تهٔ د مور د رَحِم نه چه د قبر په شان تنګ ځای دے، د هغه ځای نه ئے دنیا ته راوستے، نو دغه ذات به تا د قبر نه بیرته آخرت ته راپورته کوی، او خپلے مخے ته به دِے ودروی، نو قُلِ اللّٰهُ په دواړو باندے دلیل شو، د الله په وجود او بل په اثبات د آخرت۔

ثُمَّ یُمِیۡتُکُمۡ: مرګ او ژوند کښ د انسان اختیار نشته، کنے خلقو به د مرګ نه ځان ساتلے شوے، یو تن به ضَعیف وی، اندامونه به ئے ډیر کمزوری وی، او ډیر عمر به تیروی او بل یو تن به بنه پیر روغ رمټ وی، او سمدست به پرے مرګ راشی دا څوك راولی؟۔

ثُمَّ یَجۡمَعُکُمۡ: یعنی دغه مخکنئ دوه خبرے خو منئ، نو دا دریمه خبره هم ومنئ چه

قيامت به راځي۔
نو پدې آيت کښې ايمان په الله تعالىٰ او د هغهٔ په لقاء دواړو باندې دليل ذکر شو۔
لَا يَعۡلَمُوۡنَ: يعني پدې وجه نهٔ پوهيږي چه په دلائلو کښې په عقل سره سوچ نهٔ کوي او اعراض کوي، نو ځان ئې په زوره بے علمه کړيدے۔

| |
|---|
| وَ لِلّٰهِ مُلۡكُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ وَيَوۡمَ تَقُوۡمُ |
| او خاص د الله دپاره بادشاهي د آسمانونو او د زمکے ده او په کومه ورځ چه به قائم |
| السَّاعَةُ يَوۡمَئِذٍ يَّخۡسَرُ الۡمُبۡطِلُوۡنَ ﴿۲۷﴾ وَتَرٰى كُلَّ اُمَّةٍ |
| شي قيامت په دغه ورځ به تاوان ښکاره شي د باطل پرستو۔ او وينې به ته هر امت |
| جَاثِيَةً ۚ كُلُّ اُمَّةٍ تُدۡعٰٓى اِلٰى كِتٰبِهَا ؕ اَلۡيَوۡمَ تُجۡزَوۡنَ |
| پر مخے پريوتے، هر يو امت به رابللے شي خپلے عملنامے ته نن به تاسو له بدله درکولے |
| مَا كُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ ﴿۲۸﴾ هٰذَا كِتٰبُنَا يَنۡطِقُ |
| شي د هغه عملونو چه تاسو کول۔ دا کتاب (عملنامه) زمونږ ده چه خبرے کوي |
| عَلَيۡكُمۡ بِالۡحَقِّ ؕ اِنَّا كُنَّا نَسۡتَنۡسِخُ مَا كُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ ﴿۲۹﴾ فَاَمَّا |
| تاسو ته په حق سره يقيناً مونږ به ليکل هغه عملونه چه تاسو به کول۔ پس هر چه |
| الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَيُدۡخِلُهُمۡ |
| هغه کسان دي چه ايمان ئې راوړيدے او عملونه ئې کړيدي نيک، نو داخل به کړي |
| رَبُّهُمۡ فِىۡ رَحۡمَتِهٖ ؕ ذٰلِكَ هُوَ الۡفَوۡزُ الۡمُبِيۡنُ ﴿۳۰﴾ |
| دوي لره رب د دوي په رحمت خپل کښې، دا کاميابي ښکاره ده۔ |

**تفسير:** اُوس پدے رکوع کښې د آخرت د ورځے هيبت ذکر دے، ابتداء د سورت کښې د الله سره تعلق پيدا کول وو، نو آخر د سورت کښې اُوس د آخرت سره تعلق پيدا کوي، نو پدے آيتونو کښې د الله تعالىٰ د لقاء او په هغه ورځ باندے د ايمان، او د هغے د استحضار ذکر دے، لکهٔ يو هيبت ئې دا بيان کړيدے چه تقسيم د عملنامو به کيږي، او دا ډير هيبتي حالت دے، ځکهٔ چه يوه ډله به هميشه جنت ته داخليږي، او د الله په رحمت کښې

به داخلیږي، او په بله ډله به د اُور فیصله کیږي. بیا د جهنمیانو په جهنم کښې احوال ئې بیان کړیدي، او اسباب د دخول النار ذکر دي، چه هغه د آخرت نه انکار، د الله د آیتونو پورې استهزاء، د الله په ذات باندې ایمان نهٔ راوړل، او سورت ئې د الله تعالیٰ په عظمت باندې ختم کړیدې.

نو پدې آیت کښې یو دا خبره بیانیږي چه الله تعالیٰ بادشاه دې، او دویم د قیامت په ورځ د باطل پرستو تاوان راښکاره کیدل، د دواړو تعلق د ماقبل سره دا دې چه الله تعالیٰ تاسو وژنې او بیا به مو راژوندي کوي ځکه چه د هغهٔ دپاره بادشاهي د آسمانونو او د زمکې ده. یعنې کائنات د الله تعالیٰ دي نو متصرف به هم پکښې هغه وي، د هغهٔ خوښه به چلیږي. او د قیامت معنیٰ ده د آسمان او د زمکې بدلول، نو الله تعالیٰ پدې خامخا قادر دې. نو یو تصرف د الله تعالیٰ دا دې چه قیامت به راځي او د باطل پرستو د آخرت د منکرینو به تاوان راښکاره شي.

**یَّخۡسَرُ الۡمُبۡطِلُوۡنَ**: سوال دا دې چه باطل پرست خو هسې هم تاواني دې، نو بیا څه له وائي چه په دغه ورځ به باطل پرست خلق تاوانیان شي؟ جواب دا دې چه هلته د تاوان راښکاره کیدل مراد دي، په دنیا کښې هم تاواني دې چه د عظیم الله تعالیٰ نه محروم دې، لیکن تاوان ئې پوره نهٔ ښکاره کیږي. او په آخرت کښې به ئې تاوان په صورت د عذاب کښې راښکاره شي، او دارنګه کوم عملونه چه ورسره دي هغه به ضائع شي، او د جهنم فیصله به پرې وشي.

۲- یا خسران په معنیٰ د هلاکت سره دې. اول مطلب ظاهر دې.

**الۡمُبۡطِلُوۡنَ**: مبطل هغه چاته وائي چه د باطل پسې روان وي، باطل معنیٰ ده ختمیدونکې، زائل کیدونکې شے. نو د دهریت عقیده باطله، د شرك عقیده باطله، د الله د ملاقات نه اِنکار باطل دې.

**وَتَرٰی کُلَّ اُمَّةٍ**: دا د تاوان راښکاره کیدو تشریح ده. نو پدې آیتونو کښې بل ایمان ذکر دې په مُجَازَاتُ الۡاَعۡمَال. یعنې په عملونو حساب کتاب شته، او د هغې لیکل شویدي په صحیفو د ملائکو کښې، بیا به د هغې جزاء او سزا خوري. نو پدې آیت کښې د عملنامو د تقسیم بیان دې بیا د هغې نه بعد د جزاء او سزا بیان دې.

په (تَرٰی) کښې هر لیدونکي ته خطاب دې.

**جَاثِیَةً**: جَثَا یَجۡثُوۡ جُثُوًّا، وَجُثِیًّا په زنګنونو باندې ناستې ته وائي. دلته ئې مفسرینو ډیرې

معانی کړیدی، ۱- بعضو دا د عذاب صورت جوړ کړیدے چه په هر امت باندے به عذاب وی نو په خپو به نشی تینګیدے نو په زنګون باندے به پروت وی، نو د اُمت نه مراد ئے کافران اخستی دی۔ او هرچه مؤمنان دی نو د هغوی دا حال نهٔ دے۔ دا تفسیر ظاهر نهٔ دے ځکه چه دلته کُلَّ اُمَّةٍ ذکر دے، او د روستو سیاق نه هم معلومیږی۔ ﴿فَاَمَّا الَّذِیۡنَ﴾ ﴿وَاَمَّا الَّذِیۡنَ﴾

۲- بیا چه دواړو ته شامل شی نو د جَاثِیَةً معنیٰ ئے په مُجۡتَمِعِیۡنَ (فراء) او مُتَمَیِّزَةً (عکرمة) سره کړیده۔ یعنی هر یو امت به یو ځای ته راجمع وی۔ یا هر امت به د بل نه جدا وی چه دا د عربو امت دے، او دا د عجمو دے۔ او دا د فلانی ملك دی، او دا د فلانی۔

۳- ظاهر دا ده چه حسنؒ وئیلی دی:

[بَارِکَةً عَلَی الرُّکَبِ وَهِیَ هَیۡئَةُ الۡمُذۡنِبِ الۡخَائِفِ الۡمُنۡتَظِرِ لِمَا یُکۡرَهُ]

یعنی په زنګنونو به ناست وی، او دا هیئت د هغه ګناهګار دے چه یریدونکے وی، چه انتظار کوی چه څه به ورسره کیږی۔ دغه د انتظار حالت ته جاثیه وائی، او دا ښه معنیٰ ده، او د قیامت سره مناسبه ده۔

او مؤرجؒ وائی: ددے معنیٰ په لغت د قریشو کښ د خضوع ده۔ دا د خضوع او عاجزیٔ صورت دے۔ او دا هیئت د ټولو امتونو دے، مؤمنان به هم دغسے وی۔ او دوی به پدے حالت کښ د عملنامو انتظار کوی، نو مؤمنانو ته به هم پدے وخت کښ پته نهٔ وی چه آیا دوی به جنت ځی او که بله کومه فیصله به پرے کیږی۔ پدے وجه رسول الله ﷺ وفرمایل: (درے وختونو کښ به هیڅ یو تن ته بل تن نهٔ یادیږی، یو د میزان په وخت او بل د عملنامو د تقسیم په وخت، او دریم د پُل صراط په وخت)۔ (ابوداود: ٤٧٥٧)

دلته به عملنامه کښ عملونه دهٔ ته هم راښکاره شی، او بیا به ئے ټولو انسانانو ته هم ښکاره کړی نو پدے وجه دا ډیر هیبتی حالت دے۔

او کله چه یو مؤمن ته الله تعالیٰ عملنامه په ښی لاس کښ ورکړی، او ګناهونه ورله ختم کړی، نو پدے وخت کښ به الله تعالیٰ ددهٔ مخ سپین کړی، او بدن به ورله غټ کړی د شپیتو ګزو په مقدار، نو الله تعالیٰ به ئے جنت ته روان کړی،

نور مؤمنان به ووائی چه اے الله! دا انسان زمونږ په طرف راوله دا خو ډیر مزیدار ښائسته دے، کله چه د هغوی په خوا راتیر شی نو هغوی ته به ووائی چه تاسو له دے خوشحالی وی، ما سره الله په دے اعمالو حساب وکړو او تاسو سره هم دغه شان اعمال

دی، تاسو سره به هم الله ښه حساب کوی۔
د سلمان فارسی ﷺ نه نقل دی چه ددے عملنامو په تقسیم باندے لس کاله لګیږی، الله ئے زر هم کولے شی خو د مجرمانو د پریشانه کولو دپاره الله تعالیٰ داسے کار کوی۔
او دغسے کافران به راطلب کیږی او عملنامے به په ګس لاس ورکړے شی، نو مخ به ئے تک تور کړے شی، او بدن به ئے غټ کړے شی دے دپاره چه اُور ئے ښه وسیزی، او دومره به خفه وی چه ددے هیڅ انتهاء نشته او ﴿يَدۡعُوۡ ثُبُوۡرًا﴾ هلاکتونو ته به آوازونه کوی، او چغے به وهی ځکه چه اُور ته روان دے۔ نو دے به د کافرو په طرف ورشی، هغوی به وائی چه اے الله! دے طرف ته ئے مهٔ راوله، مګر د هغوی خوا له به ورشی، او هغوی له به زیرے ورکړی چه ستاسو هم داسے حال دے لکه چه په ما څه وشو، نو په هغوی به هم هیبتونه راشی۔
اِلٰى كِتٰبِهَا: ددے نه مراد عملنامه ده چه ملائکو ددهٔ عملونه په هغے کښ لیکلی دی لکه په سورة اسراء (۱۳) آیت کښ ذکر شویده۔ یا ددے نه مراد هغه کتاب دے چه دوی ته نازل کړے شوے وو چه وګوری چه دوی په هغے باندے څومره عمل کړے دے۔ اوله توجیه غوره ده ځکه چه نور آیتونه ئے تائید کوی۔
**فائده:** دا خبره هم واوره چه قیامت کښ انسان باندے الله تعالیٰ فیصله کوی نو دهٔ ته ددهٔ عملونه په ډیرو طریقو سره وربنکاره کوی دے دپاره چه په دهٔ باندے پوره طریقے سره حجت قائم شی۔ یوه طریقه د زمکے ګواهی ده۔
دویم: د ملائکو په ګواهئ سره۔ ﴿هٰذَا مَا لَدَيَّ عَتِيۡدٌ﴾ زما مخامخ ئے دا کارونه کړیدی۔
دریم: میزان باندے به ددهٔ عملونه وتللے شی۔
٤- د ملائکو لیکل په خپلو صحیفو کښ۔
٥- ﴿فَلَنَقُصَّنَّ عَلَيۡهِمۡ بِعِلۡمٍ﴾ ۔ (اعراف:۷) الله به ورته خپل علم بیانوی چه زهٔ دریاندے خبردار وم۔
٦- ددهٔ اندامونه به په دهٔ باندے خبرے شروع کړی۔ ﴿اَلۡيَوۡمَ نَخۡتِمُ عَلٰى اَفۡوَاهِهِمۡ﴾ ۔ (یس :٦٥) نو انسان به پوره راګیر شی، هیڅ انکار به نشی کولے، بلکه اقرارونه به کوی۔ دلته یوه طریقه ذکر ده۔
هٰذَا كِتٰبُنَا: ١- هذا اشاره ده قرآن ته، یعنی دا قرآن زمونږ کتاب دے چه تاسو ته د آخرت په باره کښ رشتینی بیان کوی۔ دا تفسیر مرجوح دے، ځکه چه د سیاق نه بعید

دے۔

۲- ظاهر دا دے چه د کتاب نه مراد هغه کتاب (دیوان) دے چه حفظه ملائکو لیکلے دے، مخکښې ئے نسبت انسانانو ته وکړو (اِلٰی كِتَابِهَا) او دلته ئے نسبت ځان ته وکړو ځکه چه ددے کتاب دوه حیثیته دی، پدے حیثیت چه د انسانانو عمل پکښې لیکلے شویدے نو د هغوی کتاب دے او پدے لحاظ چه ددے مالك الله دے، او د هغه په امر لیکلے کیږی او د هغهٔ د علم مطابق دے، ځوك پکښې زیادت نقصان نشی کولے نو د الله کتاب دے۔

هذا دا قول د ملائکو دے یا د الله تعالیٰ دے۔

بِالْحَقِّ: یعنی کومه چه تاسو کړیده همغه بیانوی، زیادت او نقصان پکښې نهٔ کوی۔ او حق حقیقت ته هم وائی۔

إِنَّا كُنَّا نَسْتَنْسِخُ: دا څنګه کیدے شی چه کتاب خبرے وکړی؟ نو الله فرمائی چه مونږ به ستاسو عملونه په دنیا کښې د ملائکو په ذریعه سره لیکل نو اُوس دغه کتاب تاسو ته بیانیږی۔

فِيْ رَحْمَتِهٖ: په آخرت کښې د الله ډیر رحمتونه دی:

۱- لکه بَيَاضُ الْوُجُوْهِ۔ مخونه سپینول۔

۲- صِحَّةُ الْاَبْدَانِ۔ روغ بدنونه به ورکړی۔

۳- ظِلُّ الْعَرْشِ۔ د عرش د سوری لاندے ودرول۔

٤- ضِيَافَةُ اللهِ۔ الله به میلمستیا ورکړی۔ ﴿يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِيْنَ اِلَى الرَّحْمٰنِ وَفْدًا﴾۔ (مریم:۸۵)

٥- دُخُوْلُ الجنة۔ (جنت ته داخلیدل)۔

| وَأَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا أَفَلَمْ تَكُنْ آيَاتِيْ |
|---|
| او هرچه هغه کسان دی چه کفرئے کړیدے (ورته وبه ویلے شی) آیا نهٔ وو آیتونه زما |
| تُتْلٰى عَلَيْكُمْ فَاسْتَكْبَرْتُمْ وَكُنْتُمْ قَوْمًا مُّجْرِمِيْنَ ﴿۳۱﴾ |
| چه لوستلے شو په تاسو باندے نو لوئی اُوکړه تاسو او وئ تاسو قوم مجرمان۔ |
| وَإِذَا قِيْلَ إِنَّ وَعْدَ اللهِ حَقٌّ وَّالسَّاعَةُ |
| او کله چه به وویل شو چه بیشکه وعده د الله تعالیٰ حقه ده او قیامت چه دے |

| |
|---|
| لَا رَيۡبَ فِيهَا قُلۡتُمۡ مَّا نَدۡرِيۡ مَا السَّاعَةُ |
| هيڅ شك نشته په هغې کښې تاسو به وئيل نۀ پو هيږو مونږ چه څه دے قيامت، |
| إِنۡ نَّظُنُّ إِلَّا ظَنًّا وَّمَا نَحۡنُ بِمُسۡتَيۡقِنِيۡنَ ﴿۳۲﴾ وَبَدَا |
| گمان نۀ کوو مونږ مگر معمولي گمان، او نۀ وو مونږ يقين کونکي۔ او ښکاره به |
| لَهُمۡ سَيِّئَاتُ مَا عَمِلُوۡا وَحَاقَ بِهِمۡ مَّا |
| شي دوی ته سزاگانے د هغه عملونو چه دوی کړی وو او راګير به کړی دوی لره هغه |
| كَانُوۡا بِهٖ يَسۡتَهۡزِئُوۡنَ ﴿۳۳﴾ وَقِيۡلَ الۡيَوۡمَ |
| څه (عذاب) چه وو دوی چه په هغې پورے به ئے توقے کولے۔ او وبه وئيلے شي نن |
| نَنۡسَاكُمۡ كَمَا نَسِيۡتُمۡ لِقَاءَ يَوۡمِكُمۡ هٰذَا |
| هيرو مونږ تاسو لکه چه هير کړے وو تاسو ملاقات د ورځے ستاسو چه دا ده |
| وَمَاۡوَاكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمۡ مِّنۡ نَّاصِرِيۡنَ ﴿۳۴﴾ ذٰلِكُمۡ |
| او ځائے د اوسيدو ستاسو اُور دے او نشته تاسو لره هيڅ مددگاران۔ ددے وجه دا ده چه |
| بِأَنَّكُمُ اتَّخَذۡتُمۡ آيَاتِ اللّٰهِ هُزُوًا وَّغَرَّتۡكُمُ الۡحَيَاةُ الدُّنۡيَا |
| بيشکه تاسو نيولې وو آيتونه د الله په توقو او دهوکه کړی وۀ تاسو ژوند دنيوی |
| فَالۡيَوۡمَ لَا يُخۡرَجُوۡنَ مِنۡهَا وَلَا هُمۡ يُسۡتَعۡتَبُوۡنَ ﴿۳۵﴾ |
| نو نن ورځ به نشي ويستلے دوی ددے نه او نۀ به دوی نه طلب د رضا کيديشي۔ |

**تفسير:** ددے آيت نه روستو د دويمے ډلے تفصيل دے ځکه چه دا قسم خلق زيات دی۔ او د دوی د عذاب څلور اسباب ئے بيان کړيدی، کفر، دويم تکبر کول د هغه آيتونو نه چه عقلي او وحيي دی، کوم چه پدے سورت کښې ذکر شول۔ او دريم نور گناهونه کول يعني شرك او کفر او مخالفتونه کول۔ او څلورم د آخرت نه انکار کول۔

بيا ددے گناهونو نه دوه قسمه گناهونه جوړيږی (كَفَرُوۡا او وَاسۡتَكۡبَرۡتُمۡ) نه قلبي (زړۀ والا) گناهونه جوړيږی، او (كُنۡتُمۡ قَوۡمًا مُّجۡرِمِيۡنَ) نه مراد ظاهری عملونه دی۔ يعني

ستاسو عقیده هم خرابه وه او ظاهر مو د الله په مخالفتونو کښې استعمالیدو۔ یعنی ظاهر او باطن دواړه خراب وو۔ ددے په خلاف د مؤمن زړهٔ جوړ وی، ایمان پکښې وی، او په عملِ صالح سره ظاهر ئے برابر وی۔

وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا: انسان چه د يو حقيقت نه اوړی نو ددے سبب يا انکار وی چه نهٔ ئے منی، يا پرے ښه خبردار وی ليکن زړه ئے خراب وی، ضد او حسد او تکبر کوی۔ او ددے سره بيا جرمونه کول لازم دی۔

وَإِذَا قِيلَ: يعنی کله به چه تاسو ته په دنيا کښې وئيل کيدهٔ چه د الله دا وعده حقه ده چه هغه به خپل بندګان دوباره ژوندی کوی، او د حساب او جزاء دپاره به دوئ په ميدانِ محشر کښې جمع کوی، او د قيامت په راتلو کښې هيڅ شك نشته، نو تاسو به وئيلے چه د قيامت خبره زمونږ په دماغو کښې نهٔ راځی، دا مونږ صرف وَهُم او خيال ګنړو، زمونږ بيخې يقين نشته چه د قيامت په نوم هم ګنے کوم شے به واقع کيږی۔

قِيلَ: يعنی قرآن کښې به دا خبره راغله، يا به رسول الله ﷺ وفرمائيله، يا به يو مؤمن ووئيله۔

وَعْدَ اللهِ: ۱- اکثرو مفسرينو ليکلی دی چه وعده د الله او ساعت (قيامت) يو شے دے، خو د قيامت دپاره ئے دوه نومونه ذکر کړيدی، يو وعد الله او بل ساعة۔

۲- ليکن ظاهر دا ده چه دواړه جدا جدا څيزونه دی، وعده د الله عامه ده او ساعة خاص دے، دا تخصيص بعد التعميم دے۔ نو وعد الله نه مراد امور مستقبله دی، يعنی هغه کارونه چه روستو راتلونکی دی، لکه د هغے مثالونه دا دی: کافرو ته به وئيل کيدهٔ چه اسلام به غالبه کيږی، محمد رسول الله ﷺ به غالبه شی، او تاسو به مغلوبه شئ، او دا خبره په هغه وخت کښې داسے وه لکه چه يو عام انسان داسے ووائی چه زهٔ به روس او امريکه وهم، او په هغوی به غالبه کيږم۔

دے خبرو پورے به منافقانو هم توقے کولے او مشرکانو هم۔ چه ددهٔ کمزورتيا ته وګوره او خبرو ته وګوره۔

دارنګه څوك چه د دين خلاف کوی نو هغه ته به دنيا کښې سزاګانے ملاويږی، ذليله او رسوا کيږی به۔ نو هغوی به دا خبره نهٔ منله۔ يقين به ئے نهٔ کولو۔

دارنګه د قيامت د علاماتو وعده شوے وه نو پدے ئے هم يقين نهٔ وو۔

لنډه دا چه ايمان بالغيب ئے نهٔ وو۔ او همدا فرق وو د صحابه کرامؓ او د کفارو ترمينځ۔

مَا نَدْرِیْ مَا السَّاعَةُ: یعنی زمونږ ذهن پدے نۀ کولاوېږی چه قیامت څۀ ته وائی، څۀ شے دے چه راځی به، یعنی ولے راځی؟ او دے کښې څه فائده ده؟۔
اِنْ نَظُنُّ اِلَّا ظَنًّا: پدے کښې استثناء د شے د خپل نفس نه ده، او دا خو صحیح نۀ وی؟
جواب: دے کښې چا ضعیف جواب کړیدے چه دلته تقدیر دے، اَیْ اِنْ نَظُنُّ اِلَّا اَنَّکُمْ تَظُنُّوْنَ ظَنًّا۔ یعنی زمونږ ګمان نۀ دے مګر دا چه تاسو په آخرت باندے هسے ګمان لرئ او ستاسو هم یقین نشته، یعنی مونږ ته خو دعوت راکوئ لیکن ستاسو په زړونو کښې به هم ددے د راتللو یقین نۀ وی، ځکه چه دا خو بعیده خبره ده چه ذرات دے راجمع شی۔ دا تفسیر ظاهر د قرآن نۀ دے ځکه چه تقدیر پکښې زیات دے۔
۲- ظاهر دا ده چه مستثنیٰ مِنْهُ کښې ظن غالب مراد دے، او په مستثنیٰ کښې ظن حقیر مراد دے۔ تنوین پکښې د تقلیل او تحقیر دپاره دے۔ نو مطلب دا شو چه مونږ ګمان نۀ کوو د قیامت په باره کښې مګر معمولی شان ګمان۔ او دا معمولی ګمان ددوی په هغه وخت کښې پیدا شوے وو چه دوی ته به بار بار د آخرت تذکرے کیدے۔ د دوئ بچو ایمانونه راوړل، او د آخرت نه په یره به ئے عملونه کول، نو دوی کښې هم ګمان پیدا شو۔
نو آیت نه معلومه شوه چه په آخرت باندے ګمان کافی نۀ دے بلکه په آخرت باندے یقین کول لازم دی۔ په آخرت باندے ګمان کول کفر دے۔
د آخرت په یقین کښې د تفاوت په وجه په انسانانو کښې تفاوت راځی، چا ته آخرت بیخی د سترګو مخامخ ښکاره کیږی لکه صحابه کرامؓ، چه رسول الله ﷺ په بدر کښې وفرمایل: [قُوْمُوْا اِلٰی جَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ]
(هغه جنت ته راپورته شئ چه د هغے پلنوالے د آسمانو او د زمکے په اندازه دے)
نو عمیر بن الحمام ؓ کجورے هم وغورزولے کومے ئے چه خوړلے، دے دپاره چه زر جنت ته ورسیږی، او د ډیر یقین د وجه نه به پرے کله د جنت خوشبوئی هم راتلله۔ او د بعض انسانانو یقین وی لیکن زړئے ورته توجه نۀ برابرېږی۔
چا باندے د آخرت تذکره زر او ډیر اثر کوی او چا باندے لږ اثر کوی۔ پدے وجه مؤمن له زر استغفار پکار دے، ځکه چه د آخرت نه غافله شو۔
وَبَدَا لَهُمْ سَیِّاٰتُ: اُوس د آخرت د انکار سزاګانے ذکر کوی۔
سَیِّاٰتُ: ۱- ددے نه مراد یا سزاګانے دی لکه ابن کثیرؒ وغیره ذکر کړیدی۔
لیکن دا غوره نۀ ده۔ دا تفسیر باللازم دے۔

۲ - راجح تفسیر دادے چه سیئات بد بد عملونو ته وئیلے شي، او دا لویه سزا ده چه د الله او د ټولو کائناتو مخامخ انسان ته بد عمل رابنکاره شي، ډیر لوی شرم دے۔ وړه ګناه به ورته دومره درنه شي لکه چه آسمان او زمکه ددهٔ په اوګو باندے پراتهٔ دي۔ نیك اعمال به ورته نهٔ رابنکاره کیږي ځکه چه هغه دے ایماني؛ د وجه نه برباد شویدي۔

وَحَاقَ بِهِمۡ مَّا: د مَا نه مراد عذاب دے، نو دغه عذاب به ئے راګیر کړي۔

وَقِيلَ الۡيَوۡمَ: او الله تعالیٰ به دوئ ته ووائي چه نن به تاسو جهنم ته اوغورزولے شئ او داسے به هیر کړے شئ څنګه چه تاسو دا ورځ هیره کړے وه، او د شرك او ګناهونو ارتکاب مو کولو، او د نیك عمل نه لرے پاتے شوئ، کوم چه نن د اُور د عذاب نه به ستاسو د خلاصي سبب جوړیدلے۔ او اوس هیڅوك نشته چه تاسو د اُور د عذاب نه خلاص کړي۔ او تاسو ته دا بد انجام په دے وجه حاصل شو چه تاسو به قرآن کریم پورے توقے کولے، او د دنیا پرق پروق تاسو په دهوکه کښ غورزولي وئ، او تاسو دا ګمان کړے وو چه نهٔ څهٔ بل ژوند شته، او نهٔ حساب او جزاء شته۔

نَنۡسَاكُمۡ: دلته د نسیان نه مراد ترك دے، ځکه چه په الله باندے نسیان نهٔ راځي، یعني تاسو سره به داسے معامله وکړے شي لکه یو تن چه د چا نه هیر کړے شوے وي۔ یعني په عذاب کښ به همیشه دپاره پاتے کیږئ۔

نَسِيتُمۡ: دلته د نسیان نه مراد قصداً هیرول دي، ځکه چه په غیر اختیاري هیرولو باندے انسان نهٔ رانیولے کیږي۔

ذٰلِكُمۡ: دا دوباره د عذاب سبب بیانوی دپاره د زیات تاکید۔

وَغَرَّتۡكُمُ الۡحَيَاةُ الدُّنۡيَا: د دنیا دهوکه کولو یو صورت دا دے چه تاسو دا همیشه ګنړله، او ددے په وجه مو د آخرت نه انکار کړے وو۔ د دنیا خوندونو او مزو او زیب وزینت د آخرت نه غافله کړي وئ۔

وَلَا هُمۡ يُسۡتَعۡتَبُونَ: د خلاصي؛ دوه لارے دي، یو دا چه الله ئے په څه طریقه راوباسي، هغه پرے رحم وکړي، او بله دا چه دا بندګان الله ته توبه وباسي او الله ترے راضي شي، او اُوس نیك عمل وکړي۔ او دا دواړه په آخرت کښ د کافر دپاره نشته۔

استعتب: معنیٰ ده طلب د ازالے د عتاب (ملامتیا)۔ لکه تا د یو تن جرم کړے نو هغه دریاندے ملامتیا وائي نو ته ورشے او هغه رضا کړے چه ستا ملامتیا حقه ده، لیکن زهٔ مجرم یم معافي درنه غواړم۔ حاصل معنیٰ ئے رضا کول ده۔ یعني نهٔ به د دوی نه طلب

د رضا کولو د الله کیدے شي۔ /د دوی نه به طلب د توبے نهٔ کیږي۔ او ددے معنیٰ پوره تفصیل په سورة الروم (۵۷) او النحل (۸٤) آیت کښې تیر شوے۔

| فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ رَبِّ السَّمَاوَاتِ وَرَبِّ الْأَرْضِ |
|---|
| پس خاص د الله دپاره حمدونه دی چه رب د آسمانونو او رب د زمکے دے، |
| رَبِّ الْعَالَمِيْنَ ﴿۳٦﴾ وَلَهُ الْكِبْرِيَاءُ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ |
| رب د مخلوقاتو دے۔ او خاص هغهٔ لره لوئي ده په آسمانونو او زمکه کښې |
| وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۳۷﴾ |
| او هغه زورور دے، حکمتونو والا دے۔ |

**تفسیر:** په آخر د سورت کښې د الله حمد راوړی، پدے کښې اشاره ده چه الله چه دا کوم کارونه وکړل، او مجرمانو ته ئے سزا ورکړه نو دا ظلم نهٔ دے، بلکه دا بیخی د الله د کمال سره لائق ده۔

**فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ:** د فاء مطلب دا دے چه الله چه د خپل ربوبیت او په بندګانو باندے د خپل کرم او لطف ذکر کړے، او د حق او عدل کوم تائید او د ظلم او باطل کوم تردید ئے کړے نو ددے تقاضا دا ده چه د هغهٔ بندګان د هغهٔ حمد او ثناء وکړي۔

دے وجے نه الله تعالیٰ وفرمایل چه اے خلقو ! تمام صفتونه هغه الله لره دی چه هغه د آسمانونو او زمکے رب دے او د تمام جهان رب دے، دے وجے نه تاسو صرف ددهٔ تعریف بیانوئ، نهٔ د بتانو او دروغژنو معبودانو۔

او واورئ ! په زمکه او آسمانونو کښې هره لوئي او کبریائي صرف هغهٔ لپاره لائق ده، ځکه چه هغه زورور او په هر شئ غالب دے، او په خپلو تمامو اعمالو او تصرفاتو کښې ډیر زیات حکیم او پوهه دے، د هغهٔ هیڅ یو عمل د حکمت نه خالی نهٔ وی۔

**وَلَهُ الْكِبْرِيَاءُ:** د الله د لوی والی مطلب مجاهدؒ دا بیان کړیدے :

[لَهُ السُّلْطَانُ، وَهُوَ الْعَظِيْمُ الْمُمَجَّدُ، الَّذِيْ كُلُّ شَيْءٍ خَاضِعٌ لَدَيْهِ، فَقِيْرٌ إِلَيْهِ]

یعنی د الله دپاره په آسمانونو او زمکه کښې بادشاهي ده، او هغه داسے لوی ذات دے چه د هغهٔ شرافت بیانیږي، او ټول څیزونه د هغه مخے ته عاجز او هغه ته محتاج دی)۔

نو **الْكِبْرِيَاءُ:** جلال او عظمت او سلطان ته وئیلے شي۔ یعنی اُوچت شان او مرتبه او

بادشاهي او قوت. وبالله التوفيق.

## امتیازات

۱- سورة الجاثیه کښې لفظ د آیات دولس کرته راغلے دے.
۲- د ایمان او یقین موضوع پکښې ذکر ده.
۳- په دهریت باندے پکښې رد شوید ے.
٤- فرق بين المؤمن والكافر في الحياة والممات.
٥- د عملنامو د تقسیم صورت ئے پیش کړو.
٦- د قیامت په باره کښې یقین ضروري دے، گمان غلط دے.
۷- د مشرکانو په آخرت باندے لږ شان گمان پیدا شوے وو لیکن دے ورته فائده ورنکړه.

وکتبه ابوزهير في : ۲۰۱٦/۳/۲۰مارچ /۲۰ یوم الاحد. ۱٤۳٦/جمادى الثانية/ ۱٥

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

| آیاتها (۳۵) | (٤٦) سورة الاحقاف مکیة (٦٦) | رکوعاتها (٤) |
|---|---|---|

سورتِ احقاف مکی دے، په دے کښ پنځه دیرش آیتونه او څلور رکوع دی

## تفسیر سورة الاحقاف

نوم: سورة الاحقاف دے، احقاف د عادیانو علاقه وه، او په دے سورت کښ د عادیانو واقعه مقصود دی ده، نو ځکه ئے ورته دغه نوم کیخودو۔

دے ته ما بعد الثلاثین هم وائی۔ یعنی د دیرشو سورتونو نه روستو راغلے دے۔

د نازلیدو زمانه: قرطبیؒ لیکلی چه دا سورت د ټولو په نیز مکی دے۔ آه لیکن بعض علماؤ وئیلی دی چه (۱۰) آیت (وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِنْ بَنِیْٓ اِسْرَآئِیْلَ) مدنی آیت دے چه د مکی آیتونو ترمینځ لیکلے شویدے۔ لکه روستو راځی۔

## مناسبت

۱- مخکښ سورت کښ موضوع د ایمان بالله وغیره بیان شوه نو په دے سورت کښ د هغه چا حال بیانوی چه په الله ئے ایمان نهٔ دے راوړے، چه هغه مشرکان دی۔

۲- مخکښ سورت کښ ایمان وو نو دلته په اعراض عَنِ الْاِنْذَار باندے زورنه بیانیږی چه دا کارونه د ایمان منافی دی۔

۳- مخکښ سورت کښ د آخرت عذابونه زیات ذکر شو نو دلته دنیاوی تخویف (یره) بیانوی په ذکر کولو د واقعه د عادیانو سره۔

## د سورت موضوع او مقصد

۱- رد د شرك فی الدعاء دے لکه د (٤) آیت نه معلومیږی۔ بیا په (٥) کښ ورته گمراه وئیل شویدے۔ بیا په واقعه د عادیانو کښ راغلے ده، بیا په (۲۸/۲۹) کښ راغلے ده۔

څوك چه غير الله ته آوازونه كوي نو په وخت د مصيبت كښې ئې پكار نۀ راځي۔ او ددې موضوع متعلقات پكښې ذكر دي۔ نبي ﷺ ددې د بيان دپاره راغلې دې، نو پدې وجه د هغهٔ د رشتينوالي او د قرآن د رشتينوالي بحث به هم پكښې كوي۔ نو ګويا كه د توحيد، رسالت او صدق د قرآن موضوع پكښې ذكر ده۔

٢- دويمه طريقه: چه مجمله موضوع ده ليكن ټول سورت ورسره لګيږي، اَلزَّجْرُ وَالتَّوْبِيْخُ بِالْاِعْرَاضِ عَنِ الْاِنْذَارِ۔ پدې سورت كښې زورونه او رټنه ذكر ده هغه چا ته چه مخ اړوي د انذار نه چه الله ئې يروي او ددهٔ هيڅ پرواه نشته۔ اعراض مخكښې حم السجده كښې هم تير شويدې ليكن هغه اعراض د كتاب الله نه دې په نهٔ آوريدو د هغهٔ سره۔ او دلته اعراض د انذار نه دې، يعني د دنيا او د آخرت د عذابونو او دهمكيانو نه نهٔ يريدل۔ او قرآن نه هغه خلق فائده اخلي چه د عذابونو نه يريږي۔

ددې موضوع دليل دا دې چه الله دوه خبرې بيان كړيدي، يو كتاب او بل آسمان او زمكه، بيا روستو وائي ﴿وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَمَّا اُنْذِرُوْا مُعْرِضُوْنَ﴾ كافران د انذار نه اعراض كوي۔ بيا په لسم آيت كښې فرمائي: ﴿فَاٰمَنَ وَاسْتَكْبَرْتُمْ﴾ بيا وائي چه مونږ د قرآن نه څكه اعراض كوو چه دې كښې دومره كمال نشته، په (١١) آيت كښې۔ بيا په (١٢) كښې دي: ﴿لِيُنْذِرَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا﴾ بيا په ﴿اَتَعِدَانِنِيْٓ اَنْ اُخْرَجَ وَقَدْ خَلَتِ الْقُرُوْنُ﴾ او آخرت ته اساطير وائي۔ بيا په (٢٠) آيت كښې دي: ﴿بِمَا كُنْتُمْ تَسْتَكْبِرُوْنَ فِي الْاَرْضِ﴾

بيا په (٢١) كښې دي: ﴿اِذْ اَنْذَرَ قَوْمَهٗ بِالْاَحْقَافِ﴾ ﴿فَاْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ﴾ بيا په واقعه د جناتو كښې دي چه جنات اعراض نكوي او د ايمان اقرار كوي، او د هغوي په بيان كښې دي ﴿وَمَنْ لَّا يُجِبْ دَاعِيَ اللّٰهِ فَلَيْسَ بِمُعْجِزٍ فِي الْاَرْضِ﴾۔

بيا په (٣٤) ﴿فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ﴾ بيا په آخره كښې تخويف دې معرضينو ته چه تباه به شئ: ﴿فَهَلْ يُهْلَكُ اِلَّا الْقَوْمُ الْفٰسِقُوْنَ﴾ ۔ بيا په مكي سورتونو كښې ورسره د رسول الله ﷺ او د قرآن نه هم خبره كيږي۔

بيا انذار په كومو خبرو وركړې شويدې؟ نو يو په ترك د شرك باندې، كه نهٔ وي نو سخت عذاب سره به مخامخ شئ۔ بل په مخالفت د رسول او د قرآن او د هغه نه په انكار او استهزاء سره۔

خلاصه: اول كښې الله دوه قسمه دليلونه بيانوي، قرآن او كائنات۔ چه دا كائنات يو مقصد له پيدا دي، څهٔ كول پكار دي؟، مونږ كوم طرفته روان يو؟۔ خو دا خلق نهٔ قرآن

تـه کوری، او نهٔ کائناتو ته کوری بلکه په خپل کفر او شرك کښ اخته دی. بیا د شرك قباحت بیا د هغه کافرانو حال بیانوی چه نهٔ د الله خبره منی او نهٔ د رسول الله ﷺ، او نهٔ د خپل مور او پلار.

| حٰمٓ ﴿۱﴾ تَنۡزِيۡلُ الۡكِتَابِ مِنَ اللّٰهِ الۡعَزِيۡزِ الۡحَكِيۡمِ ﴿۲﴾ |
|---|
| حا، میم. نازلول ددے کتاب د طرف د الله تعالیٰ نه دی چه زورور حکمتونو والا دے. |
| مَا خَلَقۡنَا السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ وَمَا بَيۡنَهُمَاۤ |
| نهٔ دی پیدا کړی مونږ آسمانونه او زمکه او هغه څه چه په مینځ ددے کښ دی |
| اِلَّا بِالۡحَقِّ وَاَجَلٍ مُّسَمًّى ؕ وَالَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا عَمَّاۤ |
| مګر په حق سره او نیټې مقررے سره او هغه کسان چه کفرئے کړیدے د هغه څه نه |
| اُنۡذِرُوۡا مُعۡرِضُوۡنَ ﴿۳﴾ |
| چه دوی ته یره ورکړے شویده مخ اړونکی دی. |

**تفسیر**: پدے آیت کښ د قرآن عظمت شان ذکر دے، او دے ته ئے ترغیب ورکړے او دا خبره ئے ثابته کړیده چه دا د نبی کریم ﷺ کلام نهٔ دے بلکه د هغه الله کلام دے چه هغه زورور، په هر شئ غالب او ډیر زیات حکیم او پوهه دے.

اِلَّا بِالۡحَقِّ: یعنی د حق د ښکاره کولو دپاره، یا د حکمة دپاره چه هغه د الله یواځے بندګی ده. بیا دلته د قرآن او د کائناتو جمع والے وشو ځکه چه دواړه د عبرت څیزونه دی.

وَاَجَلٍ مُّسَمًّى: یعنی الله تمام څیزونه د یوے مقررے مودے لپاره پیدا کړی دی، کله چه دا موده پوره شی نو د کائناتو یو یو شے به ختم شی. نو پدے کښ اشاره ده چه دا نظام علوی او سفلی او وسطی دلالت کوی په توحید او په بعث بعد الموت باندے.

وَالَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا: اُوس زجر ورکوی په اعراض باندے چه کافران خلق د خپل پیدائش د مقصد نه بیخی غافله دی، حالانکه الله دوئ ته د خبرے یادولو دپاره کتابونه نازل کړل او انبیاء ئے را اولیږل، چه هغوئ دوئ د آخرت د عذاب نه اویروی، لیکن په دوئ څهٔ اثر ونشو، نو دوئ به ډیر زر ددے کفر او سرکشئ انجام وپیژنی.

او دلیل دے چه د الله د دهمکئ نه نۀ یریدونکے د کافرانو نه دے۔
عَمَّا اُنْذِرُوْا : یعنی د هغه خبرو نه چه دوی پرے ویرولے شویدی۔ او دوی ته پرے یره ورکرے شویده۔ دلته (به) جار مجرور پټ دے، راجع دے مخکښ مَا موصوله ته۔
انذار : اعلام مع التخویف ته وئیلے شی، یعنی خبر ورکول سَره د یره ورکولو نه چه مسئله دا ده، که ونۀ منئ نو عذاب دربانده راځی۔ نو کافران د دواړو نه اعراض کوی۔

| قُلْ اَرَاَیْتُمْ مَّا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ |
|---|
| تۀ اُووایه خبر راکړئ په باره د هغه چا کښ چه تاسو ئے رابلئ سوئ د الله تعالیٰ نه |
| اَرُوْنِیْ مَاذَا خَلَقُوْا مِنَ الْاَرْضِ اَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِی السَّمٰوٰتِ، |
| اُوښایئ ماته څه پیدا کړیدی دوی د زمکے نه آیا دوی لره شته برخه په آسمانونو |
| اِئْتُوْنِیْ بِکِتٰبٍ مِّنْ قَبْلِ هٰذَا اَوْ اَثٰرَةٍ مِّنْ عِلْمٍ |
| کښ، راوړئ ماته یو کتاب مخکښ ددے قرآن نه یا باقیمانده پوهه (یا رانقل کړے |
| اِنْ کُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ ﴿٤﴾ وَمَنْ اَضَلُّ مِمَّنْ |
| شوے دلیل) (د مخکنو نه) که یئ تاسو رشتینی۔ او څوك دے لوئی ګمراه د هغه چا |
| یَّدْعُوْ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَنْ لَّا یَسْتَجِیْبُ لَهٗۤ اِلٰی یَوْمِ |
| نه چه رابلی سوئ د الله تعالیٰ نه هغه څوك چه دعا نشی قبلولے دۀ لره تر ورځے د |
| الْقِیٰمَةِ وَهُمْ عَنْ دُعَآئِهِمْ غٰفِلُوْنَ ﴿٥﴾ وَاِذَا حُشِرَ النَّاسُ |
| قیامت پورے او هغوی د دعاء د دوی نه ناخبره دی۔ او کله چه راجمع کړے شی خلق |
| کَانُوْا لَهُمْ اَعْدَآءً وَّکَانُوْا بِعِبَادَتِهِمْ کٰفِرِیْنَ ﴿٦﴾ |
| شی به هغوی د دوی دپاره دشمنان او شی به هغوی د بندګئ د دوئ نه منکر۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښ رد د شرك فی الدعاء او فی التصرف دے، او پدے کښ د معرضینو نه د هغوی په شرك باندے دلیل طلب کول دی۔ مطلب دا دے چه اے زما نبی! تۀ مشرکانو ته ووایه چه د الله نه سوئ چه کوم معبودان تاسو رابلئ، لږ د دوئ په باره کښ ماله خبر راکړئ چه دوئ په زمکه کښ څۀ شے پیدا کړے، یا په آسمانونو کښ

د موجود کوم شی په پیدائش کښې د دوئ برخه ده، چه ددې په سبب دوئ د عبادت حقدار دی، یا د قرآن کریم نه مخکښې ستاسو خواته څۀ داسې کتاب راغلے چه په دې کښې ستاسو د دین او عقیدې د صحیح کیدو دلیل موندلے کیږی، یا د تیرو شوو قومونو د علمونو څۀ برخه تاسو سره ده چه په هغې کښې دا ګواهی موجوده وی چه ستاسو دروغژن معبودان د عبادت حقدار دی؟!

که چرے تاسو رشتینی یئ نو څۀ دلیل خو راوړئ۔ حقیقت دادے چه تاسو سره هیڅ عقلی یا نقلی دلیل موجود نۀ دے۔ دے وجے نه اے مشرکانو! تاسو الله سره بل څوك ولے شریك جوړوئ، او ولے د دوئ عبادت کوئ؟!۔

اِئۡتُونِیۡ بِکِتَابٍ: نقلی دلیل دوه قسمه دے، یو دا چه د الله د کتاب نه دلیل راوړی، دوېم دا چه د پخوانو انبیاؤ نه دلیل پیش کړی۔

د کتاب نه مراد منزل (د الله د طرف نه نازل شوے) کتاب دے۔

اَثَارَةٍ مِّنۡ عِلۡمٍ: یعنی باقیمانده علم۔ اَیۡ عِلۡمٌ صَحِیۡحٌ تَأۡثُرُوۡنَهٗ عَمَّنۡ قَبۡلَکُمۡ۔ یعنی صحیح علم چه تاسو ئے د پخوانو نه نقل کوئ۔ یعنی د پخوانو انبیاؤ سنت به وی۔

اثارة د اثر نه دے په معنیٰ د نقل او روایت سره۔ او اَثَارَة بقیه (باقیمانده) ته هم وائی۔

زجاج وائی: اثارة علامه او نخے ته وائی۔

د آیت لنډ مطلب دا دے چه یا به ستاسو معبود زوره ور وی، یا به پدے باندے دلیل وی او دواړه خبرے نشته۔

وَمَنۡ اَضَلُّ: اُوس الله فرمائی: شرك باندے دلیل خو څۀ چه شرك خپله لویه ګمراهی ده، او سبب د سخت عذاب دے، نو پدے آیت کښې د کافرانو بدبختی بیانیږی چه د هغه سړی نه زیات ګمراه بل څوك کیدے شی چه د الله نه سوئ یو داسے دروغژن معبود رابلی چه هغه ددۀ آواز قیامته پورے نشی آوریدلے، څکه چه یا خو هغه د خاورے یا کانړی نه جوړ شوے بُت دے، یا یو عاجز او مسکین بنده دے چه په خپل حال کښې مشغول دے، او د الله د مرضئ نه بغیر یو ډکے هم نشی خوزولے۔ بلکه د قیامت په ورځ به د محشر په میدان کښې کله چه ټول خلق جمع شی، نو دا باطل معبودان به د دوئ دشمنان جوړ شی، او د دوئ نه به د بیزارئ اعلان کوی۔ او صفا صفا به وائی چه مونږ دوئ ته نۀ دی وئیلی چه دوئ زمونږ عبادت وکړی، او نۀ مونږ ته پته ده چه ګنې دوئ زمونږ عبادت کړے وو، اے زمونږه ربه! مونږ د دوئ نه د خپلے بیزارئ او براءت اعلان

کوو۔
**وَمَنْ أَضَلُّ**: الله تپوس کوی چه ددے شخص نه لوی گمراه څوك دے، یعنی ددهٔ نه بل غټ گمراه نشته۔ نو شرك لوی حماقت او بیوقوفی ده۔
**لَا يَسْتَجِيبُ**: یعنی هغه چا ته دوی آواز کوی چه هغه د دوی آواز نهٔ آوری او هرکله چه آواز نهٔ آوری، نو د دوی خبره به څنگه ومنی پاتے لا دا چه دوی ته فائده ورکړی یا ترے ضرر لرے کړی، نو معلومه شوه چه دا د جاهلانو سردار دے۔
**دُعَائِهِمْ غَافِلُونَ**: دا دلیل دے چه مړے او بت آوریدل نشی کولے۔ ځکه چه صیغه د (مَنْ) د ذوی العقولو دپاره اول استعمالیږی۔ تفسیر ابن کثیر، قرطبی، سراج المنیر، خازن وغیره مفسرینو تصریح کړیده چه دا آیت د ملائکو او د عیسیٰ علیه السلام او د پیریانو غیره عابدانو ته عام او شامل دے۔ او څوك چه دا صرف د بتانو پورے خاص کوی نو هغه د قرآن کریم تحریف کوی۔
**وَكَانُوا بِعِبَادَتِهِمْ كَافِرِينَ**: مفسرین لیکی چه د باطلو معبودانو په خپلو ژبو سره ددے خبرے اعلان کول چه دے مشرکانو زمونږ عبادت نهٔ دے کړے، ددے خبرے دلیل دے چه دا معبودان خو به یا شیطانان وی چه دروغ به وائی؛ یا به ملائك او عیسیٰ او عزیر علیهم السلام وی چه دویٔ د خپلو ځانونو په معبود کیدو باندے هیڅ کله راضی نهٔ وو، نو دویٔ به په حقیقی معنو کښ د خپلے بیزاریٔ اعلان کوی، او وائی به چه اے زمونږ ربه ! دے خلقو به زمونږ عبادت نهٔ کولو، بلکه د هغه شیطانانو عبادت به ئے کولو چه هغویٔ به دویٔ ته د الله سره د شرك کولو تعلیم ورکولو۔ اوکه هغه د خاورے یا کانړی نه جوړ بتان وی، نو یا خو به د حال په ژبه مشرکان دروغژن کړی، یا به الله دویٔ له د خبرو کولو طاقت ورکړی، او دویٔ به د خپلو عبادت کونکو د عبادت نه انکار وکړی، ځکه چه د زمکے او آسمان یوه یوه ذره پیژنی چه د الله نه سویٰ بل هیڅوك د عبادت لائق او حقدار نشته دے، او هغوی د الله تعالیٰ تسبیحات وائی۔

| |
|---|
| وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ قَالَ الَّذِينَ |
| او کله چه لوستلے شی په دوی باندے آیتونه زمونږ ښکاره، وائی هغه کسان |
| كَفَرُوا لِلْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُمْ هَٰذَا سِحْرٌ مُبِينٌ ﴿٧﴾ |
| چه کفر ئے کړیدے په باره د حق کښ هرکله چه راغے دوی ته دا جادو دے ښکاره۔ |

| أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَاهُ قُلْ إِنِ افْتَرَيْتُهُ |
|---|
| آیا وائي دوی چه د ځان نه جوړ کړیدے دا قرآن ته اُووایه که ما د ځان نه جوړ کړے وی دا |
| فَلَا تَمْلِكُونَ لِي مِنَ اللَّهِ شَيْئًا هُوَ أَعْلَمُ |
| نو اختیار نهٔ لرئ تاسو ما لره د عذاب د الله نه هیڅ شے هغه ښه پو هه دے |
| بِمَا تُفِيضُونَ فِيهِ كَفَىٰ بِهِ شَهِيدًا بَيْنِي |
| په هغه خبرو چه ننوځئ تاسو په هغے کښ، کافي دے هغه گواه په مینځ زما |
| وَبَيْنَكُمْ وَهُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ ﴿٨﴾ |
| او په مینځ ستاسو کښ او هغه بخونکے رحم کونکے دے۔ |

**تفسیر** :وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ: اُوس مشرکانو ته د هغوی په انکار د قرآن باندے زورنه ورکوی، چه کله د دوئ مخے ته د قرآن کریم د واضح او ښکاره آیتونو تلاوت کیږی نو دوئ په ځائے ددے چه په دے کښ غور او فکر وکړی او د اسلام په دائره کښ داخل شی، فورًا ددے نه انکار کوی، او وائی چه دا قرآن خو ښکاره جادو دے۔

لِلْحَقِّ: د حق نه مراد قرآن کریم دے۔ یا د حق نه مراد هغه مسئله د توحید ده چه په دغه آیتونو کښ بیانولے شی۔

هٰذَا سِحْرٌ: یعنی دا جادو دے چه په خلقو د جادو په شان اثر کوی، او هیڅ حقیقت نهٔ لری بلکه یو خیالی شے دے۔ یا د سحر نه مراد دروغ دی لکه په لغت کښ سحر په معنیٰ د باطل او دروغ سره استعمالیږی۔ (قاموس وغیره)

أَمْ يَقُولُونَ: بلکه دوی په کفر او سرکشئ کښ نور وړاندے ځی او وائی چه دا قرآن محمد (ﷺ) خپله جوړوی، او خلقو ته دا ښائی چه دا د الله کلام دے، او هغوئ ته ئے آوروی۔

الله تعالیٰ د نبی کریم ﷺ په ژبه د دوئ ددے دروغو داسے رد کړے دے چه زهٔ ستاسو له خاطره د الله په باره کښ داسے دروغ څنگه تړلے شم، حال دا چه زهٔ پیژنم چه تاسو مانه د هغهٔ د عذاب په لرے کولو کښ د ذرے هومره هم قدرت نهٔ لرئ۔

إِنِ افْتَرَيْتُهُ: ددے جواب پټ دے [لَعَاجَلَنِي بِالْعُقُوبَةِ] که ما دا د ځان نه جوړ کړے وے، نو

الله به ما ته په جلتئ سره عذاب راکړے وے، او بیا به تاسو په ما باندے خفه یئ چه دا خو زمونږ قومی دے، خپلوان دے نو د الله نه د خلاصولو کوشش به مو کولے لیکن تاسو به زما د بچ کولو اختیار نهٔ لرلے. لکه سورة الحاقه (٤٤/٤٥/٤٦) آیتونو کښې الله فرمائی :
﴿وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ الْأَقَاوِيلِ لَأَخَذْنَا مِنْهُ بِالْيَمِينِ ثُمَّ لَقَطَعْنَا مِنْهُ الْوَتِينَ﴾ که دے په ما دروغ جوړ کړی نو زهٔ ورله د مرئ رګونه پریکوم.
هُوَ أَعْلَمُ بِمَا تُفِيضُونَ: اُوس الله د هغکی ورکوی په خپل علم سره. یعنی تاسو چه د قرآن کریم په باره کښې کله وائے چه دا جادو دے، او کله وائے چه دا خو د محمد خپل کلام دے، نو الله تعالیٰ ستاسو دا بکواسونه ښهٔ پیژنی، الله به تاسو سره ګوری او عذاب به درکوی.
تُفِيضُونَ: د افاضے نه دے په خبرو کښې ننوتل او د هغے تکذیب کول او هغے ته جادو وئیل دی.
كَفَىٰ بِهِ شَهِيدًا: زما د رشتینوالی دپاره الله ګواه دے، هغه زما او ستاسو ترمینځه د ګواه په حیثیت کافی دے چه دا قرآن د هغهٔ کلام دے، او ما دا خبره تاسو ته در رسولے ده، او دا چه تاسو دروغژن او دروغ ترونکی خلق یئ، کله د الله په باره کښې دروغ وایئ، او کله زما او کله د قرآن کریم په باره کښې.
وَهُوَ الْغَفُورُ: اُوس ورته توبے طرفته دعوت ورکوی چه که تاسو د کفر نه توبه اُوخکله او اسلام ته رانئوتئ نو ستاسو ګناهونه به معاف کړی او رحم به درباندے وکړی.

| قُلْ مَا كُنتُ بِدْعًا مِّنَ الرُّسُلِ وَمَا أَدْرِي مَا يُفْعَلُ |
|---|
| اُووایه ! نهٔ یم زهٔ ناشنا (نوے رالیږلے شوے) د رسولانو نه او نهٔ پو هیږم چه څه به کیږی |
| بِي وَلَا بِكُمْ إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰ |
| په ما باندے او نهٔ په تاسو باندے، تابعداری نهٔ کوم مګر د هغے چه وحی کیدیشی |
| إِلَيَّ وَمَا أَنَا إِلَّا نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٩﴾ قُلْ أَرَأَيْتُمْ إِن كَانَ |
| ما ته او نهٔ یم زهٔ مګر یره درکونکے ښکاره یم. تهٔ اُووایه ! خبر راکړئ که چرته وی دا |
| مِنْ عِندِ اللَّهِ وَكَفَرْتُم بِهِ وَشَهِدَ شَاهِدٌ |
| (قرآن) د طرف د الله نه او کفر کړے وی تاسو پدے باندے او ګواهی ورکړی وی ګواهی |

| مِّنْ بَنِيٓ إِسْرَآئِيلَ عَلٰى مِثْلِهٖ فَاٰمَنَ |
|---|
| کونکی د بنی اسرائیلو نه په مثل ددے (کتاب) باندے، نو هغه ایمان راوړو |
| وَاسْتَكْبَرْتُمْ إِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۰﴾ |
| او تاسو لوئی وکړه (آیا تاسو به لوئی ظالمان نهٔ یئ) یقیناً الله هدایت نهٔ کوی قوم ظالمانو ته۔ |

**تفسیر** : اُوس د رسول الله ﷺ د رسالت د رشتینوالی بل دلیل بیانوی، یو د الله گواهی، او دویمه پدے آیت کښ ذکر کیږی چه تاسو به زما نبوت نه هله انکار کولے چه زما نه مخکښ انسانانو ته هیڅ نبی نهٔ وے راغلے، حال دا چه د الله تعالیٰ عادت دا دے چه هغه امتونو ته رسولان او انبیاء رالیږلی دی چه هغوی د الله پیغام هغوی ته ورسولو۔ نو دا خو څهٔ بعیده او ناشنا خبره نهٔ ده چه زهٔ د نبوت دعوه وکړم۔

بل دلیل دا دے چه تاسو دے ته نهٔ گورئ چه زهٔ مخکښ نهٔ پو هیدم، بیا الله په ناشنا علمونو باندے پو هه کړم، دا دلیل دے چه ما ته وحی کیږی۔ نو یو زما د نورو پیغمبرانو سره مشابهت دے، او دویم ما سره معجزه ده، نو دا نښه ده ددے خبرے چه زهٔ د الله رشتینی رسول یم۔

**بِدْعًا** : نه مراد اول دے، بدعت ته هم پدے وجه بدعت وائی چه دا اولنے شے وی چه په دین کښ پیدا شی مخکښ ئے څه مثال په دین کښ نهٔ وی۔

یا بدع په معنیٰ د بَدِيْعٌ سره دے، یعنی ناشنا۔ بِدْع په کسره د باء سره مبتدع شی ته وئیلے شی یعنی نوے پیدا شوے شے۔

**وَمَا أَدْرِيْ مَا يُفْعَلُ** : د مشرکانو مطالبه وه چه هر کله تهٔ د الله رسول ئے نو مونږ ته د راتلونکے زمانے احوال بیان کړه، چه کوم شے به گرانیږی او کوم به ارزانیږی او کوم مصیبت به راځی او کوم نهٔ، دے دپاره چه مونږ ورته د مخکښ نه ځان تیار کړو۔ نو الله ورته جواب ورکوی چه زهٔ نهٔ پو هیږم چه په آینده دنیوی زندگئ کښ به ما او تاسو سره څهٔ کیږی۔ زهٔ به قتلیږم یا به په خپل مرگ وفات کیږم، راحت به رارسیږی، یا مصیبت، آیا زهٔ به په مکه کښ پاتے کیږم او که ددے نه به ویستلے کیږم؟ دارنگه ستاسو باره کښ معلومات نشته چه عذاب به دربانډے راځی او که زما په لاس به وژلے کیږئ، ایمان به

راوړئ او كه په كفر به پاتې كيږئ. او تاسو به كله مرئ او كله نهٔ؟ د نبي د نبوت سره دا خبره لازمه نهٔ ده چه هغهٔ ته به د دنيا تول حالات معلوم وي.

هر چه د آخرت احوال دي نو هغه ورته الله تعالىٰ خبر وركړے وو چه تهٔ او ستا مؤمنان امت به جنت ته داخليږي، او كافران مشركان به اُور ته ځي.

نو پدے آيت كښې د آخرت په باره كښې هيڅ اشكال نشته البته په حديث د بخاري وغيره كښې اشكال شته. ام العلاء رضى الله عنها فرمائي:

كله چه مهاجرين مدينے ته راغلل نو مونږ په قرعه باندے مهاجرين واخستل نو زمونږ په قرعه كښې عثمان بن مظعون (چه د رسول الله ﷺ رضاعي ورور وو) په برخه كښې ورسيدو، هغه ډير عابد او نيك سړے وو نو په نزدے ورځو كښې وفات شو، رسول الله ﷺ راغے، ما د هغهٔ مخامخ وويل: [رَحِمَكَ اللّٰهُ يَا اَبَا السَّائِبِ! شَهَادَتِيْ عَلَيْكَ لَقَدْ اَكْرَمَكَ اللّٰهُ] الله دے په تا رحم وكړي اے ابو سائب! زهٔ په تا گواهي دركوم چه الله ستا اكرام وكړو (او جنت ته ئے داخل كړے) نو رسول الله ﷺ ددے خبرے نه هغه منع كړه، او وے فرمايل: [وَمَا يُدْرِيْكِ اَنَّ اللّٰهَ اَكْرَمَهٗ؟ اَمَّا هُوَ فَقَدْ جَاءَهُ الْيَقِيْنُ مِنْ رَّبِّهٖ، وَاِنِّيْ لَاَرْجُوْ لَهُ الْخَيْرَ، وَمَا اَدْرِيْ وَاَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ مَا يُفْعَلُ بِيْ وَلَا بِكُمْ].

تا ته څه پته ده چه دهٔ له الله اكرام وكړو، البته دهٔ لره د خپل رب د طرف نه مرگ راغلو او زهٔ ددهٔ دپاره غوره اميد لرم، او زهٔ نهٔ پوهيږم حال دا چه زهٔ د الله رسول يم چه ما سره او تاسو سره به څه كيږي؟. ام العلاء وائي: [فَوَ اللّٰهِ لَا اُزَكِّيْ بَعْدَهٗ اَحَدًا] قسم په الله چه زهٔ د هغه نه روستو به د هيچا (په يقين سره) تزكيه نهٔ كوم. نو زهٔ دے خبرے غمجنه كړم نو ما په بله شپه خوب وليدو چه زهٔ د عثمان بن مظعون (ﷺ) دپاره يوه روانه چينه گورم. نو رسول الله ﷺ وفرمايل: دا د هغه نيك عمل دے چه روان دے.

(بخاري في الجنائز باب ٣، والشهادات باب ٣٠ رقم: ٣٩٢٩).

دے باندے اشكال دا دے چه رسول الله ﷺ ته څرنگ دا پته ونهٔ لگي چه ما سره به په آخرت كښې څه كيږي؟ آيا د الله رسول ته خپل ځان نهٔ وي معلوم؟. يو جواب دا دے چه دغه روايت كښې (د بِيْ په ځاى بِهٖ) دے يعني د عثمان بن مظعون معلومات راته نشته. مگر دا جواب دومره قوي نهٔ دے ځكه چه (بِيْ) والا روايت هم صحيح دے، نو بنهٔ جواب دا دے چه اول كښې رسول الله ﷺ ته د خپل ځان په باره كښې هم معلومات نهٔ وو، روستو الله تعالىٰ خبر وركړو، او رسول الله ﷺ خپل ملگري ددے نه منع كول چه د

راتـلـونکی زمانے خبرے وکړی په غیر د علم یقینی نه۔ ددے نه معلومه شوه چه د هیچا دپاره به په یـقـین سره داسے نشی وئیلے چه فلانے جنتی دے، او جنت ته لاړو، او الله ورته بخنه وکړه۔ بلکه د نیکانو دپاره به ښه گمان لرے لکه څنگه چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه زهٔ ددهٔ دپاره د خیـر گمان کوم۔ البته د کومو خلقو په باره کښې چه نصوص موجود وی لـکـه د ټـولـو صـحابه کرامو په باره کښې د جنتی کیدو په باره کښې نصوص موجود دی نو هغوی په باره کښې دا وئیلے شی چه دوئ ټول یقیناً جنتیان دی۔

ابـن کثیرؒ لیـکـلـی دی چـه ددے نـه سوئ بل تفسیر کول جائز نهٔ دی۔ ځکه چه د نبی کریم ﷺ په باره کښې دا خبره معلومه ده چه په آخرت کښې به د هغهٔ مقام جنت وی۔

البتـه دنیـوی ژونـد کـښې هـغـوئ ته معلومه نهٔ وه چه په راتلونکو ورځو شپو کښې به هغـوئ د کـومـو حـالاتـو سره مخامخ کیږی، او د قریشو مشرکانو سره به الله تعالیٰ څهٔ کوی، ایمان به راوړی، اوکه د کفر لاره به اختیاروی او په عذاب کښې به آختـه کیږی۔

نـو دا آیـت هم ښکاره دلیل دے چه رسول الله ﷺ په دنیاوی ژوند کښې په غیبو باندے نهٔ پوهیدو، د آینده حالاتو علم د خپل ځان او د خپل امت ورته نهٔ وو ورکړے شوے۔

إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰ إِلَيَّ: سـوال پـیـدا شـو چـه هـرکـله چه تا ته د راتلونکی زمانے د حالاتو علم نشته نو بیا تهٔ څنگه نبی ئے؟ نو جواب کوی چه زهٔ خو صرف د اِلٰهی وحی اتبـاع کـوم، د خپـل نـفـس د خـواهـش نـه هیڅ خبره نـهٔ کوم۔ نو پدے کـښې د مکے په مشـرکانو باندے رد وشو چه هغوئ به د نبی کریم ﷺ نـه د داسے نښو مطالبه کوله چه هغے د راوړلو قدرت به هغهٔ نهٔ لرلو۔

او دا هـم دلیـل دے چـه رسول الله ﷺ په غیبو نهٔ پو هیدو او کومے خبرے چه ورته بیان شویدی هغه وحی وه، هغه صرف د هغے پسے روان وو۔

أَنَا إِلَّا نَذِيرٌ مُّبِينٌ : خـلـورمـه خـبـره دا وئیلے شوے ده چه زهٔ د الله له خوا خلق صفا صفا ویـرونـکے یم، نو کوم کس چه زما خبرے له توجه ورکړی او د شرك او گناهونو نه پرهیز کـوی، هغه به د جهنم د عذاب نه خلاصے مومی، او څوك چه دا رد کړی، د هغهٔ معامله زما رب تـه حـوالـه ده، که وغواړی عذاب به ورکړی، اوکه وغواړی نو په سمه لاره به ئے روان کړی، او د هغهٔ په حال به رحم وکړی۔

او دے کـښې اشاره ده چه داعـی لـه صفا خبره کول پکار دی چه د هغهٔ دعوت خلقو ته ښـکاره واضـح شی لـکـه د بعض خلقو د دعوت پتـه نهٔ لگی چه دا کوم طرفته دعوت

ور کوی۔
نو پدے آیت کښې د رسول د حقانیت ډیر دلیلونه شو، یو د الله تعالیٰ ګواهي، بله دا چه زهٔ اولنے رسول نهٔ یم۔ دریم دا چه ما ته د آینده زمانے حالات نهٔ دی معلوم۔ څلورم دا چه ما ته وحي کیږي۔
قُلْ أَرَأَيْتُمْ : دا څلورم دلیل د صدق د رسول دے چه پخوانی اهل کتاب ددے نبی منونکی او ګواهي کونکی دی۔ لکه دا دلیل په سورة الشعراء (۱۹۷) او سورة القصص (۵۲) آیت کښې هم تیر شوے وو ﴿ اَوَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ اٰيَةً اَنْ يَّعْلَمَهٗ عُلَمٰٓؤُا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴾ ۔ ﴿ اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِهٖ هُمْ بِهٖ يُؤْمِنُوْنَ ﴾ ۔ دارنګه پدے کښې رټنه ده په انکار د قرآن او انکار د رسول الله ﷺ سره۔
او دا متعلق دے د (هٰذَا سِحْرٌ) پورے۔ د قریشو مشرکانو دا خبره رد کړے شویده چه قرآن جادو دے۔
دویٔ ته ووئیلے شوی چه ستاسو به څهٔ انجام وی که چرے دا قرآن د الله کلام وی، او تاسو ددے نه انکار کویٔ، حالانکه د بنی اسرائیلو یو ګواه د تورات په باره کښې ګواهي ورکړے چه دا الله نازل کړے۔ دے وجے نه په دے کښې د تعجب څهٔ خبره ده چه قرآن هم د الله نازل کړے کتاب وی،
إِنْ كَانَ: دا په طریقه د إِرْخَاءُ الْعِنَانِ سره ووئیلے شویدے، یعنی تاسو خو ئے نهٔ منئ خو که دا قرآن د الله د طرفنه وی (امکان خو شته) او تاسو پرے کفر وکړو او حال دا چه د بنی اسرائیلو نه یو ګواه هم ګواهي ورکړه په مثل ددے کتاب باندے نو هغه راغے او ایمان ئے راوړو پدے قرآن او تاسو ترے ځان لوی ګنړیٔ او ایمان نهٔ راوړیٔ نو ددے جزاء پته ده : [اَلَسْتُمْ اَظْلَمَ النَّاسِ وَاَضَلَّ النَّاسِ] آیا تاسو به د ټولو خلقو نه زیات ظالمان او زیات ګمراهان نهٔ یئ۔ (یعنی د الله یو کتاب وی او د بنی اسرائیلو نه پرے ګواه موجود وی او هغه ئے منی هم او تاسو پرے کفر کویٔ او تکبر هم کویٔ نو تاسو به ګنے یقینی ظالمان او یقینی ګمراهان نهٔ یئ، خامخا به یئ نو ځکه آخر کښې وائی ﴿ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴾ الله داسے ظالمانو ته هدایت نهٔ کوی۔ یعنی دومره دلائل موجود دی، او بیا هم هغوی کفر کوی۔ یعنی د پخوانو کتابونو عالمان ئے منی او تاسو ترے انکار کویٔ۔
د مکے مشرکانو د الله د کتاب سره دوه معاملے کړے وے، یو د هغے نه انکار کول او بل د هغے نه ځان لوی ګنړل۔ یعنی اے قریشو! تاسو صرف د کبر او عناد په وجه په خپل کفر

باندے کلك ولاړ یئ۔

دے کښې آسان تفسیر دا دے چه غلیٰ ﷺ نه مراد تورات دے چه دا په شان د قرآن دے پدے خبره کښې چه د الله د طرفنه دے، او په تورات باندے د ګواهئ مقصد دا دے چه په تورات ئے دا ګواهی ورکړیده چه پدے کښې الله تعالیٰ د رسول الله ﷺ تذکره کړیده، خلقو ته ئے ووئیل چه زهٔ ګواهی ورکوم چه زمونږ په کتاب (تورات) کښې د رسول الله ﷺ او د قرآن تذکره شویده، نو دا حق کتاب او حق رسول دے۔

او شاهد کښې دوه احتماله دی او دواړه صحیح دی، حسنؒ، مجاهدؒ، قتادةؒ او عکرمةؒ رائے داده چه دا آیت مدنی دے، او دا ګواه عبد الله بن سلام ﷺ وو کوم چه د تورات عالِم وو، او د قرآن آوریدو نه پس ئے ایمان راوړو، او مسلمان شو او خلقو ته ئے د تورات حواله پیش کړه۔ او دا ښه واضح تفسیر دے۔

پدے معنیٰ باندے دا اشکال کیږی چه عبد الله بن سلام خو په مدینه کښې ایمان راوړے او دا سورت مکی دے نو جواب دا دے چه دا آیت مدنی دے او د رسول الله ﷺ په حکم سره په مکی سورت کښې لیکلے شویدے، د وجه د مناسبت نه، او داسے قرآن کښې ډیر کرته شویدی، نو هیڅ اشکال نشته۔

دویم دا چه شاهد نه مراد د اهل کتابو علماء دی کوم چه په سورت قصص (۵۲) آیت کښې تیر شویدی ﴿الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ﴾ کوم چه مکے ته راغلی وو او ایمان ئے راوړو۔ او دا وجه ده چه شاهد ئے نکره راوړه، چه هر ګواهی ورکونکی ته شامل شی۔

مرجوح تفاسیر دا دی: (۲) تفسیر: بعض مفسرینو (شَهِدَ شَاهِدٌ) په تعلیق باندے حمل کړیدے یعنی (لَوْ شَهِدَ شَاهِدٌ) که بالفرض یو ګواه د بنی اسرائیلو نه ګواهی ورکړی د قرآن په شان په یو بل کتاب باندے او ایمان راوړی او تاسو خپل کتاب نهٔ منئ نو آیا تاسو به ګمراه نهٔ یئ۔ دے مفسرینو ته دغه مخکښے اشکال مخے ته راغلے دے۔

(۳) بعض مفسرینو وئیلی دی چه د شاهد نه مراد موسیٰ علیه السلام دے یعنی موسیٰ علیه السلام چه د بنی اسرائیلو نه وو هغه په مثل ددے قرآن باندے چه تورات دے ګواهی ورکړیده چه دا د الله د طرفنه نازل شویدے، او بیا ئے پرے خپله ایمان هم راوړیدے او په هغے کښې خو توحید او بعث بعد الموت وو او تاسو پدے قرآن او ددے په مضامینو باندے ایمان نهٔ راوړئ۔ دا هم دومره ظاهر مصداق نهٔ دے۔ ځکه چه هغه خو روستو (وَمِنْ قَبْلِهِ كِتَابُ مُوسَىٰ إِمَامًا وَرَحْمَةً) کښې راغلے دے۔

(٤) شاهد نه مراد کُتُب متقدمه (پخوانی کتابونه) دی او هغه مثل د قرآن دی په عقائدو کښې یعنی بنی اسرائیلو ته چه کوم کتابونه ورکړې شویدی هغوی گواهی کړیده په مثل د عقائدو د قرآن، یعنی دا قسم عقیدې په هغه کتابونو کښې هم وې کوم چه په قرآن کښې دی. لیکن دا هم واضح نهٔ دې.

(٥) چا مثل په معنیٰ د عین (بعینه) سره اخستې دې. لیکن دې تفاسیرو ته ضرورت نشته او اول تفسیر بنه واضح دې اگرکه اکثرو مفسرینو نهٔ دې ذکر کړې. او فتح البیان ذکر کړیدې.

| وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلَّذِيْنَ |
| --- |
| او وائی هغه کسان چه کفرئې کړیدې په باره د هغه کسانو کښې |
| آمَنُوْا لَوْ كَانَ خَيْرًا مَّا سَبَقُوْنَا |
| چه ایمان ئې راوړیدې، که چرته وې دا (قرآن) خیر (نو) دوی به نهٔ وې مخکښې شوی |
| إِلَيْهِ وَإِذْ لَمْ يَهْتَدُوْا بِهٖ فَسَيَقُوْلُوْنَ هٰذَا إِفْكٌ |
| زمونږ نه دې ته او هرکله چه دوی هدایت وانخستو ددې نه نو خامخا وائی دا دروغ دی |
| قَدِيْمٌ ﴿١١﴾ وَمِنْ قَبْلِهٖ كِتَابُ مُوْسٰى إِمَامًا وَّرَحْمَةً |
| پخوانی. او مخکښې ددې نه کتاب د موسیٰ (نازل شویدې) پیشوا او رحمت، |
| وَهٰذَا كِتَابٌ مُّصَدِّقٌ لِّسَانًا عَرَبِيًّا لِّيُنْذِرَ الَّذِيْنَ |
| او دا کتاب دې تصدیق کونکې دې، ژبه عربی ده، دې دپاره چه اُویروی هغه کسان |
| ظَلَمُوْا وَبُشْرٰى لِلْمُحْسِنِيْنَ ﴿١٢﴾ إِنَّ الَّذِيْنَ قَالُوْا |
| چه ظالمان دی او زیرې دې دپاره د ښائسته عمل کونکو. یقیناً هغه کسان چه وائی |
| رَبُّنَا اللّٰهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوْا فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ |
| رب زمونږ الله تعالیٰ دې، بیا کلك شول (پدې) نو نهٔ به وی هیڅ یره په دوی باندې |
| وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿١٣﴾ أُولٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ خَالِدِيْنَ فِيْهَا |
| او نهٔ به دوی غمژن شی. دا کسان جنت والا دی همیشه به وی دوی په هغې کښې، |

جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٤﴾

بدله ده په وجه د هغه عملونو چه دوی به کول۔

**تفسیر**: د مکے مشرکانو به د بلال، عمار، صهیب، خباب (رضی الله عنهم) او د دویٔ پشان د کمزورو مسلمانانو نو مونه واخستل او وئیل به ئے : که چرے په قرآن او په نبوتِ محمدی کښې څهٔ خیر وے، نو دے فقیرانو او حقیرانو مسلمانانو به په ایمان راوړو کښې زمونږ نه وړاندے والے نهٔ وے کړے۔ یعنی مونږ هوښیار خلق یو، خیر پیژنو، دا کمزوری مسلمانان ډیر خیر پیژنی او ایمان ډیر په یو شی باندے راوړی، او مونږ ډیرے ئے نهٔ پیژنو، دا نشی کیدے۔ که مونږ پدے قرآن او اسلام کښې خیر پیژندلے نو مونږ به اول دے ته منډه وهلے، آیا مونږ ګنے د خیر طلبګار نهٔ یو څه؟ دا دویٔ د خپل ځان دپاره یوه بهانه جوړه کړے وه۔ او دارنګه د دویٔ دا ګمان وو چه د هر عزت او شرافت اول حقدار هم دویٔ دی، دویٔ ته معلومه نهٔ وه چه الله چه چاته غواړی خپل رحمت ورکوی، چاله چه غواړی عزت ورکوی، چاله چه غواړی ذلیله کوی ئے، او د خپل دین لپاره چاله چه غواړی غوره کوی ئے۔

اُوس هم دا قسم خبرے کیږی چه دا کشر د پنځلسمے صدیٔ سړے دے راپاڅیږی، دے ډیر په حق پوهیږی او مشران د اُمت ډیر په یوه مسئله کښې خطاء کیږی او هغه ته ډیر حدیث نهٔ وی رسیدلے، دا نشی کیدے۔ دا خبرے هم د هدایت نه مانع واقع کیږی۔

**وَإِذْ لَمْ يَهْتَدُوا**: یعنی هرکله چه دویٔ ته په قرآن کریم باندے د ایمان راوړو توفیق ملاؤ نشو، ډیر وجے نه دویٔ وائی چه دا خو زاړهٔ دروغ دی چه محمد ته چرته نه ملاؤ شوی دی، او وائی چه دا اِلٰهی کلام دے۔ یعنی که ډیر خلقو د هدایت خوند څکلے وے نو بیا به ئے هیڅکله انکار نهٔ کولے لیکن دوی بد بخته وو، د هدایت مزه ئے نهٔ وه څکلے څکه ئے انکار کولو۔ لکه پښتانه د ګیدړے (لومبړے) متل وائی : ((دا انګور تراوهٔ دی)) "اَلنَّاسُ اَعْدَاءٌ لِمَا جَهِلُوا"۔

او دا د عامو انسانانو طریقه ده چه کله یو شے ورته حاصل نشی نو بیا د هغے بدی وائی۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه دغه خلقو به د قرآن او قرآن والو بدی بیانوله، او همدا هغه کبر دے چه ددے په باره کښې د الله رسول ﷺ فرمایلی دی چه تکبر : (بَطَرُ الْحَقِّ وَغَمْطُ

النَّاس) د حق نه د انکار او خلقو لره د سپك گنړلو نوم دے۔ (مسلم : ۲۷۵)
او حافظ ابن کثیرؒ دلته یوه بله ښه خبره دا کړیده :
[وَاَمَّا اَهْلُ السُّنَّةِ وَالْجَمَاعَةِ فَيَقُوْلُوْنَ كُلُّ فِعْلٍ وَقَوْلٍ لَمْ يَثْبُتْ عَنِ الصَّحَابَةِ فَهُوَ بِدْعَةٌ، لِاَنَّهُ لَوْكَانَ خَيْرًا لَسَبَقُوْنَا اِلَيْهِ، لِاَنَّهُمْ لَمْ يَتْرُكُوْا خَصْلَةً مِنْ خِصَالِ الْخَيْرِ اِلَّا وَقَدْ بَادَرُوْا اِلَيْهَا]
هرچه اهل سنت والجماعت دی نو هغوی وائی : هر هغه فعل او قول چه د صحابه کرامو نه ثابت نهٔ وی هغه به بدعت (گمراهی) وی ځکه که هغه خیر وے نو دوی به زمونږ نه هغے ته مخکښنوالے کړے وے، ځکه چه صحابه کرامو د خیر هیڅ خصلت نهٔ دے پریخے مگر هغے ته ئے جلتی کړیده۔
او دا آیت د ټولو بدعاتو په رد کښې پوره قانون دے لکه د الله تعالیٰ د اسماء او صفاتو په باره کښې، په قبرونو والو باندے وسیلے نیول، عرسونه، عید میلاد النبی، حیله اسقاط، او د جنازو بدعات وغیره که دا ښه کارونه وے، نو زمونږ نه مخکښې به صحابه کرامو رضی الله عنهم اجمعین کړی وے۔
وَمِنْ قَبْلِهٖ كِتَابُ مُوْسٰى : د قرآن او د رسول الله ﷺ د رشتینوالی بل دلیل دا دے چه ددے کتاب نه مخکښې د موسیٰ ؑ کتاب (تورات) دے، هغه امام وو یعنی د هغے اقتداء به کیدله او هغه د بنی اسرائیلو دپاره رحمت وو، نو دغه شان دا قرآن هم نوے کتاب نهٔ دے بلکه دا هم د امت دپاره مقتدیٰ او د رحمت ذریعه ده۔ نو دے ته پخوانی دروغ وئیل غلط دی۔
اِمَامًا : یعنی تورات د خلقو دپاره پیشوا او مقتدیٰ وو چه خلقو به د هغے د احکامو تابعداری کوله۔ یا د قرآن دپاره امام دے پدے معنیٰ چه د قرآن تذکره پکښې موجوده وه، او د توحید مسئله په تورات کښې موجوده وه، نو قرآن کښې هم بیان شوه نو تورات د قرآن دپاره هم امام شو۔
مُصَدِّقٌ : اجمالی تصدیق ئے کوی، د عقائدو تصدیق ئے کوی، او تورات چه کوم خبرونه ورکړیدی نو قرآن د هغے رشتینوالے ثابت کړے۔
لِيُنْذِرَ : دا قرآن دے دپاره نازل شوے چه نبی کریم ﷺ د مکے مشرکان د الله د عذاب نه ویروی، چه هغوئ د شرك او گناهونو په کولو سره په خپلو ځانونو ظلم کړے دے، او نیك عمل کونکو مومنانو له د جنت زیرے ورکړی۔
اِنَّ الَّذِيْنَ قَالُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ : دا د بُشْرٰى لِلْمُحْسِنِيْنَ تشریح ده۔ او په (۱۱) آیت کښې د

مکے د مشرکانو او د قرآن نه د هغوئ د انکار کولو بیان راغلے وو، دے وجے نه په دے آیت کښې په رب العالمین باندے د ایمان لرونکو او د دوی ښهٔ انجام ذکر شوے۔

الله تعالیٰ وفرمایل : کومو خلقو چه ووئیل چه زمونږ رب الله دے، هغهٔ نه سوئ بل هیڅوك نهٔ دے، بیا هغوئ چه تر څو پورے ژوندی وو، د لا اله الا الله په منهج باندے ولاړ پاتے شو او د نیك عمل پابندی ئے کوله، دوئ به د قیامت په ورځ نهٔ یریږی اونهٔ به څهٔ غم کوی۔ د دوئ د اوسیدو ځائے جنت دے، چه په دے کښې به دوئ همیشه لپاره اوسی، او دا بهترین انجام به د دوئ د نیکو عملونو بدله وی۔

ثُمَّ اسْتَقَامُوْا : مفسرین لیکی چه [ ثُمَّ ] لفظ ددے خبرے دلیل دے چه د توحید د عقیدے نه پس به عملِ صالح لره اعتبار وی۔ یعنی دے خلقو دوه خبرے جمع کړے، یو توحید چه هغه خلاصه د عِلم ده او بل استقامت چه هغه انتهاء د عمل ده۔ او ددے آیت تشریح په حم سجده (۳۱) آیت کښې تیر شوئدے۔او هلته چونکه د دعوت کونکو مقام او مرتبه بیانیدله نو ځکه تفصیل زیات شوے وو۔

| وَوَصَّيْنَا الْإِنسَانَ بِوَالِدَيْهِ إِحْسَانًا ۖ |
|---|
| او مضبوط حکم کړیدے مونږ انسان ته په مور او پلار د هغهٔ سره د احسان کولو، |
| حَمَلَتْهُ أُمُّهُ كُرْهًا وَوَضَعَتْهُ كُرْهًا ۖ |
| پورته کړے دے دهٔ لره مور ددهٔ په تکلیف او زیږولے دے دهٔ لره په تکلیف |
| وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا ۚ حَتَّىٰ إِذَا |
| او پورته کول ددهٔ او د سینے نه پریکول ددهٔ دیرش میاشتے دی، تردے چه کله |
| بَلَغَ أَشُدَّهُ وَبَلَغَ أَرْبَعِينَ سَنَةً قَالَ رَبِّ |
| چه اُورسی ځوانئ ته او اُورسیږی څلویښتو کالو ته، نو وائی دے اے ربه زما ! |
| أَوْزِعْنِي أَنْ أَشْكُرَ نِعْمَتَكَ الَّتِي أَنْعَمْتَ |
| توفیق راکړه ما ته ددے چه شکر اُوکړم د نعمتونو ستا هغه چه نعمت دے کړے |
| عَلَيَّ وَعَلَىٰ وَالِدَيَّ وَأَنْ أَعْمَلَ صَالِحًا تَرْضَاهُ |
| په ما باندے او په مور او پلار زما باندے او چه عمل وکړم نیك چه ته خوښوے هغه |

| وَأَصْلِحْ لِيْ فِيْ ذُرِّيَّتِيْ إِنِّيْ تُبْتُ إِلَيْكَ وَإِنِّيْ مِنَ |
| --- |
| او نیك كړه ما لره په اولادو زما كښې يقيناً ما توبه ويستلے ده تا ته او يقيناً زۀ يم د |
| الْمُسْلِمِيْنَ ﴿١٥﴾ أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ نَتَقَبَّلُ عَنْهُمْ أَحْسَنَ مَا |
| تابعدارو نه۔ دا هغه كسان دي چه قبلوو مونږ د دوی نه ښائسته هغه عملونه |
| عَمِلُوْا وَنَتَجَاوَزُ عَنْ سَيِّئَاتِهِمْ فِيْٓ أَصْحَابِ الْجَنَّةِ |
| چه دوی كړيدي او مخ اړوو د گناهونو د دوی نه، (دوی به) وی په جنت والو كښې |
| وَعْدَ الصِّدْقِ الَّذِيْ كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ ﴿١٦﴾ |
| وعده د رشتينې والې هغه چه دوی سره به وعده كيديشوه۔ |

**تفسیر**: ددے ځای نه د انسانانو دوه قسمه بیانوی، اول قسم مُحسن د والدینو او الله تعالیٰ ته توبه کونکے، او هغهٔ ته زیرے ذکر دے۔ او دویم قسم نافرمان د والدینو او مکذب او هغهٔ ته د آخرت یره ذکر ده۔

## ربط او مناسبت

ربط د مضمون د سورت سره دا دے ۱ – چه بعض انسانان داسے وی چه هغه نهٔ د الله او رسول منی، او نهٔ د مور او پلار، یعنی د انذار نه اعراض کونکی۔ او بعض د الله تعالیٰ منونکی وی او د هغهٔ د رسول او د مور پلار هم۔

۲ – دارنګه پدے کښې اشاره ده چه په انسانانو کښې بعض کسان د مور او پلار تابعدار وی او بعض نافرمان نو ذغه شان ستا په امت کښې به هم داسے خلق وی چه ځوك به ستا تابعداری کوی او ځوك به نافرمان وی۔ نو دا رسول الله ﷺ ته یو نوع تسلی ده۔

۳ – جزوی مناسبت: یو غټ استقامت دا دے چه په مور او پلار به شفقت کوی او د خپل اولاد تربیت به کوی۔

یعنی د انسان په ژوند کښې یو ډیر زیات اهم نیك عمل دا دے چه هغه د خپل مور پلار سره ښه سلوك وکړی، او د هغهٔ شقاوت او بدبختی داده چه دویٔ سره بد سلوکی وکړی۔

دا خبره الله تعالیٰ ددے د اهمیت له مخه د قرآنِ کریم په درے سورتونو سورتِ عنکبوت (۸: آیت) سورتِ لقمان (۱٤: آیت) او د سورتِ احقاف په دے آیتِ کریمه کښې بیان

کړې۔

الله تعالیٰ وفرمایل : مونږ انسان ته نصیحت کړے چه د خپل مور پلار سره احسان وکړي۔ ددهٔ مور د حمل په حالت کښې هر تکلیف زغملے، دائے په خپله خیټه کښې پورته کړے، او د زیګون په وخت هم په سخت تکلیف کښې مبتلا شوه۔ دا ټولے خبرے د انسان نه غواړي چه هغه د خپل مور پلار سره بیحده ښه سلوك وکړي، او خاصکر مور سره چه هغے دیرش میاشتو پورے د حمل مودے، د زیګون مودے او د پئ ورکولو د مرحلے نه تیره شوه او ددهٔ پرورش ئے وکړو او دائے لوئے کړو، او هر تکلیف ئے په خوشحالئ برداشت کړو۔

وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ : د حمل نه مراد په خیټه کښې حمل دے۔ شوکانيؒ لیکي : دا آیت دلیل دے چه د حمل کم نه کمه موده شپږ میاشتے ده، ځکه چه د تی ورکولو پوره موده دوه کاله ده، لکه د سورتِ بقرے په (۲۳۳) آیت کښې راغلي دي : ﴿ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ أَرَادَ أَنْ يُتِمَّ الرَّضَاعَةَ ﴾ (ځوك چه د رضاعت موده پوره کول غواړي هغه دے پوره شي چه ددے موده دوه کاله ده)۔ معلومه شوه چه الله تعالیٰ په دے آیتِ کریمه کښې د حمل کم نه کمه موده او د رضاعت (تی ورکولو) کامله موده بیان کړے ده۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکلي دي چه همدا رائے د عثمانؓ، عليؓ او نورو ګڼرو صحابه کرامو (رضی الله عنهم) ده۔ او ابن عباس رضی الله عنهما فرمائي : چه دیرش میاشتے تقسیم دي په دواړه حالتونو باندے، یعني کله چه په حمل باندے نهه میاشتے تیرے شي نو رضاعت به یوویشت میاشتے وي او که حمل شپږ میاشتے وي نو رضاعت به دوه کاله وي دغسے نور واخله۔ (ابن جریرؒ، ابن کثیرؒ)

او قرطبيؒ وغیره پدے باره کښې واقعه د عثمان ﷺ نقل کړیده چه یوه زنانه د وخت د نکاح نه شپږ میاشتے روستو بچے راوړو نو هغه اراده وکړه چه پدے باندے حد د زنا قائم کړي نو علي ﷺ منع کړو او پدے آیت سره ئے دلیل پیش کړو نو هغه ډیر خوشحاله شو او داسے ئے وویل : [قَضِيَّةٌ وَّلَا اَبَا حَسَنٍ لَهَا]۔ (دا یوه حادثه ده چه ددے د علي ﷺ په شان بل فیصله کونکے نشته)۔

تفسیر مدارك امام ابوحنیفةؒ ته منسوب کړیدي چه د حمل نه په لاسونو کښې ګرځول مراد دي، او ثلاثون شهرا ټوله موده د رضاعت ده، یعني دوه نیم کاله۔

لیکن دا تفسیر ضعیف دے په ډیرو وجو سره، اوله وجه دا ده چه د حمل نه مراد په

لاسونو کښې پورته کول د صحابه کرامو او تابعینو نه نقل نهٔ ده۔
دویمه وجه : د بچي په لاسونو کښې د ګرځولو دپاره د مودې څه تعیین نشته ځکه چه اکثر ګرځیدل د بچي د یو کال په عمر کښې شروع کیږي، او د دوه کاله یا دوه نیم کالو بچې خو په منډه سره په زمکه ګرځي، هغه لاسونو کښې پورته کولو ته محتاج نهٔ وي۔
دریمه وجه : د رضاعت موده دوه نیم کاله ګنړل د سورتِ بقرې د ظاهر د آیت (۲۳۳) خلاف ده۔ او ملا علي القاريؒ په شرح د نقایه کښې وئیلي دي چه فتویٰ په قول د صاحبینو ده چه موده د رضاعت دوه کاله ده۔
حَتّٰٓى اِذَا بَلَغَ : مومن انسان د پیدائش او تي رودلو او د پرورش د مراحلو (پړاوونو) نه تیریږي او لوئیږي او پوره ځوانئ ته رسیږي، او ژوند تیرولو سره چه ددهٔ عمر څلویښتو کالو ته اورسیږي، او په عقل او هوښیارتیا کښې پوخ شي، او دهٔ ته د الله د احساناتو سره د خپلو والدینو د احساناتو سخت احساس اُوشي، نو دعاء کوي چه اې زما ربه ! تا ماته او زما مور پلار ته هدایت وکړو، او په ما او هغوئ دې بے شماره احسانات وکړل، نو اوس ددې احساناتو د شکر اداء کولو توفیق هم ماله راکړې، او ماله ددې خبرې هم توفیق راکړه چه ستا د مرضئ کارونه وکړم۔
او اې زما ربه ! زما په اولاد کښې نیکي جاري کړه، او په دوئ کښې د نیک عملئ صفت مضبوط کړه چه دوئ په هر حال کښې په دې باندې قائم اوسیږي، اې زما ربه ! زهٔ د هغه ګناهونو نه توبه ګاریم کوم چه ما په تیره شوې زمانه کښې کړي، او زهٔ ستا مخې ته خپل څټ ږدم او لوظ کوم چه ستا امرونه او منع کړي کارونه به منم او ستا د حکم پیروي به کوم۔
حافظ ابن کثیرؒ لیکي: په دې کښې اشاره ده چه د انسان عُمر چه کله څلویښت کاله شي نو هغه له پکار دي چه توبې ډیرې وباسي او الله ته زیاته رجوع وکړي او خپل رب سره دې د تقویٰ او عمل صالح والا ژوند تیرولو وعده وکړي۔ مفسرینو لیکلي دي چه دا آیت د ابوبکر صدیق ﷺ په باره کښې نازل شوې لیکن بیا پکښې هر دغسې بنده داخلیږي۔
بَلَغَ اَشُدَّهٗ : انسان ته حقوق د ځوانئ په وخت کښې متوجه کیږي، نو دا هغه نیک سړې دې چه ځوانئ ته د رسیدو سره سم ئې حقوق ادا کول شروع کړل۔
وَبَلَغَ اَرْبَعِيْنَ: یعني خصوصي چه څلویښتو ته ورسیږي نو دغه دعاء به زیاته کوي۔

بیا ئے ځلویښت کاله ولې خاص کړل؟ ددے حکمة دا دے : [یُقَالُ اِنَّهٗ لَایَتَغَیَّرُ مَا یَکُوْنُ عَلَیْهِ ابْنُ الْاَرْبَعِیْنَ غَالِبًا] یعنی چه څوك ځلویښتو ته ورسیږی نو په کوم حالت چه وی د هغے نه نهٔ بدلیږی غالباً۔ بله دا چه ځلویښتو کالو والا په ګناه رانیولے کیږی۔

[قِیْلَ لِلشَّعْبِیِّ مَتٰی یُؤْخَذُ الْمَرْءُ بِالذَّنْبِ؟ فَقَالَ : اِذَا بَلَغْتَ الْاَرْبَعِیْنَ فَخُذْ حِذْرَكَ]

امام شعبیؒ ته وویل شو چه بنده کله په ګناه رانیولے کیږی؟ نو هغه وفرمایل : کله چه تهٔ ځلویښتو کالو ته ورسیدے نو خپله یره ونیسه۔

سلفو به د ځلویښتو کالو نه روستو کارونه بچو ته وسپارل او خپله به عبادت کښې ننوتل۔

بله وجه دا ده چه ځلویښتو ته ورسیدو نو بچی ئے پیدا شویدی، نو د هغے حقوق هم ادا کوی۔

اَوْزِعْنِیْ : یعنی ما سیده روان کړه او توفیق راکړه۔ او پدے کښې اشاره ده چه اُوس ئے شکر کولو ته توجه پیدا شوه۔

ابو معشرؒ وائی : زهٔ لاړم طلحه بن مصرفؒ محدث ته مے شکایت وکړو چه ځوی مے نافرمان، فسادی دے، نو هغه وفرمایل : [اِسْتَعِنْ عَلَیْهِ بِهٰذِهِ الْاٰیَةِ]۔ د هغه په باره کښې پدے آیت باندے مدد غواړه یعنی دا آیت ډیر وایه الله به دے بچی نیکان کړی۔

تَرْضٰهُ: دا پکښې ځکه وائی چه بعض وخت کښې انسان خواری وکړی لیکن ضائع به شی ځکه چه هغه به الله ته خوښه نهٔ وی، د قبلولو لائق به نهٔ وی، د شرطونو مطابق به نهٔ وی۔ یعنی ظاهره کښې به خو نیك عمل وی لیکن په مینځ کښې به مخدوش وی۔

وَاَصْلِحْ لِیْ فِیْ ذُرِّیَّتِیْ : اَیْ اِجْعَلْ ذُرِّیَّتِیْ صَالِحِیْنَ۔

یعنی زما اولاد نیکان وګرځوه۔ پدے کښې یوه لرے اشاره ده چه بنده له پکار دی چه ځلویښتو ته ورسیږی نو د هغه ډیر بچی پیدا شوی وی، نو اشاره ده چه واده وختی کول پکار دی چه نیکان اولاد پیدا شی۔

او دا اشاره ده چه توحید او دین او نیك عمل زما په اولاد کښې باقی او جاری وساته، او د اولادو صلاحیت (نیکی) هم د والدینو دپاره فائده ده۔

اِنِّیْ تُبْتُ اِلَیْكَ : یعنی د ځوانئ ناپوهی او غلبه د شهواتو چه ورسره د عقل کموالے هم وو د هغے نه توبه نه ما تا ته رجوع کړیده۔

وَاِنِّیْ مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ : یعنی زهٔ د پوره تابعدارو نه یم۔

أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ: د مخکنو نیك صفته انسانانو په باره کښې الله تعالیٰ وفرمایل چه هغه به د دوئ نیك عملونه قبلوی دوئ له به ډیره زیاته ښه بدله ورکوی، او د تویے کولو په وجه به د دوئ ګناهونه معاف کوی، او د دوئ نومونه به د اهلِ جنت په فهرست کښې لیکلے کیږی۔ د الله دا هغه رشتینے وعده ده چه دوئ سره په دنیا کښې د انبیاؤ او رسولانو په ژبه کیدله۔ أُولٰٓئِكَ لفظ راوړو کښې اشاره ده چه دا صفت صرف یو د شخص ابوبکر صدیق ﷺ یا بعض مفسرینو رسول الله ﷺ ذکر کړیدے د هغوی پورے خاص نۀ دے بلکه هر مؤمن ته شامل دے۔

أَحْسَنَ مَا عَمِلُوْا: ددے نه مراد یا ټول حسنات دی، او حسن په معنیٰ د هغه څیز سره دے چه په هغه کښې صفت د حُسن وی، یعنی اسم تفضیل په معنیٰ د نفس فعل سره دے۔ یا اَحْسَن مقابل د حَسَن دے او حَسَن مباح عمل ته وئیلے کیږی چه په هغے کښې نۀ ثواب ږی او نۀ عذاب۔ (فتح البیان)

وَنَتَجَاوَزُ: د تجاوز نه مراد ورتیریدل دی یعنی دوی ته بخنه کوم او په هغه ګناهونو سزا نۀ ورکوم۔

فِيْٓ أَصْحَابِ الْجَنَّةِ: اَیْ مَعْدُوْدِيْنَ۔ یعنی شمارلے به شی په جنتیانو کښې۔

وَعْدَ الصِّدْقِ: تیره شوے جمله (نَتَقَبَّلُ عَنْهُمْ) په معنیٰ د وعدے سره دے، نو دا مفعول مطلق دے د تاکید د مضمون د هغے دپاره۔

او فعل ئے پټ دے اَی وَعَدَ اللّٰهُ وَعْدَ الصِّدْقِ ۔ الله وعده کړیده وعده رشتینی۔ او اضافت د وعد صدق ته اضافت د موصوف دے صفت ته، یا اضافتِ بیانیه دے۔

| وَالَّذِیْ قَالَ لِوَالِدَیْهِ اُفٍّ لَّكُمَآ اَتَعِدَانِنِیْٓ |
|---|
| او هغه کس چه وے وئیل مور او پلار ته افسوس دے په تاسو دواړو آیا یره وئ تاسو |
| اَنْ اُخْرَجَ وَقَدْ خَلَتِ الْقُرُوْنُ |
| ما لره ددے نه چه زۀ به را اُویستے شم (د قبر نه) او حال دا چه تیر شویدی پیړئ |
| مِنْ قَبْلِیْ وَهُمَا یَسْتَغِیْثٰنِ اللّٰهَ وَیْلَكَ اٰمِنْ |
| مخکښې زما نه او دا دواړه مدد طلب کوی د الله نه، (دۀ ته وائی) هلاك شے ایمان راوړه |

| إِنَّ وَعْدَ اللهِ حَقٌّ فَيَقُولُ مَا هٰذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿۱۷﴾ |
|---|
| يقيناً وعده د الله تعالىٰ حقه ده نو هغه وائي نهٔ دي دا مګر قصے د پخوانو دي۔ |
| أُولٰئِكَ الَّذِينَ حَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ فِي |
| دا هغه كسان دي چه ثابته شويده په دوي باندے فيصله د عذاب (داخليږي به) په |
| أُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِمْ مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ |
| هغه امتونو كښ چه تير شويدي مخكښ د دوي نه د پيريانو او د انسانانو نه |
| إِنَّهُمْ كَانُوا خَاسِرِينَ ﴿۱۸﴾ وَلِكُلٍّ دَرَجَاتٌ مِمَّا عَمِلُوا |
| يقيناً دوي وو تاوانيان۔ او د هر چا دپاره درجے دي د وجے د هغے عملونو نه چه دوي كړيدي |
| وَلِيُوَفِّيَهُمْ أَعْمَالَهُمْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿۱۹﴾ |
| او چه پوره وركړي دوي ته بدله د عملونو د دوي او دوي باندے به ظلم نشي كيدے۔ |

**تفسير** : پورتـه د مـومـن هلك صفتـونـه بيان شو، اُوس د كـافـر هلك او د هغـهٔ د بـدعـمـلئ بيان كيږي، چه كله دهٔ ته ددهٔ مور پلار په الله باندے او د آخرت په ورځ د ايمان راوړلـو او نيك عمل كولو دعوت وركړو، نو هغهٔ دوئ ته ووئيل چه زهٔ تاسو نه او ستاسو د خبـرو نـه تـنـګ راغلم، آيا تاسو ماله ددے خبرے يقين راكوئ چه د مرګ نه پس به زهٔ د خپـل قبر نـه دوبـاره پـورتـه كيږم، حالانكه هر چاته پته ده چه مانه مخكښ ډير قومونه راغلل او تير شول، او هيڅوك واپس رانغے۔

مـور پـلار ددهٔ ددے كـافـرانـه خبرو په آوريدو سره ددهٔ لپاره د الله نه د ايمان د توفيق دعاء كـوي، او دهٔ تـه وائـي چـه د خپـل هـلاكـت او بربادئ نه بچ شه، ايمان راوړه، د الله تعالىٰ د آخرت په وعده تصديق وكړه، او اقرار اوكړه چه مرګ نه پس به دوباره راپورته كيږے۔

الله تـعـالىٰ خپـل مخلوق سره دا حقه وعده كړے ده چه هغه به دوئ د قبرونو نه ژوندي پـورتـه كـوي او ميـدانِ محشر تـه بـه ئے راولي، دے دپاره چه دوئ له د دوئ د عملونو بدله وركـړي۔ كـافـر هلك د خپـل مور پلار نصيحت رد كړو، او د الله د آخرت وعده ئے دروغژنه اوګـنـړلـه او وے ويـل چه مرګ نه پس د دوباره ژوندي كيدو عقيده په تيرو شوو قومونو كښ يوه رائجه قيصه ده، چه حقيقت سره ددے هيڅ تعلق نشتـه۔

وَالَّذِیْ: دے کښې یو کافر شخص مراد دے، مروان بن الحکم وئیلي وو چه ددے نه مراد عبد الرحمن بن ابي بکر دے۔ لیکن غلطه ده، لکه بخاري روایت راوړیدے چه مروان کله په حجاز باندے والي وو نو په څه خبره د عبد الرحمن بن ابي بکر سره وران شو نو د هغهٔ د نیولو کوشش ئے وکړو، لیکن قادر پرے نشو، بیا ئے د هغهٔ پسے خبرے وکړے چه دا خو هغه شخص دے چه الله ددهٔ په باره کښې ویلي دي ﴿ وَالَّذِیْ قَالَ لِوَالِدَیْهِ اُفٍّ لَّکُمَآ ﴾ نو عائشے رضی الله عنها ورته ووئیل :

[مَا اَنْزَلَ اللّٰهُ فِیْنَا شَیْئًا مِنَ الْقُرْآنِ اِلَّا اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ عُذْرِیْ]

(الله تعالیٰ زمونږ په بدیٔ کښې د قرآن هیڅ شے نهٔ دے نازل کړے البته زما عذر ئے نازل کړے) (بخاري في تفسیر سورة ٤٦، باب ١)۔

وَقَدْ خَلَتِ الْقُرُوْنُ: یعني زما نه مخکښې ډیرے پیړیٔ تیرے شویدي او اُوسه پورے یو هم دوباره نهٔ دے پیدا شوے، نو زهٔ به څنګه راژوندے شم، د بعث منکر همیشه جلتي کوي۔ حال دا چه دا دلیل ئے باطل دے ځکه چه مدعیٰ خو دا نهٔ ده چه اُوس به په دنیا کښې خلق دوباره ژوندي کیږي، بلکه دوباره ژوند به ددے دنیا د فناء نه روستو وي لکه چه دا خبره په مخکښې سورت کښې تفصیلًا بیان شوه۔

وَهُمَا یَسْتَغِیْثَانِ اللّٰهَ: پدے کښې اشاره ده چه د حق داعي دپاره ضروري دي چه د دعوت سره د الله تعالیٰ نه د خلقو دپاره د هدایت دعاګانے هم وغواړي۔ او اشاره ده چه استغاثه به صرف د الله تعالیٰ نه کولے شي، نهٔ د بل چا نه۔ نو مخلوق ته غوث اعظم وئیل شرکي عقیده ده۔

وَیْلَكَ: پدے جمله کښې یره او علاج دواړه ذکر دي، یعني که ایمان رانهٔ وړے نو هلاك به شے، او که ایمان راوړے نو د هلاکت نه به بچ شے۔ او دا وَیْلَكَ په منلو باندے تیزیٔ ورکولو دپاره استعمالیږي۔

اُولٰٓئِكَ الَّذِیْنَ: د مرګ نه پس د دوباره ژوند نه د انکار کونکو په باره کښې فرمائي : چه دے خلقو باندے د الله تعالیٰ فیصله د عذاب ثابته شوه چه هغه فیصله په سورتِ صٓ په (٨٥) آیت کښې راغلے ده : ﴿ لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكَ وَمِمَّنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ اَجْمَعِیْنَ ﴾ (الله تعالیٰ ابلیس ته ووئیل : زهٔ به خامخا تانه او ستا پیروي کونکو نه جهنم ډکوم)۔

یا د قول نه مراد حجت دے، یعني دنیا کښې د مور او پلار یا د بل حق داعي په واسطه سره په دوي باندے حجت قائم شویدے۔

فِیۡ اُمَمٍ: اَیۡ کَائِنِیۡنَ فِیۡ اُمَمٍ۔ یعنی دوی به وی د هغه خلقو سره۔
قَدۡ خَلَتۡ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ: پدے کښې د دوی ګمراه متبوعینو ته اشاره ده چه هغه پیران او ګمراه ملیان او مشران دی۔
اِنَّهُمۡ کَانُوۡا خَاسِرِیۡنَ: یعنی اصل تاوان والا همدا د قیامت نه انکار کونکی دی چه دوئ د هدایت په بدله کښې ګمراهي اختیار کړے ده۔
وَلِکُلٍّ دَرَجَاتٌ مِّمَّا عَمِلُوۡا: **سوال** پیدا شو چه دواړو فریقینو کښې څه فرق شته او که نه؟ نو د دواړو ډلو ترمینځ وجه د فرق بیانوی، د کافرانو او مؤمنانو هم د عمل مطابق فرق دے، او بیا د مؤمنانو د عملونو ترمینځ هم ډیر فرقونه دی، هر چا ته به د هغوی د عمل مطابق درجے ملاویږي۔ جنتیان به د خپلو اعمالو مطابق درجے وهي او په مخه به اوچتوالي طرفته روان وی،
او جهنمیان به د خپلو ګناهونو مطابق اسفل السافلین (ښکته نه ښکته کندے) طرفته روان وی، او په دواړو ډلو کښې به په هیڅ هم د ذرے برابر ظلم نۀ کیږي۔ هر یو ته به د هغۀ د عمل پوره پوره بدله ورکړے شي۔
وَلِیُوَفِّیَهُمۡ: دا متعلق دے د پټ [وَیُعۡطِیُهُمُ الدَّرَجَاتِ] پورے یعنی دوی ته به درجے ورکوی، نو سوال پیدا شو چه دا ورته ولے ورکوی؟ نو ددے وجه دا ده چه دوئ ته د دوئ د عمل سزا او جزاء پوره ورکړے شي۔
وَهُمۡ لَا یُظۡلَمُوۡنَ: ظلم د اضدادو نه دے، زیاتے کول په بدو کښې او نقصان کول په نیکو کښې دواړو ته شامل دے۔

| |
|---|
| وَیَوۡمَ یُعۡرَضُ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا عَلَی النَّارِ اَذۡهَبۡتُمۡ |
| او په کومه ورځ چه پیش به کړے شي کافران په اور باندے، تاسو بوتلی (ختم کړی) دی |
| طَیِّبٰتِکُمۡ فِیۡ حَیَاتِکُمُ الدُّنۡیَا وَاسۡتَمۡتَعۡتُمۡ بِهَا |
| مزے ستاسو په ژوند دنیوی ستاسو کښې او فائدے مو اخستی دی په هغے سره |
| فَالۡیَوۡمَ تُجۡزَوۡنَ عَذَابَ الۡهُوۡنِ بِمَا کُنۡتُمۡ |
| نو نن به بدله درکولے شي تاسو ته د عذاب د ذلت په هغه وجه چه تاسو به |

| تَسۡتَكۡبِرُوۡنَ فِی الۡاَرۡضِ بِغَيۡرِ الۡحَقِّ وَبِمَا كُنۡتُمۡ تَفۡسُقُوۡنَ ﴿٢٠﴾ |
|---|
| لوئی کوله په زمکه کښې په ناحقه او پدې وجه چه تاسو به نافرمانی کوله۔ |

**تفسير**: دا د ﴿لِيُوَفِّيَهُمۡ اَعۡمَالَهُمۡ﴾ تشريح ده، يعنې د عمل بدلے به څنګه پوره ورکړے شي نو د هغې تفصيل دا دے چه کافران به اُور ته بوتللے شي۔

نبي کريم ﷺ ته وئيلے شوي دي چه ته مشرکانو ته هغه ورځ ورياده کړه کله چه د جهنم او د دوئ ترمينځه پرده لرے کړے شي، او اور په خپلو سترګو اووينې، او دوئ ته به د زجر او رټلو په توګه وويلے شي چه تاسو په دنيا کښې خپل تمام خواهشات پوره کړل او خوندونه مو پوره واخستل، دلته اُوس تاسو له د عذاب نه سوئ بل هيڅ شے باقي نۀ دے پاتے شوے۔ تاسو به په دنيا کښې ناحقه تکبر کولو، او د خپل رب د بندګئ نه به مو مخ اړولو، دے وجے نه نن به تاسو له داسے رسواګن عذاب درکړے شي، چه ددے نه به لوي بل ذلت او رسوائي نشي کيدے۔

د استکبار او د فسق فرق دا دے چه استکبار په زړۀ کښې وي، او فسق په ظاهره کښې وي، نو تاسو د حق نه اعراض په دوه طريقو کړيدے، يو قلباً يعنې په زړۀ کښې مو د هغې نه نفرت کولو، او بل عملاً چه حق له مو لته ورکړيده او د هغې نه مو انکار کړے۔

د آيت مطلب دا دے چه کافر تول عمل د دنيا دپاره کړيدے نو صرف دنيا ئے وخوړله او د آخرت دپاره ئے څه عمل ونکړو، چه آخرت پرے وګټي، چه هغه ايمان او عمل صالح وو۔ او هرچه مؤمن دے نو هغه ته الله تعالیٰ دنيا کښې هم مزے ورکوي او آخرت کښې هم، وجه دا ده چه دوئ عملونه د آخرت دپاره هم کړيدي نو د دغه نيک عمل بدله په آخرت کښې هم شته،

نو ددے آيت دا مطلب نۀ دے چه چا په دنيا کښې مزے واخستے نو هغه به په آخرت کښې خامخا جهنم ته ځي، البته دا به هغه خلق وي چه آخرت له ئے تيارے نۀ وي کړے لکه پدے باندے دليل آيت د سورة الاعراف دے

﴿قُلۡ هِيَ لِلَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا فِي الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا خَالِصَةً يَّوۡمَ الۡقِيٰمَةِ﴾

ليکن بيا به هم صحابه کرامؓ د قرآن ددے اشارے نه يريدل او د دنيا د ډيرو مزو او خوندونو نه به ئے هم ځان ساتلو، او دا اُوچت زهد دے، اګرکه د دنيا څيزونه استعمالول جائز دي۔

سيدنا عمر فاروق ﷺ ته يوه ورځ د شاتو شربت راوړے شو نو هغه ونۀ څکو او وے

فرمایل : [اَسۡمَعُ اللّٰهَ نَعٰی عَلٰی قَوۡمٍ شَهَوَاتِهِمۡ فِیۡ حَیَاتِهِمُ الدُّنۡیَا]
زۂ د الله نه آورم چه د یو قوم بدی ئے وئیلے ده چه هغوی په دنیاوی ژوند کښې خپل خواهشات اخستی وو۔ داسے نۂ چه مونږ ته داسے ونۂ وئیلے شی۔
دا آیت د کافرو په باره کښې دے، او سیدنا عمر فاروق ﷛ ئے د ځان سره لګوی۔ داسے طریقے سره د قرآن نه ښه فائده اخستے شی۔ داسے به نۂ وائے چه دا د کافرو په باره کښې دے او خپله ترے بیغمه شی۔
عبد الرحمن بن عوف ﷛ روژه وو، ماښام کښې مزیدار روژه ماتے راوړے شو نو هغه وژړل او وے وئیل چه حمزه او مصعب بن عمیر رضی الله عنهما په اُحد کښې شهیدان شول او هغوی ته کفن نۂ ملاویدو [وَقَدۡ بُسِطَ لَنَا مِنَ الدُّنۡیَا مَا بُسِطَ، لَقَدۡ خَشِیۡنَا اَنۡ تَکُوۡنَ حَسَنَاتُنَا عُجِلَتۡ لَنَا] او مونږ ته دنیا دومره ډیره فراخه شوه، مونږ یریږو چه هسے نۂ چه مونږ ته زمونږ د نیکیانو بدلے په دنیا کښې راکړے شی) او آخرت کښې محروم شو۔ بیا ئے دومره وژړل چه هغه خوراك ترے پاتے شو۔ (بخاری: ٤٠٤٥)
نو دے آیت نه معلومیږی چه د طیباتو په استعمال کښې ډیر ننوتل او ددے پسے ډیره خواری کول چه د انسان نه دینی کارونه پاتے شی نۂ دی پکار، لکه یو انسان ځان د مزے په څیزونو عادت کړی، نو کله چه هغه نۂ ملاویږی بیا د هغے د حاصلولو دپاره حرامے طریقے استعمالوی۔
دارنګه کوم خلق چه د دنیا مزے اخلی او بیا د الله شکر نۂ کوی نو هغوی ددے آیت په ذکر شوی وعید کښې داخلیږی لکه وَاسۡتَمۡتَعۡتُمۡ بِهَا لفظ پدے باندے دلالت کوی، یعنی دا طیبات ئے صرف د دنیا د مزے دپاره استعمال کړیدی، او دین او آخرت ئے هیر کړیدے۔

| وَاذۡکُرۡ اَخَا عَادٍ اِذۡ اَنۡذَرَ قَوۡمَهٗ بِالۡاَحۡقَافِ |
|---|
| او یاد کړه (دوی ته) ورور د عادیانو کله چه دۂ اُویرولو قوم خپل په احقاف (علاقه) کښې |
| وَقَدۡ خَلَتِ النُّذُرُ مِنۡ بَیۡنِ یَدَیۡهِ وَمِنۡ خَلۡفِهٖۤ اَلَّا |
| حال دا چه تیر شویدی یره ورکونکی مخکښې ددۂ نه او روستو ددۂ نه (پدے خبره) چه |
| تَعۡبُدُوۡۤا اِلَّا اللّٰهَ اِنِّیۡۤ اَخَافُ عَلَیۡکُمۡ عَذَابَ |
| بندګی مۂ کوئ سوئ د الله تعالیٰ نه د (هیڅوا) یقیناً زۂ یریږم په تاسو باندے د عذاب |

يَوۡمٍ عَظِيمٍ ﴿٢١﴾ قَالُوٓاْ أَجِئۡتَنَا لِتَأۡفِكَنَا عَنۡ

د ورځې لوئی۔ اُووئیل دوی آیا راغلے ئے تهٔ مونږ ته دے دپاره چه واړوے مونږه د

ءَالِهَتِنَا فَأۡتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ إِن كُنتَ مِنَ

معبودانو خپلو نه نو راوړه مونږ ته هغه عذاب چه تهٔ یروے پرے مونږ که یې تهٔ د

ٱلصَّٰدِقِينَ ﴿٢٢﴾ قَالَ إِنَّمَا ٱلۡعِلۡمُ عِندَ ٱللَّهِ وَأُبَلِّغُكُم مَّآ

رشتینو نه۔ اُووئیل هغهٔ یقیناً علم (د عذاب) د الله سره دے او رسوم تاسو ته هغه څه

أُرۡسِلۡتُ بِهِۦ وَلَٰكِنِّيٓ أَرَىٰكُمۡ قَوۡمًا تَجۡهَلُونَ ﴿٢٣﴾

چه رالیږلے شوے یم تاسو ته په هغے باندے لیکن زهٔ وینم تاسو یو قوم چه ناپوهی

فَلَمَّا رَأَوۡهُ عَارِضًا مُّسۡتَقۡبِلَ أَوۡدِيَتِهِمۡ

کوئ۔ نو هرکله چه اُولیده دوی (وریځ) پلنه وریځ چه مخامخ راتلونکے وه میدانونو

قَالُواْ هَٰذَا عَارِضٌ مُّمۡطِرُنَاۚ بَلۡ هُوَ

د دوی ته اُووئیل دوی دا وریځ ده چه باران کونکے ده په مونږ باندے (ووئیلے شو) دا

مَا ٱسۡتَعۡجَلۡتُم بِهِۦۖ رِيحٌ فِيهَا عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٢٤﴾

هغه شے دے چه تاسو په جلتیٔ سره غوختلو، سیلیٔ ده چه پدے کښ عذاب دردناک

تُدَمِّرُ كُلَّ شَيۡءِۭ بِأَمۡرِ رَبِّهَا فَأَصۡبَحُواْ لَا يُرَىٰٓ

دے۔ هلاکوی هر شے په حکم د رب ددے، نو صبا کړو دوی چه نهٔ لیدل کیدل

إِلَّا مَسَٰكِنُهُمۡۚ كَذَٰلِكَ نَجۡزِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلۡمُجۡرِمِينَ ﴿٢٥﴾

مګر کورونه د دوی، دغه شان سزا ورکوو مونږ قوم مجرمانو ته۔

**تفسیر**: اُوس د انذار نه د اعراض کولو یوه واقعه د هود علیه السلام او د هغهٔ د قوم راوړی، چه دهٔ خپل قوم ویرولو لیکن هغوی سخت زړی وو، عذاب ئے وغوختو۔ او پدے کښ د مکے مشرکانو ته یره ورکول هم دی چه عادیان سره د زیات قوت د وسائلو او بدنونو نه د الله تعالیٰ د عذاب نه بچ نهٔ شول، نو دغه شان دا مشرکان د مکے او نور کافران به څرنګ

بج شي۔

هود ﷺ د الله نبي وو، او د قوم عاد نه يو كس وو، دے وجے نه دۀ ته د هغوئ ورور ووئيلے شو۔ الله تعالىٰ نبي كريم ﷺ ته حكم وكړو چه تۀ قريشو خلقو ته د هود ﷺ او د هغۀ د قوم واقعه واوروه، دے دپاره چه ددے نه عبرت حاصل كړي۔ د هغۀ د اوسيدو ځائے د جزيرۀ عرب په جنوب كښې د حضرموت او عُمان ترمينځه وو، دا يوه اوچته او اُوږده شګلنه علاقه وه، چرته چه د دوئ كورونه او پټي وو، او دا خلق قوي بدنونو والا او تنه وَر وو، خوا او شا قومونه د دوئ د ظلم او زياتي نه ډير پريشان وو۔

هود ﷺ دوئ د الله تعالىٰ د عذاب نه اوېرول (څنګه چه ددۀ نه مخكښې او ددۀ نه روستو راتلونكو تولو انبياؤ خپل خپل قومونه ويرولي وو) او وے وئيل چه اے خلقو! الله نه سوئ د هيڅ بندګي مۀ كوئ، كه چرے تاسو زما خبره اونۀ منله نو ماسره ويره ده چه د يوے ډيرے لوي خطرناكے ورځے عذاب به تاسو په خپل ګرفت كښې واخلي۔

بِالْاَحْقَافِ: جمعه د حِقْفٌ ده، د شړو ډيركو ته وئيلے شي چه كږے وږے وي۔ (خليلؒ)، ابن عباس ﷺ وائي دا په شام كښې يو غر دے۔ مقاتلؒ وائي: دا په يمن كښې په حضرموت كښې علاقه ده۔ او ابن زيدؒ وائي: احقاف هغه شړے دي چه فراخه وي، او په اُوږدو باندے خورے وي، او درياب باندے راپورته شوي وي لكه د غر په شان ليكن د غر اندازے ته لا نۀ وي رسيدلي۔ بقاعيؒ وئيلي دي چه داسے ډيرئ د شګے چه كومه علاقه كښې وي نو هلته عادةً سختے سيلئ نۀ راځي۔ نو په دوي باندے د سيلئ عذاب راتلل خارق للعادة (د عادت نه ناشنا) وو۔

وَقَدْ خَلَتِ: اشاره ده چه سلسله د انذار د ډير پخوانه راروانه ده۔

مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ: مفسرين ليكي چه د هود ﷺ نه مخكښې آدم، شيث، ادريس او نوح عليهم السلام تير شوي وو۔

اَلَّا تَعْبُدُوْا: يعني يره وركونكي اګركه ډير وو ليكن د هغوي مسئله يوه وه چه هغه د توحيد مسئله ده او دا اتفاقي ده۔

يَوْمٍ عَظِيْمٍ: د ورځ لوي والي نه مراد د هغے هيبتناك والے او خطرناك والے دے۔

قَالُوْا اَجِئْتَنَا: قوم عاد خپل جهالت رابنكاره كړو او د هغۀ دعوت ئے رد كړو، او هغۀ ته ئے ووئيل: آيا تۀ زمونږ خواته دے له راغلے ئے چه مونږ لره زمونږ د معبودانو د عبادت نه منع كړے، نو واوره! مونږ ستا خبره نۀ منو، او په تا ايمان نۀ راوړو، كه چرے تۀ په خپله

خبره کښې رښتینې ئې چه په مونږ به د الله تعالیٰ عذاب راځي نو هغه راباندې راوله.
هود علیه السلام دوئ ته ووئیل چه ماته ددې خبرې یقین دې چه دغه عذاب به خامخا راځي، لیکن د هغې وخت ماته معلوم نهٔ دې، ددې علم صرف الله ته دې. زما کار خو صرف پیغام رَسَول دي، لیکن خبره داده چه تاسو خالص جاهل او ناپوهه خلق یئ، په ځائې ددې چه تاسو د خپل رب نه رحمت او مغفرت وغواړئ، خپل ځانله په تادئ باندې عذاب غواړئ.
لِتَأۡفِكَنَا: افك دروغو ته وئیلې شي، اشاره ده چه تهٔ چه مونږ د خپلو معبودانو نه اړوې نو دا دهوکه او دروغ دي.
إِنَّمَا ٱلۡعِلۡمُ: یعني عذاب راوستل خو لرې خبره ده بلکه ما سره د هغې علم هم نشته چه عذاب به کله راځي، او څرنګه به وي، او پدې کښې مقصد اظهار د شان د رسول دې چه هغه غیب دان نهٔ وي بلکه د هغهٔ صفت صرف تبلیغ وي.
(وَأُبَلِّغُكُم مَّآ أُرۡسِلۡتُ بِهِۦ ) یعني خلقو ته توحید مسئله رَسَول او هغوی د عذاب نه یره ول زما کار دې.
تَجۡهَلُونَ: د دوی دوه جهالتونه وو، یو دا چه عذاب د هغه چا نه غواړي چه د هغهٔ په واك او اختیار کښې نشته، او هغه چه د کوم مقصد (توحید) دپاره راغلې دې هغه نهٔ قبلوي. او دا جهالت دې چه بنده مقصودي خبره وغورزوي او بې مقصده خبره طلب کړي.
تَجۡهَلُونَ : تاسو د جهالت کارونه کوئ لکه شرك، عذاب په جلتئ غوختل، عذاب د نبي په اختیار کښې ګنړل.
۲- تَجۡهَلُونَ: اَیۡ حُظُوۡظَ اَنۡفُسِکُمۡ . یعني تاسو د خپلو ځانونو د برخې نه نا خبره یئ، زما د نبوت نه فائده واخلئ چه دنیا او آخرت مو بنه شي لیکن تاسو په خپله فائده نهٔ پوهیږئ.
فَلَمَّا رَأَوۡهُ: څه اُوږده موده روستو الله تعالیٰ په هغوی باندې عذاب راوستو چه تفصیل ئې دا وو چه په دوی باندې الله تعالیٰ درې کالو پورې باران بند کړو، نو په تاریخي روایاتو کښې دي چه دوئ څه کسان مکې ته ولیږل چه لاړ شي او هلته د الله نه دعا وغواړي (مکه د پخوا نه یو مقدس ځای وو، خلقو ته محبوب او مقبول وو)
چونکه په دغه زمانه کښې په مکه کښې خلق نهٔ وو، نو دوی د مکې نه بهر څه دوستانو

سره پاتے شول، هلته په شرابو او فسادونو اخته شول، دعاء ترے پاتے شوه، دلته د دوئ قوم باندے يوه توره وريځ راپورته شوه، نو دوئ چه کله وليدله نو د ډيرے خوشحالئ نه تول ورته رابهر شول، زنانه، ماشومان او سړی، دوی شرکی الفاظ وويل : چه دا وريځ په مونږ باندے باران کوی۔ (الله ته نهٔ متوجه کيدل) او د خپلو بدو اعمالو د سزا هيڅ خيال ئے په زړه کښ نهٔ وو۔ نو وريځ دوئ ته په آرام آرام رانزدے کيده، آخر دا چه د هغے نه يوه تيزه سيلئ راووته،

(د ابن عباس ﷺ وينا ده چه دا زما د گوتمے د سورى په اندازه راوتلے وه) نو دوى ئے د زمکے نه پورته کړل او بيرته راگوزار کړل چه ذره ذره شول۔

د عبد الله بن عباس ﷺ روايت دے چه اول دوی په عذاب باندے پدے طريقه پوهه شول چه د دوئ د کورونو نه د دوئ سامانونه او گډے بزے هوا داسے پورته کړل چه د آسمان او د زمکے ترمينځ د بنړکو په شان الوتل نو دوی زر خپلو کورونو ته ننوتل او دروازے ئے بندے کړے، نو هوا راغله د دوئ دروازے ئے ماتے کړے او په دوی باندے ئے شړے راوارولے نو دوی اُوه شپے او اته ورځے په شړو کښ پټ وو چه ژړا گانے او چغے سورے ئے وهلے، بيا الله تعالىٰ هوا ته حکم وکړو نو هغے د دوئ نه شړے په بل طرف وارولے او دوئ ئے راپورته کړل او درياب ته ئے وغورزول لکه دے ته په دے قول د الله تعالىٰ کښ اشاره ده۔ (فَأَصْبَحُوا) الآية۔ (فتح البيان)

صرف د هغوی کورونه ليدلے شول، نور هر څه ئے اُف تباه شول۔ دا وجه ده چه رسول الله ﷺ به کله وريځ وليدله نو پريشانه به شو او وئيل به ئے چه الله تعالىٰ د وريځے نه عذاب په يو قوم راوستے وو هسے نهٔ چه زما په امت باندے راشی۔

فَلَمَّا رَاَوْهُ : (ه) ضمير عذاب يا (مَا تَعِدُنَا) ته راجع دے۔ او عَارِضًا صفت دے د موصوف محذوف (سَحَابًا عَارِضًا) وريځه وه چه په پلنو باندے راروانه وه۔

مُّسْتَقْبِلَ اَوْدِيَتِهِمْ: دوئ په کندو او ميدانونو کښ وسيدل، د غرونو په لمنو کښ۔

بَلْ هُوَ مَا اسْتَعْجَلْتُمْ : دلته وقف دے، يعنی دوئ ته په زبان حال سره ووئيل شو۔

يا هود ﷺ دوئ ته ووئيل چه دا هغه عذاب دے چه تاسو به په جلتئ غوختو په (فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا) سره۔

كَذٰلِكَ نَجْزِی : يعنی دا بد انجام يوازے د قومِ عاد سره خاص نهٔ وو، بلکه کوم خلق هم چه شرك او گناهونه کوی، او د سرکشئ لاره غوره کوی، که هغه مکے والا وی اوکه

نور خلق، د دوئ به هم دغسے انجام وی۔

| |
|---|
| وَلَقَدْ مَكَّنَّاهُمْ فِيمَا إِنْ مَكَّنَّاكُمْ |
| او يقيناً ځائے ورکړے وو مونږ هغوی ته په هغه څه کښې چه ځائے نۀ دے درکړے مونږ |
| فِيهِ وَجَعَلْنَا لَهُمْ سَمْعًا وَأَبْصَارًا وَأَفْئِدَةً |
| تاسو ته په هغے کښې او کړخولی وو مونږ هغوی لره غوږونه او سترگے او زړونه |
| فَمَا أَغْنَىٰ عَنْهُمْ سَمْعُهُمْ وَلَا أَبْصَارُهُمْ |
| نو دفع نۀ کړو ددوی نه غوږونو د دوی او نۀ سترگو د دوی |
| وَلَا أَفْئِدَتُهُمْ مِنْ شَيْءٍ إِذْ كَانُوا يَجْحَدُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ |
| او نۀ زړونو د دوی هيڅ شے کله چه وو دوی چه انکارئے کولو د آيتونو د الله تعالیٰ نه |
| وَحَاقَ بِهِمْ مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴿٢٦﴾ وَلَقَدْ |
| او راګير کړل دوی لره هغه څه چه دوی به د هغے پورے توقے کولے۔ او يقيناً |
| أَهْلَكْنَا مَا حَوْلَكُمْ مِنَ الْقُرَىٰ وَصَرَّفْنَا |
| هلاك کړيدی مونږ کلير چاپيره ستاسو نه ډير کلی او قسماقسم بيان کړيدی مونږ |
| الْآيَاتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿٢٧﴾ فَلَوْلَا نَصَرَهُمُ |
| آيتونه دے دپاره چه دوی را اُوګرځی (حق ته)۔ نو ولے مدد اُونکړو د دوی سره |
| الَّذِينَ اتَّخَذُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ قُرْبَانًا آلِهَةً بَلْ ضَلُّوا |
| هغه کسانو چه دوی نيولی وو سوئ د الله نه دپاره د نزديکت معبودان بلکه ورك شو |
| عَنْهُمْ وَذَٰلِكَ إِفْكُهُمْ وَمَا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٢٨﴾ |
| د دوی نه او دا دروغ وو د دوی او هغه خبرے چه دوی به د ځان نه جوړولے۔ |

**تفسير:** دا جواب د سوال دے چه عاديان به پدے وجه هلاك شوی وی چه د هغوی به پاخۀ او مضبوط کورونه او تهخانے نۀ وے چه په هغے کښې پټ شوی وے؟۔ نو الله د هغوی دوه قوتونه ذکر کوی، او يو د عذاب سبب ذکر کوی، او اشاره ده چه د دوی په

هیڅ قوت سره عذاب دفع نکړے شو۔
مَكَّنَّاهُمْ: یو قوت تمکین (قدرت او ځای ورکول) دی، یعنی پاخهٔ مکانونه، غټ بدنونه، ډیر مالونه او ډیر عمرونه، او ډیر شهوات۔
إِنْ مَكَّنَّاكُمْ: إِنْ نافیه دے او مَا موصوله ده په معنیٰ د اَلَّذِیْ۔ یعني هغوی ته مو دومره ډیر قوتونه ورکړی وو چه تاسو ته مو هغه نهٔ دی درکړی۔ دا ظاهری قوتونه شول۔
ترجمه: (او یقیناً طاقت ورکړے وو مونږ هغوی ته په څیزونو کښې چه طاقت نهٔ دے درکړے مونږ تاسو ته په هغے کښې)
وَجَعَلْنَا لَهُمْ سَمْعًا: دا دویم قوت دے یعني باطني قوتونه لکه فهم، إدراك (علم)، هنرمندی، په دنیاوی کارونو کښې هوښیارتیا۔ یعني ښه عقلونه او غټے سترگے او غټ غوږونه ئے لرل چه حق ئے ښه پیژندلے شو لیکن دا ئے په طلب د حق کښې استعمال نکړل۔
فَمَا أَغْنٰى: یعني هرکله چه دوی دا حواس د حق دپاره استعمال نکړل بلکه صرف د دنیاوی علومو او تجربو او خواهشاتو دپاره ئے استعمال کړل، نو په دے هر څومره هوښیارتیا سره د دوئ نه عذاب دفع نشو۔
بیا علمی قوت د مالی قوت نه زیات مضبوط وی نو هرکله چه د دوئ نه علمی قوتونو عذاب دفع نکړو او دوی ته ئے فائده ورنکړه، نو مالی قوت خو په طریقه اولیٰ عذاب نشی دفع کولے، دا وجه ده چه دلته ئے د سمع او بصر فائدهٔ نهٔ ورکول ذکر کړل او د ظاهری قوتونو نهٔ فائده ورکول ئے مقایسةً پریخودل۔
إِذْ كَانُوْا: دا سبب د عذاب ذکر دے۔ معلومه شوه چه څوك د الله د آیتونو نه انکار کوی نو که هرڅومره طاقتونه ورسره وی خو هغوی د ځان نه عذابونه نشی اړولے۔
دویم مطلب: فَمَا أَغْنٰى نه مراد فائده ورکول دی، او إِذْ كَانُوْا د هغے دپاره علت دے۔ او مطلب دا دے چه دوئ ته دغه غوږونو او سترگو او زړونو هیڅ فائده ورنکړه چه دوی پرے د الله تعالیٰ توحید قبول کړے وے، او حق ته راغلی وے، وجه دا وه چه دوئ د مخکښې نه د الله د آیتونو نه انکار کولو نو الله ورله دا سزا ورکړه چه سره د استعدادونو نه الله تعالیٰ د حق نه محروم کړل۔
امام طبریؒ لیکلی دی چه په دے آیتِ کریمه کښې د قریشو خلقو ته گواښ کړے شوے

دے چه كـه دوئ په خپل كفر باندے ټينګ پاتے شول او د هغهٔ رسولان ئے دروغژن ګڼړل، نو د دوئ حشر به هم هغه وی كوم چه د عاديانو وو۔
وَلَقَدْ اَهْلَكْنَا : پدے آيت كښ الله تعالىٰ بيا د همكی وركوی په عذاب دنياوی سره چه د خپلـو خـواوشا كلو د احوالو نه نصيحت واخلئ۔ فرمائی : اے قريشو! ستاسو خوا او شاتـه ګـڼـر كـلی مونږ په تيره شوے زمانه كښ تباه كړل، لكه د قومِ عاد، قومِ ثمود، قومِ لـوط او اصـحـابِ مـديـن كلی، مونږ دا لاندے باندے كړل، او په مختلفو طريقو سره مو دوئ په سمه لاره باندے د راوستو كوشش وكړو، او دوئ مو ډير زيات پوهه كړل چه دوئ د الله او د هـغـهٔ د رسـولانـو د دروغژن ګـڼـړلـو نـه مـنـع شی، ليكن هر تدبير ناكام شو، او څومره مو چه دوائی كوله، هغومره بيماری زياتيده نو مونږ دوئ هلاك كړل، او د دوئ د مدد لپاره هيڅوك رانغلل۔
وَصَرَّفْنَا الْاٰيٰتِ : يـعـنی د پيغمبرانو په ژبه باندے الله تعالىٰ دوی پوهه كړی وو، او بار بـار ئے ورتـه نـخـے او دليـلـونـه مـخـتـلـف قِسم بيان كړی وو دے دپاره چه دوئ د كفر نـه راوګرځی ليكن راونهٔ ګرځيدل۔ آيات نه مراد دليلونه دی، او معجزات هم پكښ داخل دی۔
فَلَوْلَا نَصَرَهُمُ الَّذِيْنَ: دا متعلق دے د (اَهْلَكْنَا) پـورے۔ يـعنی اے د قريشو خلقو ! كه چرے هـغـه قومونه په خپله دے دعوے كښ رشتينی وے چه د كومو بتانو عبادت دوئ كـوی هـغـه بـه دوئ د دوئ رب تـه نـزدے كوی، او د دوئ لپاره به سفارشيان جوړيږی، او دوئ بـه د عذابونو نه خلاصوی، نو بيا ئے دوئ د الله د عذاب نه ولے خلاص نهٔ كړل، هغه وخـت خـو د هـغـوئ هيڅ پتـه نهٔ لګيدله، هركله چه هغوئ په وخت د مصيبت كښ په كـار رانـغـلـل نـو پـه وخت د راحت كښ پرے څوك څهٔ كوی، دا هر څهٔ د دوئ د دروغ تړلو نتيجه وه چه دغه بتان د دوئ معبودان دی، او د الله په نيز به د دوئ سفارشيان جوړيږی۔
قُرْبَانًا : دا مفعول لهٔ دے، اَیْ لِلتَّقَرُّبِ ۔ يـعـنی دپاره د نزدے كولو د دوئ الله تـه۔ يعنی كه دوی پـه حقـه وے نـو څـوك چه الله ته په مشروعو كارونو ځان نزدے كوی، هغوی ته الله تعالىٰ عذاب نهٔ وركوی، نو بيا ئے دوئ ته پدے كار ولے عذاب وركولو۔
قربـان هـغـه شے دے چه بنده پرے ځان الله ته نزدے كوی، لكه طاعت او قربانی وغيره۔
نـو مشركانو بزرګان او اولياء د الله تعالىٰ د نزديكت دپاره وسيلے جوړے كړيدی، وائی چه مونږ چه ددے باباګانو زيارت ته ورشو نو دوئ مونږ الله تـه نزدے كوی۔

وَ ذٰلِكَ إِفْكُهُمْ: ذلك کښې اشاره ده د دوئ نه د دوئ د معبودانو ورك كيدو ته۔ او إِفْكُهُمْ کښې مضاف پټ دے اَیْ اَثَرُ إِفْكِهِمْ۔ يعنى دا ورك كيدل د بتانو د دوئ د دروغو اثر وو۔ كه دا رشتيني وے نو په دغه وخت کښې به ورته د دوی آلهه رابښكاره شوى وے۔

وَمَا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ: دا عطف دے په (إِفْكُهُمْ) بـانـدے۔ يعنى دا اثر د دوی د افتراء وو چه په الله باندے ئے دروغ جوړ كړى وو چه دا بتان الله مقرر كړيدى۔ نو د دوى دوه عقيدے ذكر شوے، يو آلهه نيول يعنى هغوى لره بندگى كول، او دويم دعوىٰ د تقرب الى الله كول، نو ددے وجه نه ئے دوه الفاظ ذكر كړل افك او افتراء۔

| |
|---|
| وَإِذْ صَرَفْنَا إِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ الْجِنِّ يَسْتَمِعُوْنَ الْقُرْآنَ |
| او كله چه راواړول مونږ تا ته څه كسان د پيريانو نه چه غوږ ئے كيخودو قرآن ته |
| فَلَمَّا حَضَرُوْهُ قَالُوْا أَنْصِتُوْا فَلَمَّا قُضِيَ |
| نو هر كله چه دوى حاضر شول هغۀ ته وے وئيل چپ شئ نو هر كله چه پوره شو |
| وَلَّوْا إِلٰى قَوْمِهِمْ مُّنْذِرِيْنَ ﴿٢٩﴾ قَالُوْا يَا قَوْمَنَا |
| (لوستل د قرآن) وگرځيدل قوم خپل ته يره وركونكى۔ اُووئيل دوى اے قومه زمونږ |
| إِنَّا سَمِعْنَا كِتَابًا أُنْزِلَ مِنْ بَعْدِ مُوْسٰى |
| يقيناً مونږ واوريدو يو كتاب چه نازل شويدے روستو د موسىٰ (عليه السلام) نه |
| مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ يَهْدِيْ إِلَى الْحَقِّ |
| تصديق كونكے دے د هغه كتابونو چه مخكښې ددۀ نه دى، هدايت كوى حق طرفته |
| وَإِلٰى طَرِيْقٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٣٠﴾ يَا قَوْمَنَا أَجِيْبُوْا دَاعِيَ اللّٰهِ |
| او لارے نيغے ته۔ اے قومه زمونږ ! خبره اُومنئ د دعوت وركونكى د الله تعالىٰ |
| وَآمِنُوْا بِهٖ يَغْفِرْ لَكُمْ مِّنْ ذُنُوْبِكُمْ |
| او ايمان راوړئ په دۀ باندے بخنه به وكړى تاسو ته د گناهونو ستاسو نه |
| وَيُجِرْكُمْ مِّنْ عَذَابٍ أَلِيْمٍ ﴿٣١﴾ وَمَنْ لَّا يُجِبْ دَاعِيَ |
| او بچ به كړى تاسو لره د عذاب دردناك نه۔ او چا چه خبره اُونۀ منله د دعوت وركونكى |

| اللهِ فَلَيْسَ بِمُعْجِزٍ فِي الْأَرْضِ وَلَيْسَ لَهُ |
|---|
| د الله تعالیٰ نو نهٔ دے هغه عاجز کونکے د الله په زمکه کښې او نهٔ به وی دهٔ لره |
| مِنْ دُونِهِ أَوْلِيَاءُ ۚ أُولَٰئِكَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴿٣٢﴾ |
| سوئ د الله نه دوستان (مددگاران) دا کسان په گمراهئ ښکاره کښې دی۔ |

**تفسیر** : پدے آیتونو کښې په اِعراض والو باندے یو قسم رد دے په ذکر د بعض نیکانو پیریانو۔ (۱) حاصل دا دے چه تاسو خو اعراض کوئ لیکن د الله نور غیبی مخلوق شته چه هغه د الله د کتاب منونکی دی، هغوی کښې خیر کم دے، بیا ئے هم د الله کتاب منلے دے، او انسانانو کښې خیر زیات دے او تاسو بیا هم اعراض کوئ او ځان ته هوښیار خلق هم وایئ او حق نهٔ منئ۔

(۲) او پدے کښې (وَمَنْ لَّا يُجِبْ دَاعِيَ اللهِ) جمله مقصودی ده، یعنی ددے نبی نه اعراض کول او ددهٔ خبره نهٔ منل سبب د هلاکت دے۔

(۳) اے نبی ! دین بیانوه که دوی نهٔ منی نو الله سره داسے خلق شته چه د بل ځای خلق به ئے ومنی، او دا واقعی خبره ده چه د دعوت ضرور اثر وی، که دلته ئے څوك نهٔ منی د بل ځای نه ورله الله تعالیٰ خلق راولی۔

(٤) اشاره ده چه نبی کریم ﷺ د انسانانو پشان پیریانو ته هم نبی رالیږلے شوے وو، او پیریانو د هغهٔ په ژبه قرآنِ کریم واوریدهٔ، او په دوئ کښې چه چاله الله توفیق ورکړو هغوئ په نبی ﷺ ایمان راوړو او د اسلام په حلقه کښې را ننوتل۔

په ذکر شوی آیتونو کښې چه د جِناتو کومه واقعه ذکر شوے، ددے په باره کښې محمد بن اسحاقؒ د محمد بن کعب قرظیؒ نه روایت کړے چه دا واقعه هغه وخت راپیښه شوه کله چه نبی ﷺ د طائف والو د اسلام نه نا امیده شو او مکے مکرمے ته واپس کیدلو، او د شپے په وادی نخله (یا بطن نخله) کښې ایسار شو، نو د نَصیبین (علاقے) پیریانو د هغهٔ د ژبے نه د قرآن کریم تلاوت واوریدهٔ۔

او اصل واقعه دا وه چه پیریان به بره آسمان ته ختل، ملائکو ته به ئے غوږ کیخودو نو هغوی به ورته دومره څه نهٔ وئیل، کله چه نبی کریم ﷺ مبعوث شو، نو دوی پسے به ستوری راخوشے کیدل نو دوی تعجب وکړو چه په مونږ باندے مخکښې دومره زیاته

پابندی نهٔ وه، دا څهٔ چل به شوے وی نو دوی ابلیس ته شکایت وکړو، هغه ووئیل چه یا خو الله د خیر اراده کړیده چه زمکے والو ته یو نبی رالیږی یا په دوی کوم عذاب رالیږی، فَاضۡرِبُوۡا مَشَارِقَ الۡاَرۡضِ وَمَغَارِبَهَا ۔ تاسو د زمکے مشرقونه او مغربونه ولټوئ (څکه پیریان په جلتئ سره سفرونه کولے شی، الوزی) لږ کسان د نصیبین علاقے ئے په حجاز لټولو مقرر کړل نو دے وخت کښ رسول الله ﷺ مبعوث شویدے، او د عکاظ میلے ته روان دے، د بطن نخله د دوه غرونو ترمینځ او بعض ملګری لکه زید بن حارثه ورسره وو نو دوی سهار مونځ په جهر کولو، دغه پیریان چه راغلل تعجب ئے وکړو چه دا څوك دی چه په تیارهٔ کښ راغوند شویدی او څه لولی۔

غوږ ئے کیخودو، یو بل ته ئے ووئیل چه غلی شئ نو دوی قرآن واوریدو، او سمدست د هغهٔ په رسالت او د هغهٔ په دعوت پو هه شو چه دا خو د الله رسول دے، ډیر هوښیار خلق وو، انابت پکښ وو، او پدے موقعه کښ ئے رسول الله ﷺ ته خبر هم ورنکړو او لاړل خپل قوم ته ئے د ایمان او د توحید دعوت ورکړو، نو الله تعالیٰ د دوئ دا خبرے دومره خوښے شوے چه په وحی کښ ئے راولیږلے۔ او په مشرکانو ئے رد وکړو چه که تاسو ئے نهٔ منئ نو نور مُنیبین خلق شته هغه به ئے ومنی۔

دا واقعه حاکمؒ، ابن مردویهؒ، ابو نعیمؒ او بیهقیؒ هم اختصار سره روایت کړے، چه په دے کښ راغلی دی چه ددے پیریانو شماره نهه وه، او په دوئ کښ د یو کس نوم زوبعهٔ وو۔ د مسند احمدؒ په یو صحیح روایت کښ دی چه دغه وخت نبی ﷺ د ماسخوتن مونځ کولو۔ د روایتونو نه اندازه کیږی چه رسول الله ﷺ ته د پیریانو د راتګ او د قرآن کریم د اوریدو پته هغه وخت اولګیده کله چه دا آیتونه په نبی ﷺ باندے نازل شول۔

دا اوه کسان د نصیبین وو او درے کسان د حُرّان وو۔

ددے نه روستو رسول الله ﷺ ته پیریان بار بار راغلی دی، هغه ورسره بیانونو ته ورغلے دے، کله به راغلل د مسئلو تپوسونه به ئے کول، یوه ورځ ئے ووئیل چه زمونږ دپاره تحفه به څهٔ وی؟ نو رسول الله ﷺ وفرمایل: هره پچه او خوشیانو کښ به تاسو دانے مونده کوئ او هډوکو باندے به غوښه مونده کوئ، خو دانے ئے حیوانات خوری او هډوکی پیریان۔ نو نبی کریم ﷺ وفرمایل : تاسو پدے دواړو باندے استنجاء مهٔ کوئ [فَاِنَّهٗ زَادُ اِخۡوَانِکُمۡ مِنَ الۡجِنِّ] دا ستاسو د پیریانو ورونو توښه ده۔

الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ مخاطب کوی فرمائی چه تهٔ د مکے کافرانو ته هغه ورځ وریاده

کړه کله چه مونږ د پیریانو یوه ډله تاته را اُورسوله، دے دپاره چه ستا په ژبه قرآن کریم واوري. کله چه هغوئ ستا خواته راغلل نو تا د قرآن تلاوت کولو، هغوئ یو بل ته اووئیل چه ټول غلي شئ، او قرآن په غور سره واورئ.

د نبي ﷺ تلاوت آوریدو سره پیریان ډیر متاثره شول، او په هغوئ ﷺ ئے ایمان راوړو، نو د تلاوت ختیمدو نه فوراً پس ټول خپل قوم ته واپس لاړل او هغوئ ته ئے ووئیل چه مونږ د هغه قرآن کریم تلاوت آوریدلے دے چه هغه د موسیٰ ﷺ د تورات نه پس د انسانانو د هدایت لپاره د الله تعالیٰ له خوا نازل شوے دے. ځوك چه په دے ایمان نهٔ راوړي هغهٔ لپاره هیڅ خیر نشته.

اَنصِتوا: انصات په مقابله د شور کښې استعمالیږي، نو دا دلیل دے چه دا د ځان سره قرائت کولو منافي نهٔ دے. خو د شور سره منافي دے. او دا ادب د قرآن دے، او ددے وجه نه دوئ ته هدایت ورنصیب کړے شو.

کِتَابًا: کتاب ته دعوت دا بعینه رسول ته دعوت وي.

وَلَّوۡا اِلٰی قَوۡمِهِمۡ: یعنی دوئ د هغه وخت نه پدے اراده خپل قوم ته روان شو چه دوی به اِنذار کوی، او پدے کښې هر هغه چا دپاره تیزي ده چه ځوك علم د قرآن او حدیث حاصل کړي نو هغه دے خپل قوم ته ورسوی.

قَالُوۡا یَا قَوۡمَنَا: پیریانو خپله خبره جاري اُوساتله وئیلے: اے زمونږ د قوم خلقو! قرآن د آسماني کتابونو (د ابراهیم ﷺ د صحیفو، تورات او زبور او انجیل وغیره) تائید او تصدیق کوی، یعني ددے دعوت هم همغه د توحید دعوت دے کوم چه د نورو آسماني کتابونو دعوت وو. دا قرآن حق دین او نیغے لارے طرفته رهنمائي کوی.

مِنۡ بَعۡدِ مُوۡسٰی: موسیٰ ﷺ ئے ذکر کړو نهٔ عیسیٰ ﷺ ځکه چه دا پیریان یهودیان وو، لکه عطاءؒ وئیلي دي. یا د عیسیٰ ﷺ نه خبر شوی نهٔ وو، ځکه چه د هغهٔ د نبوت زمانه کمه وه. او یهودیان په دنیا کښې زیات وو، یا موسیٰ ﷺ اتفاقي پیغمبر وو او عیسیٰ ﷺ یهودو نهٔ منلو.

خازنؒ لیکلي دي چه د انسانانو غوندے په پیریانو کښې هم د مختلفو اَدیانو او مذاهبو منونکي شته دے. په دوئ کښې هم یهود نصاریٰ، مجوس او د بتانو عبادت کونکي شته دے. او د دوئ په مسلمانانو کښې ځینے بدعتیان وي او ځینے باطلو عقائدو والا وي.

اِلَی الۡحَقِّ: د حق نه مراد صحیح عقیده ده چه امر یقیني او واقعي دے او د طریق

مستقیم نه مراد اتباع د رسول ده یعنی د قرآن خلاصه توحید او اتباع سنت ته دعوت دے۔

یَا قَوْمَنَا أَجِيبُوا: اے خلقو ! د الله په رسول محمد ﷺ باندے ایمان راوړئ، او د هغهٔ د توحید دعوت قبول کړئ، الله تعالیٰ به ستاسو هغه گناهونه وبخښی کوم چه ستاسو او ددے ترمینځه شوی وی (البته هغه گناه چه د هغے تعلق د بندګانو د حقونو سره وی، هغه خو به یا هغه بندګان معاف کوی، یا دا چه هغوئ ته به د هغوئ حقونه واپس کړے شی) او تاسو به د اُور د دردناك عذاب نه خلاص کړی۔

اجیبوا : اجابت عملاً وی چه ددهٔ دین باندے عمل وکړئ او (آمِنُوا بِهِ) کښ د زړهٔ تصدیق مراد دے۔ یعنی دا عملاً او قلباً ومنئ۔ یعنی ظاهر او باطن دواړه جوړ کړئ۔

مِّنْ ذُنُوبِكُمْ : مِنْ تبعیضیه ئے راوړو اشاره ده هغه گناهونو ته چه تاسو ترے توبه وېستلی وی، د کوم نه چه توبه نهٔ وی وېستلے شوی هغه نهٔ معاف کیږی۔

## آیا پیریان به جنت ته ځی؟

شوکانیؒ لیکی دا آیت ددے خبرے دلیل دے چه په اوامرو او نواهیو او ثواب او عذاب کښ پیریان او انسانان برابر دی۔ مالكؒ، شافعیؒ او ابن ابی لیلیٰؒ وغیره همدا رائے لری۔ او حسن بصریؒ او امام ابوحنیفةؒ رائے دا ده چه د مومنو پیریانو ثواب دادے چه دوئ د اُور د عذاب نه خلاص کړے شی، ددے نه پس به دوئ د ځناورو پشان خاورے شی، جنت ورله نشته۔

شوکانیؒ اولنئ رائے غوره کړے ده ځکه چه الله تعالیٰ د سورتِ رحمٰن په (۴۷/۴۷) آیتونو کښ فرمائیلی : ﴿ وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ (او هغه کس دپاره چه هغه د خپل رب په مخ کښ د اُودریدو نه یریږی دوه جنتونه دی، نو تاسو د خپل رب کوم کوم نعمت دروغژن گنړئ)۔ ﴿ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنْسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَانٌّ ﴾ (یعنی دا حورے د دوئ نه مخکښ نهٔ انسانانو مسه کړیدی او نهٔ پیریانو)۔

یعنی جنت به د پیریانو او انسانانو دواړو مومنانو ته ملاویږی۔ او د عقل او عدل او انصاف تقاضا هم داده چه هر کله کافر پیریان په جهنم کښ واچولے شی نو د دوئ مومنانو له به جنت او ددے نعمتونه ورکړے کیږی۔

أَوَلَمۡ يَرَوۡا أَنَّ اللَّهَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ

آیا دوی نهٔ کوری چه بیشکه الله تعالیٰ هغه ذات دے چه پیدا کړی ئے دی آسمانونه

وَالۡأَرۡضَ وَلَمۡ يَعۡيَ بِخَلۡقِهِنَّ بِقَادِرٍ عَلَىٰ أَنۡ يُحۡيِيَ

او زمکه او نهٔ دے ستړے شوے په پیدائش د دوی، قادر دے پدے چه راژوندی کړی

الۡمَوۡتَىٰ بَلَىٰ إِنَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٍ قَدِيرٌ ﴿٣٣﴾ وَيَوۡمَ

مړی، ولے نهٔ یقیناً هغه په هر شی باندے قدرت لرونکے دے۔ او په کومه ورځ

يُعۡرَضُ الَّذِينَ كَفَرُوا عَلَى النَّارِ أَلَيۡسَ هَٰذَا بِالۡحَقِّ قَالُوا بَلَىٰ

چه پیش به کړے شی کافران په اُور باندے آیا نهٔ دے دا حق، وائی به دوی آؤ،

وَرَبِّنَا قَالَ فَذُوقُوا الۡعَذَابَ بِمَا

قسم دے په رب زمونږ، وبه وائی الله پس اُوځکئ عذاب په سبب ددے چه

كُنۡتُمۡ تَكۡفُرُونَ ﴿٣٤﴾ فَاصۡبِرۡ كَمَا صَبَرَ أُولُوا

تاسو به انکار کولو (ددے نه)۔ نو صبر کوه لکه څنګه چه صبر کړے دے خاوندان

الۡعَزۡمِ مِنَ الرُّسُلِ وَلَا تَسۡتَعۡجِلۡ لَهُمۡ كَأَنَّهُمۡ

د کلك همت د رسولانو نه او جلتی مهٔ کوه د دوی دپاره (د عذابونو) ګویا که دوی

يَوۡمَ يَرَوۡنَ مَا يُوعَدُونَ

په هغه ورځ چه وبه وینی دوی هغه عذاب چه دوی سره ئے وعده کیدے شی،

لَمۡ يَلۡبَثُوا إِلَّا سَاعَةً مِنۡ نَهَارٍ بَلَاغٌ

دوی نهٔ دی ایسار شوی مګر یو ساعت د ورځے نه، دا رسول دی

فَهَلۡ يُهۡلَكُ إِلَّا الۡقَوۡمُ الۡفَاسِقُونَ ﴿٣٥﴾

پس نهٔ به شی هلاکولے (په عذاب سره) مګر قوم نافرمانی کونکی۔

**تفسیر:** اولـم: دا آیت متعلق دے د (۱۷) آیت سره چه یو کافر وئیلی وو ﴿وَقَدۡ خَلَتِ

الْقُرُوْنُ مِنْ قَبْلِیْ﴾ مخکښې ډیر خلق تیر شوی دی، یو هم راژوندے نشو نو قیامت به نهٔ راځی۔ نو الله دلته د هغه په رد کښې دلیل پیش کوی، دا د اثبات د آخرت دپاره دلیل هم دے، او ورسره نزدے آیت سره ئے مناسبت هم دے، چه الله تعالیٰ مجرم ته په عذاب ورکولو قادر دے ځکه چه الله تعالیٰ داسے قدرت والا دے۔

یعنی آیا دوئ په دے خبره هم نهٔ پو هیږی چه کوم قادرِ مطلق ذات آسمانونه او زمکه په غیر د څهٔ نمونے لیدلو نه اول ځل پیدا کړی، او د دوئ په پیدائش سره هغهٔ ته څهٔ ستومانی او پریشانی رسیدلے نهٔ ده، هغه یقینًا د مړو په دوباره ژوندی کولو قادر دے، ځکه چه هغه په هر شئ باندے قادر دے۔

وَيَوْمَ يُعْرَضُ : دا د اجابت سره لګی۔ اَیُ اِنْ لَّمْ يُجِيْبُوا الْيَوْمَ فَسَيُجِيْبُوْا يَوْمًا ۔ یعنی که دوی اُوس خبره نهٔ منی نو زردے چه یوه ورځ به ئے ومنی او اقرار به وکړی۔ او دا د يُحْيِ الْمَوْتٰی بیان هم دے چه الله تعالیٰ مړی راژوندی کړی نو څه به کیږی، نو فرمائی چه کافران به الله تعالیٰ په اُور باندے پیش کوی۔

اَلَيْسَ هٰذَا: هذا اشاره ده عرض عَلَی النَّار (اُور باندے پیش کیدو) ته۔ یا هذا مړی ژوندی کولو ته اشاره ده۔

یعنی د قیامت منکر کافران چه کله جهنم کښې اوغورزولے شی، دے وخت کښې به الله دوئ نه پوښتنه وکړی چه آیا اُوس هم تاسو پیژنئ چه مړی دوباره ژوندی کیدل حق نهٔ دی؟ نو هغوئ به وائی چه اے زمونږ ربه! اُوس خو دا حقیقت زمونږ دپاره داسے ښکاره شوے چه مونږ هرګز ددے نه انکار نشو کولے۔ بیا به الله دوئ ته ووائی چه بیا تاسو د خپل کفر په وجه اوس په همدے جهنم کښې سوزئ۔

فَاصْبِرْ كَمَا صَبَرَ : اُوس په آخر کښې الله تعالیٰ په درے خبرو امر کوی، په صبر، په جلتی نهٔ کولو او په تبلیغ کولو باندے۔

مناسبت ئے د اَول د سورت سره دے ﴿وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَمَّا اُنْذِرُوْا مُعْرِضُوْنَ﴾ یعنی دوی ستا د اِنذار نه اعراض کوی، او اِعراض سره بنده له غصه ورځی او تنګ شی نو هغوی ته ښیرے کوی چه اے الله! په دوئ باندے زر عذاب راوله ځکه چه انسان کمزورے دے، نو ځکه الله تعالیٰ خپل نبی ته د صبر حکم وکړو۔ او د نبی ﷺ نه مخکښې چه کوم اولو العزم (ډیر لوئے جلیل القدر، استقامت والا) پیغمبران تیر شوی، د هغوئ سیرت د خپل ځان دپاره د نمونے جوړولو نصیحت ئے کړے دے۔

أُولُوا الْعَزْمِ مِنَ الرُّسُلِ: ۱- مِنْ بیانیه دے نو ټول رسولان د لوی عزم او استقامت والا وو. ۲- یا مِنْ تبعیضیه دے، چه ددے نه ئے آدم علیه السلام او یونس علیه السلام بهر کړیدی، د آدم علیه السلام په باره کښې ئے فرمایلی ﴿ وَلَمْ نَجِدْ لَهُ عَزْمًا ﴾ او د یونس علیه السلام په باره کښې ئے فرمایلی : ﴿ وَلَا تَكُنْ كَصَاحِبِ الْحُوْتِ ﴾

ابن ابی حاتمؒ او ابن مردویهؒ د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کړے چه د اولو العزم انبیاؤ نه مراد نوح، ابراهیم، موسیٰ او عیسیٰ علیهم السلام دی. بعضو د دوئ شمیره شپږ او بعضو نهه ښودلے. او دوئ نه مراد هغه انبیاء کرام دی چه هغوئ د حق دعوت په لاره کښې داسے تکلیفونه پورته کړی دی کوم چه د نورو انبیاؤ د طاقت نه بهر خبره وه. غوره دا ده چه ټول رسولان اولوا العزم دی، خو پدے کښې بعض د بعضو نه پورته دی.

أُولُوا الْعَزْمِ: د عزم نه مراد پوخ پاتے کیدل دی په دین باندے سره د هر قسم مصیبتونو نه بغیر د شکایت نه مخلوق ته.

او دا صبر د مخالفینو د ردو بدو او کنځلو او د دوئ په تکلیفونو باندے دے، او د دین په بیانولو باندے همیشوالے کول دی. او دا په باب د دعوت کښې مراد دے، نو آیت منسوخ نهٔ دے.

وَلَا تَسْتَعْجِلْ لَّهُمْ: یعنی د قریشو د ظلم او سرکشئ نه زړهٔ ماتے کیږه مهٔ او دوئ لپاره عذاب په جلتئ سره مهٔ غواړه، ځکه چه دوئ باندے عذاب راروان دے، دا خو دومره نزدے دے چه کله کافران خلق د قیامت د ورځے تباهی په خپلو سترګو اووینی، نو د دیرے ویرے نه به هیر کړی چه دوئ په دنیا کښې څومره ورځے ایسار شوی وو. دا یو ساعت وو د ورځے نه. په سورة یونس (٤٥) آیت کښې هم ﴿ سَاعَةً مِّنَ النَّهَارِ يَتَعَارَفُوْنَ بَيْنَهُمْ ﴾ ذکر شوے وو، او په سورة الروم (٥٥) آیت کښې وو ﴿ مَا لَبِثُوْا غَيْرَ سَاعَةٍ ﴾ او په سورة طه (١٠٤) آیت کښې وو ﴿ اِنْ لَّبِثْتُمْ اِلَّا يَوْمًا ﴾ او سورة المؤمنون (١١٣) آیت کښې ﴿ يَوْمًا اَوْ بَعْضَ يَوْمٍ ﴾ او په سورة النازعات (٤٦) آیت کښې ﴿ عَشِيَّةً اَوْ ضُحَاهَا ﴾ وو، نو ټوله دنیا د یوے ورځے مثال لری، بیا به څوک یوه ورځ یا نیمه ورځ یادوی، او څوک به یوه ګینټه او څوک سهار یا ماښام، دا د ټولے دنیا حیثیت دے.

بَلَاغٌ: (۱) چا وئیلی دی چه دا د (لَمْ يَلْبَثُوْا) سره متعلق دے، اَيِ اللُّبْثُ بَلَاغٌ . یعنی د دوی دا وخت تیرول په دنیا کښې د رسولو دپاره دی، الله تعالیٰ ئے خپلے نیتے ته رسوی.

(۲) لَيْسَ لِلرَّسُوْلِ الْاِسْتِعْجَالُ عَلَيْهِمْ بَلْ عَلَيْهِمْ بَلَاغٌ . یعنی د رسول دپاره په قوم باندے

جلتی نۀ ده پکار بلکه په دوی باندے دوی ته تبلیغ کول لازم دی۔
(۳) مشهور او ښه تفسیر دا دے چه بلاغ صفت د قرآن دے لکه سورة ابراهیم په آخر کښں ذکر شوے وو۔ (هٰذَا بَلَاغٌ لِلنَّاسِ) اَیْ هٰذَا الْقُرْآنُ بَلَاغٌ۔
یعنی دا قرآن د خلقو دپاره تبلیغ دے۔ او دا معنیٰ د موضوع د سورت سره ښه لګی۔ وجه دا ده چه کافرانو د قرآن نه اعراض کړے وو، نو ورته وویل شو چه ما تاسو ته د قرآن په وجه تبلیغ وکړو اُوس که تاسو اعراض کوئ نو هلاك به شئ، زما نبی ته هیڅ ضرر نشته۔ دے سره دا روستو جمله هم ښه لګیږی یعنی کوم خلق چه پس د تبلیغ نه فسق اختیاروی هغه به هلاکیږی۔
(٤) دے کښں دا هم جائز ده چه بلاغ په معنیٰ د کِفَایَةٌ سره دے، یعنی دا قرآن او کومے خبرے چه پورته بیان شوے، د مکے د مشرکانو د عبرت او نصیحت لپاره کافی دی۔ نو دوئ له پکار دی چه عبرت حاصل کړی او د اسلام په کړئ کښں راننوځی۔اوکه چرے دوئ د کفر او شرك نه توبه نۀ کړه نو دوئ له پیژندل پکار دی چه د الله عذاب هغه خلق تباه کوی کوم چه د خپل رب نافرمان او سرکشه بندګان وی۔
بعض مفسرینو وئیلی دی چه دا آیت په قرآن کښں د ډیر امید والا آیت دے ځکه چه پدے آیت کښں الله فرمائی : چه صرف فاسقان (د الله د طاعت نه وتونکی) هلاکیږی او چا کښں چه څۀ نا څه خیر دے هغه نۀ هلاکیږی۔ وبالله التوفیق۔

## امتیازات

۱- پدے سورت کښں زجر بالاعراض زیات وو۔
۲- شرك فی الدعاء والا ته ئے اضل وئیلے دے۔
۳- د صدق الرسول دپاره ډیر دلیلونه بیان شو۔
٤- د مور او پلار منونکی او نۀ منونکو حال پکښں بیان شو۔
۵- د پیریانو د راتللو خبر پکښں بیان شو۔

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝

| رکوعاتها (٤) | (٤٧) سورة محمد مدنية (٩٥) | آياتها (٣٨) |
|---|---|---|

سورتِ محمد مدني دے، په دے کښې اته ديرش آيتونه او څلور رکوع دي

## تفسير سورة محمد

ددے ځاى نـه تـريـو حد پورے مـدنـى سـورتونـه ذکر کيږى لکـه دا سورت او فتح او حجرات درے واړه مدنی دی۔

نوم : (١) سورتِ محمد دے، (٢) او بل نوم ئے سورتِ قتال دے، کوم چه د (٢٠) آيت ﴿فَإِذَآ أُنزِلَتْ سُورَةٌ مُّحْكَمَةٌ وَذُكِرَ فِيهَا الْقِتَالُ رَأَيْتَ الَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ نَظَرَ الْمَغْشِيِّ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ﴾ نه اخستے شوے۔

د نازليدو زمانه : د ماوردیؒ وينا ده چه دا سورت د ټولو په نيز مدني دے۔ ابن عباس ﷺ او قتادةؒ د (١٣) آيت : ﴿وَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ هِيَ أَشَدُّ قُوَّةً مِّن قَرْيَتِكَ﴾ پـه باره کښې وئيلى چه دا آيت د حجة الوداع نـه پس مکے ته د روانيدو په وخت نازل شوے وو، دے وخت کښې د نبی کريم ﷺ د سترګو نه اوښکے روانے وے۔

### مناسبت

١- مخکښې سورت کښې مسئله د توحيد بيانه شوه چه د الله تعالیٰ بندګی وکړئ او د غير مه کوئ۔ نو دلته امر کوی په قتال د مشرکانو۔

٢- فَهَلْ يُهْلَكُ إِلَّا الْقَوْمُ الْفَاسِقُونَ سره ئے مناسبت دے چه فاسقان کوم خلق دی؟ نو دلته وائی چه ﴿اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللهِ﴾۔ يعنی دلته د فاسقانو د هلاکت علت او وجه بيانوی۔

٣- مخکښې د توحيد، د رسالت، د قرآن او قيامت خبره وشوه نو دلته اُوس ددے عقيدے د حفاظت او ترقئ دپاره قتال او انفاق فی سبيل الله بيانوی۔

## د سورت موضوع

۱ – زمونږ مشائخ فرمائی: امر کوی په قتال فی سبیل الله سره په ذکر د اتلسو احوالو د کافرانو او هغه علتونه د قتال دی، او اتلس صفات د مؤمنانو ذکر کوی دپاره د تیزئ ورکولو په قتال باندے، او اتلس قبائح د منافقانو ذکر کوی چه هغه صفتونه مانع د قتال دی، او دعوه د توحید چه مقصد د قتال دے په آیت (۲۹) کښ ذکر ده۔

۲ – دویمه موضوع: اَلْفَرْقُ بَیْنَ الْکَافِرِیْنَ وَالْمُؤْمِنِیْنَ فِیْ ضِیَاعِ الْعَمَلِ وَالْاِنْتِفَاعِ بِالْعَمَلِ۔

یعنی د کافرانو او مؤمنانو ترمینځ فرق ذکر کوی په عمل ضائع کیدو او په هغے باندے په فائدے اخستو کښ۔ یعنی د کافر عمل برباد دے دنیا کښ صرف لږه دنیاوی فائده ترے واخلی، او د مؤمن عمل ډیر قیمتی دے، دنیا او آخرت کښ فائده ورکوی۔

ددے وجه نه (اَضَلَّ اَعْمَالَهُمْ) لفظ پکښ زیات ذکر دے۔ (فَاَحْبَطَ اَعْمَالَهُمْ) (فَلَنْ یُّضِلَّ اَعْمَالَهُمْ) (وَاتَّبَعُوْا اَهْوَآءَهُمْ) په آخر د سورت کښ فرمائی: صحیح عمل وکړئ او که د صحیح عمل نه واوړیدئ نو الله به ستاسو په شان نور خلق راولی۔

﴿وَاِنْ تَتَوَلَّوْا یَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَیْرَکُمْ﴾

نو په سورت کښ ترغیب دے چه د مؤمنانو په شان عمل وکړی، او ترهیب دے د عمل د کافرانو نه، چه هغه هلاکیدونکے دے،

بیا د مؤمنانو اعمال ئے بیان کړیدی چه هغه ایمان دے، جهاد، شهادت موندل، هجرت کول، انفاق فی سبیل الله، طاعة الرسول، تدبر قرآن، د رسول الله ﷺ پوره تابعداری۔ د کافرانو اعمال ئے خودلی دی چه هغه مکر کول دی د حق په مقابله کښ، اتباع الهوی، اتباع الباطل، د کفارو ملګرتیا کوی،

﴿یَتَمَتَّعُوْنَ وَیَاْکُلُوْنَ کَمَا تَاْکُلُ الْاَنْعَامُ﴾ – د چارپیانو په شان خوراک کوی، لَا یَهْتَدُوْنَ بِهَدْیِ النَّبِیِّ ﷺ – د رسول الله ﷺ په طریقه روان نهٔ دی، د جهاد نه پټیدونکی دی، د کافرانو جاسوسان دی، د الله منزل کتاب بد ګڼړی، بخل، تولی کوی، او دا ټول اعمال ضائع دی۔ نو یواځے د قتال موضوع پکښ نهٔ ده۔

او پدے سورت کښ به فرقونه د مؤمن او د کافر او منافق زیات بیانیږی، او د رسول الله ﷺ تابعدارئ او جهاد ته ئے ترغیب ورکړے۔

| اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ أَضَلَّ |
|---|
| هغه کسان چه کفر ئے کړیدے او منع کوی خلق د لارے د الله نه، الله برباد کړیدی |
| أَعْمَالَهُمْ ﴿۱﴾ وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ |
| عملونه د دوی۔ او هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے او عملونه ئے کړیدی نیک |
| وَآمَنُوْا بِمَا نُزِّلَ عَلٰى مُحَمَّدٍ |
| او ایمان ئے راوړیدے په هغه کتاب چه نازل کړے شویدے په محمد (ﷺ) باندے |
| وَهُوَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ كَفَّرَ عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ وَأَصْلَحَ |
| او دا حق دے د طرف د رب د دوی نه، وبه رژوی د دوی نه گناهونه د دوی او برابر به کړی |
| بَالَهُمْ ﴿۲﴾ ذٰلِكَ بِأَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوا اتَّبَعُوا |
| حال د دوی۔ دا پدے وجه چه یقیناً هغه کسان چه کفر ئے کړیدے تابعداری ئے کړیده |
| الْبَاطِلَ وَأَنَّ الَّذِيْنَ آمَنُوا اتَّبَعُوا الْحَقَّ |
| د باطل او یقیناً هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے تابعداری ئے کړیده د حق |
| مِنْ رَّبِّهِمْ كَذٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ لِلنَّاسِ أَمْثَالَهُمْ ﴿۳﴾ |
| د طرفه د رب د دوی نه، دغسے بیانوی الله تعالیٰ خلقو ته صفتونه (حالات) د دوی۔ |

**تفسیر** : په دے درے واړو آیتونو کښې د نیکانو او گنهگارو صفتونه او د هغوی ثواب او عذاب ذکر شویدے، دے دپاره چه خلق په دے کښې غور او فکر وکړی، گناهونو نه ډډه وکړی، او د نیکئ او ښیگړے لاره اختیار کړی۔

الله تعالیٰ وفرمایل چه د کفر او گمراهئ کومو سردارانو چه د الله او د هغهٔ د آیتونو نه انکار وکړو، د الله د توحید نه منکر شول، او د دروغژنو معبودانو عبادت ئے وکړو، او خپل ځان او نور خلق ئے په دینِ اسلام کښې د داخلیدو نه منع کړل، الله تعالیٰ د رسول الله ﷺ په خِلاف د دوئ سازشونه ناکام جوړ کړل، بلکه هغه ئے د هغوئ د مریو پلواښهٔ جوړ کړو، او د قیامت په ورځ به د هغوئ هغه نیک عملونه هم ضائع شی کوم به چه هغوئ د کفر په حالت کښې کول، او توقع به ئے ساتله چه دوئ ته به اجر ملاؤ شی۔

اَعْمَالَهُمْ: ۱- ددې عملونو نه یا خو نیك عملونه مراد دي چه د هغې سره ئې شرك او کفر ملګرې کړې وي لکه عبادات، ښائسته اخلاق، قیدیان آزادول، صدقات کول، خپلولي پالل وغیره، دا ټول د کفر د وجه نه برباد دي. په آخرت کښې ئې هیڅ اجر نشته.

۲- یا ددې نه بد عملونه مراد دي لکه مکرونه او چلونه جوړول د حق په مقابله کښې نو هغه هم برباد دي، اشاره ده چه اې کافرانو! تاسو د رسول الله ﷺ په مقابله کښې مکرونه او چلونه جوړوئ دغه به هم تباه شي. او الله تعالیٰ همیشه په قرآن کریم کښې کافرانو ته وائي چه تاسو به د حق په مقابله کښې مغلوبه کیږئ.

وَالَّذِیْنَ آمَنُوْا: او کومو خلقو چه په تمامو آسماني کتابونو باندې په عامه توګه او په نبي کریم ﷺ باندې په نازل شوي قرآن باندې په خاصه توګه ایمان راوړو، دوئ سره د الله وعده ده چه هغه به د دوئ تمام واړهٔ او غټ ګناهونه معاف کوي، او په آینده ژوند کښې به دوئ د ګناهونو نه محفوظ ساتي، او د خیر د کارونو توفیق به ورکوي.

وَآمَنُوْا بِمَا نُزِّلَ: دا قید ورسره ولې لګوي؟ نو یو پدې کښې رد دې په یهود او نصاراؤ، هغوي هم وائي چه مونږ ایمان په الله او په آخرت راوړې او نیك عملونه کوو، نو الله قید ولګولو چه په محمد رسول الله ﷺ به خصوصي ایمان راوړي، که دا نهٔ وي نو ایمان قبول نهٔ دې، دویم په منافقانو باندې رد دې.

سفیان بن عُیینة وائي: دا قید ئې د عمل دپاره ذکر کړو او معنیٰ دا ده [لَمْ یُخَالِفُوْهُ فِیْ شَیْءٍ] چه په هیڅ کښې به د محمد رسول الله ﷺ مخالفت نهٔ کوي بلکه پوره عمل کونکې به وي. (معالم التنزیل للبغويؒ)

وَهُوَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ: دا مینځ کښې ذ مؤمنانو د ایمان تائید کوي چه دوي چه ایمان راوړې نو دا ئې ښه او حق کار کړیدې ځکه چه دا کتاب د دوي د رب د طرفنه حق کتاب دې. او هُوَ الْحق کښې مبتدا او خبر دواړه معرفې دي، دې نه د قرآن کریم عظمتِ شان ښکاره کیږي، او ددې خبرې تعلیم دې چه پدې کتاب باندې د ایمان راوړو نه بغیر د ایمان تصور ممکن نهٔ دې،

او اشاره ده چه قرآن کریم د تمامو آسماني کتابونو دپاره ناسخ دې ځکه چه حق او ثابت صرف هم دا دې، یعني ددې د راتلو نه پس اوس د هیڅ آسماني کتاب څهٔ حیثیت باقي پاتې نشو، صرف او صرف همدا حق دې.

وَاَصْلَحَ بَالَهُمْ: برابر به کړي حال د دوئ. (قتادة)

د انسان حال هله برابرېږي چه عمل ئې برابر شي۔ او ددې په وجه به ورله دنيا او آخرت ښهٔ کړي۔

❁ يا بال په معنىٰ د کار سره دے۔ يعنى کارونه به ئې برابر کړي۔

❁ او بال کله په معنىٰ د زړهٔ سره وي۔ يعنى برابر به کړي زړونه د دوئ۔

ذٰلِكَ: دا اشاره ده د عمل بربادېدو او د گناهونو رژېدو ته۔ يا مبتدا پټه ده: اَلۡاَمۡرُ ذٰلِكَ۔ خبره همدغه ده چه د کافرانو عمل ځکه برباد شو چه دوئ د باطل پسے روان وو، نو پدے کښې د پورتنئ فيصلے وجه بيان شوې چه د کافرانو عملونه ځکه ضائع شول چه دوئ د باطل يعنى الله سره د شرك او د نورو گناهونو ارتکاب کړے دے، (صغرىٰ) او دلته بله مقدمه پټه ده (وَكُلُّ مَنِ اتَّبَعَ الۡبَاطِلَ فَعَمَلُهٗ مَرۡدُوۡدٌ) او هر هغه څوك چه باطل پسے روان شي نو د هغه عمل به برباد وي۔ (کبرىٰ) نو د کافر عملونه هم برباد شو۔ (نتيجه)۔

او د مومنانو گناهونه ځکه معاف کړے شول، او خير طرفته د دوئ رهنمائى ځکه وکړے شوه چه دوئ په الله، د هغهٔ په رسول او د هغهٔ په کتاب باندے ايمان راوړو، د شرك نه لرے پاتے شول او ښهٔ عملونه ئې وکړل۔ (صغرىٰ) دويمه مقدمه پټه ده [وَكُلُّ مَنِ اتَّبَعَ الۡحَقَّ يُكَفِّرُ عَنۡهُمُ السَّيِّئَاتِ وَيُصۡلِحُ لَهُمُ الۡحَالَ] ۔ او هر هغه څوك چه د حق پسے روان شي د هغوئ گناهونه به رژولے شي او حالت به ئې برابرولے شي۔ (کبرىٰ) نو ځکه د مؤمنانو گناهونه ورژولے شو او حالت ئې برابر شو۔ (نتيجه)

نو پدے آيت کښې يو عجيب قانون بيان شو چه هر يو کافر چه وي د هغهٔ تمام اعمال به ضائع کيږي، د قيامت په ورځ به دهٔ ته د هغے نه هيڅ فائده نهٔ رسيږي، او کوم چه مومن وي الله تعالىٰ به ددهٔ گناهونه معاف کوي۔

اَمۡثَالَهُمۡ: ۱- امثال په معنىٰ د اوصافو (صفاتو) سره دے۔

۲- احوالو ته هم وائي۔ يعنى داسے احوال چه هغه په ناشنا والى کښې د مثلونو په شان دي۔

۳- ابن کثيرؒ وائي: مَآلُ اَعۡمَالِهِمۡ ۔ يعنى د اعمالو نتيجے۔ چه د يو تن گناه ورژېده او د بل عمل برباد شو۔

٤- يا مثل په خپله معنىٰ دے، يعنى اِضلال د اعمالو مثال د تاوان د کافرانو دے، او د گناهونو رژېدل مثال د کاميابئ د ابرارو دے۔ (فتح البيان)

| فَإِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا فَضَرْبَ الرِّقَابِ |
|---|
| نو کله چه ملاو شئ تاسو د هغه کسانو سره چه کفر ئے کړیدے نو په څټونو ئے ووهئ |
| حَتَّىٰ إِذَا أَثْخَنتُمُوهُمْ فَشُدُّوا الْوَثَاقَ |
| تردے چه کله تاسو ښه وینے توئی کړئ ددوی نو مضبوط کړئ تړل د دوی |
| فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَاءً حَتَّىٰ |
| پس یا به احسان اُوکړئ په دوی روستو (د تړلو نه) او یا ترینه فدیه واخلئ تردے |
| تَضَعَ الْحَرْبُ أَوْزَارَهَا ذَٰلِكَ وَلَوْ يَشَاءُ اللَّهُ |
| چه کیږدی جنګ سامان خپل، دا خبره ده، او که چرے اُوغواړی الله تعالیٰ |
| لَانتَصَرَ مِنْهُمْ وَلَٰكِن لِّيَبْلُوَ بَعْضَكُم |
| خامخا بدله به واخلی د دوی نه لیکن ددے دپاره چه از میښت اُوکړی د بعض ستاسو |
| بِبَعْضٍ وَالَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَلَن |
| په بعضو سره او هغه کسان چه وُوژلے شو په لاره د الله تعالیٰ کښې نو هیچرے به |
| يُضِلَّ أَعْمَالَهُمْ ﴿٤﴾ سَيَهْدِيهِمْ وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ ﴿٥﴾ |
| برباد نکړی عملونه د دوی۔ زردے چه هدایت به اُوکړی دوی ته او برابر به کړی حال |
| وَيُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ عَرَّفَهَا لَهُمْ ﴿٦﴾ |
| د دوی۔ او داخل به کړی دوی لره جنت ته چه خوشبیه کړے ئے دے دوی لره (تعریف ئے کړیدے د هغه جنت دوی لره)۔ |

**تفسیر** : فاء راځی دپاره د ترتیب د روستو حکم په مخکنی باندے، یعنی پورتنو آیتونو کښې د مشرکانو یو مجرمانه صفت بیان شوے چه دوئ خلق په دینِ اسلام کښې د داخلیدو نه منع کوی، او دوئ کښې نور باطل صفتونه دی۔ نو دلته د دوئ په دے قبیح کار باندے الله تعالیٰ دا حکم مرتب کړو چه اے مسلمانانو! کله چه په میدانِ جنګ کښې تاسو دوئ سره ملاقات وکړئ نو د دوئ څټونو له پاخهٔ ګذارونه ورکوئ، یعنی په دوئ کښې چه څوك ستاسو د تورو لاندے راشی نو جوخت ئے ووهئ، او کله چه وګورئ چه

ستاسو غلبه يقيني شوه، او د دشمن باقي افرادو ماتے اوخوړه او ستاسو په قيد كښې راغلل، نو د دوئ لاسونه او خپے ښهٔ اوتړئ، دے دپاره چه دهو كه دركولو سره تاسو ونهٔ وژنى، يا ونهٔ تښتى۔

دارنګه ددے مناسبت د ماقبل سره دا هم دے چه مشركان د باطل پسے روان دى، او مؤمن د حق پسے او د حق او باطل خو جګړه ده، نو دغه شان مؤمن به هم د كافر سره جنګيږى۔ او د الله تعالىٰ دا كار دے ﴿بَلْ نَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَى الْبَاطِلِ فَيَدْمَغُهُ فَإِذَا هُوَ زَاهِقٌ﴾ (انبياء:۱۸) چه حق په باطل باندے ور ولى او هغه پرے ختموى۔

فَضَرْبَ الرِّقَابِ: دا مفعول مطلق د پټ فعل دے اَىْ فَاضْرِبُوا ضَرْبَ الرِّقَابِ۔ يعنى وهئ په وهلو د څټونو۔ او څټونه ئے ذكر كړل ځكه چه د څټ په پريكولو سره اكثر قتل واقع كيږى۔ يا د څټ وهل ئے په دوئ باندے د سختئ كولو دپاره ذكر كړو، چه په نفس قتل كښې دومره سختى نشته، بلكه د څټ پريكولو كښې د دوئ ډيره بے عزتى ده۔

حَتَّى إِذَا أَثْخَنْتُمُوهُمْ: إثخان دشمن ته ورتلل او هغوى په فراخئ سره قتلولو ته وئيلے شى۔ دارنګه عرب وائى: أَثْخَنَتْهُ أَوْهَنَتْهُ بِالْجِرَاحَةِ وَأَضْعَفَتْهُ۔ أَثْخَنْتُهُ معنىٰ ده، ما په زخمونو سره كمزورے او ضعيف كړو۔ يعنى كله چه تاسو دوى په قتل او زخمى كولو سره مغلوب كړل او د پاڅيدو او حركت نه مو ويستل۔

فَشُدُّوا الْوَثَاقَ: يعنى نو بيا مضبوط كړئ تړل د كافرانو۔ الف لام په الوثاق كښې عهدى يا عوضى دى۔ اَىْ وَثَاقَهُمْ۔ يعنى د كافرانو تړل۔

يعنى اول پكښې ښه وينه توى كړئ بيا پكښې كسان ونيسئ دے دپاره چه كافران ښه مرعوبه شى، او آينده دپاره داسے غلط اقدام ونكړى۔

فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ: اُوس وائى چه د قيديانو سره به څهٔ كارونه كيږى۔ نو د هغوى پنځه حكمونه دى چه په تفسير د سورة الانفال كښې مونږ ذكر كړى دى، دلته د هغے نه دوه ذكر دى۔ يا به ووژلے شى، يا به تبادله كړے شى۔ يا به په هغوى باندے همداسے بغير د عوض نه احسان وكړے شى او آزاد به كړے شى، يا به ترے عوض واخستے شى يا به ترے غلامان جوړ كړے شى۔

وَإِمَّا فِدَاءً: دواړه مفعول مطلق دى د پټ فعلونو اَىْ تَمُنُّوْنَ مَنًّا او تَفْدُوْنَ فِدَاءً۔ يعنى يا به تاسو ورسره احسان وكړئ چه په غير د فديے (عوض) اخستو نه به آزاد كړے شى، ځكه چه اوس د دوئ د غرور نشه ماته شوے ده، يا به تاسو د هغوى نه فديه (عوض)

اخستلو سره هغوی آزاد کړي.

حَتّٰی تَضَعَ الْحَرْبُ اَوْزَارَهَا: ددې لفظي معنیٰ ده تردې چه جنګ خپل بوجونه کېږدي يعنې اينده کښې په مسلمانانو باندې د جنګ بوج نۀ وي، او دا پدې طريقه کېږي چه مشرکان يا خو اسلام قبول کړي، يا ماتې منلو سره جزيه ورکولو ته مائله شي، لکه الله تعالیٰ د سورتِ بقرې په (۱۹۳) آيت کښې فرمايلي:

﴿وَقٰتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ وَّيَكُوْنَ الدِّيْنُ لِلّٰهِ﴾ (دوئ سره هغه وخته پورې جنګيږئ تردې چه فتنه ختمه شي، او د الله دين غالب شي).

يا مطلب دا دې چه د کافرانو د جنګ زور ختم شي او د هغوی د جنګ بوج چه وسلې دي هغه ختمې يا کمزورې شي، او آينده کښې ستاسو سره جنګونه نۀ کوي.

۱- تاويلي تفسير دا دې چه حرب نه مراد جنګ د مؤمنانو دې، او اَوْزَار نه مراد د مشرکانو بوجونه يعنې شرکونه دي. يعنې تردې چه کېږدي جنګ د مؤمنانو اَوزار (شرکونه) د مشرکانو. يعنې مؤمنان به تر هغه وخته پورې جنګ د کافرانو سره کوي چه د هغوی شرکونه ختم شي لکه د (حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ) په شان دې.

۲- د الحرب نه مراد اهل الحرب دي. حَتّٰى يَضَعَ اَهْلُ الْحَرْبِ اَوْزَارَهُمْ اَیْ مَعَاصِيَهُمْ. يعنې تردې چه کېږدي جنګيان ګناهونه خپل او ګناهونه پريدي. ددې او د مخکني تاويل مطلب يو راوځي.

د سلفو مفسرينو پدې کښې اختلاف دې چه دا آيت محکم دې او که منسوخ ؟ يعنې اُوس به د مشرك قيدي نيولو نه روستو فديه يا احساني طريقه سره پريخودل لازم وي او که د هغه وژل هم شته؟

(۱) نو ابن عباس ﷛، قتادةؒ، ضحاكؒ، ابن جريجؒ، او سُديؒ وائي چه په دې آيت کښې بيان شوې حکم منسوخ شوې دې، او د سورتِ توبې دا آيت: ﴿فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ﴾ (مشرکان چه چرته مومئ وژنئ) يا ﴿فَاِمَّا تَثْقَفَنَّهُمْ فِي الْحَرْبِ فَشَرِّدْ بِهِمْ مَّنْ خَلْفَهُمْ﴾ (انفال: ۵۷) (که تۀ دوی دوه لره په جنګ کښې ومومې نو (د دوی په وژلو سره اُوتره د دوی روستني خلق) مطابق به اوس هر يو مشرك قيدي وژل کېږي.

د امام ابوحنيفةؒ همدا وينا ده. سوئ د ماشومانو، ښځو او هغه خلقو نه چه هغوئ سره د جزيه اخستلو فيصله شوې وي.

(۲) او د ابن عمر ﷛، عطاءؒ، حسن بصريؒ او عمر بن عبد العزيزؒ رائې داده چه دا آيت د

سورتِ توبے د (۵) آیت ﴿فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ﴾ لپاره ناسخ (منسوخ کونکے) دے۔ او اوس د مشرك جنګی قیدی وژل جائز نهٔ دی، بلکه هغه به د عوض اخستو نه پس یا په غیر د عوض اخستو نه آزادولے شی۔

(۳) – او د ابن جریرؒ، شوکانیؒ او صاحب د محاسن التنزیل رائے داده چه دا آیت محکم دے، یعنی ددے حکم باقی دے، او د قیدیانو معامله به حاکم وقت ته سپارلے شی، که ددهٔ په نظر کښ د دوئ نه بعضِ وژل بهتر وی، نو هغه به ووژنی، اوکه وغواړی نو په غیر د فدیه یا سره د فدیه نه به ئے آزاد کړی، یا به غلامان جوړ کړے شی، او د مسلمانانو تر مینځ به تقسیم کړے شی، یا به پرے جزیه (ټیکس) اولګولے شی او د ذمیانو په توګه به په اسلامی حکومت کښ د اوسیدو اجازت ورته ورکړے شی۔

د جنګی قیدیانو په باره کښ د نبی کریم ﷺ تاریخی فیصلے د همدے رائے تائید کوی۔

د ائمه کرامو مالكؒ، شافعیؒ، ثوریؒ، اوزاعیؒ او ابو عبیدهؒ وغیرهٔ همدا قول دے۔

ذٰلِكَ: اَیِ الْاَمْرُ ذٰلِكَ : یعنی خبره همدا ده، یعنی د کافرانو په باره کښ د الله همدا حکم دے۔

وَلَوْ يَشَآءُ اللّٰهُ: پدے کښ د قتال د فرضیت حکمة بیانوی۔ یعنی که الله غوښتلے نو مسلمانانو له به ئے کافرانو سره د جنګ کولو نه بغیر فتح او نصرت ورکړے وے، یعنی دوئ به ئے په څهٔ عذاب سره تباه کړی وے، لیکن هغهٔ داسے ونهٔ کړل، بلکه مومنانو ته ئے دوئ سره د جهاد کولو حکم وکړو دے دپاره چه معلومه شی چه څوك د هغهٔ په لاره کښ اخلاص سره جهاد کوی، او د صبر او ثابت قدمئ په ښکاره کولو سره د ډیر زیات اجر او د لوی ثواب حقدار جوړیږی۔ او دے دپاره چه د مومنانو په لاس کافرانو له سزا ورکړی۔

لَانْتَصَرَ مِنْهُمْ: اَیْ بِغَيْرِ قِتَالٍ۔ یعنی د دوئ نه به ئے بدله اخستے وے بغیر د قتال نه۔

وَلٰكِنْ لِّيَبْلُوَا : په کافرانو باندے مسلمان امتحان دے چه د هغوی مسلمان بدی شی نو کفر اختیاروی او مسلمان په کافر باندے امتحان دے چه کافر ورسره جنګ کوی نو الله مسلمان ته حکم کوی چه تهٔ هم ورسره جنګ وکړه او شر ورله ختم کړه۔

وَالَّذِيْنَ قُتِلُوْا: په ابتلاء کښ دا هم راځی چه بنده د الله په لاره کښ ووژلے شی، نو اوس د هغوی فضیلت راوړی۔ یعنی کوم خلق چه د الله په لاره کښ جهاد کوی او اووژلے شی، الله تعالیٰ د دوئ عملونه نهٔ ضائع کوی،

دوئ له په هغه لاره باندے د روانیدو توفیق ورکوی چه هغه جنت ته رسول کوی، د

دوئ تمام کارونه او حالتونه درست کوي، او آخر دوئ هغه جنت ته رسوي چه د هغې د نعمتونو تفصیلات او د هغه ځائے د مرتبو او ځیونو صفتونه هغهٔ د قرآن په ډیرو آیتونو کښې او د هغهٔ رسول (ﷺ) په ډیرو احادیثو کښې داسے بیان کړي دي چه جنتیان به هلته رسیدو سره سَم پخپله خپل خپل ځایونه وپیژني۔

سَيَهْدِيهِمْ: اَیْ سَيُوْصِلُهُمْ۔ د مرګ نه روستو د هدایت معنیٰ جنت ته رَسول دي۔
او که په دنیا کښې هدایت مراد شي لکه چه څوک قتال ته لاړ شي نو سمدست مرګ خو نهٔ وي،
نو معنیٰ دا ده چه (سَيَهْدِيهِمْ اَيَّامَ حَيَاتِهِمْ) دوی ته به هدایت وکړي په ژوند دنیوی کښې نیك اعمالو او اخلاص طرف ته۔ نو معلومه شوه چه جهاد سبب د هدایت دے۔

وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ : په دنیا کښې به د دوی حال برابر کړي چه غنیمتونه به ورکړي، او په کافرانو به غلبه ورکړي او اجر به ورکړي۔ او چه مړه شو نو جنت ته به ئے ورسوي۔

عَرَّفَهَا لَهُمْ: ۱- اَیْ طَيَّبَهَا لَهُمْ۔ یعنی خوشبویه کړے ئے دے دوی لره۔
۲- تَتَابَعَ طِيْبَاتِهَا۔ پرله پسے خوشبویه کړے ئے دے۔
۳- بَيَّنَ طَرِيْقَهَا لَهُمْ۔ (ابوعبیدة) یعنی د جنت لاره ئے دوی ته بیان کړیده چه هغه ایمان او عمل صالح یعنی د رسول الله ﷺ تابعداری ده۔
٤- یا عرف د تعریف نه دے وریپیژندلو ته وائي۔ یعنی دوی ته به په جنت کښې خپل کورونه بنه په آسانئ سره وروپیژني لکه امام بخاریؒ په [کتاب الرقاق، باب القصاص یوم القیامة] کښې د ابو سعید خدري ؓ نه روایت کړے :

[فَوَالَّذِیْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهٖ لَاَحَدُهُمْ اَهْدٰی بِمَنْزِلِهٖ فِي الْجَنَّةِ مِنْهُ بِمَنْزِلِهٖ كَانَ فِي الدُّنْيَا]

چه په هغه ذات مے دے قسَم وی چه د چا په لاس کښې د محمد (ﷺ) ساه ده ! جنتیان به خپلو ځیونو ته د خپلو دنیوی کورونو نه هم زیات په تادئ او آسانئ سره اورسیږي۔
(بخاري : ٦٥٣٥)

| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا إِنْ تَنْصُرُوا اللّٰهَ يَنْصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ |
|---|
| اے ایمان والو که تاسو مدد کوئ د الله تعالیٰ مدد به اُوکړي ستاسو او مضبوط به |
| أَقْدَامَكُمْ ﴿٧﴾ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَتَعْسًا لَّهُمْ |
| کړي قدمونه ستاسو۔ او هغه کسان چه کفرئے کړیدے نو هلاکت دے دوی لره |

| وَأَضَلَّ أَعْمَالَهُمْ ﴿۸﴾ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَرِهُوْا |
|---|
| او برباد کړي ئې دي عملونه د دوی۔ دا پدې وجه چه بیشکه دوی بد ګنړلے دے |
| مَا أَنْزَلَ اللّٰهُ فَأَحْبَطَ أَعْمَالَهُمْ ﴿۹﴾ |
| هغه څه چه نازل کړیدی الله تعالیٰ نو برباد ئې کړل عملونه د دوی۔ |

**تفسیر:** اُوس بیا قتال ته ترغیب ورکوي۔ که یو تن دا ووائي چه مونږ به د کافرانو په مقابله کښې څنګه استعمال شو۔ نو الله تعالیٰ دلته دوه وعدې ذکر کوي۔ خو پدې شرط چه که ستاسو د الله د دین د غالبه کولو او د هغې د مدد کولو اراده وي نو الله به درسره یو مدد کوي، او بل به د دشمنانو په مقابله کښې تاسو له ثابت قدمي درکوي او د دشمنانو د زمکو او د جائیدادونو مالکان او وارثان به مو جوړوي۔

إِنْ تَنْصُرُوا اللّٰهَ : د الله مدد پدې طریقه دے چه الله تعالیٰ دین او نبي رالیږلے دے نو څوك چه د هغهٔ سره پدے دین چلولو او غالبه کولو کښې ملګرتیا کوي، نو ګویا که هغه د الله تعالیٰ مدد کوي۔

وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ: د قدمونو مضبوطولو ډیر مطلبونه دي :

یو ۱ – عِنْدَ الْحَرْبِ فِيْ مُقَابَلَةِ الْكُفَّارِ ۔ یعنې په جنګ کښې د کفارو په مقابله کښې به تاسو ته ثابت قدمي درکړي او په هغوی به غلبه درکړي۔

۲ – يُثَبِّتُ أَقْدَامَكُمْ عَلٰى جَادَّةِ الْإِسْلَامِ۔ او ستاسو قدمونه به د اسلام په فراخه لاره باندې مضبوط کړي۔ ځکه چه جهاد سبب د تثبت دے په اسلام کښې، که ته غواړې چه په اسلام باندې مضبوط پاتې شې، نو جهاد کښې به شرکت کوې۔ او سورة البقره کښې تیر شوي وو چه ترك د جهاد سبب د اِرتداد دے۔

۳ – او دے کښې دا هم داخلیږي چه تاسو ته به په زمکه کښې مضبوطوالے درکوي، د کافرانو علاقې به تاسو ته فتح کیږي۔

دا آیت دلیل دے چه که څوك د الله تعالیٰ د دین حقیقي مدد کوي، نو ناروا طریقو او اختطافونو ته د جهاد ضرورت نشته، الله به ضرور د داسې خلقو مدد کوي۔

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا: یعنې کافرانو له به زبردست شکست ورکوي، هلاکت او بربادي به د دوئ په برخه وي، او الله به د دوئ عملونه ضائع کړي، دوئ سره به الله دا سلوك ځکه

کوی چه دویٔ د قرآن کریم نه نفرت کړے، او په دے کښ بیان شوی احکام ئے شاته غورزولی دی، دے وجے نه الله تعالیٰ د دویٔ تمام اعمال ضائع کوی کوم چه په سرسری نظر کښ ښهٔ وی، ځکه چه د کافر هیڅ یو عمل هم د قبلیدو لائق نهٔ وی، او پرمخے به جهنم ته اوغورزولے شی۔

فَتَعْسًا: تَعس په اصل کښ پرمخے پریوتو ته وئیلے شی لکه نګس چه په سر باندے غورزیدو ته وائی۔ او قرطبیؒ ددے لس معانی ذکر کړیدی، لکه لرے والے، غم، مشقت، بد رد وئیل، هلاکت، نا امیدی، قباحت، ذلیل کیدل، بدحالی، بد بختی۔ دلته د هلاکت، او بد بختئ او نا امیدئ معنیٰ مراد ده۔

أَعْمَالَهُمْ: د اعمالو مخکښ دوه مصداقه تیر شو چه نیك عملونه وی، او که مکائد (چلونه) د دوی په مخالفت د ایمان والو کښ دواړه به بربادیږی۔

ذٰلِكَ: دا اشاره ده تعس (هلاکت) او اضلال ته۔

مَا أَنْزَلَ اللهُ: یعنی د دوی د هلاکت او ګمراه کیدو لوی سبب دا وو چه دوی د الله منزله وحی چه قرآن او حدیث دی بد ګنړلی وو، نو ځکه الله د دوی عملونه برباد کړل۔ لِأَنَّهَا كَانَتْ فِيْ طَاعَةِ الشَّيْطَانِ۔ ځکه چه دغه عملونه د دوی په طاعت د شیطان کښ وو۔

او دا ښکاره دلیل دے چه څوك قرآن او سنت بد ګنړی، او ددے او ددے د احکامو نه نفرت کوی، نو هغه ته به هلاکت، ذلت، او د اعمالو بیکاره کیدل رسیږی او بیا ددے نه نورے بدکاریانے پیدا کیږی۔

فَأَحْبَطَ أَعْمَالَهُمْ: مخکښ عملونو کښ دواړه مصداقه وو، نیك او مکائد، او دلته نیك عملونه مراد دی۔

| أَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْأَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ |
|---|
| آیا نو نهٔ ګرځی دوی په زمکه کښ پس چه اُوګوری چه څنګه شو انجام |
| الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ دَمَّرَ اللهُ عَلَيْهِمْ |
| د هغه کسانو چه مخکښ وو د دوی نه، هلاکت راوستو الله تعالیٰ په دوی باندے |
| وَلِلْكَافِرِيْنَ أَمْثَالُهَا ﴿۱۰﴾ ذٰلِكَ بِأَنَّ اللهَ مَوْلَى |
| او د کافرانو دپاره ددے پشان عذابونه دی۔ دا پدے وجه چه یقیناً الله تعالیٰ مددګار د |

الَّذِیْنَ آمَنُوْا وَاَنَّ الْکَافِرِیْنَ لَا مَوْلٰی لَهُمْ ﴿۱۱﴾

هغه کسانو دے چه ایمان ئے راوړیدے او یقیناً کافران نشته مددګار دوی لره۔

آیا نو نهٔ ګرځی دوی په زمکه کښې پس چه اُوګوری چه څنګه شو انجام د هغه کسانو چه مخکښې وو د دوی نه، هلاکت راوستو الله تعالیٰ په دوی باندے او د کافرانو دپاره ددے پشان عذابونه دی۔ دا پدے وجه چه یقیناً الله تعالیٰ مددګار د هغه کسانو دے چه ایمان ئے راوړیدے او یقیناً کافران نشته مددګار دوی لره۔

**تفسیر**: پدے آیت کښې دنیاوی یره ذکر کوی، او د پخوانو کافرانو یو مثال راوړی چه هغوی الله تعالیٰ پدے وجه هلاك کړل چه هغوی هم د الله مُنزله وحی نهٔ وه منلے۔ یعنی الله د دوئ د کفر او شرك او د انبیاؤ د دروغژن ګنړلو په وجه څنګه د دوئ بیخ او بنیاد وویستلو، او د دوئ کلی ئے لاندے باندے کړل۔

دارنګه فرمائی چه په هر دور کښې د کافرانو داسے انجام تیر شوے او را روان دے۔دے وجے نه د مکے مشرکان سوچ ولے نهٔ کوی چه هسے نهٔ د دوئ انجام هم د هغوی پشان شی۔

**دَمَّرَ اللّٰهُ**: یعنی الله په هغوی باندے هلاکت راوستو۔

**اَمْثَالُهَا**: اَیْ اَمْثَالُ تِلْكَ الْعَاقِبَةِ وَالْعُقُوْبَةِ۔ یعنی د ټولو کافرانو همدغه شان انجام او سزا او عذابونه به وی۔ نو کوم عذابونه چه په پخوانو قومونو د کوم فساد د وجه نه راغلی وو همدغه عذابونه به په روستنو کافرانو هم راځی۔

**ذٰلِكَ**: دا اشاره ده نصرت (مدد) ته۔ نو دا متعلق دے د (اِنْ تَنْصُرُوا اللّٰهَ) سره۔

یعنی الله به خپلو مؤمنانو او مجاهدینو بندګانو له فتح او کامیابی او د دوئ په مقابله کښې د کافرانو او مشرکانو ذلت او رسوائی پدے وجه ورکوی چه الله تعالیٰ په هر حال کښې د مومنانو یار او مددګار وی، په داسے حال کښې چه د کافرانو هیڅ مددګار نهٔ وی، او چاړه چه الله پریدی د هغهٔ مدد څوك کولے شی۔

**وَاَنَّ الْکَافِرِیْنَ**: دا د (دَمَّرَ اللّٰهُ) سره متعلق دے۔ یعنی په کافرانو باندے دَمَار (هلاکت) پدے وجه راغے چه د هغوی څوك دوست او مددګار نشته۔

په سورة یونس آیت (۳۰) کښې تیر شوی وو ﴿وَرُدُّوْا اِلَی اللّٰهِ مَوْلَاهُمُ الْحَقِّ﴾ چه کافران به خپل حق مولیٰ ته واپس کړے شی۔ او دلته وائی چه د کافرانو مولیٰ نشته۔

جواب دا دے چه د مولیٰ دولس معانی دی، هلته د مولیٰ نه مراد مالك دے او دلته په معنیٰ د مُحِبّ (محبت کونکے / دوست) او ناصر (مددګار) سره دے۔

**فائده** : قُشیریؒ نه نقل دی چه دا آیت کریمه د ډیر اُمید (او خوشحالیٔ) آیت دے، ځکه چه الله تعالیٰ خپل ولایت په عبادت کونکو، وظیفو او ذکر کونکو او ریاضت کونکو پورے نهٔ دے خاص کړے بلکه صرف مؤمنان ئے ذکر کړیدی۔

او ددے آیت موافق اعلان رسول الله ﷺ په اُحُد کښې کړے [ لَنَا الْمَوْلٰی وَلَامَوْلٰی لَکُمْ] (زمونږ مولا (مددګار، دوست) شته او ستاسو مددګار نشته) په جواب د کافرانو کښې چه هغوی وئیلی وو [ لَنَا الْعُزّٰی وَلَا عُزّٰی لَکُمْ]۔ (زمونږ عزیٰ شته او ستاسو عزیٰ نشته)۔

| |
|---|
| إِنَّ اللّٰهَ يُدْخِلُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ |
| یقیناً الله تعالیٰ داخلوی هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے او عملونه ئے کړیدی نیك |
| جَنَّاتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
| جنتونو ته چه بهیږی به لاندے د هغے نه نهرونه او هغه کسان چه کفر ئے کړیدے |
| يَتَمَتَّعُوْنَ وَيَأْكُلُوْنَ كَمَا تَأْكُلُ الْأَنْعَامُ |
| مزے اخلی (د دنیا) او خوراك کوی لکه څنګه چه خوراك کوی چارپیان |
| وَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ ﴿۱۲﴾ |
| او اُور ځائے د اُوسیدو د دوی دے۔ |

**تفسیر** : مخکښې د دواړو ډلو حالات په دنیا کښې وو، اُوس د آخرت په اعتبار سره د دواړو ډلو فرقونه بیانوی، چه ایمان والا جنت ته روان دی، او کافران دنیا کښې یو څو موده مزے به وکړی لیکن اُور ته روان دی۔

ددے ځای نه بعض سلفو علماؤ دا فائده راخستے ده چه [اَلْمُؤْمِنُ فِی الدُّنْیَا یَتَزَوَّدُ وَالْمُنَافِقُ یَتَزَیَّنُ وَالْکَافِرُ یَتَمَتَّعُ] یعنی په دنیا کښې د آخرت دپاره توښه تیاروی، لګیا دے خواری کوی۔ او منافق صرف ډولونه کوی، خلقو ته په عملونو ځان ښه ښکاره کوی، صرف هسے شوشا ئے جوړه کړیده، (یعنی د نیك اعمالو نه شوشا جوړول، او هاهو او ختمونه او خیرے او غلط خیراتونه د منافقانو خوئی دے) او کافر صرف د دنیا مزے

اخلي، هغه سره د آخرت او د خلقو غم نشته بلکه صرف خپلې خیټې له لګیا دے.
يَتَمَتَّعُوْنَ: تمتع فائدے اخستو ته وئیلے شي، دا عام دے خوراك، څکاك، لباس، لهو او لعب، زیب وزینت ټولو ته شامل دے.
كَمَا تَأْكُلُ الْاَنْعَامُ: د چارپیانو سره ئې تشبیه په ډیرو خبرو کښې ورکړیده:
(۱) مِنْ غَيْرِ فِكْرٍ فِي الْمَعَادِ كَالْاَنْعَامِ لَا فِكْرَةَ لَهَا فِي الذَّبْحِ]
یعنی کافران د آخرت هیڅ فکر نهٔ کوی لکه چارپیان د ذبح کیدو هیڅ فکر نهٔ کوی، لږ ساعت روستو به ذبح کیږی اُوس ورته ګیاه وا چوه نو په حرص ئې خوری، بل حیوان هم ورته نهٔ پریدی. دا فکرئې نشته چه اُوس به رابانده چاړه اړدی او ټوټه ټوټه به مے کړی. نو کافر هم دا فکر نهٔ کوی چه اُور ته روان یم.
(۲) اَلتَّشْبِيْهُ فِي الْاِسْرَافِ. دا تشبیه په اسراف کښې ده، چه بے ځایه مالونه لګوی او فضول خوراکونه کوی.
(۳) فِيْ عَدَمِ تَمْيِيْزِ الْحَلَالِ وَالْحَرَامِ. د حیواناتو په شان دی چه د حلال او حرامو تمییز نهٔ کوی.
(٤) مِنْ غَيْرِ قَصْدِ الْعِبَادَةِ. د عبادت اراده ئې نهٔ وی لکه د حیوان د خوراك نه دا نیت نهٔ وی چه زهٔ به پرے عبادت وکړم، نو د کافرانو هم دغه شان اراده نهٔ وی. مؤمن به د الله د بندګئ په نیت خوراك کوی.
(٥) دا هم ممکن ده چه دا تشبیه په قیام کښې وی، یعنی حیوانات په ولاړه خوراك کوی، نو دغسے کافران هم دی. تیبلو ته په ولاړه په تاویدو خوراکونه کوی.
رسول الله ﷺ فرمائی: آكُلُ كَمَا يَأْكُلُ الْعَبْدُ وَاَجْلِسُ كَمَا يَجْلِسُ الْعَبْدُ فَاِنَّمَا اَنَا عَبْدٌ.
زهٔ به داسے خوراك کوم لکه یو غلام چه ئې کوی او داسے به کینم لکه یو غلام چه کینی ځکه چه زهٔ یو بنده یم.
(٦) حیوانات په اول کښې بسم الله نهٔ وائی او په آخر کښې الحمد لله او شکر نهٔ کوی.
(٧) او دا مطلب هم صحیح دے چه د کافرانو ټول کوشش صرف د خوراك او خیټے او شهوت دپاره وی، لکه د چارپیانو هم بل همت نهٔ وی، صرف خپله خیټه او شهوات خروِل. (فتح البیان)
وَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ: مثویٰ ځای د وسیدو ته وئیلے شي.

| وَ كَأَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ هِيَ أَشَدُّ قُوَّةً مِّنْ قَرْيَتِكَ الَّتِيْ أَخْرَجَتْكَ |
|---|
| او ډیر د کلو نه هغه ډیر سخت دی په طاقت کښې د کلی ستا نه هغه چه راوېستلے ئے |
| أَهْلَكْنَاهُمْ فَلَا نَاصِرَ لَهُمْ ﴿١٣﴾ أَفَمَنْ كَانَ |
| تهٔ، هلاك كړل مونږ دوی نو نهٔ وو هیڅ مددګار دوی لره. آیا پس هغه څوك چه وی |
| عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ كَمَنْ زُيِّنَ |
| په ښکاره دلیل د طرف د رب ددهٔ نه پشان د هغه چا کیدے شی چه ښائسته کړے |
| لَهٗ سُوْءُ عَمَلِهٖ وَاتَّبَعُوْآ أَهْوَاءَهُمْ ﴿١٤﴾ |
| شویدے دهٔ ته بد عمل ددهٔ او تابعداری کوی دوی د خواهشاتو خپلو. |

**تفسیر**: په دے آیتِ کریمه کښې مکے والو دپاره زبردست ګواښ او د دنیا سخت عذاب ذکر دے. نبی کریم ﷺ مخاطب کوی فرمائی چه په تیرو شوو زمانو کښې ډیر داسے کلی موندے شوی دی چه د هغے اوسیدونکی، ستا د کلی (مکے) اوسیدونکو نه زیات طاقتور او زیات مال او مرتبے والا وو، کله چه ددے اوسیدونکو خلقو د الله رسولان دروغژن وګنړل، نو مونږ دوئ هلاك كړل، او هیڅوك د دوئ مدد له رانغے.

اُوس چه کله مکے والو تهٔ ددے ځائے نه په ویستلو باندے مجبوره کړے ئے، او ستا په دروغژن ګنړلو باندے کلك پاتے کیږی، نو په دے مونږ خامخا قادر یو چه دوئ هلاك کړو، لیکن چونکه مونږ تهٔ د رحمت رسول رالیږلے ئے، دے وجے نه د دوئ په تباه کولو کښې تادی نهٔ کیږی.

او پدے آیت کښې رسول الله ﷺ ته تسلی هم ده چه دا خلق خو اُوس تا اُویاسی او د دوی غلبه او زور دے لیکن داسے وخت راتلونکے دے چه دوی به الله مغلوبه کړی او تا لره به پرے غلبه درکړی او بیرته به مکے ته راواپس شے.

## شان نزول

دا آیت د رسول الله ﷺ د هجرت په موقعه نازل شوے چه کله د مکے نه ووتو او حزوراء علاقے ته چه ورسیدو نو مکے ته ئے مخ وګرځولو او وے فرمایل:

[إِنَّكِ لَأَحَبُّ الْبِلَادِ إِلَيَّ وَلَوْلَا أَنَّ قَوْمِيْ أَخْرَجُوْنِيْ مَا خَرَجْتُ مِنْكِ] یقیناً تهٔ په تولو

ښارونو کښې ما ته ډیر محبوب ښار وې، او که زۀ خپل قوم نۀ ویستلے نو زۀ ستا نه هیڅکله نۀ وتلم۔

او په یو روایت کښې دي: [مَا سَكَنْتُ غَيْرَكِ] زۀ ستا نه سوئ بل ځای نۀ وسیدلم۔

نبي ﷺ پدے وخت کښې ډیر ژړا غونے وو، او خفه وو، ځکه چه هجرت سخت کار دے، نو الله دا آیت په لاره نازل کړو۔

**أَفَمَنْ كَانَ عَلٰى بَيِّنَةٍ**: که څوك ووائي چه د یوے علاقے نه کله یو تن خلق وباسی دے وجه نه چه په باطله وی نو دا خو بد کار نۀ وی، نو اُوس الله تعالىٰ دلته فرق بیانوی چه رسول الله ﷺ په باطله نۀ وو چه ګنے هلته ئے فساد او شر پیدا کولو او د مکے مشرکان په حقه وو، نۀ! بلکه د الله رسول په ښکاره دلیل روان وو د طرف د رب نه، او کافران په خپلو خواهشاتو پسے روان وو نو پدے وجه دلته دا تمییز راوړی۔

او په بل تعبیر سره پدے آیت کښې الله تعالىٰ د مومن او کافر او د موحد او مشرك ترمینځه فرق واضح کولو دپاره مکے مشرکانو له د ایمان دعوت ورکړے، او دوئ ته ئے د خپل حالت بدلولو نصیحت کړے۔

الله وفرمایل چه کوم کس د علم او دلیل په رنړا کښې صحیح عقیده لری، د الله د یو والی اقرار کونکے وی، او صرف د هغۀ عبادت کوی، آیا دا د هغه کس پشان جوړیدے شی، چه شیطان د هغۀ په نظر کښې کفر او شرك جائز او ښائسته جوړ کړے وی، په دے وجه هغه د بتانو عبادت کوی، او د خپل نفس پیروی کوی؟ معلومه خبره ده لکه څنګه چه ژوند او مرګ، او جنت او جهنم سره برابر نۀ دی، دغه شان مومن او کافر او موحد او مشرك هم سره برابریدے نشی۔

**بَيِّنَةٍ مِنْ رَّبِّهٖ** کښې اشاره ده چه مؤمنان د ښکاره دلیل پسے روان وی، او د جامد تقلید نه بچ وی۔

**وَاتَّبَعُوْٓا اَهْوَآءَهُمْ**: یعنی د وحی دلیل ورسره نشته، او د دوئ خواهشات خو دلیل نۀ دے۔

| مَثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِیْ وُعِدَ الْمُتَّقُوْنَ فِيْهَآ اَنْهٰرٌ |
|---|
| صفت د هغه جنت چه وعده ئے کړے شویده د متقیانو سره، په هغې کښې نهرونه دي |

| |
|---|
| مِنْ مَّاءٍ غَيْرِ آسِنٍ وَأَنْهَارٌ مِنْ لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهُ |
| د اُوبو نه چه نهٔ به وی بدبویه، او ولے دی د پیو نه چه بدل به نهٔ وی خوند د هغے |
| وَأَنْهَارٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ وَأَنْهَارٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى |
| او ولے دی د شرابو نه چه مزه ورکوی څکونکو ته او ولے دی د شهدو صفا کړے شوی |
| وَلَهُمْ فِيهَا مِنْ كُلِّ الثَّمَرَاتِ وَمَغْفِرَةٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ |
| نه او دوی لره په هغے کښې د هر قسم میوو نه دی، او بخنه ده د طرف د رب د دوی نه |
| كَمَنْ هُوَ خَالِدٌ فِي النَّارِ وَسُقُوا |
| پشان د هغه چا کیدے شی چه هغه همیشه وی په اُور کښې او څکولے به شی په دوی |
| مَاءً حَمِيمًا فَقَطَّعَ أَمْعَاءَهُمْ ﴿١٥﴾ |
| باندے اُوبه ګرمے نو پرے به کړی کولمے د دوی۔ |

**تفسیر:** اُوس لکه څنګه چه مومن او کافر، او موحد او مشرك ترمینځه فرق دے، دغه شان د قیامت په ورځ به د دوئ په جزاء او د همیشه اوسیدو په ځایونو کښې هم فرق وی۔ الله تعالیٰ فرمائی چه د هغه جنت صفتونه چه د پرهیزګارو خلقو سره د قیامت په ورځ د هغے وعده شوے، دا دی چه په دے کښې به د اُوبو داسے نهرونه وی چه د هغے اُوبهٔ به هیڅ کله بیخونده کیږی نهٔ، او په دے کښې به د پیو داسے نهرونه وی چه د هغے پیٔ به انتهائی سپین او ډیر زیات خوارهٔ وی، او هیڅ کله به ترخهٔ کیږی نهٔ،

او په دے کښې به د شرابو داسے نهرونه وی چه هغه شراب به په لیدلو کښې انتهائی ښائسته او په څکلو کښې ډیر زیات مزیدار وی، د جنتیانو زړونه به د هغے د څکلو نه هیڅ کله نهٔ تنګیږی۔ د سورتِ صافات په (٤٧/٤٦) آیتونو کښې الله تعالیٰ فرمایلی :

﴿ بَيْضَآءَ لَذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ لَا فِيهَا غَوْلٌ وَّلَا هُمْ عَنْهَا يُنْزَفُونَ ﴾

(د جنت شراب به صفا شفاف او په څکلو کښې به ډیر خوندور وی، ددے په څکلو سره به په سر درد نهٔ راځی، او نهٔ به جنتیان د دوئ د څکلو په وجه سرګردانه کیږی)۔

اوپه دے کښې به د شاتو داسے نهرونه وی چه هغه به د موم پشان وی او د هر خِیری نه به پاك او صفا وی۔ او جنتیانو له به د پورتنو مشروباتو نه علاوه نورے قِسما قِسم میوے

ملاوېږي. د سورتِ دخان په (۵۵) آيت کښې الله تعالىٰ فرمايلي دي:

﴿ يَدْعُوْنَ فِيْهَا بِكُلِّ فَاكِهَةٍ آمِنِيْنَ ﴾

(هلته به دوئ د هر قِسمه ميوو فرمائش ورکوي، او ډېر زيات پُر سکون به وي).

او د سورتِ رحمن په (۵۲) آيت کښې دي:

﴿ فِيْهِمَا مِنْ كُلِّ فَاكِهَةٍ زَوْجَانِ ﴾

(په دې دواړو جنتونو کښې به د هر قِسمه ميوو دوه قِسمونه وي).

په مسندِ احمدؒ او سنن ترمذي کښې په صحيح سند سره د معاويه بن حَيده ﷛ نه روايت دے، دا فرمائي: ما د رسول الله ﷺ نه آورېدلي دي چه فرمايل ئې: په جنت کښې به د پيو سمندر وي، د اُوبو سمندر به وي، د شاتو سمندر به وي، او د شرابو سمندر به وي، او ددې سمندرونو نه به اُويهٔ روانې وي.

او انس بن مالك ﷛ او مسروقؒ وائي چه: (فِيْ غَيْرِ اُخْدُوْدٍ) دا نهرونه به په زمکه روان وي، او کندې به نهٔ وي چه څوك ورکوزيدے نهٔ شي.

(ابن ابي شيبه، ۹۶/۱۳، هناد في الزهد ۱۷۱/۱ الطبري وابي الشيخ وغيره) وروى مرفوعا ولكنه ضعيف) وللموقوف شاهد من حديث ابن عباس ﷛ اخرجه ابن ابي الدنيا في ((صفة الجنة)) كمافي الترغيب للمنذري (۵۱۸/٤)

او قرآن کريم کښې دي. ﴿ يُفَجِّرُوْنَهَا تَفْجِيْرًا ﴾ (الدهر: ٦)

د دوي په خوښه به روانيږي که دوي ئې خپلو کورونو ته راتيرَه وي هم راتيريږي به.

په جنتيانو به الله تعالىٰ دا احسان هم کوي چه د دوئ وارهٔ او غټ تمام ګناهونه به معاف کوي.

په کومو خوش نصيبه خلقو باندې چه الله تعالىٰ دا عظيم احسانات کوي، آيا دوئ به د هغه چا پشان وي چه هغوئ هميشه لپاره په جهنم کښې غورزولے کيږي، د هغې نه به هيڅ کله نهٔ راوځي، چه دوئ له به د څکلو دپاره دومره سختې ګرمې اوبهٔ ورکولے شي چه څکلو سره به د دوئ کولمې ټکړې ټکړې کړي او د لاندې طرف نه به ئې اُوباسي.

نو د چا چه دا حال جوړيږي که هغه په دنيا کښې هر څومره مزې وکړي خو دغه مزې ددې حال په نسبت هيڅ هم نهٔ دي.

مِّنْ مَّاءٍ غَيْرِ آسِنٍ: د اُوبو صفت ئې په صيغه د اسم سره ذکر کړو، او د پيو و صفت (لَمْ يَتَغَيَّرْ) په صيغه د فعل سره ذکر کړو، پدې کښې اشاره ده چه د جنت د اُوبو به دغه صفت

همیشه وي، او جنتیان به د هغې خوند بدلول نهٔ غواړي، او د پیو خوند به په خپله نهٔ بدلیږي، لیکن که جنتیان غواړي چه ماسته شو ملې وغیره ترې نه جوړې شي نو جوړیدې به شي۔

لَّذَّةٍ لِّلشَّارِبِيْنَ: یعنی د هغې خوند او رنګ یا انجام به داسې نهٔ وي چه څکونکې د هغې نه نفرت وکړي، او په هغې کښې به ذاتي لذت پروت وي، د چا لاس به ورته نهٔ وي لګیدلې چه بدبویه شي په خلاف د شرابو د دنیا نه چه د هغې خوند او رنګ او انجام ناکاره وي لیکن په خارجي نورو څیزونو سره ئې پکښې عارضي لذت پیدا کړې وي۔

| وَمِنْهُمْ مَّنْ يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ حَتّٰى إِذَا خَرَجُوْا مِنْ |
|---|
| او بعض د دوی نه هغه څوك دي چه غوږ ږدي تا ته تردې چه کله چه اُوځي ستا د |
| عِنْدِكَ قَالُوْا لِلَّذِيْنَ أُوْتُوا الْعِلْمَ مَاذَا قَالَ آنِفًا |
| خوا نه وائي هغه کسانو ته چه ورکړې شویدې ورته علم څه اُووئیل دهٔ اُوس، |
| أُولٰئِكَ الَّذِيْنَ طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَاتَّبَعُوْا |
| دا هغه کسان دي چه مهر وهلې دې الله په زړونو د دوی، او تابعداري کړیده دوی |
| أَهْوَاءَ هُمْ ﴿١٦﴾ وَالَّذِيْنَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ |
| د خواهشاتو خپلو۔ او هغه کسان چه هدایت ئې قبول کړیدې، الله زیاتي کړیدې دوی |
| هُدًى وَّآتَاهُمْ تَقْوَاهُمْ ﴿١٧﴾ فَهَلْ يَنْظُرُوْنَ |
| لره هدایت د دوی، او ورکړې ئې ده دوی ته تقویٰ د دوی۔ نو انتظار نهٔ کوي دوی |
| إِلَّا السَّاعَةَ أَنْ تَأْتِيَهُمْ بَغْتَةً |
| (په ایمان راوړو کښې) مګر د قیامت چه راښه شي دوی ته ناڅاپه |
| فَقَدْ جَآءَ أَشْرَاطُهَا فَأَنّٰى لَهُمْ إِذَا جَاءَتْهُمْ |
| نو یقیناً راغلي دي نخې د هغې نو د کوم ځائې نه به وي دوی لره کله چه راشي دوی ته |

ذِكْرَاهُمْ ﴿١٨﴾

قیامت نصیحت اخستل د دوی۔

**تفسیر**: ددے نه روستو په منافقانو رد ذکر کیږی، رسول الله ﷺ چه کله مدینے ته راورسیدو، بیا جهاد فرض شو نو د اسلام څه نا څه غلبه راغلله نو دے زمانه کښں منافقان راپیدا شو۔

وَمِنْهُمْ: یعنی بعض د کافرانو نه یا بعض د اُور والو نه۔

نبی کریم ﷺ به چه کله صحابه کرامو رضی الله عنهم ته د تعلیم ورکولو لپاره خطبه ورکوله، نو منافقان به هم په دے کښں شریك کیدل، او دا به ئے ښرگندوله چه دوئ د نبی کریم ﷺ خبرے ښهٔ په غور سره آوری۔ او کله به چه د نبی ﷺ د مجلس نه بهر شول نو د صحابو د علماؤ (عبد الله بن عباس، عبد الله بن مسعود او ابودرداء رضی الله عنهم او داسے نورو) نه به ئے د توقو او خندا په توگه پوښتنه کوله چه اُوس دهٔ (یعنی محمد ﷺ) څهٔ بیان وکړو، مونږ خو ددهٔ په خبرو نهٔ پو هیږو ؟!

الله تعالیٰ وفرمایل چه دا خلق منافقان دی چه د دوئ په زړونو باندے الله مهر لگولے، دے وجے نه د خیر هیڅ یوه خبره په دے کښں نهٔ ننوځی، او د خپلو خواهشاتو پیروی کوی، دے وجے نه د حق قبلولو په ځائے په کفر او منافقت باندے ټینگ ولاړ دی۔

مَاذَا قَالَ آنِفًا: دوئ د پیغمبر په خبره ځکه نهٔ پو هیدل چه هغه ورته څه اهمه نهٔ ښکاره کیده۔ امام بغوی لیکی : [فَلَا يَعُوْنَهٗ تَهَاوُنًا وَتَغَافُلًا] د پیغمبر خبره د سپك والی او د ځان غافله کولو په وجه نهٔ یادوی۔ او ددے نه دا معلومه شوه چه چا ته د رسول الله ﷺ حدیث سپك ښکاره کیږی هغه منافق دے۔

وَالَّذِيْنَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى: دلته بعض مفسرین ماضی په معنیٰ د مضارع اخلی، او مطلب دا وائی چه کومو خلقو چه هدایت قبول کړو او په حقه لاره روان شو، په الله ئے ایمان راوړو، او نیك عملونه ئے اوکړل، دوئ له الله د حق د تابعداریٔ نور زیات توفیق ورکړی او د تقویٰ والا ژوند اختیارولو باندے به د دوئ مدد وکړی یعنی دوئ له به نفعمن علم او نیك عمل توفیق ورکړی۔

لیکن ظاهر دا ده چه ماضی صیغے په خپل ظاهر دی یعنی کومو خلقو چه هدایت قبول کړو نو الله د دوی هدایت زیات کړیدے په توفیق سره چه قرآن ئے واوریدو نو ایمان

ئے زیات شو۔
او د آتَاهُمْ تَقْوَاهُمْ معنیٰ ده: بَيَّـنَ لَهُمْ مَا يَتَّقُوْنَ بِهِ النَّارَ ۔ یعنی بیان کړے ئے دے دوی ته هغه شے چه دوی په هغے سره ځانونه د اُور نه بچ کولے شی۔
فَهَلْ يَنْظُرُوْنَ : اُوس د کافرانو ضد او عناد ذکر کوی چه اوس دوی ایمان نهٔ راوړی او صرف په همدے انتظار دی چه ناګهانه قیامت راشی، بیا به ایمان راوړی لیکن څه فائده؟!
فَقَدْ جَآءَ أَشْرَاطُهَا: نو دویٔ ته دے معلومه وی چه ددے نښے راښکاره شوی دی۔
حسن بصریؒ او ضحاکؒ وائی چه د نبی کریم ﷺ رالیږلے کیدل د قیامت د نزدے والی یوه لویه نښه ده۔ په صحیحینو کښ د انس بن مالك ﷜ نه روایت دے، رسول الله ﷺ وفرمایل: [بُعِثْتُ آنَا وَالسَّاعَةَ كَهَاتَيْنِ] زما رالیږل کیدل او د قیامت نزدے والے داسے دے، او هغویٔ مینځنیٔ او د شهادت والا ګوتے ته اشاره وکړه، یعنی لکه څنګه چه دا دواړه ګوتے یو بلے ته نزدے دی، دغه شان زهٔ قیامت ته بیخی نزدے رالیږلے شوے یم۔

(بخاری: ۵۳۰۱ مسلم: ۲۰۴۲)

نبی کریم ﷺ په ګنړو حدیثونو کښ د قیامت د رانزدے کیدو نښے ښودلی دی، چه په هغے کښ ځینے راښکاره شوی دی، او ځینے لا اوسه پورے راښکاره شوی نهٔ دی۔
بعضِ علماؤ په دے مذکوره آیت کښ په ذکر شوو نښو کښ شقِ قمر (سپوږمیٔ دوه ټکړے کیدل) او لوګے راښکاره کیدل هم شمارلی۔
او بعض نوړو خلقو نوړے نښے ذکر کړی۔
فَأَنّٰى لَهُمْ إِذَا جَاءَتْهُمْ ذِكْرَاهُمْ: یعنی هرکله چه دا انسان آخرت ته ورسیدو، نو بیا به دهٔ له د تیر شوی حالت په رایادولو هیڅ فائده نهٔ رسیږی ځکه چه دا وخت د عمل نهٔ دے بلکه د عمل د جزاء او بدلے دے۔
الله تعالیٰ د سورتِ فجر په (۲۳) آیت کښ فرمایلی دی:
﴿يَوْمَئِذٍ يَّتَذَكَّرُ الْإِنْسَانُ وَاَنّٰى لَهُ الذِّكْرٰى﴾ (په دے ورځ به انسان په خبره پوهه شی، مګر ددے وخت د پوهیدلو څهٔ فائده؟)۔

| فَاعْلَمْ اَنَّهٗ لَا اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاسْتَغْفِرْ |
|---|
| نو پوهه شه یقیناً نشته حقدار د بندګیٔ سویٰ د الله نه او بخنه غواړه |

| لِذَنۡبِكَ وَلِلۡمُؤۡمِنِينَ وَالۡمُؤۡمِنَاتِ وَاللّٰهُ يَعۡلَمُ |
|---|
| دپاره د ګناه خپلې او مؤمنانو سړو لره او مؤمنو ښځو لره او الله پېژني |
| مُتَقَلَّبَكُمۡ وَمَثۡوَاكُمۡ ﴿١٩﴾ |
| ځائے د اوړيدو ستاسو او ځائے د اوسيدو ستاسو. |

**تفسير:** نبي كريم ﷺ مخاطب كوي فرمائي چه هركله دا خبره ډيے وپيژندله چه د خير او جنت مدار په توحيد او طاعت باندے دے، او د شر مدار په شرك او په ګناهونو باندے دے، نو اے زما نبي! ته پوره طور سره دا خبره هم اوپيژنه چه د هغه الله نه سوئ هيڅوك د عبادت لائق نشته، چه هغه د ټول جهان خالق او مالك دے، چه د هغهٔ عبادت دے وكړے شي، نو ته په همدے عقيده باندے ټينګ اوسه، ددے نه د وېښته برابر مهٔ كږيږه،

**فَاعۡلَمۡ:** ددے نه معلومه شوه چه د كلمے يوه فريضه دا ده چه د هغے الفاظ بنده ووائي بيا د هغے په معنیٰ باندے علم راولي، او ښه پرے پو هه شي، او بيا د هغے مطابق عقيده وساتي، دا علم كافرانو او منافقانو نهٔ دے حاصل كړے، نو اے مخاطبه! ته ئے حاصل كړه چه كاميابئ ته ورسيږے.

امام بخاريؒ ددے نه دا استدلال كړيدے بَابُ الۡعِلۡمِ قَبۡلَ الۡقَوۡلِ وَالۡعَمَلِ چه علم د عمل نه مخكښې وي لكه دلته علم مخكښې ذكر شويدے د وَاسۡتَغۡفِرۡ وغيره نه.

**وَاسۡتَغۡفِرۡ لِذَنۡبِكَ:** پدے كښې هر مؤمن ته خطاب دے، او كه نبي ته خطاب شي، نو بيا به معنیٰ دا وي چه د خپل رب نه دے دپاره بخښنه غواړه چه تا نه څهٔ ګناه اونشي، (قرطبيؒ) يا كله ناكله د خِلافِ اولیٰ دپاره بخښنه غواړه، يا د ذنب نه مراد د زړه بوج او خفګان دے لكه امام بخاريؒ په كتاب الدعوات (٦٣٠٧) كښې د ابو هريره ﷺ نه روايت كړے چه رسول الله ﷺ وفرمايل: [إِنَّهُ لَيُغَانُ عَلَى قَلۡبِي] (ومسلم: ٧٠٤٤)

(يعنى زما په زړه باندے بوج او خفګان راځي نو زهٔ اويا يا سل كرته استغفار وايم. اے خلقو! د خپل رب په حضور كښې توبه كوئ، زهٔ د ورځے اويا (٧٠) ځلو نه زيات د الله نه بخښنه غواړم، او د هغهٔ په دربار كښې توبه كوم).

او په كتاب التهجد كښې د ابن عباس ﷺ نه ئے روايت كړے چه نبي ﷺ به د مانځه په آخر كښې داسے دعاء كوله:

[ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِیْ مَا قَدَّمْتُ وَمَا اَخَّرْتُ، وَمَا اَسْرَرْتُ وَمَا اَعْلَنْتُ، وَمَا اَسْرَفْتُ، وَمَا اَنْتَ اَعْلَمُ بِهٖ مِنِّیْ. اَنْتَ اِلٰهِیْ، لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ ]

په دې دعاء کښې نبي کريم ﷺ د خپلو مخکنو روستنو، پټ او ښکاره او هغه تمامو ګناهونو نه ښښنه غوښتلې چه هغه الله ته ښهٔ معلوم دي.

د علم نه روستو ئې په استغفار باندې حکم وکړو، پدې کښې يو وجه دا ده چه ګناهونه په آخرت کښې ډير ضرر ورکوي نو مخکښې د آخرت تذکره وشوه نو دلته وائي چه دنيا کښې د الله نه د ګناهونو بخښنه وغواړئ.

دويم پدې کښې اشاره ده چه د علم سره استغفار په کثرت سره ضروري دې.

وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ: او د خپل رب نه د مومنانو سړو او ښځو دپاره هم بخښنه غواړه دې دپاره چه الله د دوئ ګناهونه معاف کړي. پدې کښې اشاره ده چه هر مؤمن لره ضروري ده چه د نورو مؤمنانو دپاره به استغفار غواړي.

علماء فرمائي: دا ددې امت دپاره ډير اکرام دې چه الله حکم وکړو هغه نبي ته چه د هغهٔ دعا قبليږي پدې خبره چه د مؤمنانو دپاره بخښنه وغواړي.

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مُتَقَلَّبَكُمْ وَمَثْوَاكُمْ: ۱- مُتَقَلَّب فِي النَّهَارِ وَمَثْوىً فِي اللَّيْلِ - ځای د اوړيدو ستاسو په ورځ کښې او ځای د وسيدو (آرام کولو) د شپې.

(۲) متقلب دنيا ده، او مثوىٰ قبر او آخرت دې. يعني الله ستاسو عملونه په دنيا کښې او مرجع په قبر او په قيامت کښې پيژني. (ابن عباسؓ) (فتح البيان)

(۳) ګرځيدل په سفر کښې او اقامت کول په يو ځای کښې. يعني ستاسو په ټولو حالاتو باندې الله عالِم دې ددې وجه نه د هغهٔ د توحيد الوهيت علم ضروري دې، او استغفار غوښتل پکار دي.

او دارنګه اشاره ده چه په تاسو باندې علم او عمل ضروري دې، او هر چه عاقبت او نتيجه ده نو هغه د الله تعالىٰ په علم او اختيار کښې ده.

وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا لَوْلَا نُزِّلَتْ سُوْرَةٌ فَاِذَآ اُنْزِلَتْ

او وائي هغه کسان چه ايمان ئې راوړيدې ولې نشي نازلولې سورت نو کله چه نازل

سُوْرَةٌ مُّحْكَمَةٌ وَّذُكِرَ فِيْهَا الْقِتَالُ رَاَيْتَ الَّذِيْنَ

شي يو سورت مضبوط او ذکر شي په هغې کښې جنګ، وينې به ته هغه کسان

فِیۡ قُلُوۡبِہِمۡ مَّرَضٌ یَّنۡظُرُوۡنَ اِلَیۡکَ نَظَرَ

چه په زړونو د هغوی کښې مرض دے، ګوري به دوی تا ته پشان د کتلو

الۡمَغۡشِیِّ عَلَیۡہِ مِنَ الۡمَوۡتِ فَاَوۡلٰی لَہُمۡ ﴿۲۰﴾

د هغه چا چه بیهوشي راغلې وي په هغۀ باندے د وجے د مرګ نه نو لائق وه د دوی

طَاعَۃٌ وَّ قَوۡلٌ مَّعۡرُوۡفٌ فَاِذَا عَزَمَ الۡاَمۡرُ فَلَوۡ

دپاره۔ تابعداري او وینا نیکه نو کله چه مضبوط شي کار (نو دوی مخ واړوي) نو که

صَدَقُوا اللّٰہَ لَکَانَ خَیۡرًا لَّہُمۡ ﴿۲۱﴾ فَہَلۡ عَسَیۡتُمۡ

دوی رشتیا وئیلي وے الله ته خامخا وے به دا غوره د دوی دپاره۔ پس نزدے یئ تاسو

اِنۡ تَوَلَّیۡتُمۡ اَنۡ تُفۡسِدُوۡا فِی الۡاَرۡضِ وَ تُقَطِّعُوۡۤا

که واوړیدئ تاسو (د جهاد نه) چه فساد به وکړئ په زمکه کښې، او پرے به کړئ

اَرۡحَامَکُمۡ ﴿۲۲﴾ اُولٰٓئِکَ الَّذِیۡنَ لَعَنَہُمُ اللّٰہُ

خپلولئ ستاسو۔ دا هغه کسان دي چه لعنت کړیدے په دوی باندے الله تعالیٰ

فَاَصَمَّہُمۡ وَ اَعۡمٰۤی اَبۡصَارَہُمۡ ﴿۲۳﴾ اَفَلَا یَتَدَبَّرُوۡنَ

نو کاڼۀ کړي ئے دي دوی او ړانده کړي ئے دي سترګے د دوی۔ آیا سوچ نکوی دوی

الۡقُرۡاٰنَ اَمۡ عَلٰی قُلُوۡبٍ اَقۡفَالُہَا ﴿۲۴﴾

په قرآن کښې یا په زړونو د دوی باندے تالے ددے دي۔

**تفسیر:** اُوس پدے رکوع کښې په منافقانو باندے تفصیلي رد ذکر کوي۔ مدینے ته د هجرت نه پس چه په مسلمانانو کوم حالات راغلل، او د مکے او نورو علاقو کافرانو چه په مسلمانانو کوم ظلم او بربریت کولو، ددے په آوریدو سره به د مخلصو مسلمانانو زړونه تنګیدل، او دابه ئے غوښتل چه دوئ ته د الله تعالیٰ د طرفه د جهاد اجازت ملاؤ شي، دے دپاره چه کافرانو سره جنګ وکړي او بدله ترے واخستلے شي، دے وجے نه په قرآن کریم کښې د جهاد حکم نازل شو،

او دا آیتونه د منافقانو په زړونو باندې د تندر پشان ولګیدل، او رسول الله ﷺ ته ئې په داسې نظرونو سره کتل شروع کړل لکه چه په دوئ باندې د مرګ بیهوشي راغلې وي. اوسه پورې خو دوئ د مونځونو او نورو اسلامي اعمالو په ذریعه د خپل ځان د مسلمان ښکاره کولو ثبوت ورکړې وو، او په خپل منافقت باندې ئې پرده اچولې وه، اُوس چه کله د جهاد حکم راغې، او د دوئ نه د ځان او مال مطالبه اُوشوه نو د دوئ په سترګو کښې د مرګ نقشه راغله.

لَوْلَا نُزِلَتْ سُوْرَةٌ: یعنې ولې نهٔ نازلیږي داسې یو سورت چه په هغې کښې حکم وي په فرضیت د قتال باندې.

او د اَلَّذِیْنَ آمَنُوْا نه مراد مؤمنان دي، او د دوي به دا شوق وو چه وحي راشي او جهاد فرض کړې شي. یا ددې نه مراد منافقان دي چه په طریقه د منافقت سره به ئې د سورت د نازلیدو طلب کولو لکه په سورت نساء (۷۷) آیت کښې ذکر دي.

مُحْكَمَةٌ: ۱-قتادةؒ وائي:

[كُلُّ سُوْرَةٍ ذُكِرَ فِيْهَا الْجِهَادُ فَهِيَ مُحْكَمَةٌ وَهِيَ اَشَدُّ الْقُرْآنِ عَلَى الْمُنَافِقِيْنَ]

محکم سورت هغه دې چه په هغې کښې د جهاد ذکر وي او دا په منافقانو باندې ډیر سخت سورت وي.

۲- دارنګه محکم هغه هم دې (اَلَّتِيْ لَا تُنْسَخُ وَلَا تُخَفَّفُ) چه نهٔ منسوخ کیږي او نهٔ پکښې تخفیف راځي.

نَظَرَ الْمَغْشِيِّ: یعنې تا ته خپل نظرونه رانیغ کړي، او تا ته په سخت نظر سره ګوري لکه د مرګ په وخت چه د یو تن نظر نیغ پاتې شي.

یا د یرې د مرګ نه په یو تن بې هوشي راشي، نو د هغهٔ سترګې نیغې او وازې یو طرفته پاتې شي، نو دغه شان دوي هم بزدله دي.

فَاَوْلٰى لَهُمْ: الله تعالیٰ دې منافقانو له دهمکي ورکړه چه دوئ له هلاکت او بربادي ده.

جوهريؒ او اصمعيؒ د ﴿اَوْلٰى لَهُمْ﴾ همدا معنیٰ بیان کړې.

اصمعيؒ داسې وئیلي دي: قریب شو دوي ته هغه شې چه دوي لره هلاکوي.

۲- جرجانيؒ وائي: دا مصدر دې د وَيْلٌ نه. یعنې دوي لره هلاکت دې.

۳- قتادةؒ وائي: اولیٰ په معنیٰ د زیات لائق سره دې یعنې اَلْعِقَابُ اَوْلٰى لَهُمْ. سزا ددوئ سره لائقه ده.

٤-دے کښې ظاهره معنیٰ دا ده چه طَاعَةٌ وَّقَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ مبتدا مؤخر او اَوْلٰى لَهُمْ ئے خبر مقدم دے۔ یعنی دوی سره لائقه او دوی له بهتره دا وه چه دوی د الله او د هغهٔ د رسول خبره منلے وے، او د رسول الله ﷺ په باره کښې ئے د خپلو ژبو نه ښه خبره را اوخکلے۔

طَاعَةٌ وَّقَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ : ١- دا خبرونه دی د اَوْلٰى لَهُمْ (مبتداء) دپاره۔ لکه چه مخکښې ذکر شو۔ یعنی دوی سره لائق وه چه دوی ستا طاعت کولے او تا ته ئے داسے خبره کولے چه د ضرر نه خالي وے۔ ٢- یا دا مبتداء ده او خبر ئے پټ دے (خَيْرٌ لَّكُمْ) یعني طاعت د پیغمبر او ښه خبره ستاسو دپاره غوره ده۔

٣- خلیل او سیبویهٔ وائي : تقدیر داسے دے : [طَاعَةٌ وَّقَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ اَحْسَنُ وَاَمْثَلُ بِكُمْ مِنْ غَيْرِهِمَا] یعني خبره منل او ښه خبره کول ډیر ښه او ډیر غوره دی تاسو لره د بل څه نه۔

فَاِذَا عَزَمَ الْاَمْرُ : ددے جزاء پټه ده (اَیْ اَعْرَضُوْا) یعنی کله چه خبره او حکم مضبوط شي چه فلانی ځای ته جهاد ته لاړ شئ نو دوی مخ واړوی او د جهاد نه پټ شي۔

یا جزاء روستو توله جمله د فَلَوْ صَدَقُوا اللّٰهَ ده۔

او د صدق نه مراد په ایمان او جهاد کښې اخلاص کول دی۔ او مطلب دا دے چه کله د جهاد حکم فرض شي نو که دوی په ایمان او جهاد کښې اخلاص کولے او نیت ئے ورته صفا کړے وے نو دا به دوی لره په دنیا او آخرت کښې ډیره بهتره وے۔ (ابن کثیرؒ)

څکه چه په صحیح نیت سره جهاد کول خو کامیابی ده۔

یا د رشتیا نه مراد دا چه په دغه مخکنی لوظ کښې دوی الله تعالیٰ ته رشتیا وئیلی وے چه یو سورت دے الله راولیږی چه جهاد پکښې وی، نو مونږ به ضرور څو نو اوس خو پکار ده چه دغه لوظ سر ته ورسوی۔

فَهَلْ عَسَيْتُمْ : پدے کښې همدے منافقانو ته خطاب کیږی، الله فرمائي : که چرے تاسو د خپل ظاهری ایمان نه هم واوړئ او ښکاره کفر اعلان کړئ، او جهادونو نه واوړیدئ نو ډیر ناکاره نتیجے به مینځ ته راشي، او هغه دا چه تاسو به د جاهلیت د زمانے پشان یو بل اُووژنئ، او د خپلو مسلمانانو رشته دارو خِلاف به جنګ وکړئ۔

یعنی د جهاد او قرآن پریخودل سبب د فسادونو دے۔ په کوم ځای کښې چه صحیح جهاد شروع وی هلته نه فسادونه ختمیږی، او که نهٔ وی نو افراتفری، او خپل مینځ کښې جنګ جګړے به وی۔

٢- ﴿ اِنْ تَوَلَّيْتُمْ ﴾ اَیْ [ اِنْ حَكَمْتُمْ ] (که چرے تاسو حاکمان جوړ شوئ) یعنی اے هغه

خلقو چه هغویٔ د زړهٔ نه اسلام نهٔ دے قبول کړے ! که چرے تاسو ته حکومت ملاؤ شی نو تاسو به په زمکه کښې فساد خور کړئ، ظلم به اُوکړئ، رشوتونه به اخلئ او خپلو کښې به یو بل قتل کړئ، حالانکه الله تعالی د اسلام په ذریعه تاسو یو موتے کړئ او د نیکئ او صله رحمئ حکم درکولو سره ئے ستاسو جسمونو سره ستاسو زړونه هم یو ځائے (جوړ) کړل.

وَتُقَطِّعُوٓا اَرۡحَامَكُمۡ: اَیۡ كَمَا كُنۡتُمۡ فِی الۡجَاهِلِيَّةِ . لکه څرنګ چه تاسو په جاهلیت زمانه کښې دغه شان وئ چه د یو بل صله رحمی به مو پریکوله پدے طریقه چه په یو بل باندے به مو حملے کولے. هر طرفته بد امنی وه.

اُولٰٓئِكَ: دا اشاره ده تیر شوی صفتونو والو ته، یعنی دغه مخکنی (فساد، د جهاد نه تختیدل، طاعت نهٔ کول، صدق نهٔ کول، او قطع رحمی) سبب د لعنت دے، او کله چه په دوی لعنت وشو، نو د دوی سترګے ړندے او غوږونه کاڼړه شول چه اُوس حق نهٔ آوری او نهٔ حق وینی. یعنی د دوئ په دنیا کښې انجام دا شو چه الله تعالیٰ دوئ د خپل رحمت نه لرے کړل، نو پدے وجه ئے د حقے خبرے آوریدو نه کاڼړه کړل او د سمے لارے د لیدو طاقت ئے ترے واخستو.

**فائده** : (فَاَصَمَّ آذَانَهُمۡ) ئے ونهٔ وئیل ځکه چه د غوږ په پریکولو او ختمولو آوریدل نهٔ فوت کیږی، او (اَعۡمٰٓى اَبۡصَارَهُمۡ) ئے ووئیل ځکه چه د سترګو په لرے کولو سره نظر ختمیږی.

اَفَلَا يَتَدَبَّرُوۡنَ الۡقُرۡاٰنَ: ربط :

۱ – د مخکنو صفتونو د وجه نه په دوی لعنت وشو، نو دوی د خیر نه محروم شو چه هغه د قرآن کریم تدبر او ددے په معانیو او مقاصدو کښې فکر کول دی.

۲ – دارنګه دلته د منافقانو بد صفتونه ذکر کیږی نو یو د هغه بدو صفاتو نه دا دے چه قرآن کریم کښې سوچ او تدبر نهٔ کوی.

اَفَلَا: کښې همزه استفهام انکاری دے یعنی دوی تدبر نهٔ کوی. او پدے کښې اشاره ده چه د قرآن کریم مقصد صرف تلاوت کول نهٔ دی بلکه ددے په معانیو او مقاصدو او حکمتونو کښې سوچ او تدبر کول دی.

اَمۡ عَلٰى قُلُوۡبٍ: اَمۡ په معنیٰ د بَلۡ سره دے، او پدے کښې ترقی ده، یعنی د تدبر نهٔ کولو حقیقی وجه دا ده چه د دوئ په زړونو جرندے وهلے شویدی.

قُلُوْبٍ: ئې نکره راوړه اشاره ده قباحت د زړونو د دوئ ته چه ګويا که دا داسې زړونه دي چه ناشنا دي، او ددې حال نۀ دې معلوم۔

او زړۀ تـه د جرندې وهلو نه مطلب دا دې چه په زړونو سره حق نۀ پيژني، او نۀ د حق او د الله تعالیٰ د کتاب په باره کښې سوچ کوي چه دې کښې دوئ ته څه وئيلې کيږي او کوم طرفته رابللې کيږي۔

أَقْفَالُهَا: اضافت د أَقْفَال ئې زړونو ته وکړو اشاره ده چه دا جرندې د اُوسپنې نۀ دي بلکه هغه جرندې دي چه د دوئ د زړونو سره مناسب دي چه هغه د کفر او عناد کولو جرندې دي۔

او زړۀ تـه د تالې وهل د مهر وهلو نه زيات سخت دي يعني د دوي په زړونو کښې ايمان بيخي نۀ ننوزي او کفر او شرك ترې بيخي نۀ راوځي لکه چه يوه دروازه بنده شي نو دغه شان وي۔

د آيت نه معلومه شوه چه د الله په کتاب کښې تدبر نۀ کول د منافقت نخه ده۔

| إِنَّ الَّذِيْنَ ارْتَدُّوْا عَلٰى أَدْبَارِهِمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا |
|---|
| يقيناً هغه کسان چه واوړيدل (د ايمان نه) په شاګانو خپلو روستو د هغې نه |
| تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدَى الشَّيْطَانُ سَوَّلَ لَهُمْ |
| چه ښکاره شو دوی ته هدايت، شيطان ښائسته کړيدی دوی ته (عملونه د دوی) |
| وَأَمْلٰى لَهُمْ ﴿٢٥﴾ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوْا لِلَّذِيْنَ |
| او مهلت ئې ورکړيدې دوی ته۔ دا پدې وجه چه دوی وئيلي دي هغه کسانو ته |
| كَرِهُوْا مَا نَزَّلَ اللّٰهُ |
| چه هغوی بد ګنړلې دې هغه کتاب چه نازل کړيدې الله تعالیٰ، |
| سَنُطِيْعُكُمْ فِيْ بَعْضِ الْأَمْرِ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ |
| زردې چه مونږ به تابعداری کوو ستاسو په بعض کارونو کښې او الله پو هيږی |
| إِسْرَارَهُمْ ﴿٢٦﴾ فَكَيْفَ إِذَا تَوَفَّتْهُمُ |
| په پټو رازونو د دوی۔ نو څنګه به وی (حال د دوی) کله چه به روح اخلي د دوی نه |

| الْمَلَائِكَةُ يَضْرِبُوْنَ وُجُوْهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ ﴿٢٧﴾ ذٰلِكَ |
|---|
| ملائك وهي به مخونه د دوی او شاګانے د دوی۔ دا پدے وجه |
| بِأَنَّهُمُ اتَّبَعُوْا مَا أَسْخَطَ اللهَ |
| چه یقیناً دوی روان شویدی د هغه شي پسے چه غصه کوی الله تعالیٰ لره |
| وَكَرِهُوْا رِضْوَانَهُ فَأَحْبَطَ أَعْمَالَهُمْ ﴿٢٨﴾ |
| او بد ګنړلے دوی رضا د الله تعالیٰ نو هغهٔ برباد کړل عملونه د دوی۔ |

**تفسیر:** اُوس منافقانو ته زجر ورکوی، او دا خبره ښکاره کوی چه هر منافق مرتد دے، او د دوئ د ارتداد وجه دا ده چه دوی ته د قرآن کریم نه د قتال فرضیت معلوم شو، او بیا ئے هم اعراض وکړو، د رسول الله ﷺ ښکاره معجزات او د قرآن کریم قوی دلیلونه ورته ښکاره شو، او بیا ئے هم د هغهٔ سره چل ول شروع کړو۔

ابن عباس رضي الله عنه وائی چه ددے نه مراد منافقان دی۔

قتادهٔ وائی چه ددے خلقو نه مراد د اهل کتابو کافران دی چه د رسول الله ﷺ صفات پیژندلو نه روستو ئے په هغهٔ باندے کفر وکړو۔ اول قول د سیاق سره زیات مناسب دے۔

**اَلْهُدٰی:** نه مراد اسلام، اتباع رسول دے۔

**سَوَّلَ لَهُمْ:** مفعول پټ دے۔ اَيِ الْاِرْتِدَادَ ۔ یعنی شیطان دوی ته مرتد کیدل او دین پریخودل ښائسته ښکاره کړیدی۔

او پدے کښې دا اشاره هم ده چه د شرك او بدعاتو عملونه ورته ښائسته ښکاره کړی چه هغې ته ګناه نهٔ وائی نو توبه ترے نهٔ وباسی۔

**وَأَمْلٰى لَهُمْ:** او دوی ته ئے امیدونه ورکړیدی چه پدے کښې به د دنیا ترقی وکړے، مشری او عهده او مال به درته ملاؤ شی۔

او دا په طریقه د وسوسو سره دے چه د انسان نه مرګ هیر کړی۔ او ددے تائید په سورت اعراف (۲۰۲) آیت کښې ذکر دے۔

او اَمْلٰى لَهُمْ کښې دے ته هم اشاره ده چه دوی ئے په خواهشاتو او نفساني شهواتو کښې داسے ډوب کړیدی چه د توبے کولو نه غافل دی۔ او دائے ورته وئیلی دی چه اُوس خو لا اوږد عمر پروت دے، د ژوند نه ښهٔ خوند واخلئ، د محمد په تابعداریٔ کولو سره ولے

خپل ځانونه په خطره کښې غورزوي.

**ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ**: اُوس د منافقانو د ارتداد سبب بیانوي. یعني دوی اول کښې ایمان ښکاره کړو لیکن بیا ئې د کافرانو طاعت شروع کړو نو الله دا سزا ورکړه چه د دوی نه ئې ایمان واخستو. او دې آیت کښې د مؤمن دپاره ډیره خطره ده، چه د کافرو په خبرو منلو سره انسان نه ایمان اخستے کیږي.

ددې وجه نه رسول الله ﷺ به فرمایل: زما امت به په خیر او فطرت باندې وي چه ترڅو پورې روژه ماتے وختي کوي. (بخاري: ۱۹۵۷) ومسلم: ۶۸۰۸)

ځکه چه پدې کښې د یهودو مشابهت نه وړاندې والے کیږي.

**لِلَّذِيْنَ كَرِهُوْا**: ددې نه مراد قریش کافران دي، او دارنګه یهودیان (بنو نضیر او بنو قریظه) هم پکښې داخل دي چه منافقان د دوی سره ملګري شوي وو، او د مسلمانانو په خلاف به ئې سازشونه کول. لکه د سورة الحشر (۱۱) آیت پرې دلیل دے.

﴿اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ نَافَقُوْا﴾.

**فِيْ بَعْضِ الْاَمْرِ**: بعض کارونو نه ډیر څیزونه مراد دي:

(۱) عَدَاوَةُ الرَّسُوْلِ ﷺ. یعني د رسول الله ﷺ دشمني کول.

(۲) اَلْقُعُوْدُ عَنِ الْقِتَالِ. د جنګ نه کیناستل. او نور خلك د رسول الله ﷺ د طاعت او جهاد نه منع کول.

(۳) اَلتَّجَسُّسُ عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ. د مسلمانانو په خلاف جاسوسي کول.

**وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اِسْرَارَهُمْ**: هرکله ئې چه دا خبره پټه کوله او نور منافقتونه ئې هم پټ ساتلي وو نو الله وفرمایل چه زهٔ د دوی پټ رازونه پیژنم، سزا به ورکوم او خلقو ته به ئې شرموم. إسرار مصدر دے یعني پټول د رازونو.

**فَكَيْفَ**: اُوس تخویف دے په مرګ سره، او پدې کښې حال د زنکدن دے. فاء ئې راوړه اشاره ده چه دا عذاب په سبب د مخکنو صفتونو او احوالو سره دے.

**وُجُوْهَهُمْ وَاَدْبَارَهُمْ**: د دوی مخونه او شاګانې ئې پدې وجه ذکر کړل چه د قتال د اعلان په وخت کښې به د دوی په مخونو باندې د خفګان آثار ښکاره کیدل او دغه به ئې بچ کولو، او شا به ئې ګرځوله په وخت د تختیدو کښې. او دا د دوی حال دے په وخت د مرګ کښې چه ملائك به ئې وهي او نورو انسانانو ته به پته نهٔ لګي او دا د ایمان بالغیب سره تعلق ساتي.

یا دا د قتال په وخت مراد دے چه الله به د ملائکو په ذریعه د رسول الله ﷺ مدد کوی او دا کافران به په مخونو او شاګانو وهی۔ اول مطلب غوره دے۔

**ذٰلِكَ:** یعنی دا وفات کول او په دغه طریقه سره وهل د منافقانو۔

**مَا اَسۡخَطَ اللّٰهَ:** یعنی دوئ سره به داسے رسوا کُن کار څکه کیږی چه دوئ هغه کار کړے دے چه هغے سره الله تعالیٰ ناراضه کیږی، د الله، د هغهٔ د رسول او د هغهٔ د کتاب نه ئے انکار کړے وو، او کومو کارونو سره چه الله راضی کیږی هغه دوئ بدے اوګنړل۔ د ایمان، توحید او د طاعت او بندګئ نه ئے مخ اړولے وو۔

دے وجے نه الله تعالیٰ د دوئ منافقانه ایمان او د ځان ښودنے اعمال ضائع کړل، په دنیا کښې ئے د دوپرقئ ژوند تیر کړو، او د مخلصو مسلمانانو په نظرونو کښې ذلیله جوړ شول، او اُوس د مرګ په وخت د دوئ مخونه او شاګانے په ګرزونو وهلے کیږی۔

| |
|---|
| أَمۡ حَسِبَ ٱلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ أَن لَّن |
| آیا ګمان کوی هغه کسان چه په زړونو د هغوی کښې مرض دے چه هیچرے |
| يُخۡرِجَ ٱللَّهُ أَضۡغَٰنَهُمۡ ﴿٢٩﴾ وَلَوۡ نَشَآءُ لَأَرَيۡنَٰكَهُمۡ |
| ویه نهٔ باسی الله کینے د دوی۔ او که وغواړو مونږ خامخا ویه ښایو تا ته دوی |
| فَلَعَرَفۡتَهُم بِسِيمَٰهُمۡۚ وَلَتَعۡرِفَنَّهُمۡ فِي |
| نو خامخا تا به پیژندلی وے دوی په نخود دوی او خامخا پیژنے به تهٔ دوی لره په |
| لَحۡنِ ٱلۡقَوۡلِۚ وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ أَعۡمَٰلَكُمۡ ﴿٣٠﴾ |
| چالاکئ د خبرو کښې او الله پیژنی عملونه ستاسو۔ |
| وَلَنَبۡلُوَنَّكُمۡ حَتَّىٰ نَعۡلَمَ |
| او خامخا ازمیښت به کوو په تاسو باندے تردے چه ښکاره کړو مونږ |
| ٱلۡمُجَٰهِدِينَ مِنكُمۡ وَٱلصَّٰبِرِينَ وَنَبۡلُوَاْ أَخۡبَارَكُمۡ ﴿٣١﴾ |
| هغه کسان چه جهاد کوی ستاسو نه او صبرناك او ښکاره کړو خبرونه ستاسو۔ |

**تفسیر:** د منافقانو په باره کښې وئیلے کیږی چه دوئ دے په دے خام خیالئ کښې نهٔ

مبتلا کیږي چه الله تعالیٰ به د دوئ نه پرده پورته نهٔ کړي، او د دوئ د دوپړقئ خبر به مسلمانانو ته ورنهٔ کړي. هغه به خامخا د دوئ نشاندهي کوي دے دپاره چه عقلمند مسلمانان د دوئ نه هوښیار اوسي، او د دوئ په نقل او حرکت باندے نظر ساتي.

أَضْغَانَهُمْ: اضغان جمع د ضِغن ده، په زړهٔ کښې پټه کړے شوے ناکاره خبره. دلته مراد خیانت، حسد، کینه او دشمني ده.

ابن عباس ﷺ وائي : اضغان نه مراد د دوئ اعمال او پلیتي او هغه حسد دے چه د دوی په زړونو کښې دے.

یعني د چا چه د اسلام او مسلمانانو سره کینه او دشمني وي، نو الله به امتحانات راولي په هغے سره به د منافقانو منافقت او دشمني راښکاره کیږي. ډیر خلق د مسلمانانو په معاشره کښې وسیږي، بزرګ معلومیږي او خلق پرے د مولا ګمان کوي لیکن په مینځ کښې د هغهٔ د اسلام سره مینه نهٔ وي نو کله چه داسے قسم یو امتحان راشي نو د هغه کفر راښکاره شي.

وَلَوْ نَشَآءُ لَأَرَيْنَاكَهُمْ: الله تعالیٰ نبي کریم ﷺ ته خطاب کوي فرمائي : که چرے مونږ وغواړو نو تا ته به یو یو منافق اُوښایو او تهٔ به هر یو په خپلو سترګو اووینے، او د دوئ په نښو سره به دوئ اُوپیژنے، لیکن الله د خپل حکمت او مصلحت له مخه په دوئ کښې په ډیرو باندے پرده اچولے ده. البته یوه خاص علامه به درته وښایو هغه دا چه ته به دوئ د خپلو خبرو د طرز نه پیژنے، کله چه تاسو ګورئ، دوئ به ستا او د مسلمانانو شان ښکته کونکے خبره کوي.

مفسرین لیکي چه ددے آیت نازلیدو نه پس به چه کله کوم منافق د نبي کریم ﷺ مخامخ خبرے کولے نو هغهٔ به هغه د خپلو خبرو د طرز نه فوراً پیژندلو. (فتح البیان)

دے تفسیر کښې (فَلَعَرَفْتَهُمْ) په اَرَيْنَاكَهُمْ باندے عطف دے نو دواړو کښې معنیٰ د نفي ده ځکه چه لَوْ راځي د امتناع د شرط او جزاء دواړو دپاره.

۲- دے کښې دویم مطلب دا هم جوړیږي چه که مونږ وغواړو نو تا ته به مو یو یو په نوم خودلے وے او تا به لیدلے وے. لیکن د مصلحت په بناء هر یو درته نهٔ ښایو، البته دومره درته وایو چه تهٔ به منافقان د دوی په خاصو نخو سره پیژنے او د هغه خاصو نخو نه یوه نخه دا ده چه تهٔ به دوی د خبرو په چالاکئ سره پیژنے.

فِي لَحْنِ الْقَوْلِ: د لحن نه مراد دلته داسے خبره ده چه ستا مخاطب پرے پو هه شي، او

په بل چا باندے خبره پته شي۔ او لحن په اصل کښې کلام مائله کول او اړول دي يو طرف ته دپاره د يو غرض د اغراضو نه لکه اِعْرَاب زائل کول يا غلط لوستل۔ په علم تجويد کښې د لحن معنیٰ ده، غلط لوستل۔ او دلته ترے خبرے تاوول او چالاکي کول مراد دي۔

دا آيت دليل دے چه رسول الله ﷺ ټول منافقان نهٔ پيژندل البته بعض ئے پيژندل او خاص کر هغه منافقان چه هغوی به لحن القول کولو۔

دا هم دليل دے چه رسول الله ﷺ غيبدان نهٔ وو۔

بيا فراست دوه قسمه دے، يو فِرَاسَةُ الْعَيْن دے او بل فِرَاسَةُ الْأُذُن دے، نو په فَلَعَرَفْتَهُمْ بِسِيْمَاهُمْ کښې د سترګو فراست ته اشاره ده، يعنې په سترګو يو انسان ته کتل او د هغه عيب معلومول۔ دا کم وي او په غوږ باندے فراست زيات وي پدے وجه ئے (فَلَتَعْرِفَنَّهُمْ) کښې تاکيد زيات راوړيدے۔ ځکه چه د منافق سړی د خبرو نه عامو خلقو ته منافقت رابښکاره کيږي۔

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اَعْمَالَكُمْ : يعنې الله ستاسو د ټولو اعمالو نه ښهٔ خبر دے، او هر يو له به د قيامت په ورځ د هغهٔ بدله خامخا ورکوي۔ نو هر يو تن ډے ځان سره حساب وکړي او د دغه ورځے د شرم نه ډے پناه وغواړي۔ او دا دليل دے چه پيغمبر په ټولو اعمالو د مخلوق باندے علم نهٔ لري۔

وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ : دا د ﴿ اَنْ لَّنْ يُّخْرِجَ اللّٰهُ اَضْغَانَهُمْ ﴾ سره متعلق دے، يعنې د دوی دشمني به څرنګه رابښکاره کيږي؟ نو هغه پدے طريقه چه الله به امتحان راولي۔ دويم مخکښې د منافقانو د پيژندلو يوه علامه ذکر شوه چه هغه لحن القول دے، نو دلته د دوئ د تميز او معلومات دپاره بله طريقه ذکر کيږي، چه هغه ابتلاء ده په مصيبتونو سره، يا په عبادتونو او جهاد فرض کولو سره، او په حکم کولو سره په انفاق او اتباع د رسول باندے۔ او الله چه امتحان کوي نو مقصد پکښې د بندګانو حقيقت رابښکاره کول وي پدے وجه (نَعْلَمَ) نه مراد رابښکاره کول دي۔

اَلْمُجَاهِدِيْنَ: جهاد لفظ عام دے قتال او نورو ديني اعمالو ته۔

وَنَبْلُوَ اَخْبَارَكُمْ: اخبار نه مراد باطني اعمال او حالات دي لکه اخلاص او نفاق وغيره دي، يعنې جهاد او صبر ظاهري اعمال دي، او اخلاص او نفاق باطني اعمال دي، او دا ټول په ابتلاء اتو سره ښکاره کيږي۔

فُضیل بن عیاض رحمه الله به چه کله دا آیت ولوستو نو ویه ئې ژړل او دعاء به ئې وکړه
[اَللّٰهُمَّ لَا تَبْلُنَا فَاِنَّكَ اِذَا بَلَوْتَنَا فَضَحْتَنَا وَهَتَكْتَ اَسْتَارَنَا]

چه اې الله! په مونږ امتحان مهٔ راوله ګنې ویه شرمیږو او پردې به مو زائله شي نو بیا به ستا د عذاب مستحق شو۔ (فتح البیان والکشف والبیان للثعلبي)

الله تعالیٰ کله قدري مصیبتونه راولي په هغې مؤمن او منافق جدا جدا معلومیږي، او کله جهاد فرض شي، کله په دعوت کښې مشکلات راشي لکه په سورة العنکبوت کښې د هغې تفصیل ذکر وو۔

دا وجه ده چه د صحابه کرامو ترمینځ منافقان پټ نهٔ دي پاتې شوي بلکه بیل بیل راښکاره شویدي، په اُحد کښې درې سوه کسان راستانه شول۔ داسې نورو موقعو کښې ښکاره شویدي۔

د منکرین حدیث دا خبره غلطه ده چه وائي پته نهٔ لګي چه کیدې شي احادیث د رسول الله ﷺ منافقانو راوړي وي۔ د منافق نه هیچا روایت نهٔ دې نقل کړې۔ په کتابونو د حدیث کښې به هیچرې تهٔ داسې روایت نهٔ وینې چه د یو منافق نه نقل شوې وي۔

| إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللهِ وَشَاقُّوا |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه کفرئې کړیدې او خلق منع کوي د لارې د الله نه او خلاف کوي |
| الرَّسُولَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدٰى لَنْ |
| د رسول روستو د هغې نه چه ښکاره شویدې دوي ته هدایت، هیچرې |
| يَضُرُّوا اللهَ شَيْئًا وَسَيُحْبِطُ أَعْمَالَهُمْ ﴿٣٢﴾ يَا أَيُّهَا |
| دوي ضرر نشي ورکولې الله ته هیڅ شې، او زردې چه برباد به کړي عملونه د دوي۔ اې |
| الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَلَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ ﴿٣٣﴾ |
| ایمان والو! تابعداري وکړئ د الله او تابعداري وکړئ د رسول او مهٔ بربادوئ عملونه |
| إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللهِ ثُمَّ مَاتُوا |
| خپل۔ یقیناً هغه کسان چه کفرئې کړیدې او خلق منع کوي د لارې د الله نه بیا مړهٔ |

﴿وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ يَّغْفِرَ اللهُ لَهُمْ ﴿٣٤﴾

شو پداسې حال کښې چه دوی کافران وی نو هیڅرې به بخنه ونکړی الله دوی ته.

**تفسیر**: اُوس کافرانو ته زجر دے، ځکه چه د دوئ کوشش دا وو چه اسلام او مسلمانان ختم کړی، نو دلته الله هغوی ته دهمکی ورکوی چه تاسو الله تعالیٰ ته هیڅ ضرر نشئ ورکولے او خواری به مو ضائع شی.

مفسرین لیکی چه دلته منافقان مراد دی. د بعضو په نیز اهلِ کتاب (یهود او نصاریٰ) مراد دی. او د بعضو په نیز د مکے هغه مشرکان مراد دی چه هغوئ د بدر په میدان کښې په جنګیدونکو کافرانو باندے خوراك خورولے وو.

الله تعالیٰ وفرمایل چه کومو منافقانو الله او د هغهٔ رسول دروغژن وګڼړلو، خلق یې د اسلام قبلولو او د رسول الله ﷺ د تابعدارئ نه منع کړل، د دوئ مخالفت ئے وکړو او دوئ سره ئے جنګ وکړو (حالانکه دوئ ته حق واضح شوے وو، او حق دین او د رسول الله ﷺ رشتین والے په دلائلو سره ثابت شوے وو) هغوئ دے پوهه شی چه د هغوئ د کفر او مرتد کیدو نقصان به صرف هغوئ ته رسیږی، او الله تعالیٰ به د هغوئ ظاهری نیك اعمال ضائع کړی، ځکه چه د کفر په ذریعه د هغوئ هیڅ یو عمل د الله په نیز د قبلولو وړ نهٔ دے. دارنګه د دوی سازشونه به ناکام کړی.

مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ: دا د زیات تاکید دپاره وائی چه دا هغه مجرمان وو چه دوی هدایت په خپلو سترګو ولیدو بیا ئے هم د ضد او عناد د وجه نه مخالفت کولو.

يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا: د منافقانو او د هغوئ د اعمالو د انجام بیانیدو نه پس اوس ایمان والو ته په اتباع د رسول باندے حکم کوی او پدے کښې په منافقانو ردے چه دوئ دے د الله او د هغهٔ د رسول ﷺ خبره مني، او د منافقانو پشان په دوپرقئ او پټ ارتداد سره دے خپل ظاهری نیك اعمال ضائع نکړی.

﴿وَلَا تُبْطِلُوْٓا أَعْمَالَكُمْ﴾ (خپل عملونه مهٔ بیکاره کوئ)

۱- أَیْ بِمُخَالَفَةِ الرَّسُوْلِ . (مقاتل) د رسول الله ﷺ په مخالفت کولو سره عمل بربادیږی، که انسان مکمل خلاف شی نو ټول نیك عملونه ئے بربادیږی او که یو عمل د هغه خلاف وکړی، نو دغه عمل به ئے بربادیږی.

۲- بِالْكُفْرِ وَالنِّفَاقِ بَعْدَ الْإِيْمَانِ. یعنی د ایمان نه روستو په کفر او نفاق کولو سره.

۳- بِالرِّیَاءِ۔ (ریاء کاریٔ لپاره کار کول)۔
(٤) بِالْمَعَاصِیْ وَالْکَبَائِرِ۔ په لویو گناهونو ځکه چه بعض گناهونه داسے وی چه د انسان عملونه بربادوی، لکه سورة الحجرات کښې راغلی د رسول الله ﷺ بے ادبی کول۔ دارنگه احسان زباتل۔
د ابو العالیۃ نه نقل دی چه صحابه کرامو به دا گنړل چه د لا اله الا الله سره گناه ضرر نهٔ ورکوی لکه د شرك سره نیك عمل فائده نهٔ ورکوی، نو دا آیت نازل شو نو هغوی ویریدل چه گناهونه به د دویٔ عملونه برباد کړی۔
او په یو بل روایت کښې دی: نو هغوی د کبائرو نه ویریدل چه د دویٔ عملونه به برباد کړی۔
دے کښې دا نهٔ داخلیږی چه یو تن یو نفل مونځ یا روژه شروع کړی او بیا ئے مات کړی ځکه چه نفلو کښې شریعت بنده ته اختیار ورکړے دے، په اول کښې او په مینځ کښې او په هر حال کښې دا په خپل اختیار باندے باقی پاتے دے، او د (لَزِمَ النَّفْلُ بِالشُّرُوْعِ) قانون خطاء دے، دلیل دا دے چه دا خطاب خو رسول الله ﷺ ته هم دے، او حال دا چه رسول الله ﷺ به نفلی روژه ونیوله بیا به کور ته راغلو که څه به ملاؤ شو روژه به ئے ماته کړه او که نهٔ به وو نو روژه به پاتے شو۔
دارنگه رسول الله ﷺ خوا ته ام هانیٔ رضی الله عنها ناسته وه پدے کښې پیٔ راغلل، رسول الله ﷺ خپله څکلو نه روستو هغے ته ورکړو، هغے وڅکل بیا ئے وویل چه اے د الله رسوله! زهٔ خو روژه وم؟ وے فرمایل: [اَلصَّائِمُ الْمُتَطَوِّعُ اَمِیْرُ نَفْسِهٖ اِنْ شَاءَ صَامَ وَاِنْ شَاءَ اَفْطَرَ] نفلی روژه دار د خپل ځان امیر دے ددهٔ خوښه ده روژه نیسی او که روژه ماتوی۔ (النسائی، الحاکم، البیهقی بسند صحیح)
(اگرکه روژه نیول افضل دی) که دا معنیٰ واخستے شی نو بیا خو به نفل مونځ پریخودل ناروا شی۔
بله دا چه عمل باطلول دے ته وائی چه یو ځل عمل سرته ورسیږی۔ او په مینځ کښې خو لا عمل شوے نهٔ دے، نو باطلول ئے د کوم ځای نه راغلل۔ او ددے مسئلے پوره تفصیل په الحق الصریح شرح مشکاة المصابیح اول جلد کښې وگوریٔ۔
اِنَّ الَّذِیْنَ: اُوس کافرانو ته د آخرت تخویف بیانیږی۔ یعنی کوم خلق چه د الله او د هغهٔ د رسول ﷺ نه انکار کوی، خلق په اسلام کښې د داخلیدو نه منع کوی، او د کفر نه

توبے ویستلو او په اسلام کښې د داخلیدو نه مخکښې مرۀ شی، الله تعالیٰ هیڅ کله د دوئ گناهونه نۀ بخښی، بلکه دوئ به همیشه عذاب کښې اخته کوی.
بعض مفسرین وائی چه دا آیت د جاهلانو کافرانو په باره کښې دے او مخکښې آیت (۳۲) په باره د ضدیانو عنادیانو کښې وو.

| فَلَا تَهِنُوْا وَتَدْعُوْا إِلَى السَّلْمِ وَأَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ |
|---|
| نو مۀ کمزوری کیږئ او دعوت مۀ ورکوئ صلحے ته حال دا چه تاسو اُوچت یئ |
| وَاللّٰهُ مَعَكُمْ وَلَنْ يَّتِرَكُمْ |
| او الله تعالیٰ ستاسو ملګرے دے، او هیچرے نۀ کموی الله تعالیٰ ستاسو نه (ثواب) |
| أَعْمَالَكُمْ ﴿۳۵﴾ إِنَّمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ وَّإِنْ تُؤْمِنُوْا وَتَتَّقُوْا |
| د عملونو ستاسو. یقیناً ژوند دنیوی لوبے او مشغله ده او که تاسو ایمان لرئ او تقویٰ |
| يُؤْتِكُمْ أُجُوْرَكُمْ وَلَا يَسْأَلْكُمْ أَمْوَالَكُمْ ﴿۳۶﴾ |
| کوئ (نو) دربه کړی تاسو ته ثوابونه ستاسو او نۀ غواړی ستاسو نه مالونه ستاسو. |
| إِنْ يَّسْأَلْكُمُوْهَا فَيُحْفِكُمْ تَبْخَلُوْا |
| که چرته وغواړی ستاسو نه مالونه او زور دربانده اُوکړی (نو) بخل به وکړئ تاسو |
| وَيُخْرِجْ أَضْغَانَكُمْ ﴿۳۷﴾ هَاأَنْتُمْ هٰؤُلَاءِ |
| او راښکاره به کړی کینے ستاسو. خبردار تاسو اے خلقو دا کسان یئ |
| تُدْعَوْنَ لِتُنْفِقُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَمِنْكُمْ |
| چه تاسو رابللے کیدلے شئ دے دپاره چه خرچ اُوکړئ په لاره د الله کښې نو ستاسو نه |
| مَّنْ يَّبْخَلُ وَمَنْ يَّبْخَلْ فَإِنَّمَا يَبْخَلُ |
| هغه څوک دی چه بخل کوی او چا چه بخل وکړو نو یقیناً بخل کوی (چه راوځی) |
| عَنْ نَّفْسِهٖ ط وَاللّٰهُ الْغَنِيُّ وَأَنْتُمُ الْفُقَرَاءُ ج وَإِنْ تَتَوَلَّوْا |
| د نفس د هغه نه او الله تعالیٰ بے حاجته دے، او تاسو فقیران یئ او که تاسو مخ واړولو |

يَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُونُوٓا أَمْثَالَكُم ﴿٣٨﴾

په بدله كښې به راولي نور خلق سوئ ستاسو نه بيا به نۀ وي هغوى ستاسو پشان۔

**تفسير**: مومنانو ته الله نصيحت كړے چه تاسو د الله او د هغۀ د دشمنانو په خِلاف جهاد كولو كښې هرګز خپله كمزوري مۀ ښكاره كوئ، او د جهاد طاقت لرلو باوجود دشمنانو ته صلح مۀ پيش كوئ، په هر حال كښې به غلبه او كاميابي صرف تاسو ته حاصليږي، او ترڅو پورے چه تاسو د الله رسئ مضبوطه نيولے وي الله به ستاسو مدد كوي او ستاسو د نيكو عملونو هيڅ اجر به كم نۀ كړي، بلكه پوره پوره بدله به دركوي او په خپل فضل او كرم سره به زياتي دركوي۔

فَلَا تَهِنُوا: يعني تاسو د قتال نه مۀ كمزوري كيږئ، وهن كمزورتيا ته وئيلے شي۔ او هغه د دنيا سره مينه كول او د مرګ نه يره كول دي۔ لكه چه حديث كښې راغلي دي۔

وَتَدْعُوٓا إِلَى السَّلْمِ : دا په (تَهِنُوا) عطف دے نو د (لَا) د لاندے دے۔ ځكه مجزوم هم دے۔ او دا د وهن يو صورت دے۔

زجاج وائي : چه دلته الله تعالىٰ مسلمانان ددے نه منع كړل چه كافرانو ته اول د صلح دعوت وركړي بلكه دوي ته ئے حكم وكړو چه د هغوى سره جنګ وكړي تردے چه هغوى اسلام راوړي يا هغوى صلح ته دعوت وركړي، نو بيا صلح جائز ده لكه په آيت د سورت انفال (٦١) كښې دي : ﴿وَإِنْ جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا﴾

كه هغوى صلح ته مائل شي نو تۀ هم مائل شه) ځكه چه اول صلح ته دعوت وركول دليل د كمزورتيا وي۔

وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ: ١- يعني تاسو به غالب يئ كه تاسو كښې صحيح ايمان وي۔ لكه دا قيد په سورت آلعمران كښې ذكر شويدے، او هلته ئے تشريح هم ذكر شويده، چه د مؤمن آخري انجام غلبه او كاميابي ده، يا دا چه كه پوره طريقے سره ايمان انسان كښې راشي نو هيڅكله به شكست ونۀ خوري۔

٢- يا أَنتُمْ أَوْلَىٰ بِاللهِ مِنْهُمْ ۔ يعني تاسو د دوي په نسبت الله ته زيات نزدے يئ۔ نو دا اُوچتوالے په عزت او مرتبه كښې دے۔

يعني هركله چه ستاسو مرتبه د الله په نيز اوچته ده نو سپك كار به نۀ كوئ۔

وَاللهُ مَعَكُمْ : يعني الله تعالىٰ تاسو سره دے په مدد او نصرت سره۔

وَلَنْ يَتِرَكُمْ أَعْمَالَكُمْ : یعنی الله به ستاسو عملونه نهٔ کموی، نهٔ به د هغې ثواب کموي. نو په درې طریقو سره الله تعالیٰ مؤمنانو ته بهادري او تیزي په جهاد ورکړه.

إِنَّمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا : پدې آیت کښې د دنیا بې رغبتي بیانوي ځکه چه د دنیا محبت د جهاد نه د پاتې کیدو سبب دې.

او د جهاد سره مینه هله پیدا کیږي چه د دنیا سره محبت کم شي. او بیا ترغیب ورکوي انفاق في سبیل الله ته.

الْحَيَاةُ الدُّنْيَا : د دنیا ژوند او هغه سامانونه چه د دین دپاره نهٔ خرچ کیږي هغه دلته مراد دي. د دنیا ژوند د لوبو او تماشو په شان دې.

یعني په بې فائدې څیزو باندې مشغوله کیدل دي، بیا په لعب کښې ځان خوشحالول مقصد وي او دا اکثر د ماشومانو کار وي، او په لهو کښې صرف ځان مشغولول وي، او ځان خوشحالول پکښې نهٔ وي، او دا د مشرانو او ځوانانو کار وي.

یعني لکه څنګه چه د لهو او لعب وخت زر ختمیږي نو دغه شان د دنیا ژوند هم دې، هسې خوب لیدل دي، ته فکر وکړه تا په دنیا کښې څومره مزې وکړې او څومره تکلیفونه درباندې راغلل خو ټول تیر شو.

اصل شې ایمان او تقویٰ ده نو ځکه فرمائي :

وَإِنْ تُؤْمِنُوا وَتَتَّقُوا : که تاسو په الله باندې ایمان راوړئ او د کفر او ګناهونو نه بچ کیږئ، نو د هغهٔ وعده ده چه هغه به ستاسو اجر ضائع کوي نهٔ.

او پدې کښې اشاره ده چه کله دنیاوي ژوند سره ایمان او تقویٰ جمع شي نو بیا په هغې سره ډیرې فائدې حاصلیږي.

د تقویٰ نه مراد د شرك، بخل، او وهن نه بچ کیدل دي.

وَلَا يَسْأَلْكُمْ أَمْوَالَكُمْ : او ستاسو مالونه د هغهٔ د ځان دپاره په کار نهٔ دي، ځکه هغه خو غني او بې نیازه دې، که چرې هغهٔ تاسو نه مال غوښتلې، او په غوښتلو کښې ئې د زارئ او ټینګیدو نه کار اخستلې نو تاسو به کنجوسي شروع کړې وې، او د اسلام په خلاف به ستاسو د زړونو کینې را بهر شوې وې. هغه خو تاسو نه توحید، د شرك رد او صرف د خپل طاعت او بندګئ غوښتنه کوي.

دې کښې دویم تفسیر دا دې چه ﴿ وَلَا يَسْأَلْكُمْ أَمْوَالَكُمْ ﴾ یعني هغه تاسو نه ستاسو ټول

مال نهٔ غواړي، بلکه صرف دوه نیم فیصده غواړي، دے دپاره چه ددے په ذریعه ستاسو د محتاجو او فقیرانو مسلمانانو ورونو ضرورت پوره کړي. که چرے هغهٔ ستاسو ټول مال غوښتلے، او په دے باندے ئے ټینګار کولے نو تاسو به په کنجوسئ کښې راغلي وے (لکه چه دا د انساني طبیعت خاصه ده چه څوك ددهٔ نه په مال غوښتلو کښې د ټینګیدو نه کار اخلي نو هغه زیات بخیل جوړیږي) د اسلام خِلاف به ستاسو د زړونو کینے را بهر شوے وے، او تاسو به د هغه دین نه نفرت کولے کوم چه تاسو نه ستاسو ټول مال غواړي.

دریم تفسیر دا هم دے چه دا نبي ستاسو نه په بیان باندے ستاسو نه مالونه نهٔ غواړي بلکه مُفت ئے درته بیانوي، او دارنګه ایمان او تقویٰ اختیار کړئ پدے باندے اجرونه ملاویږي، او ستاسو هیڅ شے په کښې نهٔ خرچ کیږي یعنی ګټه ده او تاوان پکښې نشته.

إِنْ يَّسْأَلْكُمُوْهَا: یعنی که تاسو نه ټول وغواړي.

فَيُحْفِكُمْ: اَیْ یُبَالِغُ فِیْ طَلَبِهَا - یعنی زور ورکړي په تاسو باندے په طلب د هغے کښې. یعنی چه دربانده لازم ئے کړي، او هرچه د استحباب په طریقه طلب دے نو هغه ئے کړیدے. اِحْفَاء په اصل کښې د یو شي بیخکنی کول او زور کول دي.

وَيُخْرِجْ أَضْغَانَكُمْ: یعنی دا ټول مال غوختل به ستاسو کینے راښکاره کړي، بیا به وایئ چه دا څنګه دین دے چه زمونږ نه ټول مالونه غواړي، خو دا د منافقانو صفت دے او مؤمن خو په الله باندے ځان او مالونه خرڅ کړیدي، هغه هر حکم ته تیاریږي البته منافقان او ضعیف ایمان والا به دے ته تیار نشي.

هَاأَنْتُمْ هٰؤُلَاءِ تُدْعَوْنَ: مخکښې آیت نه معلومه شوه چه الله مال نهٔ غواړي نو هیڅ مال به نهٔ لګوو؟ نو اُوس الله تعالیٰ بیرته ترغیب انفاق ته ورکوي چه مال به ضرور لګوئ، او بخل به نهٔ کوئ.

تُدْعَوْنَ: یعنی تاسو په قرآن او حدیث کښې رابللے شئ.

ربط:

مخکښې ئے ووېل چه د ټول مال طلب په وخت هم دوي بخل کوي نو اُوس د هغے نه

ترقي کوي په زجر کښې چه تول مال خو پريده که لږه حصه مال خرچ کول ترے وغوختے شي هم دوي بخل کوي۔

فَإِنَّمَا يَبْخَلُ عَنْ نَفْسِهِ : (۱) دے کښې تاويلي معنیٰ دا ده : [فَإِنَّمَا يَبْخَلُ بُخْلًا صَادِرًا عَنْ نَفْسِهِ الْخَبِيثَةِ] دے بخل کوي چه دا بخل ئے راوتے دے ددهٔ د خبيث نفس نه۔

يعني دهٔ له پدے خبره پوهيدل پکار دي چه د بخل نقصان به هم دهٔ ته رسيږي ځکه چه د لوي اجر نه به محروميږي۔

(۲) ظاهر تفسير دا دے چه هر انسان چه کوم انفاق کوي نو دا په حقيقت کښې په خپل ځان انفاق کوي، ځکه د الله په لاره کښې مال لګول د خپل ځان دپاره آخرت برابرول او د الله رضا حاصلول دي۔ نو معلومه شوه چه څوك بخل کوي نو هغه د خپل ځان نه بخل کوي، يعني په خپل ځان مال نهٔ لګوي۔ ولے که دهٔ په خپل ځان باندے رحم کولے نو مال به ئے د الله په لاره کښې لګولے نو نفس به ئے کامياب شوے وے۔

نو د عَنْ نَفْسِهِ معنیٰ دا شوه چه په بخل سره ئے ځان له فائده ورنکړه، د خپل نفس نه هم بخيل شو۔

وَاللَّهُ الْغَنِيُّ: يعني الله ته خو د بندګانو د مال ضرورت نشته، هغه خو غني اوبے نيازه دے، د آسمانونو او زمکے د خزانو مالك هم هغه دے، محتاج خو بندګان دي چه هيڅ شے د دوئ په اختيار کښې نهٔ دے، د دوئ د ژوندون يو يوه لمحه د محتاجيو نه ډکه ده۔ الله تعالیٰ ورکړه کوي نو بندګان ئے مومي۔ هغهٔ بندګانو ته د مال خرچ کولو نصيحت خپله د دوئ د ښيګړے دپاره کړے، دے دپاره چه د دوئ نفسونه د حرص او لالچ نه پاك شي، او د دوئ مال هم پاك پاتے شي، او د جهاد تيارے وکړي او د الله او رسول دشمنان اُووژني او د خپل عزت او ځان او مال حفاظت وکړي۔

وَأَنْتُمُ الْفُقَرَاءُ: تاسو محتاج يئ الله ته او د هغهٔ رحمت او خيرونو ته او د انفاق اجر ته۔

وَإِنْ تَتَوَلَّوْا يَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ : يعني که چرے تاسو د ايمان او تقویٰ د لارے نه واوړئ، نو هغه به ستاسو په ځائے يو بل قوم راولي چه هغه به تاسو نه زيات د الله فرمانبردار او خبره منونکے وي، د هغهٔ په لاره کښې به د خرچ کولو نه ستاسو غوندے بخل نهٔ کوي او د هغهٔ تمام امرونه او منع کړي کارونه به په ځائے راوړي۔

مفسرین لیکی پدے جمله کښې صحابه کرامؓ ته د خیر رغبت ورکول وو، دے دپاره چه دویٔ د اسلام د نعمت قدر اُوکړی، او د الله په لاره کښې خپل هر څۀ ورکړی۔

او تاریخ ګواه دے چه صحابه کرام رضوان الله علیهم اجمعین په دے کسوتی (معیار) بانـدے پوره برابر شوی دی، دویٔ د اسلام بوتو ته په اویو اچولو کښې خپل ځان او مال او عزت هر څۀ لګولی دی، او الله د دویٔ نه راضی شو او دویٔ د الله نه راضی شول۔

دارنګه پدے کښې د مدینے منافقانو ته هم اشاره وه چه که هغوی وخت په وخت د جهاد او انفاق نه مخ اړوی نو الله به دوی هلاك کړی او د دوی په ځای به انصار د مدینے د دین د حفاظت دپاره مقرر کړی لکه چه همداسے وشوه۔

او دارنګه پدے کښې روستو امت هم یره ول دی چه د الله په دین غیرت وکړیٔ، مال او نفس ولګویٔ، او د الله پوره تابعدار شیٔ ګنے الله سره ستاسو نه سویٔ نور ډیر مخلوق شته چه هغوی به پوره تابعدار وی۔ لکه چه په عامو عربو کښې سستی پیدا شوه نو الله د دین کار عجمو ته وسپارلو لکه امام بخاریؒ، مسلمؒ، ترمذیؒ، ابوداودؒ، نسائیؒ، ابن ماجۃؒ او نور مشهور محدثین او فقهاءؒ چه دوی په خپلو کتابونو سره د دین اسلام حفاظت وکړو۔

امام ترمذیؒ د ابو هریره ﷺ نه روایت راوړیدے چه څه کسانو د صحابه کرامؓ نه وفرمایل : اے د الله رسوله !

[مَنْ هٰؤُلَاءِ الَّذِيْنَ ذَكَرَ اللّٰهُ اِنْ تَوَلَّيْنَا اُسْتُبْدِلُوْا بِنَا ثُمَّ لَا يَكُوْنُوْا اَمْثَالَنَا ؟]

دا خلق څوك دی چه الله ذکر کړیدی چه که مونږ واوړیدو نو زمونږ په بدل کښې به راوستے شی بیا به زمونږ په شان نۀ وی؟ هغه فرمائی : د رسول الله ﷺ څنګ ته سلمان فارسی (ﷺ) ناست وو نو رسول الله ﷺ د سلمان ورون ووهلو او وے وفرمایل :

(هٰذَا وَاَصْحَابُهٗ) دے او دده ملګری (یعنی فارس والا/ عجم) بیائے وفرمایل :

[وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَوْ كَانَ الْاِيْمَانُ مَنُوْطًا بِالثُّرَيَّا لَتَنَاوَلَهٗ رِجَالٌ مِنْ فَارِسَ]

قسم په هغه ذات چه زما نفس د هغۀ په لاس کښې دے که چرے ایمان د ثریّا ستوری سره ونښلی خامخا د فارس سړی به (ورشی او هلته نه به) ئے حاصل کړی۔

الترمذی رقم (۳۲٦۱) (واسناده صحیح- البانی)

مجاهدؒ وائی : د تولو خلقو نه چه الله تعالیٰ چا لره غواړی هغه به راولی۔ او همدا قول

غوره دی۔ ځکه چه په هر امت کښې نیکان خلق د بدانو په ځای قائمیږی۔ وبالله التوفیق۔

## امتیازات د سورت

۱- پدے سورت کښې زیات فرقونه د مؤمن او د کافر بیان شو۔
۲- اهتمام د اعمالو پدے سورت کښې زیات وو۔
۳- اتلس صفات د منافقانو او اتلس د مؤمنانو بیان شو۔
٤- مسئله د صلح او هجرت او د جهاد حکمتونه پکښې ذکر دی۔

---

ختم شو تفسیر د سورة محمد په توفیق د رب العالمین مالك یوم الدین سره په سنه ۱٤۳۷ هجری، جمادی الثانیه ۲۰/ موافق : ۲۷/۳/۲۰۱٦ صباح یوم الاحد۔
او پدے سره اختتام ته ورسیدو لسم جلد د تفسیر حکمة القرآن۔
او ختم شوه دوباره تصحیح او نظر ثانی په سنه (۱٤۳۷/شوال ۲٤ لیلة السبت) بجه ۱۰:۵۰ ۔ موافق : ۲۰۱٦/ جولائی (۲۹) پشکال ۱۳ ورخ۔
والاخراج : ۱٤۳۸ هـ ربیع الاول : ۲۵/ موافق : ۲۲/۲۱/۲۰۱٦ لیلة الجمعة۔

# فهرست تفسیر حکمة القرآن جلد (۱۰)

دفتر تمام گشت و بپایان رسید عمر ما همچنان در اول وصف تو مانده ایم

وقت الاخراج: ۱۴۳۸ ربیع الاول ۲۱ الموافق: ۲۳/۱۲/۲۰۱۶ یوم الجمعة

السلام علیکم

دا تفسیر چه چا ته
ورسی لو په خپل
د واٹ ساف پیج
او د فیس بک د
پیج نه دی نشر
کنئ. چه فائده ئی
عامه شی جزاک الله